يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ

په پښتو ژبه کښې د قرآن تفسیر مع مفصل حل لغات او تحقیقي انداز

کتابي علمي تحفه

# رُشدُ القرآن

فی

# تفسیرِ آیاتِ القرآن

پنځم جلد

له ابتداء د سورة النور نه تر آخره د سورة الاحزاب پورې


مؤلف

شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا اصیل الله صاحب هزاروی رحمة الله علیه

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿يَهۡدِيٓ إِلَى ٱلرُّشۡدِ فَـَٔامَنَّا بِهِۦۖ وَلَن نُّشۡرِكَ بِرَبِّنَآ أَحَدٗا﴾

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقیقی انداز کښې، علمی او الهامی نکاتو باندې مشتمل، لاجوابه علمی تحفه

# رشد القرآن

## فی تفسیر آیات القرآن

## پنځم جلد

له ابتداء د سورة النور نه تر آخر د سورة الاحزاب پورې

**تالیف**: شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا اُسید الله صاحب رحمة الله تعالی علیه

**ضبط وترتیب**: مولانا ثناءالله صاحب

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿يَهْدِىٓ إِلَى ٱلرُّشْدِ فَـَٔامَنَّا بِهِۦ ۖ وَلَن نُّشْرِكَ بِرَبِّنَآ أَحَدًا﴾

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقیقی انداز کښې، علمی او الهامی نکاتو باندې مشتمل، لاجوابه علمی تحفه

# رشد القرآن

## فی تفسیر آیات القرآن

## پنځم جلد

له ابتداء د سورة النور نه تر آخر د سورة الاحزاب پورې

**تالیف**: شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا اُسید الله صاحب رحمة الله تعالی علیه

**ضبط وترتیب**: مولانا ثناءالله صاحب

# د طباعت ټول حقوق محفوظ دي

د کتاب نوم : رشد القرآن «پنځم جلد» فی تفسیر آیات القرآن.
تالیف : شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا أُسید الله صاحب رحمة الله تعالی علیه
ضبط وترتیب:مولاناثناءالله صاحب
تصحیح ونظرثانی : مولانا تقی الله صاحب 03005774523
کتابت: رضوان الله03409904898
تعداد : ۵۰۰
طبع اول

## د ملاویدو پتې :

۱ ـ مکتبه رشیدیه جدید ، محله جنگی
۲ ـ مکتبه دیوبند ، کمال پلازه کوهاټ .
۳ ـ مکتبه رشیدیه، اکوړه خټك .
۴ ـ مکتبه علمیه اکوړه خټك.

| رکوع | سورة النور مدنية | آيتونه |
|---|---|---|
| ۹ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۶۴ |
| | خاص په نوم د الله سره چه بیحده مهربان او ډیر رحم کوونکي دي شروع کوم | |

## رقمها حسب التسلسل (۲۴) وحسب النزول (۱۰۲)

سورة النورمدنی سورت دي،ترتیب قرآنی کښ څلورویشتم اوترتیب نزولی کښ یوسل دویم نمبرسورت دي،دَسورة الحج نه مخکښ اوسورة الحشرنه ورستونازل شویدي.زمانه دَنزول ئې سنه(۵ ه)یاسنه(۹ ه)ده(۶۴)ایاتونو اونهه(۹)رکوعاتوباندي مشتمل دي.

**فضیلت** داسورت چونکي په احکاماتودَپردي اواحکاماتو دَمعاشرت باندي مشتمل دي نودَدي وجي نه زنانو دَپاره خصوصاً دَدي دَزده کړي تاکیداً تعلیم ورکړي شویدي. دَحضرت مجاهد رحمه الله نه مرسلاً روایت دي چه نبي پاک ﷺ اوفرمائیلوچه(علموا رجالکم سورة المائدة، وعلموا نسائکم سورة النور)یعني تاسونارینوته سورة المائده زده کوئ اوزنانوته سورة النورزده کوئ دغه شان حضرت حارثه بن مضروب رضی الله عنه فرمائي چه حضرت عمر رضی الله عنه اهل کوفه ته خط اولیکلوچه تاسوخپلوزنانوته سورة النساء، سورة الاحزاب اوسورة النور اوښائي.

**ربط نامی**: دَدي سورت دَماقبل سره ربط اسمی دادي چه سورة المؤمنون کښ ذکراوشوچه (قدافلح المؤمنون)یعنی ایمان والا خلك کامیاب دی، اوپه سورة النورکښ ذکرکیږی چه(الله نورالسّموات والارض)یعني په توحیدسره ټول جهان روښانه اواباددي اودَتوحیدپه نورسره ایمان والوته فلاح اوکامیابي میلاؤشویده.

**ربط معنوی**: دَمضامینوپه اعتبارسره دَدي سورت دَماقبل سورت سره ربط په متعددو وجوهاتوسره دي(۱)دَسورة المؤمنون په اخیرکښ ذکراوشو چه تاسوعبث نه ئې پیدا کړي شوی بلکه دَاحکاماتو مکلف ئې،نوپه سورة النورکښ ځني ددغي احکاماتو نه ذکرکیږی(۲) په سورة

المؤمنون كښ ذكر ووچي (والّذين هم لفروجهم حٰفظون) نو په سورة النوركښ دعفت متعلق احكامات ذكر كيږي (۳) په سورة المؤمنون كښ رد ووپه شرك فعلي او اعتقادي باندې په دلائلو نقليو او عقليو سره او په سورة النوركښ تنبيه وركولې كيږي چې دمسئلې توحيد دوجې نه دمنافقينو دطرف نه تاسو ته مختلف قسم تكليفونه دررسيدلي شي څرنګه دوئ نبي پاكﷺ ته رسولى ووچې په زوجه مطهره ام المؤمنين حضرت عائشه صديقهؓ باندې ئې تهمت لګولې وو (۴) په سورة المؤمنون كښ اوصاف حميده دمؤمنانو ذكرشوي وو .نو په سورة النوركښ اوصاف ذميمه دمنافقينو ذكر كيږي

**خلاصه مضامين**: دسورت دمضامينو مختصره خلاصه داده چې دا سورت دوه (۲) حصو ته منقسم دې، حصه اول دآيت نمبر (۱) نه ترايت نمبر (۵۷) پورې ده. او دويمه حصه دآيت نمبر (۵۸) نه تراخيره پورې ده، په اولې حصې كښ تمهيد. ترغيب الى القرآن. اصلاح دمعاشرت دپاره څلور احكامات، تهمت لګولو باندې زجرونه، دتهمت نه بچ كيدلو دپاره او (۷) قوانين، دعوه د توحيد او په هغې باندې يو نقلي او درې (۳) عقلي دليلونه ذكر كيږي.

دويمه حصه كښ درې (۳) قوانين داصلاح معاشرت دپاره، تقابل دصفاتو دمؤمنانو او منافقينو، او اداب درسول كريمﷺ ذكر كيږي او ددعوى دتوحيد اعاده ده.

**تفصيلي خلاصه**: په اول ايت كښ تمهيد مع الترغيب دې، دآيت نمبر (۲) نه ترايت نمبر (۹) پورې څلور احكامات بيانيږي، په ايت نمبر (۱۰) كښ بيا ترغيب ذكر كيږي، دآيت نمبر (۱۱) نه ترايت نمبر (۱۸) پورې درې قسمه خلكو دپاره زجرونه دى (۱) تهمت لګوونكو دپاره (۲) تهمت نه متاثره او معمولي حصه اغستونكو دپاره (۳) په تهمت باندې خاموشه پاتې كيدونكو او دهغې ردنه كوونكو دپاره، په ايت نمبر (۱۹، ۲۰) كښ تخويف دنيوي، اخروي دې تهمت لګوونكو دپاره په ايت نمبر (۲۱، ۲۲) كښ اداب مؤمنانو ته ذكر كيږي، په ايت نمبر (۲۳، ۲۴، ۲۵) كښ تخويف اخروي دې تهمت لګونكوته، په ايت نمبر (۲۶) كښ دمؤمنانو او منافقانو عادات او بشارت مؤمنانو ته بيانيږي، ايت نمبر (۲۷) نه ترايت نمبر (۳۳) پورې او (۷) قوانين داصلاح معاشرې دپاره بيانيږي، او په ايت نمبر (۳۴) كښ اعاده دترغيب ده سره دتخويف نه، په ايت نمبر (۳۵) كښ دعو دتوحيد سره دتمثيل نه، بيانيږي ايت نمبر (۳۶) نه تر (۳۸) پورې په دعوىٰ دتوحيد باندې دليل نقلي او بشارت ذكر كيږي، په ايت نمبر (۳۹) كښ ددعوى نه شبهه جواب او دمشركينو دشرك تمثيل

بیانیږي، دآیت نمبر(۴۱)نه تر(۴۵)پوري دري(۳)عقلي دلائل په توحیدباندې ذکرکیږي. په ایت نمبر(۴۲)کښې په دویم ځلي ترغیب الي القرآن ذکرکیږي، دآیت نمبر(۴۷) نه تر(۵۲)پوري دمنافقینواودمؤمنانوعادات بیانیږي. په ایت نمبر(۵۳، ۵۴)کښې زجردې منافقینوته.په آیت نمبر(۵۵، ۵۶)کښې بشارت دنیوي دې مؤمنانوته اوپه ایت نمبر(۵۷)کښې تخویف اخروي دې منکرینوته، اوبیاداَیت نمبر(۵۸)نه دویمه حصه دسورت شروع کیږي نوداَیت نمبر(۵۸) نه تر(۲۱)پوري اصلاح معاشرت دپاره دري(۳)قوانین بیانیږي په ایت نمبر(۲۲)کښې مؤمنانوصفات ذکرکیږي، په ایت نمبر(۲۳)کښې داَدابو تعلیم ورکولې کیږي دنبي پاکﷺ متعلق.اودمنافقینو صفات تقابلاً ذکرکیږي اوپه ایت نمبر(۲۴)کښې اعاده ددعوی دتوحید کیږي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سُوْرَةٌ | اَنْزَلْنٰهَا | وَفَرَضْنٰهَا | وَاَنْزَلْنَا | فِيْهَآ | اٰيٰتٍۭ |
| داسورت دې لوئ شان والا مونږ دانازل کړيدې اوفرض کړيدې مونږ(عمل پدې)اونازل کړيدي مونږ پدې کښې حکمونه | | | | | |
| بَيِّنٰتٍ لَّعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ① | اَلزَّانِيَةُ | وَالزَّانِيْ | فَاجْلِدُوْا | كُلَّ وَاحِدٍ | مِّنْهُمَا |
| ښکاره دې دپاره چې تاسوورنه نصیحت حاصل کړئ.زناکاره زنانه اوزناکارسړي پس اووهئ تاسو هريودې دواړونه | | | | | |
| مِائَةَ جَلْدَةٍ ص | وَّلَا تَأْخُذْكُمْ | بِهِمَا | رَاْفَةٌ | فِيْ | دِيْنِ اللّٰهِ |
| سل(۱۰۰)سل(۱۰۰)درې(کورې)اونه دې نیسي تاسولره په دې دواړوباندې ترس په جاري کولودین داللهﷻ کښې | | | | | |
| اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۚ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ② | | | | | |
| کچري يئ تاسوچې ایمان لرئ په اللهﷻ باندې اوپه ورځ دقیامت باندې اوحاضردې شي سزادې دواړوته یوه ډله دمؤمنانو نه | | | | | |

﴿ سُوْرَةٌ أَنْزَلْنٰهَا ﴾دا ترغيب الى القرآن دې او﴿سُوْرَةٌ﴾خبردې دمبتدا محذوفي دپاره چې هذه دې، ددې سورت ابتداء په جداعنوان سره اوشوه دپاره ددې چې اشاره راشي عظمت او اهمیت ددې سورت ته، اوبیاددې عظمت او اهمیت دپاره څوصفات ذکرکړې شو،اول صفت ئې﴿أَنْزَلْنٰهَا﴾ دې اوانزلنا ماضي په معنې دحال سره دې دااول صفت دې چې داعظیم سورت دې چې ددې احکامات مونږ نازله وو،﴿وَفَرَضْنٰهَا﴾دادويم صفت دې "فرضنا"يا په معنې دالزمنا سره دې، يعني

پدي احکاماتو باندې عمل کول مونږ په تاسو باندې ضروري کړيدي او يا فرضنا په معنی دقدرنا سره دې، يعني حدود او نور احکامات پکښې مقرر او ذکر کړی. ﴿وَأَنزَلْنَا فِيهَآ ﴾ دا دريم (۳) صفت دې او انزلنا مکرر ذکر کول دپاره دتعظيم دمنزل دی اګرچې انزال دسورت مستلزم وو انزال دايات بينات لره. امام رازی رحمه الله فرمائي چې اول ځلي ﴿وَأَنزَلْنَا﴾ نه مراد انزال داحکاماتو دې. او دويم ځلي ﴿وَأَنزَلْنَا﴾ نه مراد انزال ددلائلو دتوحيد دې، يعني داسې عظيم الشان سورت دې چې داحکاماتو سره سره پديکښې واضح دلائل دتوحيد هم مونږ نازل کړيدی

﴿لَّعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ﴾ دا استيناف بيانی دې ګوياچې سائل سوال اوکړو چې دا احکامات ولې ذکر شويدی نو جواب اوشوچې لعلکم تذکرون يعني ددې سورت هرهر مضمون ذکر، وعظ او نصيحت دې، تاسو ترينه نصيحت او عبرت واخلئ.

﴿ٱلزَّانِيَةُ وَٱلزَّانِي﴾ تمهيد نه ورستو دا په احکام اربعو کښې اول حکم دې دتطهير دمعاشرې دپاره. يعني کومې زنانه، يا سړي باندې زناکولو جرم ثابت شي نو په صورت دغير احصان کښې هغوئ ته سل (۱۰۰) کوړې ورکړئ او نرمي ورسره مه کوئ او دعامو مسلمانانو په حضور کښې ورته سزا ورکړئ. او ﴿ٱلزَّانِيَةُ وَٱلزَّانِي﴾ په نيزدسيبويه دا مبتداده او خبرئې محذوف دې چې حکمهافيما سيتلیٰ عليکم دې او ﴿فَٱجْلِدُوا﴾ ورله تفسير او بيان دې او مذهب داخفش وغيره دا دې چې دا مبتداء ده او خبرورله ﴿فَٱجْلِدُوا﴾ دې او په خبرباندې فاء ځکه داخله شويده چې مبتدا مشابه دشرط سره ده، او پدې ايت کښې تقديم دزانی (زناکوونکی زنانه) په زانيې باندې شويدې ځکه چې زناډيرقبيح او ډيردبې حيايئ والاجرم دې او زنانه سره مناسبه حيا او پرده ده لکه څرنګه چې سرقه عيب دې په سړي کښې ځکه چې منافي ده دهمت سره نو کله چې يوه زنانه بې حيا او بې پرده شي نو هغه اولی بالعقوبة وي نو ځکه تقديم دزانيې راغې او امام کرخي فرمائي چې سرقه کښې دسړي ذکرمقدم وو او دلته دزنانه ذکرمقدم شو وجه دا ده چې سرقه له ډاره جسارت او جراءت ضروري وي هغه په سړي کښې دښځې په نسبت زيات وي او زنا دشهوت دوجې نه وي او زنانو کښې په خپل شهوت باندې کنټرول کمې وي (حاشيه جمل) او حضرت تهانوی رحمه الله دشيخ الهند رحمه الله توجيه ذکرکړيده چې په

ایت دَسرقي کښې تقدیم دَرجل دَاصالت دَوجي نه دي ځکه عام اسلوب دَقرآن دې. اودلته تقدیم دَزانیې دَدري(۳) وجوهاتو نه دې(۱) اکثروقوع دَزنادَزنانونه کیږي ځکه چې دوئ ناقصات العقل اورقیق القلب دی(۲)دوئ صنف نازك دي نوچابه داتوهم کولوچې ممکنه ده دوئ دپاره ده په حدکښې نرمي وي. نودَغي توهم دَدفعیې دپاره ئې تقدیم اوشو(۳) زنادیرعیب دې په زنانوکښې.

**فائده**: حقیقت دَزناپه مسلك احنافوباندې دادې وطء في قبل خال عن ملكٍ وشبهةٍ یعني زنادَهغې وطې نوم دې چې دَبوي زنانه سره په قبل(مخکښنئ حصه دَشرمګاه)کښې اوکړې شي چې خالي وي دَملك اوشبهې دَملك نه اوشبهه په دوه(۲)قسمه ده یوه(۱)شبه في الفعل اودویمه(۲) شبه في المحل، والتفصیل في كتب الفقه.

زانیه اوزاني کله محصن وي اوکله غیرمحصن، شرائط دَاحصان زمونږ فقهاؤ داذکرکړیدی. ازاد،مسلمان،عاقل، بالغ اودَنکاح صحیحه نه ورستودَخپلي بې بي سره ئې کوروالې کړې وي چې دامذکوره شرائط په چاکښې ټول موجودوي نوهغه به محصن وي اوکه یوشرط پکښې هم کم شونوزمونږپه مسلك هغه ته محصن نشي وئیلې کیدې، اوامام شافعيرحمه الله دَاحصان دپاره اسلام شرط نه وائې، دهغه په مسلك کافر هم رجم کیدې شي لکه نبي پاكﷺ په مدینه کښې یویهودي اویهودیه سنګسارکړې وو(بخاري)لیکن احناف فرمائيرحمهم الله چې ابتداءً اسلام دَشرائطودَاحصان نه نوو اوورستوبیادَاحصان دپاره اسلام هم ضروري شو دَوجي دَدي قول دَنبيﷺ نه چې:من اشرك بالله فلیس بمحصن(دارقطني،اسناده صحیح)

پدې باندې دَټول امت اتفاق دې چې پدې ایت کښې چې کومه سزاذکرکیږي نودادَ غیرمحصن سزاده. نودَهغه سزاپدې ایت کښې سل(۱۰۰)کوړې ذکرده، په ځنې احادیثو کښې ورسره اضافه دَنفي اوتغریب عام(یوکال دپاره جلاوطنئ) هم راغلیده دَاحنافو په مسلك حکم دَنفي اوجلاوطنئ سیاسةً دې اوحدأندې اوباقي ائمو په نیزداحکم حدأدې. البته ددوئ په خپل مینځ کښې معمولي اختلاف دې چې امام مالكرحمه الله دَدي حکم نه ښځه مستثني کوي چې دزنانه دپاره نفي نیشته دې باقي تفصیل په کتابونودَفقهی کښې دې اوهرچه دې محصن زاني نودهغه سزارجم ده چې په احادیثومتواتروسره ثابته ده اوحکم دهغې قطعي دې لکه ځرنګه تعدادرکعاتونودَمانځه اومقادیردَزکوة دی. دغه شان دَقرآن دَاشارة النص نه هم حکم دَرجم ثابتیږي لکه حدیث کښې دې چې خیبرپه یهودیانوکښې یوسړی اوښځې زنااوکړه نونبيﷺ دَهغوئ

دَشريعت موافق فيصله درجم اوکړه اوهغوئ انکاراوکړو دهغې په باره کښې دَسورة المائده ايت نمبر(۴۲، ۴۳)نازل شواوشرائع من قبلنابلانکيرذکرکيدل دليل دَنفاذدې بلکه رجم ته حکم الله وئيلې شويدی

دغه شان بعض حضرات فرمائې چې حکم دَرجم ابتداءًدَقرآن مجيدکښې صراحتانازل شوې وو. چې هغه داسې وو: الشيخ والشيخة اذا زنيافارجموهما نکالامن الله،والله عزيزحکيم. اوبيادَدې تلاوت منسوخ کړې شو اوحکم ئې برقرارپاتې کړې شواودَدې وجه نه حضرت عمرﷺ اوفرمائيلوکچرته ماسره دَخوف نوې چې خلك به وائې چې عمرﷺ دَخپل طرف نه په کتاب الله کښې اضافه اوکړه نومابه داايت په قرآن کښې ليکلې وو.

هرچې دې زاني محصن نودَهغه سزاخورجم ده البته په دېکښې دَآئمه اختلاف دې چې هغه ته اولاً کوړې-ورکولې شي اوکه نه صرف رجم کولې به شي نودَجمهورقول دادې چې صرف رجم کولې به شي اوجمع په مينځ درجم اوجلدکښې نيشته دې، اوامام احمدبن حنبلﷺ په نيزاول به په کوړو وهلې شي اوبيابه رجم کولې شي دَجمهورومستدل هغه ټول روايات دی چې په هغې کښې صرف دَرجم ذکرراغليدې اودَجمع ذکرپکښې نيشته دې، لکه واقعه دَحضرت ماعزبن مالك شوه چې دَزناپه جرم کښې سنګسارشوې وو، دغه شان دَغامدئې قبيلې زنانه اودَجهينه قبيلې زنانه چې صرف سنګسارکړې شوې وې، دغه شان روايت دَزيدبن خالدﷺ اوحضرت ابوهريرةﷺ چې مخکښې تيرشويدې په هغې کښې ذکرصرف درجم دې اودغه شان هغه ايت چې منسوخ التلاوة اوثابت الحکم دې په هغې کښې هم صرف دَرجم ذکردې.

اوامام احمدبن حنبلﷺ استدلال کوی دهغه رواياتواوآثارونه چې هغې کښې دجلداو رجم دواړه ذکردی.جمهوروترينه جواب داکوی(۱)کوم احاديثو کښې دَدې ذکر دی،دا دَقبل النسخ روايات دی،اوبياماعزواقعې سره منسوخ شو.(۲)يادا چې اول دَزانې احصان علم نه وؤنوځکه جلد کړيشو ،بياچې کله پته اولېګده نو رجم کړيشو.

خلاصه داده چې دَاحنافوپه مسلك زاني غيرمحصن حدسل کوړې دې اوکچرته امام اوحاکم وقت مصلحت په دېکښې اوګوري چې دې، دې جلاوطن کړې شي نوسياسةً ئې جلاوطن کولې شي اوزاني محصن سزاصرف رجم ده، والله اعلم وعلمه اتم.

﴿وَلَا تَأۡخُذۡكُم بِهِمَا رَأۡفَةٌ﴾رافت معنې رحم دې اودَ ﴿فِي دِينِ ٱللَّهِ﴾نه مراد دَالله ﷻ حکم اجراء ده چې اقامت دَحدودودې، يعني کوم حدچې الله ﷻ مقررکړيدې، نودَهغې په نفاذکښ دَزاني اوزانيې سره نرمي مه کوئ اونرمي داده چې دَسل(۱۰۰)کوړونه کمه سزاورکړې شي،ياورو ورو اوهلې شي چې هغه ته بالکل تکليف ميلاؤنشي يابالکل معاف کړې شي اودغه شان دَچانه حدساقطول دَپاره سفارش کول هم پدې نهي کښ شامل دي.

﴿إِن كُنتُمۡ تُؤۡمِنُونَ﴾دَدې مقصددادې چې حدودالله کښ نرمي کوونکي مؤمن ندي، بلکه داددَباب دَتهيج نه دې لکه يوسړې ته اوئيلې شي چې ان کنت رجلافافعل کذا نودَهغه په رجليت کښ چاته شك نوي، خودَبرانګيخته کولودَپاره داسې عبارت وئيلې کيږي.

﴿وَلۡيَشۡهَدۡ عَذَابَهُمَا﴾يعني دَحدودالله نفاذدَعامومسلمانانوپه حضورکښ پکاردې، ځکه چې يوخوبه مجرمان اوشرميږي اوبيادَپاره به پدې جرم باندې جرأت نه کوي اوبله وجه داده چې عام خلك به هم عبرت واخلي اودَجرمونونه به منع شي.

| |
|---|
| ٱلزَّانِي لَا يَنكِحُ إِلَّا زَانِيَةً أَوۡ مُشۡرِكَةٗ وَٱلزَّانِيَةُ لَا يَنكِحُهَآ إِلَّا زَانٍ |
| زناکارسړې نکاح نه کوي مګر دَزناکارې يادَمشرکې زنانه سره اوزناکاره زنانه دَهغې سره نکاح نه کوي مګر زناکار |
| أَوۡ مُشۡرِكٞۚ وَحُرِّمَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ۝٣ |
| يامشرك سړې اوحرام کړې شويدي داکارپه مؤمنانوباندې |

﴿ٱلزَّانِي لَا يَنكِحُ﴾دادويم حکم دې دَتطهيردَمعاشرې دَپاره يعني دَاسلامي معاشرې اوپاك معاشرې دَپاره ضروري ده چې خانداني ژوندپاك وي اودَپاکې خانداني ژوند دَپاره ضروري ده چې پاکدامنه سړې يابنځه دَبدکارې ښځې ياسړې سره نکاح اوازدواجيت تعلق اونه لري دَزانيانواومشرکانومعاشره ګنده وي دَدوئ ديوبل سره زيات مناسبت دې.

دَدې ايت دَظاهرنه دامعلوميږي چې زاني به دَزانيې سره نکاح کوي اودَپاکدامن سړي يابنځې نکاح به دَبدکاروښځوياسړوسره به نه کيږي اوحالانکه دادَمشاهدې نه هم خلاف دې اودغه شان دَسورة النسآء ايت نمبر(۲۴)واحلّ لکم ماوراء ذٰلکم سره متعارض دې.

دَدي اشكال نه په متعددطريقوسره جواب شويدي (۱) بعض فرمائي چي نفي په معنې دَنهي سره دې اوابتداء دَاسلام كښې داسي حكم وو چي دَبدكارسړي يازنانه سره به دَپاكدامني ښځې ياسړي نكاح نوجائز. اوبياورستوداحكم منسوخ كړې شوپه ايت ﴿وَأَنكِحُوا۟ ٱلْأَيَـٰمَىٰ ﴾ (النور ۳۲) سره (۲) بعض فرمائي چي ايت خاص دې په خپل موردپوري اوددينه مرادمتعين بدكاري ښځي دي لكه دَدي په شان نزول كښې متعددواقعات منقول دی په روايت دَترمذي اونسائي وغيره كښې دی چي داايت په باره دَمرثد ﷺ كښې نازل شويدې چي دَجهالت په دوركښې دَهغه دَيوي زنانه سره ناجائزتعلقات وو ،نودَاسلام راوړلونه پس يوه ورځ دَده تيريدل دَهغې په په كورباندې اوشونوهغې ورته دَبدكارئ مطالبه اوكړه، ده ورته اوئيل چي خه اوس مسلمان يم اواسلام ماته دَدي كاراجازت نه راكوي اودَنبي ﷺ نه ئې دَدي زنانه سره نكاح كولواجازت اوغوختلو ،نبي ﷺ ورته هغې وخت څه جواب ورنكړو حتې چي داايت نازل شو ،نبي ﷺ ده ته داايت تلاوت كړو اوورته ئې اوفرمائيلو چي ته دَدي سره نكاح مه كوه، قال الخطاب هذاخاص بهذه المرأة اذكانت كافرة، فاما الزانية المسلمة فان العقدعليهالايفسخ(قرطبي).

(۳) بعض فرمائي چي نكاح دلته دَوطې په معنې سره دې،نودَ﴿لَا يَنكِحُ ﴾معنیٰ لايطاء ده اودَايت مقصددادې چي يوزاني سړې چي زنااووطې كوي نودَزانيې سره كوي اگرچه هغه مسلمانه وي اويادَمسلماني نه بدترمشركي سره كوي، اوپاكدامني زنانه سره نه كوي، اودغه شان زاينه ښځه چي زناكوي نويادَمسلمان زاني سره كوي اويادَمشرك زاني سره كوي اودَهغې سره بدكاري كوونكي پاكدامن انسان نوي،نوپدي ايت كښې اشاره ده چي اثردَدې قبيح عمل په دواړوجانبينوباندې يوشان دې، دَيوجانب نه پته لگي چي دابل جانب هم بدكاردې اودَبدكارويوبل ته طبعي ميلان اورجحان ډيرزيات وي.

(۴) بعض فرمائي چي نكاح په خپلي معنې سره دې،اودلته عدم لياقت دَفعل نه تعبيرپه عدم فعل سره شويدې،نو﴿لَا يَنكِحُ ﴾ په معنې دَلايليق ان ينكح سره دې، يعنې دَزانی سړي نكاح دَپاكدامني زنانه سره لائق ندې بلكه هغه دي دَځان دَپاره زانيه اويامشركه اوگوري اودغه شان دَزانيې ښځي نكاح دَپاكدامن مسلمان سړي سره لائق ندې، بلكه هغه دَدي لائقه ده چي زاني سړي اويامشرك ورله اوكتلې شي، نوددي عدم لياقت نه تعبيربه نفي سره اوشواوپه عرف كښې داسي

عبارات ونيلي كيدې شي لكه خلك وائي السلطان لايكذب نو دَدې مقصد داندې چې بادشاه بالكل دروغ نه وائي بلكه مقصد دادې چې دبادشاه سره دروغ ونيل لائق ندى

﴿وَحُرِّمَ ذَٰلِكَ﴾ دَذلك په مشار اليه كښې دوه احتمالات دى (۱) يو داچې دَدې مشار اليه زناشي اوزنا اګرچه صراحتاندې مذكور ليكن مفهوم كيږي دَ الزانية نه نو پدې اعتبار سره حرمت په معنې شرعي سره دى يعني دازنا په مؤمنانو حرام كړې شويده، (۲) دويم احتمال دادې چې مشار اليه ددې تزويج اونكاح مذكوره شي يعني دزاني سړي يادَزاني ښځي سره نكاح كول. نوبيادا يامنسوخ دې اوياخاص دې په متعينو مؤمنانو پورې اويادَتحريم نه مراد منع اونفرت دې لكه وحرمناعليه المراضع كښې تحريم دَ منع په معنې سره دې اودَمؤمنانو نه مراد اعلې درجې مؤمنان دى.نودَايت مقصد دادې چې تكويني طوردَمؤمنانو زړونه مونږ دَبدكارانو نه، متنفر كړيدى.اوبعض مفسرين فرمائي چې حرمت دلته په معنې دكراهت سره دې اوپه زجر كښې تاكيددَپاره دكراهت نه.تعبير په حرمت سره اوشو

حضرت تهانوي رحمه الله يوه بله توجيه ذكر كړيده چې هغې ته قريبه توجيه شيخ زاده محشي قاضي بيضاوي دَعلامه نفسي نه نقل كړيده، خلاصه ئې داده چې پدې ايت كښې دَعادي زاني اوزانيې قبيح عمل اوفعل ذكر كيږي، چې عادي زاني مقصد اصلي صرف زناوي.نوكچرته دامقصد بغيردَنكاح نه حاصليدلونو فبها،اوكه نه حاصليدلونودې نكاح ددغي مقصددَپاره وسيله اوګرځوي. اوچونكه دَده مقصد خو صرف جنسي لذت پوره كول وي نودې دَدې خبرې پرواه نه كوي چې دازنانه پيشه وره زانيه ده اونه دَدې پرواه لري چې داپه خپل مذهب باندې يعني په شرك باندې كلكه ولاړه ده،اودَدې سره نكاح باطل دې، دَدې خبرو پرواه ئې نوي،نودامقصد دى دَ ﴿ٱلزَّانِي لَا يَنكِحُ إِلَّا زَانِيَةً أَوْ مُشْرِكَةً﴾ ، اودغه شان چې كومه زنانه عادي بدكاره وي نودَهغې رجحان زانيانوطرف ته وي، اوهغوئ ته په زناكښې لذت حاصليږي، نودَدوئ رغبت هغې خلكوطرف ته نوي چې دَهغوئ مقصد دَنكاح نه حصول دَمقاصدودَنكاح وي مثلاً عفت، اولاد صالح وغيره شو اونه ئې دَدې پرواه وي چې دَتخالف اديانو په صورت كښې نكاح باطل دې بلكه ديوبل نه خپل مقصدپوره كوي،اودا مطلب دې دَ والزانية لاينكحهاالخ نوپه يوصورت كښې ديوثت لازميږي هغه حرام دې بلكه په حديث كښې ددغه شان(ديوث) انسان باندې دَجنت حرام

کیدلوذکردي، اوپه دویم صورت کښ تخالف ادیان هم راځي داهم حرام دي. نوځکه اوئیلي شو چې ﴿وَحُرِّمَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ﴾ ،والله اعلم.

| |
|---|
| وَٱلَّذِينَ يَرۡمُونَ ٱلۡمُحۡصَنَٰتِ ثُمَّ لَمۡ يَأۡتُواْ بِأَرۡبَعَةِ شُهَدَآءَ فَٱجۡلِدُوهُمۡ |
| اوهغه کسان چې بدنامه لګوي په پاکدامنو زنانه ؤ باندې بیارانه ولی ځلورګواهان نو اوهئ دوئ لره |
| ثَمَٰنِينَ جَلۡدَةٗ وَلَا تَقۡبَلُواْ لَهُمۡ شَهَٰدَةً أَبَدٗاۚ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡفَٰسِقُونَ ﴿٤﴾ إِلَّا ٱلَّذِينَ |
| اتیا (۸۰) درې (کوړې) اومه قبلوئ دوئ لره ګواهي هیڅ چرې، اودغه کسان دوئ نافرمان دي مګرهغه کسان (فاسقان ندي |
| تَابُواْ مِنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ وَأَصۡلَحُواْ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿٥﴾ |
| چې توبه اوکړي ورستودَي کارنه اونیك کړي عملونه پس بیشکه الله ﷻ بخنه کوونکي رحم کوونکي دي |

﴿وَٱلَّذِينَ يَرۡمُونَ﴾ دادریم حکم ذکرکیږي دَپاره دَتطهیردَمعاشري یعني هرکله چې داخبره معلومه شوه چې زنایوقبیح جرم دي چې دَهغې عادي دَمسلمانانوپه معاشري کښ دَاوسیدلوقابل ندې نودغه شان دَزناتهمت لګول هم یوډیرقبیح کاردې، نولهذا څوك په چاباندې دَزناتهمت اولګوي اوثبوت پرې پیش نکړي شي چې هغه څلورګواهان دي (دَڅلوروګواهانوصفات، اوکیفیت اوطریقه دګواهي په کتب دَفقه کښ تفصیلاً موجوده) نودغه کس ته به حدقذف ورکولې کیږي چې هغه اتیا (۸۰) کوړې دي.

﴿ٱلۡمُحۡصَنَٰتِ﴾ هرکله چې دَدې حکم دَنزول دَپاره اصل سبب حضرت عائشه ؓ باندې تهمت لګیدل اودَالله ﷻ دَطرف نه دَهغې دَبراءت اواحصان اعلان کیدل وونودَي وجې نه ﴿ٱلۡمُحۡصَنَٰتِ﴾ په صیغې دَمؤنث سره ذکرشوه، کني داحکم دَسړودَپاره هم دي اودغه شان پدیکښ اشاره ده دیته چې په زنانوباندې تهمت لګول ډیرقبیح دی اوشرائط دَاحصان په مقذوف کښ څلوردی، عاقل، بالغ، مسلم، عفیف من الزنا، اوعفیف من الزنا، هغه چاته وئیلې کیږي چې نه دَوطي حرام مرتکب وي اونه پرې اثاردَوطي حرام ظاهروي نوپه حمل غیرثابت النسب سره دَزنانه عفت ختمیږي.

**فائده** دحضرت عائشهؓ دبراءت اعلان قرآن کريدي اودهغې داحصان ګواهي اللهﷻ پخپله ورکړه نوبياهم کچري څوك په ام المؤمنينؓ باندې لګولې شوې بهتان کښې شك مندوي اودهغې په بطلان باندې يقين نوي نوداسړې کافردې.

﴿ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ﴾ پديکښې اشاره ده چې حدزنا دثبوت دپاره څلورګواهان به سړي(نارينه)به وي، اودزنانوپه ګواهئ سره حدزنانه ثابتيږي. بهرحال دغه شان کس چې تمت اولګوي اوبياورسره ګواهان نوي نوقرآن هغه دپاره درې قسمه سزاګانې ذکرکوئ دوه{۲} دنيوی او يوه اخروي﴿فَاجْلِدُوهُمْ﴾اوله دنيوی جسماني سزا ده چې اتيا{۸۰}کوړې وهل دی او ديته حدقذف وائي.

﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ﴾دادويمه دنيوي سزاده اوباطني،معنوي سزاده چې ترڅوپورې ژوندې وي نومردودالشهادة به وي،يعني دده ګواهي به نه قبليږي اګرچه ګواه په معاملاتوکښې جوړې دلې شي ليکن شهادت دده قضاء نشي قبليدلې﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ﴾داعلت دسزاګانودپاره ندې، بلکه داځان ته مستقل کلام اوجمله مستأنفه ده اواخروي حکم اوسزا ذکردې اومقصود پدې سره دفع ديوتوهم هم ده، توهم داکيدې شوچې حدودمحض په شبهاتوسره هم دفع کيدلې شي(کماهوالتقرر الحدودتندرأبالشبهات) نوپکارده چې قاذف باندې حدقذف جاري نکړې شي، ځکه چې دنصاب شهادت عدم تکميل باوجود دقاذف رښتياوئيلواحتمال شته دې اودغه شان دااحتمال هم شته دې چې ددين سره محبت اودبې حيائئ سره نفرت اودالله ﷻ قانون دتعطل نه محفوظ کيدلودپاره ممکنه ده چې دې قاذف تهمت لګولې وي نولهذا احتمال اوشبه پکښې راغله نوپکارده چې په قاذف باندې حدقذف نشي جاري،نوددې جواب اوشوچې داخلك فاسقان دي دالله ﷻ دحکم منونکي ندي ځکه چې کله ده نصاب دشهادت نشوپوره کولې نودده پاره حکم دخاموشئ وو نوچې خاموش پاتې نشونودالله ﷻ دحکم خلاف ورزي ئې اوکړه.

**فائده**: کچرته څوك په چاباندې دبدکارئ الزام اولګوي اوبياڅلور ګواهان پيش نکړې شي نوده ته به حدورکولې شي اومردودالشهادت اوفاسق دې، برابره خبره ده که دې په دې خپله خبره کښې رينښتوني وي اويادروغژن وي، هرچې ده داخبره چې دې پدې خپلې خبرې کښې دروغژن وي نودې مردودالشهادت کيدل اوفاسق کيدل ظاهردي ځکه چې ده داعمل دمعاشرې دفسادذريعه

ده اودغه شان ديو مسلمان بې عزتي اوابروريزي كول اودروغ وئيل بذات خوكنده كبيره دد.
اوهرچې دې داچه دې په خپلې دعوى كښې رېښتني وي نوبيا هم محدود اومردود الشهادت دى
ځكه چې قاذف بلاضرورته ديو مسلمان بې عزتي اوكړه اوبلاضرورته ځكه ده چې مقصود ددې
اقسم دعوونه اقامت دحدودووي.او اقامت دحدودو په څلوروګواهانوسره كيږي وهركله چې ده
خپله دعوى په بينة سره اوګواهانوسره نشوه ثابته ولې نودده دپاره حكم دخموش پاتې
كيدلودې ځكه چې دداسې خبرونشرواشاعت ذريعه دفساد دمعاشرې دپاره ګرځي. خوهركله
چې ده داخبره پټه نكړه نودې دمعاشرتي فساد مجرم اوګرځيدونوځكه به ده ته سزاملاويږي

﴿إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا﴾ماقبل ايت كښې دري سزاګاني ذكرشوې نوپديكښې اتفاق دې چې اثردتوبې
په اول سزاكښې يعني اتيا(۸۰)درو(كوړو)كښې ندې ظاهراوپه توبې سره حدنشي معاف كيدلې.په
دويمې سزاچې﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَٰدَةً أَبَدًا﴾ده پديكښې اختلاف دې. امام شافعي وغيره رحمهم
الله فرمائي چې اثرداستثناء په دويمې جملې كښې ظاهردې لكه څرنګه په دريمې كښې ظاهردې.
نولهذا محدودفي القذف چې كله توبه اوباسي اودخپل ځان اصلاح اوكړي نودده شهادت به قبليدې
شي،اوداحنافوپه مذهب دااستثناء صرف دآخري جملې نه ده اودا مذهب دقاضي شريح.ابراهيم
نخعي، سعيدبن المسيب، سعيدبن جبير،حسن بصري وغيرهم رحمهم الله هم دې. اودامسلك
زيات موافق دې دقواعدو داهل عربيت سره اواصول دشرع سره ځكه چې داهل عربيت قانون دې
چې مستثنې دمستثنې منه سره مربوطه اومتصله وي نودلته ارتباط اواتصال صرف داخيري
جملې سره دې اودغه شان داستثناء رجوع سابقه كلام ته دعدم استقلال دمجبورئ دوجې نه وي
اوداضرورت په يوې جملې سره پوره كيږي نوځكه بلې جملې ته درجوع ضرورت نيشته
دې،اودشريعت قواعداواصول هم دادى چې په توبې سره صرف عذاب اخروي دفع كيږي اوحدود
ورسره نه معاف كيږي اومردودالشهادت كيدل دقذف دپاره تكميل دحددې اوداجزء دحدشرعي
دپاره دې نوددې وجې نه داهم په توبې سره نه معاف كيږي، اوداسلوب قرآني نه هم معلوميږي
چې استثناء صرف دآخري جملې نه ده او ﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ﴾نه استثناء نده ځكه چې ﴿وَلَا تَقْبَلُوا﴾
كلام مؤكددې په لفظ دتابيدسره اولفظ دتابيدمعارض دې دتخصيص اواستثناء سره، نوددې
وجې نه غوره قول دادې چې استثناء صرف دآخري كلام ته ده اوټول مجموعي دكلام نه نده.

په بعض رواياتو كښ دى چې كله دا ايت نازل شونو نبي پاكﷺ په هغه څلورو كسانو باندې حدقذف جاري كړو چاچې په حضرت عائشهؓ باندې تهمت لګولي وو چې په هغې كښ يو رئيس المنافقين عبدالله ابن ابي ابن سلول او دري (۳) مخلص مسلمانان حضرت حسان بن ثابتؓ. حضرت مسطح بن اثاثه او حضرت حمنه بنت جحشؓ وو. طبراني په روايت كښ دي چې نبيﷺ په رئيس المنافقين باندې دوه (۲) حده جاري كړى وو.

او بعض فرمائي چې صرف په دري (۳) مسلمانانو باندې حد جاري كړې وو او دَرئيس المنافقين معامله ئې اخرت ته پريخې وه. او ددې قول تائيد په روايت دَ ابوداؤد سره كيږي چې حضرت عائشهؓ فرمائي چې: لَمانزلت عذري قام النبيﷺ فذكر ذلك وتلا القرآن فلمّا نزل من المنبر امر بالرّجلين والمراءة فضربوا حدّهم (ابوداود).

| |
|---|
| وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ اَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَآءُ اِلَّآ اَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ |
| او هغه كسان چې بدنامه اولګوي په بيبيانو خپلو باندې او نوي دوئ دپاره ګواهان مګر خانونه ددوئ پس ګواهي |
| اَحَدِهِمْ اَرْبَعُ شَهٰدٰتٍۭ بِاللّٰهِ اِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۞۶ وَالْخَامِسَةُ |
| ديو ددوئ (خاوند) لره. څلور ګواهئ دي چې قسم په الله جَلَّ جَلَالُهٗ باندې چې بيشكه دي (خاوند) خامخا د رشتينونه دي او پنځمه ګواهي داده |
| اَنَّ لَعْنَتَ اللّٰهِ عَلَيْهِ اِنْ كَانَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ۞۷ وَيَدْرَؤُا عَنْهَا الْعَذَابَ اَنْ تَشْهَدَ |
| چې لعنت دَ الله جَلَّ جَلَالُهٗ دې وي په ده باندې كچرې دې دروغژن وي لرې به كړى دَزنانه نه عذاب (سزا) چې ګواهي اوكړي زنانه |
| اَرْبَعَ شَهٰدٰتٍۭ بِاللّٰهِ اِنَّهٗ لَمِنَ الْكٰذِبِيْنَ ۞۸ وَالْخَامِسَةَ |
| څلور ګواهئ سره دَقسم نه په الله جَلَّ جَلَالُهٗ باندې چې بيشكه دا خاوند خامخا دَ دروغژنونه دي. او پنځم ځلي به (وائي) |
| اَنَّ غَضَبَ اللّٰهِ عَلَيْهَآ اِنْ كَانَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۞۹ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ |
| چې غضب دَ الله جَلَّ جَلَالُهٗ دې وي پدې (زنانه) باندې كچرې دا خاوند ريشتينونه وي. او كچرته نه وي فضل دَ الله جَلَّ جَلَالُهٗ په تاسو باندې |
| وَرَحْمَتُهٗ وَاَنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ حَكِيْمٌ ۞۱۰ |
| او رحمت دَهغه او دا چه بيشكه الله جَلَّ جَلَالُهٗ ډير توبه قبلونكي دي حكمتونو والا دي (نو زربه ئې درله عذاب دركړي وي) |

﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ﴾ داخلورم حکم دې دَتطهير دَمعاشري دَپاره. مخکښې اياتونو کښې په اجنبياتو باندې دَزنا الزام لګولو متعلق احکامات ذکرشو اوس پدې ايت کښې په خپلو بيبيانو باندې دَزنا الزام لګولو متعلق قانون ذکرکيږي، چې هغې ته لعان وئيلې کيږي. چونکه په يو عام کس باندې تهمت لګول او په خپلې بې بې باندې تهمت لګول دواړه دَجدا جدا نوعيت والامسئلې دی، يو عام کس په يوقابل اعتراض فعل باندې کتلو په صورت کښې معامله زياته سنګينه نوې ځکه چې ګواهان ئې کچرته نشو پيش کولې نو خاموشه به پاتې شي او پدې خاموشئ کښې ده ته څه نقصان نيشته دې اودغه شان ګواهان موندل هم اسان وي اوخپله بې بې قابل اعتراض حالت کښې ليدل دَخاوند دَپاره ډيرسخت نوعيت والامسئله وي خاموش نشي پاتې کيدلې او ګواهان نيول هم يو مشکل کاروي، نو دَدې وجې نه شريعت په داسې حالاتو کښې دَ(لعان)قانون مقررکړيدې دې.
لعان دَباب مفاعلې نه دې په معنې دَيوبل باندې لعنت وئيلو سره دې او په اصطلاح دَشرع کښې دَښځې او خاوند په مينځ کښې په مخصوص الفاظو سره قسم خوړلو ته لعان وئيلې کيږي، طريقه دهغې داده چې کله يو خاوند په خپلې بې بې باندې الزام اولګوي او څلور ګواهان پيش نکړي، اويا خاوند نفي دَولد اوکړي چې دا بچې ځما دَنطفې نه ندې نو خاوند به دَقاضي په حضورکښې په لفظ دَاشهد سره به قسم اوخوري چې: اشهدبالله اني لصادق فيمارميتهابه او پنځم ځل باندې به دا اوائي کچرته څه پدې خبره کښې دروغژن يم نو په ما باندې دې دَالله جَلَّ جَلَالُهُ لعنت وي، نو کچرته خاوند دَدې الفاظو وئيلو نه انکار اوکړي نو قيد کولې به شي حتّې چې يا دَخپل ځان تکذيب اوکړي نو حد قذف به پرې جاري شي اويا دې الفاظو وئيلو ته تيارشي او که خاوند دا الفاظ اداکړل نو بيا به ښځه راويستلې شي او دَهغې نه به مطالبه اوکړې شي چې څلورځلې پدې الفاظو سره قسم اوکړه چې: اشهدبالله انه لکاذبٌ فيمارماني به او پنځم ځلې باندې دې دا الفاظ اوائي کچرته دې پدې الزام لګولو کښې رينښتونې وي نو په ما باندې دَالله جَلَّ جَلَالُهُ غضب وي کچرته ښځه دې الفاظو وئيلو ته تياره نشي نو قيدکولې به شي حتّې چې يادې الفاظو وئيلو ته تياره شي اويا دَخاوند تصديق اوکړي اورجم پرې جاري کړې شي او که ښځې دا الفاظ اووئيلو نو لعان به مکمل شي نو خاوند به ياپخپله طلاق ورکړي اويا به قاضي ددوئ په مينځ کښې تفريق راولي. اودَدوئ به په خپل مينځ کښې تعلق دازدواجيت به هميشه دَپاره ختم شي.

**شان نزول**: دَدي په شان نزول کښې دوه (۲) قسمه واقعات په کتب دَاحاديثو کښې منقول دی. يوه واقعه دَهلال بن اميه ﷺ ده. خلاصه دهغې داده چې کله حدقذف ايت نازل شونو دَانصارو مشر سعد بن عباده ﷺ دَخولي نه په تعجب سره داکلمه اووتله چې يارسول الله آيا داايت داسې نازل شويدې؟ نونبي پاك ﷺ انصاروته اوفرمائيلوچې تاسونه اورئ دې سعدخرنګه خبره اوکړه؟ انصارونبي پاك ﷺ ته معذرت اوکړوچې دَده داخبره په قرآن باندې اعتراض ندې بلکه دَشدت غيرت دَوجې نه ده اوبياپخپله هم سعد ﷺ نبي ﷺ ته راغې اومعذرت ئې اوکړو اوعرض ئې اوکړوچې يارسول الله ځمايقين دې چې داايا تونه دَالله ﷻ دَطرف نه، نازل شويدی، ليکن ماته تعجب پدې راغې چې څه دَخپلې بې بې سره يوکس اوګورم په زناباندې نوځه به هغې ته هيڅ نه وايم اوګرزم به ګواهان به لټوم نوترهغه وخته پورې به هغه خپل کارکړې وي اوتختيدلي به وي. څه لږ وخت ورستو حضرت هلال بن اميه ﷺ نبي ﷺ ته راغې اوپه خپلې بې بې باندې ئې الزام اولګولوچې څه ماسخوتن وخت دَخپلې زمکې نه واپس راغلم نومافلانې کس دَخپلې بې بې سره په خپلوسترګوقابل اعتراض حالت کښې اوليدلو اودَهغه خبرې مې په خپلو غوږونوسره واوريدلې. نبي پاك ﷺ اوفرمائيل چې ياخوپدې الزام باندې ګواهان پيش کړه اوياځان حدته تيارکړه، هلال ﷺ عرض اوکړوچې يارسول الله ﷺ نويوسړې به خپلې بې بې سره بل څوك اوګورې اوبيابه هم ګرځي ګواهان به تالاش کوي، نبي ﷺ ورته مسلسل دافرمائيلوچې ياګواهان پيش کړه اوياحدته تيارشه، نوهغه عرض اوکړوچې ځمادې په هغه ذات قسم وي چې ته ئې برحق نبي ﷺ راليږلې ئې، څه پدې خپله خبره کښې رېښتونې يم، الله ﷻ به ضرورمادَحدنه خلاصولودَپاره حکم به رانازل کړي، نودا ايت نازل شو اونبي ﷺ دَدوئ په مېنځ کښې لعان اوکړو.

**دويمه واقعه**: دَحضرت عويمر ﷺ ده چې امام بخاري اومسلم دواړونقل کړيده. مختصره خلاصه دهغې داده چې کله دَحدقذف متعلق مذکوره اياتونه نازل شونو عاصم بن عدي ﷺ نبي پاك ﷺ ته عرض اوکړوچې يارسول الله ﷺ کچرته يوسړې دَخپلې بې بې سره بل څوك په زناباندې اوګورې نوده نه به اجازت نوي چې دې خپله واقعه بيان کړي اوکچرې ئې بيان کړه نوسزاکښې به ورته حدورکولې کيږي. مردودالشهادة اوفاسق به وي يعني هغه سوال ئې اوکړوچې کوم سوال په مخکنئ واقعې کښې حضرت سعد ﷺ کړې وو. پدې خبرې باندې يوه جمعه تيره شوه چې دحضرت عاصم بن عدي ﷺ په خاندان کښې دغه شان کاراوشوچې دده دَتره ځوی حضرت

عويمر ﷺ هغه دَخپلي بي بي خوله سره (داهم دده دَتره لوروه) يوځپل بل تره ځوي شريك بن سمحاء په قابل اعتراض حالت کښ اوليدلو. عويمر ﷺ راغي اوواقعه ئې حضرت عاصم ﷺ ته بيان کړه اوهغه نبي ﷺ ته بيان کړه. نبي ﷺ ښځه اوخاونددواړه رااغوختلواوورته ئې اوفرمائيلوچې الله ﷻ ستاپه باره کښ ايت نازل کړيدې. اوددوئ په مينځ کښ ئې لعان اوکړو

**فائده** بعض محدثينودَايت دَشان نزول دَپاره دواړه واقعې اصل ګرځولي دی يعنې دواړو واقعودَ ظهورنه پس داايت نازل شو، اوبعض محدثينودَايت مکررالنزول قول کړيدې. چې دواړو واقعو دَپاره ايت مکرر نازل شويدې ليکن غوره قول دادې چې اصل واقعه دنزول دَپاره دَحضرت هلال ﷺ والاوه اوحضرت عويمر ﷺ ته دَدې حکم دَنزول علم نوو. نودَدې وجې نه حضور ﷺ ورته اوفرمائيلوچې ستاسوپه باره کښ داحکم نازل شويدې

**فائده** چې کله دَښځې، خاوندپه مينځ کښ لعان مکمل شي نودوئ دواړه په يوبل باندې په حرمت ابدي سره حرام شو، اودَلعان نه ورستوکوم حمل دَښځې وي نودَهغه نسب به دَسړي نه، نه شماريږي بلکه ښځې طرف ته به منسوب وي.

﴿وَٱلْخَـٰمِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ ٱللَّهِ﴾ الخامسة دلته مرفوع دې اومبتداء ده اومابعد ورله خبردې. اودويم ﴿وَٱلْخَـٰمِسَةَ﴾ په نصب سره دې ځکه هغه عطف دې په ﴿أَرْبَعَ شَهَـٰدَٰتٍۭ بِٱللَّهِ﴾ باندې، مفسرينونکته بيان کړيده چې اول ځلي ﴿وَٱلْخَـٰمِسَةُ﴾ په رفع سره ځکه ذکرشوچې دَنارينوعادت په ارام اوپه دمه دمه باندې خبري کول وي نومناسبه دَهغوئ سره مستقل کلام وو، نوځکه ﴿وَٱلْخَـٰمِسَةُ﴾ په رفعي سره مبتداء راوړې شوه، اودويم ځلي ﴿وَٱلْخَـٰمِسَةَ﴾ په نصب سره ځکه ذکرشو چې عادت دَزنانوپه جلتئ سره خبري کول وي اوهرلاحق کلام ئې دَسابق سر متصل اومنضم وي نومناسب دَهغوئ سره نصب وو چې دَماقبل کلام سره مربوط اومنضم کړې شي.

دغه شان په جانب دَلعان دَسړي کښ لفظ دَلعنت ذکردې، اوپه جانب دَزنانه کښ لفظ دَغضب ذکردې وجه داده چې زنانه لفظ دَلعنت په کثرت سره ذکرکوي اوهيڅ يره ترينه نه کوي، لکه حديث کښ ورته هم اشاره شويده چې تکثراللعن نودَدې وجې نه زنانودَپاره دَغضب لفظ ذکرشو اونارينه دَلعنت دَلفظ نه ډيراجتناب کوي اوداورته سخت ښکاريږي په نسبت سره غضب ته نوځکه دَنارينودَپاره دَلعنت لفظ استعمال شو.

﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ﴾ دا جمله څلور ځلي ذكر كيږي په دوه (۲) ځائ نو كښې ورسره جواب دَلولا ذكر كيږي او په دوه (۲) ځايونو كښې ورسره نه ذكر كيږي. دلته دَفضل نه مراد حدود مقرر كول دي او جواب ئې لعاجل العقوبة دي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | الَّذِيْنَ | جَآءُوْ | بِالْإِفْكِ | عُصْبَةٌ | مِّنْكُمْ ط |

بيشكه هغه كسان چې راوړي ده بدنامه په عائشه ﵂ باندې يوه مضبوطه ډله ده ستاسو نه

لَا تَحْسَبُوْهُ شَرًّا لَّكُمْ ط بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ط لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ

ګمان مه كوئ تاسو پدې (دروغو) باندې دَبې خيرې ځان د پاره بلكه هغه خير دې ستاسو دپاره. دپاره هر يو كس دَدوئ نه

مَّا اكْتَسَبَ مِنَ الْإِثْمِ ۚ وَالَّذِىْ تَوَلّٰى كِبْرَهٗ مِنْهُمْ

سزا دهغې ده چې كړې وي دګناه نه، او هغه كس چې پورته كړې ئې دې لوئ بوج دَدغه دروغو دَدوئ نه.

لَهٗ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۱﴾

دَده پاره عذاب لوئ شان والا دي

﴿إِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْ﴾ دا زجر ذكر كيږي په تهمت لګوونكو باندې، او افك په اصل كښې اړولو او بدلولو ته وئيلې كيږي، او بيا دا لفظ مستعمل شو په هغه سخت قسم دروغو كښې چې حق په باطل او باطل په حق سره بدله وي، مؤمن په فاسق او فاسق په مؤمن سره بدله وي، دلته دَالافك نه مراد بالاتفاق هغه تهمت دې چې په ام المؤمنين حضرت سيدنا عائشه صديقه ﵂ باندې لګولې شوې وو، او تعبير ددينه په الافك سره كولو كښې اشاره ده دېته چې ددغه شان غلط خبرو نسبت ام المومنين ته كول بديهي البطلان او معروف البطلان دي، واقعه دَافك په تفصيل سره په كتب دَاحاديثو كښې ذكر ده چې سنه (۶ ھ) نبي ﷺ دَغزوه بني المصطلق نه واپسې كوله په لاره كښې پړاؤ څه وخت دَپاره واچولو، حضرت عائشه ﵂ قضاحاجت ته تلې وه او هار ترينه روك شوې وو او هغې خپل هار تالاش كولو او قافله روانه شوه. او صحابه كرامو ﵃ ته دَحضرت ام المؤمنين دَنحيف او كمزوري بدن دَوجې نه دا پته او نه لګيده چې په هودج يعني كجاوه كښې څوك نيشته دي كومه كښې به چې ام

المؤمنينﷺ کیناستله. اوکله چې دیته هارمیلاؤشو اوراغله نوقافله تللي وه نودا په خپل ځائ کښ کیناستله اوځان ئې په څادرکښ رااونغختلو، پدي خیال چې نبی پاکﷺ به په ماپسي راشي چې کله مااونه موندی،دام المؤمنینﷺ سترګي اولګیدلې اوپدي دوران کښ حضرت صفوان بن المعطلﷺ راغې چې دَهغه ذمه داری دَقافلي نه ورستوراتګ وو. دهغه دَخلي نه کلمه دَاسترجاع وتلوسره ام المؤمنین راویخه شوه هغه خپله سورلئ کینوله اوام المؤمنینﷺ ته ئې اشاره اوکړه اوهغه اوختله حتی چې مدیني ته اورسیدلو،نوچې کله رئیس المنافقین اوکتلونودائې اوئیل چې والله مانجت منه ولانجامنها(مدارك)اوبیائې تهمت تشهیرشروع کړو،اوداسلسله یوي میاشتي پوري جاري وه اونبيﷺ ته ډیره سخته صدمه رسیدلي وه. دي تهمت په سلسلي کښ خلك په څلورقسمه باندې وو، یودَهغه بدبختومنافقینوجماعت وو چې دَتهمت ابتداء ئې کړي وه اوبانیان وو چې هغه دعبدالله ابن ابي ملعون جماعت وو. دویم هغه مخلص مؤمنان وو چې دَمنافقینودَپروپیګنډي نه متاثره شوي وو اودَهغوئ دَخلونه نامناسبه خبري وتلي وي، هغه دري کسان وو، حسان بن ثابتﷺ،مسطح بن اثاثهﷺ اوحمنه بنت جحشﷺ اودریم هغه مؤمنان وو چې هغوئ نه دَدي تهمت تصدیق کولو اونه تکذیب اوڅلورم هغه مؤمنان وو چې هغوئ دَدي تهمت فوراتکذیب اوکړو،نوپدي ایاتونوکښ په اول دري(۳)جماعتونوباندې زجرذکرکیږي،﴿عُصْبَةٌ مِّنكُمْ﴾ عصبه دَلسو(۱۰)نه ترڅلویښت کسانوجماعت ته وئیلې کیږي اوکله کله ئې دَلسو(۱۰)نه کم کسانوباندې هم اطلاق کیږي، دلته ترینه مراد عبدالله ابن ابی ملعون دې چې هغه دَدي تهمت اصل باني وو،دیته اشاره ده په لفظ دَ﴿جَآءُو﴾ سره یعني دَځان نه ئې خبره جوړه کړي وه اوهرچه وو مخلص مؤمنان اګرچه هغوئ دَتهمت صریح الفاظ وئیلې وو لیکن بانیان دَتهمت نوو اودلته﴿جَآءُو﴾جمع ځکه ذکرشوچې رئیس المنافقین سره نورمنافقین هم شامل وو،خوهغوئ صراحت سره تهمت نوولګولې اوپه منکم سره خطاب مسلمانانوته دې اورئیس المنافقین اګرچه حقیقتاً په مسلمانانوکښ داخل نوو لیکن ځان به ئې ظاهرا مسلمانانو په صف کښ شماره ولونو دَظاهري حال دَوجي نه اللهﷻ هم په مسلمانانوکښ ظاهرا شمارکړواومنکم لفظ استعمال کړو.

﴿لَا تَحۡسَبُوهُ شَرّٗا لَّكُم﴾ پدیکښې تسلي ده عام مؤمنانوته اوخصوصاًال ابوبکر رضی الله عنه اوصفوان رضی الله عنه ته.یعني تاسوداواقعه دځان دپاره شرمه کنړئ بلکه الله جل جلاله ستاسودپاره دیولوئ خیرذریعه اوګرځوله(۱)یوخیرپکښې داوو چې داواقعه سبب د نزول دسورة النور دپاره اوګرځیدله چې هغه په اهم اوضروري احکاماتوباندې مشتمل دې،(۲) دویم داچې دمخالفینو تکذیب قرآن اوکړو اودهغوئ دپاره سخت وعیدوالاایاتونه همیشه دپاره دمسلمانانوپه خلوباندې جاري کړې شو(۳) اودریم لوئ خیرپکښې داشو چې براءت اواحصان دام المؤمنین منصوصی شو اودمخلوقاتوپه ځائ خالق دکائناتوپه خپله دهغې داحصان ګواهي ورکړه،حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائې چې ځماخیال داوو چې الله جل جلاله یابه خوب کښې نبي صلی الله علیه وسلم ته ځماصفائې اوښائې اویاپه بلې څه طریقې سره، اوداتوقع مې نوه چې ځماپه باره کښې به لس(۱۰)ایاتونه نازلیږي اودادخصوصیاتودام المؤمنین رضی الله عنها دې، قرطبي کښې دي چې کله په یوسف علیه السلام باندې تهمت اولګیدلونودهغه صفائې الله جل جلاله دغیرې دیوماشوم په ذریعې سره اوکړه،حضرت مریم علیها السلام باندې چې تهمت اولګیدلونودهغې دصفائې ګواهي الله جل جلاله دهغې دبچې په ذریعې سره اوکړه،اود ام المؤمنین رضی الله عنها دصفائې دپاره الله جل جلاله لس(۱۰)ایاتونه نازل کړو اودهغې براءت اعلان ئې اوکړو.

﴿لِكُلِّ ٱمۡرِيٕٖ مِّنۡهُم﴾ یعني ،چاچې څومره حصه اغستې ده دهغې مطابق ورته ګناه رسیدلې دې اودهغې مطابق ورته سزامقررده، ﴿وَٱلَّذِي تَوَلَّىٰ كِبۡرَهُۥ﴾ دډینه مرادرئیس المافقین عبدالله بن ابي دې چې هغه دډي بهتان ابتداء کړې وه،اونشرواشاعت به ئې کولو، اوپه دې باندې دلیل روایت دبخاري دې، ثم الاکثرون علی ان المراد بذلك انماهوعبدالله ابن ابی ابن سلول قبحه الله تعالی(ابن کثیر)،والمرادبالذي تولیٰ کبره کمافی صحیح البخاري عن الزهري عن عروة عن عائشة رضی الله عنها عبدالله ابن ابي علیه اللعنة وعلی ذلك اکثرالمحدثین(روح)اوپه بل روایت دبخاري کښې دی چې حضرت مسروق رحمه الله حضرت عائشه رضی الله عنها ته اوفرمائیلوکله چې حضرت حسان رضی الله عنه حضرت عائشه رضی الله عنها ته راغې چې قدعین مثل هذایدخل علیكِ وقدانزل الله تعالی والذ . تولی کبره منهم،یعني ته داسې سړې ته ولې اجازت ورکوې چې دهغه په باره کښې الله جل جلاله ﴿وَٱلَّذِي تَوَلَّىٰ﴾ ایت نازل کړیدې،نوحضرت عائشه رضی الله عنها ورته جواب کښې اوفرمائیلوچې واې عذاب اشدُّمن العمی،یعني دړوندوالې نه علاوه بل کوم عذاب به(دمسلمان دپاره)زیات سخت وې؟ نوداینه معلومیږي چې دا ایت مصداق حضرت حسان رضی الله عنه

هم دي. نو محدثينو ترينه جواب کړيدې چې حضرت مسروق رحمه الله د دې ايت په مصداق کښې حضرت حسان رضي الله عنه هم شاملول دَخپل اجتهاد موافق وو او دَحضرت عائشه رضي الله عنها جواب مبني وو علي سبيل التنزل يعني دَحضرت عائشه رضي الله عنها مقصد داوو کچرته بالفرض والتقدير دَدې ايت په مصداق کښې حضرت حسان رضي الله عنه هم شامل شي نو دَهغه دَپاره عذاب عظيم ړوندوالي دې(لامع الدراري)

| |
|---|
| لَوْلَآ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُوْنَ وَالْمُؤْمِنٰتُ بِاَنْفُسِهِمْ خَيْرًا ۙ وَّقَالُوْا |
| ولې نو-چې کله تاسو واوريدلو دا خبر- ګمان کړې مؤمنانو سړو مومنانو زنانو په يو بل باندې دَخير. او وئيلې وې |
| هٰذَآ اِفْكٌ مُّبِيْنٌ ⑫ لَوْلَا جَآءُوْ عَلَيْهِ بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ ۚ فَاِذْ لَمْ يَاْتُوْا بِالشُّهَدَآءِ فَاُولٰٓئِكَ |
| چې دا دروغ ښکاره دې. ولې نه راوړې دوئ په دې باندې څلور ګواهان پس هر کله چې دوئ رانه وستل ګواهان پس دغه کسان |
| عِنْدَ اللّٰهِ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ⑬ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ |
| په نيز دَالله جل جلاله دوئ دروغژن دي. او کچرې نوې فضل دَالله جل جلاله په تاسو باندې او رحمت دَهغه په دنيا او آخرت کښې |
| لَمَسَّكُمْ فِيْ مَآ اَفَضْتُمْ فِيْهِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ⑭ ج |
| نو رسيدلې به وې تاسو ته په وجه دَهغه کارچې ورننو تلې يئ تاسو په هغې کښې عذاب لوئ شان والا |
| اِذْ تَلَقَّوْنَهٗ بِاَلْسِنَتِكُمْ وَتَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِكُمْ مَّا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ |
| کوم وخت چې راغستله تاسو دا خبره دَيو بل نه په ژبو خپلو سره او نيله تاسو په خپلو خلو هغه خبره چې نو و تاسو لره په هغې باندې |
| عِلْمٌ وَّتَحْسَبُوْنَهٗ هَيِّنًا ۖ ق وَّهُوَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمٌ ⑮ |
| هيڅ علم(دليل) او ګمان کولو تاسو په هغې باندې دَمعمولې خبرې او هغه په نيز دَالله جل جلاله لويه (بده) خبره وه |

﴿لَوْلَآ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ﴾ دا هم زجر دې په هغه خلکو باندې چې دَخلې نه ئې نامناسب الفاظ راوتلې وو. او په دې ايت کښې التفات دې دَخطاب نه غيبت طرف ته دَپاره دَتاکيد په زجر کښې او دَايت مقصد دا دې چې دَمؤمن شان دا دې چې هغه دَبل مؤمن دَپاره دَخير خواهي او دَعزت او حسن ظن داسې جذبه لرې لکه څرنګه چې دَخپل ځان دَپاره لرې، نو په دې خلکو او مؤمنانو باندې واجب وه

چې کله دوئ د اهل افک خبري واوريدلي نوفورا به ئې دَهغې تکذيب کړې وو. اودائې وئيلې وې چې مونږ په خپلو مسلمانانو خويندو اوروڼو باندې دابدګماني نشوکولې. اومراد د ﴿بِأَنفُسِهِمْ﴾ نه هم جنس مسلمانان مرادي. اوتعبيرترينه په نفس سره کولو کښې اشاره ده دېته چې مسلمانان ټول په منزله دَيو جسم اوبدن دی نودَبل مسلمان رسوائي داپه حقيقت کښې دَخپل ځان رسوائې ده

﴿وَقَالُوا هَـٰذَآ إِفْكٌ مُّبِينٌ﴾ په دې کښې اشاره ده چې دَهرمسلمان متعلق حسن ظن ساتل واجب دی ترڅوپورې چې دَهغه خلاف دليل شرعي نوې موجود شوې،مفسرينوپه سندضعيفه سره واقعه ذکرکړېده چې حضرت ابوايوب انصاري رضي الله عنه ته خپلې بې بې دَدې واقعې په باره کښې اطلاع ورکړه نوهغه ورته اوئيل چې دابهتان دې اوبيائې خپلې بې بې ته اوئيل چې ته داسې کولې شې؟ هغې ورته اوئيل چې نا،نوده ورته اوفرمائيلوچې عائشه رضي الله عنها ستانه ډېره غوره ده هغه چرته هم داسې نشي کولې

﴿لَّوْلَا جَآءُو عَلَيْهِ﴾ دا هم زجر دې،فريق ثانی ته،يعنې اول خو داسې خبر مخکښې راتللو باندې بدګمانی نوه پکار،بلکه بالکل رد کول پکار وؤ،خو کچرته دوئ فی الفور مستردکولونه،نو داخو ضروری وؤ،چې دګواهانو مطالبه ئې ترينه کړې وې.او ګواهانو پيش کولونه بعد داسې الفاظ دوئ دَخولې نه رااوباسلې وې،نو هرکله چه دوئ سره ګواهان نوؤ،بياڅرنګه تاسو دوئ خبرې راخلئ او مخکښې پيش کوئ؟

﴿فَإِذْ لَمْ يَأْتُوا بِالشُّهَدَآءِ فَأُولَـٰئِكَ عِندَ اللَّهِ﴾ دا علت اودليل دې دَماقبل کلام يعنې﴿هَـٰذَآ إِفْكٌ مُّبِينٌ﴾ دَپاره. اوعندالله نه مراد حکم اوشريعت دَالله تعالى دې نودَايت مطلب دادې چې کله دوئ ګواهان پيش کولونه،عاجزوو نودوئ دَقانون اوشريعت موافق کاذب وو نولهذا تاسوته دَدوئ تکذيب پکاروو ،اودَدېنه دا هم معلومه شوه چې کله کله يوانسان په الزام لګولو کښې رېښتنې وې خواقامت دَ بينه نه، عاجزه وې نودا کس به په ظاهردَشرع کښې کاذب وې اګرچه صادق في علم الله وې. اوحدود وغيره جاري کيږې په ظاهردَشرع سره نه په علم دَالله تعالى باندې.

﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾ دا هم زجردې فريق ثانی ته چې مؤمنان وو خوتهمت کښې ئې حصه اغستې وه«لولا»دلته امتناعيه دې، يعنې انتفاء ثانې دَپاره دې لوجود الاول اوجواب ئې

مذكوردي چي ﴿لَمَسَّكُمۡ فِي مَآ اَفَضۡتُمۡ﴾دي اودآيت مقصددادي چي تاسوپه زوجه مطهره درسول ﷺ اوام المؤمنين باندې تهمت اولګولونوتاسودَدي دَوجي نه دَدي مستحق وئې چي فورا درباندې عذاب راغلي وې ليكن دَالله ﷻ دَفضل اورحمت دَوجي نه په تاسوباندې فوراً عذاب رانغلو. اومرادپه فضل اورحمت سره په دنيا كښ دَايمان توفيق.دَنبي پاك ﷺ صحبت اودَتوبې ويستلودَپاره مهلت وركول دې اودَدى مهلت نه مؤمنانوفائده واغستله اوتوبه ئې اويستله اومنافقينوترينه صرف وقتي اوعارضي فائده واغستله اودائمي عذاب نه ئې ځان بچ نكړو. اودآخرت فضل اورحمت هغه عفواودرګزراوجنت ته داخله ول دى.

﴿إِذۡ تَلَقَّوۡنَهُۥ بِأَلۡسِنَتِكُمۡ﴾داهم فريق ثاني ته زجردې او(اذ)متعلق دې دَلمسكم سره يعني لمسكم عذاب عظيم حين تلقونه بالسنتكم اوپديكښ دَدري(۳)اسبابودَعذاب ذكردې.(۱)دَتهمت تشهير كول(۲)﴿وَتَقُولُونَ بِأَفۡوَاهِكُمۡ﴾يعني بلاتحقيقه خبري كول(۳)﴿وَتَحۡسَبُونَهُۥ هَيِّنًا﴾يعني لوئې ګناه معمولي ګڼړل.

| |
|---|
| وَلَوۡلَآ إِذۡ سَمِعۡتُمُوهُ قُلۡتُم مَّا يَكُونُ لَنَآ أَن نَّتَكَلَّمَ بِهَٰذَا ۖ |
| اوولي نوه كله چي تاسوواوريدله داخبره چي وئيلې وې تاسو،ندې روامونږلره چي خله اوخوځوپدې باندې، |
| سُبۡحَٰنَكَ هَٰذَا بُهۡتَٰنٌ عَظِيمٌ ⑯ يَعِظُكُمُ ٱللَّهُ أَن تَعُودُواْ لِمِثۡلِهِۦٓ أَبَدًا |
| پاكي ده تالره(اې خدايه) دا لوئ بهتان دې. ،منع كوي(په نصيحت سره)تاسولره الله ﷻ چي بيااونكړئ پشان دَدي هيڅ كله |
| إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ⑰ وَيُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمُ ٱلۡأٓيَٰتِ ۚ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ⑱ |
| كچري تاسومؤمنان يئ، اوبيانه وي الله ﷻ تاسوته احكام اوالله ﷻ پوهه دې حكمتونووالادې |
| إِنَّ ٱلَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ ٱلۡفَٰحِشَةُ فِي ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٌ |
| اوبيشكه هغه كسان چي خوښوي داچي خوره شي بدكاري په هغه كسانوكښ چي مؤمنان دي، ددوئ دَپاره عذاب دردناك دې |

فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ⑲ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ

په دنيا او اخرت کښې. او الله جل جلاله پوهيږي او تاسو نه پوهيږئ. او که چرې نه وې فضل د الله جل جلاله په تاسو باندې او رحمت د هغه

وَاَنَّ اللّٰهَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ⑳ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ

او دا چه الله جل جلاله شفقت کوونکې دې رحم کوونکې دې، «نو زر به ئې عذاب درکړې وو» اې مؤمنانو مه ځئ تاسو په قدمونو د شيطان پسې

وَمَنْ يَّتَّبِعْ خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ فَاِنَّهٗ يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ

او څوک چې روان شي په قدمونو د شيطان پسې پس بيشکه هغه ښودنه کوي د ګنده کارونو او د ناکاره خبرو

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ مَا زَكٰى مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ اَبَدًا ۙ

او که چرې نه وې فضل د الله جل جلاله په تاسو باندې او رحمت د هغه نو پاك به نه وې پاتې شوې د تاسو نه هيڅ څوك هيچرې

وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ㉑

ليکن الله جل جلاله پاك ساتي چا له چې او غواړي او الله جل جلاله د هر څه اوريدونکې دې، په هر څه باندې پوهيدونکې دې

وَلَا يَاْتَلِ اُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ اَنْ يُّؤْتُوْۤا اُولِي الْقُرْبٰى وَالْمَسٰكِيْنَ

او قسم دې نه کوي د لوئې مرتبې والا د تاسو نه او مال والا په دې چه نفقه به نه ورکوي خپلوانو ته او مسکينانو ته

وَالْمُهٰجِرِيْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۖ وَلْيَعْفُوْا وَلْيَصْفَحُوْا ؕ اَلَا تُحِبُّوْنَ ؕ

او هجرت کوونکو ته په لاره د الله جل جلاله کښې او معافي دې کوي او مخ دې اړه وي «د ملامته کولو نه» آيا تاسو نه خوښوئ

اَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ㉒

چې بخښنه اوکړي الله جل جلاله تاسو ته او الله جل جلاله بخښنه کوونکې رحم کوونکې دې

﴿وَلَوْلَاۤ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ قُلْتُمْ﴾ دا زجر دې په دريم جماعت باندې، چې هغوي دی معامله کښې بالکل خاموش پاتې شوي وو، او هيڅ يې نو وويلی. نو الله تعالى فرمائی چه داسې نامناسب او غلط خبر مخکښې را تللو په صورت کښې څرنګه چه حصه نه اغستل ضروری وو. هم هغه شان د

هغې تردید اودعائشه برات ضروری وؤ نو تاسو بیا ولی په داسی موقع باندی خاموش پاتی شولئ؟ خوپدیکښ تاکیددي په نسبت سره ماقبل ته. ځکه پديکښ تقديم دظرف راغليدي په اسم د ﴿وَلَوْلَا﴾باندې يعني﴿سَمِعْتُمُوهُ﴾ مقدم شويدې په﴿قُلْتُم﴾باندې چې داپدي دلالت کوي چې دتهمت په اوريدلوسره دهغې تکذيب پکارو و ، اودغه شان کلمه دتعجب يعني لفظ د ﴿سُبْحَـٰنَكَ﴾هم پکښ استعمال شويدې نودايت مقصددادې چې په ام المؤمنين﷞ باندې لګولي شوې تهمت اوريدلوسره تاسوته داوئيل پکارو و چې﴿سُبْحَـٰنَكَ هَـٰذَا بُهْتَـٰنٌ عَظِيمٌ﴾اوسبحنك دپاره دتعجب دې اوكلمه دتعجب ځكه استعمال شوه چې دابهتان په يوعامي زنانه باندې نوو.بلكه په زوجه مطهره،ام المؤمنين اوحرم رسول ﷺ باندې اوداپه ګناه باندې يوډيرلوئ جراءت وو چې دادهرذي عقل انسان دپاره دتعجب خبره وه نوځكه سبحنك دلته ذكركړې شو اوزمخشري﷫ فرمائي چې داهم ممكنه ده چې سبحنك په خپلي معنٰي(تنزيهه)سره شي، اومراد دتنزيهه نه تنزيهه دالله ﷻ شي ددينه چې ديونبي زنانه او بې بې بدكاره اوګرځي، نومقصد داشوچې اې الله ﷻ تالره ددينه پاكي ده چې دپيغمبربې بې بدكاره اوګرځي، يعني دپيغمبربې بې به بدكاره نوي نولهذا دمنافقينودا الزام بهتان عظيم دې

﴿يَعِظُكُمُ ٱللَّهُ﴾وعظ هغه نصيحت ته وئيلي كيږي چې يره پكښ هم وركړې شي خودلته په معنٰي دمنع سره دې اي ينهاكم الله،او﴿لِمِثْلِهِۦٓ﴾كښ لام په معني دالا سره دې اودمثل نه مراديامماثلت في القول دې، چې هغه په حضرت عائشه﷞ باندې تهمت لګول دی نوپدي صورت كښ د﴿إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾نه مرادنفس ايمان دې، ځكه چې دحضرت ام المؤمنين براءت الله ﷻ بيان كړو نوبياهم هغه شان خبري كول تكذيب اوانكاردقرآن دې نوددې وجې نه دغه سړې كافردې، اويادمماثلت نه مرادمماثلت في المقول عنه يعني يوپاكدامني زنانه باندې تهمت لګول دې نوكه مقول عنه نورازواج مطهرات وي نوبياهم د﴿إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ نه مراد نفس ايمان دې ځكه چې دازواج مطهراتوپه باره كښ غلطي خبري كول اوتهمت لګول نبې پاك ﷺ ته ايذا رساني اوهغه ته په باره دعزت اواهل كښ تكليف وركول دې، اوپيغمبر ﷺ ته تكليف وركول كفردې، اوكه مقول

عنه دَازواج مطهرات نه علاوه بل څوك مسلمان وي نوبياسخت ګناه دي اوپدي صورت كښ دَ﴿إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾نه مراد كامل ايمان دي(والتفصيل في القرطبي ص١٥٥ ج ٧).

﴿وَيُبَيِّنُ ٱللَّهُ﴾دا ترغيب دې په احكاماتوباندې عمل كولوته﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يُحِبُّونَ﴾ داعلت دَتهمت لګولوذكركيږي،سره دَتخويف دنيوي،اخروي نه يعني دامنافقين تهمتونه خكه لګوي چې دَدي په ذريعي سره مسلمانانوكښ فحاشي اوبې حيايي خوروِل غواړي، اوفاحشة نه مرادفعل قبيح دې كه هغه په يومسلمان باندې تهمت لګول وي يانوراسباب دَبدكارئ عام كول وي لكه سينما وغيره شو.

﴿لَهُمْ عَذَابٌ﴾دا تخويف دې،دنيوي عذاب نه مراد تكاليف دنيوي اوحدقذف وغيره دې اواخروي عذاب نه مراد دخول جهنم ته دې اوعذاب اخروي مشروط دې دَتوبې په نه ويستلو پورې﴿وَلَوْلَا فَضْلُ ٱللَّهِ﴾دابيااعاده دَزجرده تهمت لګوونكوته اودااعاده دَپاره دَاحساس وركولو دَانعاماتو اودَاحساناتوده اوجواب دَلولا محذوف دې چې هلكتم اويالعذبتم دې.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾دا نصيحت ذكركيږي مؤمنانوته چې تهمتونه لګول شيطاني كاراودَهغه اتباع ده اودَشيطان اتباع ذريعه دګمراهي ده نومؤمنانوته ځان ددينه بچ ساتل پكاردي،﴿وَمَن يَتَّبِعْ خُطُوَٰتِ﴾دا شرط دې اوجزائي محذوفه ده چې فقدغوئٰ ده او﴿فَإِنَّهُۥ يَأْمُرُ بِٱلْفَحْشَآءِ﴾مرتب دې په جزاء باندې،اومرادپه امرسره ياطلب دګناه دې عام لدينه چې هغه ياپه امركولودَمنكراتوسره وي اوياپه منع كولودَواجباتوسره وي، اويا امركنايه ده تزئين دَمعاصيونه كه په فعل دَمنكراتوسره وي اوياپه ترك دَواجباتوسره وي، او ﴿بِٱلْفَحْشَآءِ﴾نه مرادهغه كارونه دې چې قبيح وي عقلاهرذې عقل انسان هغې ته بدوائي،لكه زنا ،دروغ وئيل اوبهتان لګول وغيرهم شو،اومنكرنه مرادهغه دې چې قبيح وي شرعاً،﴿وَلَوْلَا فَضْلُ ٱللَّهِ﴾دلته دَفضل نه مرادحدقذف مقرره ول دى،اوَ﴿مَا زَكَىٰ﴾ نه مرادپاك پاتي كيدل دى دَتهمتونونه،يعني كچرته الله ﷻ په تاسوباندې فضل نوې كړې اوحدقذف ئې نوې مقرركړې نودَمنافقينودَتهمتونونه،به تاسومسلمانانوكښ به څوك هم بچ نوې پاتې شوې، لكه څرنګه دَدې ملعونانونه دَنبي ﷺ زوجه مطهره اوام المؤمنين بچ نشوه، خو الله ﷻ

حدقذف حکم نازل کړو نودَدوئ خلي ئې همیشه دَپاره بندکړي اویادَفضل نه مرادقرآن دې اودَتزکیې نه مرادتزیکیه دَشرك نه ده یعني کچرته الله جَلَّجَلَالُهٗ په تاسوفضل نوې کړې اوقرآن ئې نوې نازل کړې نوتاسوبه چرته هم دَشرك اونوروګناهونونه به پاکي نوې حاصل کړي لیکن الله جَلَّجَلَالُهٗ قرآن نازل کړو په هغې سره ئې دَتوحیداوشریعت لاره تاسوته اوښودله.

﴿وَلَـٰكِنَّ ٱللَّهَ يُزَكِّى﴾ مقصد دادې چې تزکیه معلقه ده په مشیت دَالله جَلَّجَلَالُهٗ پوري اوانسان په تزکیې کښې الله جَلَّجَلَالُهٗ ته محتاجه دې، ﴿وَلَا يَأْتَلِ أُو۟لُوا۟ ٱلْفَضْلِ﴾ داایت نازل شویدې په باره دَابوبکر رضی الله عنه اومسطح رضی الله عنه کښې، حضرت مسطح رضی الله عنه دَحضرت ابوبکر رضی الله عنه دَترور(خاله) ځوې وو مسکین بدري اومهاجرصحابي وو، حضرت ابوبکر رضی الله عنه به دده سره دَقرابت دیني ودنیوي دَوجې نه ډیرزیات مالي تعاون کولوخوپه واقعه افك کښې دَده نه غلطي اوشوه اودَده دَخلې نه هم هغه الفاظ اووتلو کوم چې رئیس المنافقین وئیلي وو، په هغې باندې حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته ډیره صدمه اورسیدله کله چې دَحضرت ام المؤمنین رضی الله عنها براءت نازل شونوحضرت ابوبکر رضی الله عنه قسم اوکړوچې څه به دَنن بعدپه مسطح باندې هیڅ قسم خرچه اونکړم، نوداایات نازل شو، اومرادپه ﴿أُو۟لُوا۟ ٱلْفَضْلِ﴾ سره حضرت ابوبکر رضی الله عنه دې اوپدیکښې اشاره ده چې حضرت سیدناابوبکر رضی الله عنه افضل البشردې بعدالانبیاء.

﴿أُو۟لِى ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْمَسَـٰكِينَ﴾ دَدینه مرادحضرت مسطح رضی الله عنه دې. ﴿أَلَا تُحِبُّونَ أَن يَغْفِرَ ٱللَّهُ﴾ داتمثیلي حجت دې چې څرنګه چې تاسوداخوښوئ چې الله جَلَّجَلَالُهٗ ستاسوګناهونه معاف کړي نودغه شان تاسودَمخلوقاتو اوخاص طوردَهغه کسانوچې په مرتبه اووسعت مال کښې ستاسونه کمزوري دی دَهغوئ قصور اوجرمونه معاف کوئ اوپه روایت دَشیخینوکښې دي چې: کله داایت نازل شو اونبي پاك ﷺ په ابوبکر رضی الله عنه باندې تلاوت کړو نوهغه فورا اوفرمائیلوچې:بلى والله یاربّناانّانحبّ ان تغفرلنا اومسطح رضی الله عنه ته ئې بیاهغه شان نفقه جاري کړه اواوفرمائیلوچې:والله لاانزعهامنه ابداً.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | الَّذِيْنَ | يَرْمُوْنَ | الْمُحْصَنٰتِ | الْغٰفِلٰتِ | الْمُؤْمِنٰتِ | لُعِنُوْا |

بيشكه هغه كسان چې بهتان لګوي په پاكوسادګانوايمان والوزنانوباندې لعنت كړ شويدې په دونې باندې

فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۲۳﴾ يَّوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ اَلْسِنَتُهُمْ

په دنيااواخرت كښ اودوئ لره عذاب لوئ شان والادې. په هغه ورځ چې ګواهي به كوي په دوئ باندې ژبې ددوئ

وَاَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۴﴾ يَوْمَئِذٍ يُّوَفِّيْهِمُ اللهُ

اولاسونه ددوئ اوخپې ددوئ په هغه عملونوباندې چې دوئ ئې كوي، په دغه ورځ پوره به وركړي الله جل جلاله دوئ ته

دِيْنَهُمُ الْحَقَّ وَيَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِيْنُ ﴿۲۵﴾ اَلْخَبِيْثٰتُ

بدله ددوئې حقه بدله اويقين به اوكړي چې بيشكه الله جل جلاله هغه حق دې ښكاره كونكې دې. پليتې زنانه

لِلْخَبِيْثِيْنَ وَالْخَبِيْثُوْنَ لِلْخَبِيْثٰتِ وَالطَّيِّبٰتُ لِلطَّيِّبِيْنَ وَالطَّيِّبُوْنَ

دپاره دپليتانونارينودى اوپليتان سړى دپاره دپليتوزنانودي. اوپاكې زنانه دپاره پاكونارينودى اوپاك نارينه

لِلطَّيِّبٰتِ ۚ اُولٰٓئِكَ مُبَرَّءُوْنَ مِمَّا يَقُوْلُوْنَ ۖ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ﴿۲۶﴾

دپاره دپاكوزنانودى، دغه كسان پاك دى دهغه خبرونه چې وائي پليتان،دپاره ددوئ بخښنه ده اورزق عزت والادې.

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَرْمُونَ﴾ پدې اياتونو كښ زجرونه دے هغه منافقينوته چې تهمت ئې لګولې وو اوبيائې توبه نوه ويستلې، لكه عبدالله ابن ابي وغيره شواوقربنه پرې داورستوجمله ده چې﴿لُعِنُوا فِي الدُّنْيَا ﴾. ﴿الْمُحْصَنَاتِ الْغَافِلَاتِ ﴾غوره قول دادې چې ددينه مرادتولې پاكدامنې زنانه دى اوحضرت ام المؤمنين رضي الله عنها ددې مصداق اولى ده، اوداحكم دسړوهم دې اوسړى نه ذكركول دوجې داكتفاءنه دې په زنانوباندې چې زنانه باندې تهمت لګول مستلزم دى تهمت لره په سړي باندې.نوددې وجې نه اكتفاء اوكړې شوه په ذكردزنانوباندې لكه سرابيل تقيكم الحر،پشان اوبعض فرمائي چې داصفات دنفوس دپاره دى يعني نفوس المحصنات نولهذا داحكم سړواوزنانو ټولوته شامل دې. (بحر).

او ﴿ٱلۡمُحۡصَنَٰتِ﴾ نه ورستو ﴿ٱلۡغَٰفِلَٰتِ﴾ ذكركولوكښې كمال عفت ته اشاره ده. ځكه چې
دَاحصان مقصد دادې چې دګناه نه ځان ساتي، او دَغافلات. مقصد دادې چې دهغوئ په زړونوکښې
دَبدكارئ طرف ته خيال هم نوي تللې، ګوياچې دَهغوئ عنصراوماده طهارت ده (روح).

﴿يَوۡمَ تَشۡهَدُ عَلَيۡهِمۡ﴾ ظرف متعلق دې دَ﴿لُعِنُوا﴾ اوياد ﴿عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ سره اوشهادت نه
مراداقرار دَجرمونودې غيراختياري طورباندې، يعنې چې كله دَقيامت په ورځ دوئ په اعمالنامه
كښې درج شوي ګناهونونه، انكاراوكړي نو الله ﷻ به دَدوئ نه دَخبروكولو اختياري قوت سلب
كړي نوهره عضوه به دَهغې جرم اقراراوكړي كوم جرم چې دَدينه صادرشويدې او ددې ايت تعارض
دَسورة يٰسين ايت نمبر(۶۵) سره نيشته دې چې هلته په خلوباندې دَمهرلګولوذكردې
اودَلَاسونواوخپوپه ذريعي سره ګواهي وركولو بيان دې، ځكه چې هلته په خلې باندې
مهرلګولومقصد اختياري قوت دګويائې سلب كول دى، يعني خله به دَدوئ دَاراداې موافق خبرې
به نشي كولې اودامطلب ندې چې مطلقاخبرې به نه كوي اوداهم ممكنه ده چې داايت خاص شي
په تهمت لګوونكومنافقينوپورې اودَسورة يسين والاايت نه دې عام كافران مراد شي. يعني عام
كافران به چې كله انكاراوكړي نودَخلې نه علاوه باقي اعضاء بهٔ دَهغوئ خلاف ګواهي وركوي،
اودَمنافقينو خصوصيت به داوي چې دَدوئ خلاف به نوراعضاء هم ګواهي وركوي، اودَدوئ
خپلې خلې به هم دَدوئ خلاف ګواهي وركوي اوداهم ممكنه ده چې ابتداءً به دَدوئ خلې بندې
كړې شي اودَدوئ نوراعضاء به دَدوئ خلاف ګواهي وركړي اوبيابه ورستودَدوئ خلوته بهٔ حكم
اوكړې شي چې اوس تاسوهم صحيح ګواهي وركړئ، نودَسورة يٰسين ايت محمول دې په ابتدائ
حالت باندې اوايت مذكوره محمول دې په وروستنې حالت باندې (والله اعلم).

﴿يَوۡمَئِذٖ يُوَفِّيهِمُ ٱللَّهُ﴾ تنوين عوض دَجملې نه دې [دينهم] دين دلته په معنې دَبدلې سره
دې، او ﴿ٱلۡحَقَّ﴾ په نصب سره صفت دې دَدين دَپاره، اوحق يايه معنې دَانصاف سره دې، يعنې
الله ﷻ به دوئ ته دَانصاف موافق بدله وركړي اوياحق په معنې دَواجب اوثابت سره دې يعنې
كومه بدله چې دَدوئ دَپاره ثابته اوضروري ده هغه به ورته الله ﷻ وركړي.

﴿أَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْحَقُّ ٱلْمُبِينُ﴾مبین یاصفت دي دحق دپاره اویاخبرثاني دي دانّ دپاره اوداد ابان یبین نه فعل لازمي دي، نود اول احتمال په بنیاد معنیٰ ئې داده حقیّت دالله ﷻ ښکاره دي په هرقسم دلائلوسره اودویم احتمال په بنیادمعني ئې داه چې الوهیت دالله ﷻ ظاهردي په دلائلوسره اویامبین دابان نه فعل متعدي دې،معنې ئې داده چې الله ﷻ ظاهره وونکې دي اشیاؤلره اوواضح کوونکې دې حق لره

﴿ٱلْخَبِيثَٰتُ لِلْخَبِيثِينَ﴾پدې ایت کښ تخویف اوبشارت ذکرکیږي اودې ایت دري(۳)قسمه ترجمې کړې شویدی(۱)،﴿ٱلْخَبِيثَٰتُ﴾نه مراد افعال خبیثات دی او﴿وَٱلطَّيِّبَٰتُ﴾نه مراد افعال الطیبات دی. دایت مقصددادې چې پلیت کارونه دپلیتوخلکوسره لائق دی اوهغوئ ئې کوي، اوپاکدامنو خلکوسره پاك كارونه لائق دی اوهغوئ دبدوکارونونه ځان بچ ساتي نولهذا حضرت عائشه ؓ اوصفوان ؓ وغیره امهات المؤمنین اوصحابه کرام ؓ پاك دامن اوعفیف دی اودهغه پلیت اوبدکارونونه پاك دې کوم چې منافقین دوئ ته نسبت کوي. داایت دلیل شوپه پاکدامنئ دَ ام المؤمنین باندې په طریقې دپاکیزګئ دطبعیت دهغې سره(۲) دَ ﴿ٱلْخَبِيثَٰتُ﴾اودَ﴿وَٱلطَّيِّبَٰتُ﴾ نه اقوال خبیثات اواقوال طیبات مراددي، اودایت مقصد دادې چې پلیتې خبرې دپلیتو اودبدکاروخلکوکار دې، نیك اوپاکیزه خلك نیکې اوپاکیزه خبرې کوي، نوداتهمت لګوونکی پلیت اوګنده خلك دی،ددوئ خبرې ګنده دی ددې تهمت نه ام المؤمنین ؓ اوصفوان ؓ وغیره پاك دي(۳) دَالخبیثات اوالطیبات نه زنانه مراددي یعني النّساء الخبیثٰت للرّجال الخبیثون اوداایت مقصددادې چې دَالله ﷻ عادت پدې جاري دې چې دپلیتوزنانوپه زړونوکښ داعیه اوخواهش دپلیتوسړووي اوپلیتواوګنده سړي والابې بې ګنده اوپلیته وي اوپاکدامنې زنانه دپاکدامنوسړوسره لائقې وي اودپاکدامن سړي بې بې هم پاکدامنه وي، نونبی پاك ﷺ اطیب الاطیبین دې نوالله ﷻ دده دعزت اوابرودتحفظ دپاره هم داسې بیباني ورکړیدې چې هغه اطیب الطیبات دی دهغوئ په باره کښ ددې بدکارتصورهم نشي کیدلې نوداایت دلیل شوپه پاکدامنئ دام المؤمنین باندې پوجه دپاکدامنئ دنبی پاك ﷺ سره.

﴿لَهُم مَّغْفِرَةٌ﴾ پديکښې اشاره ده چې په تکاليفوباندې صبرکول ذريعه دَمغفرت اورفع دَدرجاتو ده اومرادپه ﴿وَرِزْقٌ كَرِيمٌ﴾ سره رزق دَجنت دې ځکه چې هغه بې کړاوه اوبې ضرره دې اوداهم جائزه ده چې دَدينه دي دَدنيااوآخرت دواړه رزقونه مرادشي اودغه شان په سورة الاحزاب ايت نمبر(۳۱)کښې هم دي اودادليل دې پدې چې امهات المؤمنين جنتياني دي

**فائده نمبر۱**: ام المؤمنين حضرت عائشه ﷺ به په يوڅوخصوصياتوباندې فخرکولو(۱) حضرت جبرئيل ﷺ دَدې تصويردَريښموپه رومال کښې نبى پاك ﷺ ته راوړې وو اوورته ئې اوئيلوچې داستابې بې ده(۲)دَحضرت عائشه ﷺ نه علاوه نبى پاك ﷺ بلې باکرې زنانه سره نکاح نووکړې(۳)دَنبى پاك ﷺ وفات په وخت کښې دَهغه سرمبارك دَحضرت عائشه ﷺ په غيږکښې وو. (۴)دَنبى پاك ﷺ دَخلې مباركې لعابو سره دَحضرت عائشه ﷺ لعاب ميلاؤوو(۵)دَحضور ﷺ تدفين دَهغې په حجرې کښې دې(۶)نبى پاك ﷺ به دَحضرت عائشه ﷺ سره په يولحاف(څادر)کښې به وو بيابه هم وحې راتله په خلاف دَنورو امهات المؤمنين نه چې نبى پاك ﷺ دَهغوئ سره به په څادر کښې وونوبيابه دغه حالت کښې وحې نه راتله(۷)دَدې دَپاکدامنئ ګواهې قرآن ورکړيده اوصريح اياتونه نازل شويدي(۸)دَخليفه اول بچئ وه(۹)دې سره دَمغفرت اورزق کريم وعده کړې شويده.

**فائده نمبر۲**: قاضې بيضاوي ﷺ زمخشري اوعلامه آلوسي ﷺ وغيره هم حضراتو ليکلي دي چې دَپوره قرآن مجيد مطالعه اوکړې شي نودَچادَپاره هم دومره سخت وعيدندې ذکرشوې څومره سخت وعيدچې الله ﷻ په حضرت ام المؤمنين ﷺ باندې تهمت لګوونکو دَپاره بيان کړيدې.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ بُيُوْتِكُمْ حَتّٰى تَسْتَاْنِسُوْا وَتُسَلِّمُوْا

اې ايمان والو!مه داخليږئ تاسودې کورونوته چې دَاستاسونوى ترهغې پورې چې خپله پيژندګلوورته اوکړئ اوسلام اوکړئ

عَلٰٓى اَهْلِهَا ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۷﴾ فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فِيْهَآ

دَهغې په اوسيدونکوباندې دابه ډيره غوره وي تاسولره دَدې دَپاره چې يادَاولرئ داحکم.پس کچرې نه مومئ تاسوپه هغې کښې

اَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوْهَا حَتّٰى يُؤْذَنَ لَكُمْ ۚ وَاِنْ قِيْلَ لَكُمُ

يو کس چې اجازت درکړې نومه داخليږئ هغې ته ترڅو پورې چې اجازت اوکړې شي تاسوته اوکچرې اوئيلې شي تاسوته

ارْجِعُوْا فَارْجِعُوْا هُوَ اَزْکٰی لَکُمْ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِیْمٌ ﴿۲۸﴾

چې واپس شئ نو واپس لاړشئ داطريقه بچ ساتونکي ده تاسو لره «دبدنامي نه» او الله ﷻ ستاسو په عملونو باندې پوهه دې.

لَیْسَ عَلَیْکُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَدْخُلُوْا بُیُوْتًا غَیْرَ مَسْکُوْنَةٍ فِیْهَا مَتَاعٌ لَّکُمْ

نيشته په تاسو باندې ګناه چې داخل شئ دسې کورونو ته چې نه او سيږي پکښې څوک. په هغې کښې سامان وي ستاسو

وَاللّٰهُ یَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا تَکْتُمُوْنَ ﴿۲۹﴾

او الله ﷻ پوهه دې په هغه څه چې ښکاره کوئ او هغه څه چې پټوئ ئې تاسو

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَدۡخُلُواْ﴾ دواقعي افك تفصيلي بيان نه بعد اوس شپږ قوانين ذکر کيږي، دې دپاره چې دتهمت لګيدلو ذرائع هم بند شي نو پدې ايت کښې اول قانون ذکر کيږي چې دبل چا او سيدلو ځائ ته دهغه داجازت نه بغير داخليدل ممنوع او حرام دي اول دهغه نه اجازت اغستل ضروري دی او حکمت پکښې دادې چې بغير داذن نه دبل چا او سيدلو ځائ ته داخليدل داو سيدونکي ارام او راحت کښې خلل راوستل دي او هغه ته ايذا او تکليف رسول دی او بل چا ته ايذارساني په شريعت کښې حرامه ده، او دغه شان کله کله په کور کښې سړي نوي صرف زنانه وي نو بغير داذن نه داخليدل ذريعه دتهمت ګرځي او دغه شان کله کله دکور او سيدونکي زنانه يا نارينه په داسې حالت کښې وي چې عورت ئې ښکاره وي نو دا ذريعه دلوئ فساد ګرځي.

﴿غَيۡرَ بُيُوتِكُمۡ﴾ دبيت نه مراد داو سيدلو ځائ دې، عام ددينه چې هغه ملکاوي يا عارية يا اجارةً وي او اضافت دملابست دوجې نه دې دتمليك دپاره ندې، نو لهذا معير يا مجير چې خپل کورئې چا ته مفت يا په کرايه ورکړې وي، نو هغه ته هم دا اجازت نيشته دې چې بغير داذن داو سيدونکې نه خپل ملکيتي کور ته داخل شي، بلکه دا حکم دخپل بې بې داو سيدلو ځائ نه علاوه دهر چا ځائ ته شامل دې حتی چې دخپل مور يا پلار وغيره داستوګني ځائ ته بغير داجازت نه داخليدل ممنوع دی لکه امام مالک رحمه الله په موطا کښې حديث نقل کړيدې چې اَنّ رجلاً قال للنبي ﷺ أَاستأذن على امي قال نعم، قال ليس لها خادمٌ غيري أَاستأذن عليها كلما دخلتُ؟ قال عليه السلام اتحبُّ ان

تراهاعريانة. يعني يوسړي نبي پاكﷺ ته عرض اوکړو چې آياخه به دخپل مورنه اذن غواړم دداخليدلو په وخت کښ نبیﷺ ورته اوفرمائيلوچې هاؤ. هغه بياعرض اوکړو چې ځمادموردپاره ځمانه علاوه بل خادم نيشته دې نوآياکله چې هم څه په هغې داخليږم نواجازت به ورنه غواړم،نونبی پاكﷺ ورته اوفرمائيلوچې آيانه داخوښوي چې ته دابربنډه اوګوري؟ نوهغه اوئيل چې نا.نونبيﷺ ورته اوفرمائيلو چې بيااجازت غواړه،نوبهرحال دخپلې بي بي داستونګي ځائ نه علاوه دبل چاځائ ته داخليدلو په وخت کښ اذن اغستل ضروري اوواجب دی اودخپلې بي بي باندې داخليدلو په وخت کښ اذان اوياهغې ته اطلاع ورکول دتنحنح يعني غاړه تازه کولو په صورت کښ ياپه بل صورت کښ مسنون دي.

﴿حَتَّىٰ تَسْتَأْنِسُوا﴾استيناس نه مراد استيذان دې اولفظ داستيناس ذکرکولوکښ اشاره ده عرفي تعارف ته، دپاره ددې چې مخاطب مانوس شي اووحشت ئې ختم شي اوهغه ته حالت معلوم شي چې ددخول اجازت درکوي يانه؟(کشاف)اودامقصد کله کله په نوم اغستلوسره حاصليږي چې څه فلانې يمه دننه داخلي دې شم؟ اوکه سلام ورسره اوکړی نوډيره بهتره ده، اويا دروازه اوټکه وي اوداجازت انتظاراوکړي، اوکله چه قاصدسره راشي چې دکوروالودطرف نه په ده پسې ليږلې شوې وي .نو هغه سړيی دی خپل تعارف اوکړي. اوپدي صورت کښ بيادانتظاريادمزيدتعارف اوداستيذان ضرورت نيشته دې اوکله کله دامقصد په تنحنح يعني غاړه تازه کولوسره حاصليږي اوپه حديث دابن ماجه کښ تسبيح ذکرهم راغليدې اوغالباًچې دهغې مقصد به داوي چې تسبيح ياتکبيرنه مراد مقصود اصلي ذکردې اواطلاع ورکول ورسره ضمناًراځي، اوبطورمقصود اصلي تکبيربالتسبيح داطلاع دپاره استعمالول مکروه دې(کما صرح به فی الفتاوی الهنديه).

﴿وَتُسَلِّمُوا عَلَىٰٓ أَهْلِهَا﴾ددينه مراد ياسلام داستيذان دې چې داسې اوائې چې:السّلام عليکم ءادخل؟ اوتقديم دسلام افضل دې لکه په حديث دابوهريرةؓ کښ دي چې فرمائي: چې څوك دسلام نه مخکښ اذن طلب کړي نوهغه ته دراتلواجازت مه ورکوئ څکه چې دمسنون طريقه پريخودله اودغه شان په روايت دابوداؤدکښ هم دي چې دبنے عامرقبيلې يوکس ته نبیﷺ داستيذان طريقې تعليم داسې ورکړو چې داسې وايه چې السّلام عليکم ءادخل؟ اودغه شان په

روايت دَبيهقي كښې دَجابر ﷜ نه منقول دي چې نبي پاك ﷺ اوفرمائيلو چې لاتأذنوا لمن لم يبدأ بالسّلام. او د اسلام ته دري (۳) خلي پورې كولې شي، كه په دري (۳) كرتو كښې ورته جواب ميلاؤشو نو داخل به شي او كچرې په دريم كرته ورته هم جواب ميلاؤنشو نو بيا دې واپس شي، او په دري (۳) كرتو كښې حكمت دادې چې دَخبرې دَفهم دَپاره اكثر مرتبه دري (۳) خلي تكراردې. چې په دريم خلي چاته جواب ورنكړې شي نو دَهغې مقصد دادوي چې دامخاطب ده ته اجازت نه وركوي اوبعض اسلافو نه حكمت په دري (۳) كرتو كښې دامروي دې، چې اول سلام دَتسميع دَپاره دې يعنې كه دامخاطب مصروف وي نودَده طرف ته به متوجه شي دويم سلام دَتهيأ دَپاره دې يعنې كه دې مخاطب ته په اذن وركولو كښې څه مانع اوركاوټ وي نو هغه به لرې كړي اودريم سلام دَتخير دَپاره دې چې سلام ئې واوريدلو اومانع ئې هم لرې كړو نواوس دَاوسيدونكي اختياردې چې اذن وركوي اوكه نه وركوي. اوياد دَسلام نه مرادسلام دَتحيي دې چې پس دَاستيذان نه وي اوكورته دَداخليدلو ياد مَلاقات په وخت كښې وي.

﴿ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ مشاراليه استيناس اوتسليم دې يعنې اجازت اغستل اوخپل تعارف كول اوسلام اچول ستاسو دَپاره ډيرغوره دي، دااسلامي طريقه اوشرعي تمدن دې، حضرت عمران بن حصين ﷜ فرمائي چې دَجاهليت په زماني كښې به مونږ دَسلام په ځائ داالفاظ وئيلو چې: انعم الله بك عيناً يا انعم صباحاً (لكه نن صباجديدطبقه دَسلام په ځائ گډمارننگ، وغيره الفاظ استعماله وي خو چې كله اسلام راغي نو مونږ دَدينه منع كړې شواود سلام حكم اوشو).

**فائده**: استيذان دَضروري واجباتو نه دې په حديث دَابوهريرة ﷜ كښې دي چې نبى پاك ﷺ فرمائي چې من اطلع في بيت قوم من غيراذنهم حل لهم ان يفقؤوا عينه (بخاري، كتاب الديات) يعني څوك چې داچاكورته بغيردَاذن نه نظراوكړې نوكوروالودَپاره جائزدي چې دَدې كس سترګې دې اوباسي داحديث اكثرمحدثينوپه نيزپه ظاهرندې محمول بلكه په زجراوتغليظ باندې محمول دې كه څوك داسې كاراوكړي نوضمان پرې واجب دې.

﴿فَإِن لَّمْ تَجِدُوا فِيهَا﴾ ماقبل كښې دَهغه كورحكم ذكرشو چې په هغې استوګنه متحققه وي. پدې ايت كښې دَهغه كورحكم ذكركيږي چې په هغې كښې دَچااوسيدل بالفعل نوي متحقق، ياپكښې اوسيدونكي وي خودَجواب اهليت پكښې نوي اويادَجواب اهليت پكښې وي خوجواب

ورکول نه غواړي، اویاجواب په خلاف دَاذن ورکړي، نوچې دچامخصوص کوروي او اوسیدونکي یامالك پکښې نوي نوترهغه وخته داخلیدل ممنوع دي ترڅوچې مالك مکان نوي راغلي اواجازت ئې نوي ورکړې، ځکه چې بغیردَهغه دَاذن اواجازت نه کورته داخلیدل مشابه دَغصب وي﴿وَإِن قِيلَ لَكُمُ﴾ یعنې اجازت غوختلوپه جواب کښې دَداخلیدلو اجازت میلاؤنشي اودااوئیلې شي چې واپس لاړشئ نوبیابه خوشحالئ سره واپس کیږئ. په داخلیدلوباندې اصرارهم مه کوئ اودکورپه دروازه باندې مه کینئ.

﴿هُوَ أَزۡكَىٰ لَكُمۡ﴾یعني داستاسودَپاره پاکیزه عمل دې اوپدې کښې ستاسو دَدین اودنیافائده ده. دیني فائده داده چې تهمت نه به بچ شئ اودنیوي فائده داده چې عزت نفس به مونه مجروح کیږي ځکه چې دَبل چادکورپه دروازې باندې کیناستل دناءة دي.

﴿لَّيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ﴾پدې ایت کښې دَیودریم قسم کورحکم ذکرکیږي چې هغه دَچادَاهل وعیال دَاستوګنې دَپاره نوي اونه ده چامخصوص بیت اوځائ وي، بلکه هغه ځائ دَعوامي منافعودَپاره وي لکه دفتر، هوټل، مارکیټ وغیره شو.

| |
|---|
| قُلۡ لِّلۡمُؤۡمِنِيۡنَ يَغُضُّوۡا مِنۡ اَبۡصَارِهِمۡ وَيَحۡفَظُوۡا فُرُوۡجَهُمۡ ؕ ذٰلِكَ اَزۡكٰى لَهُمۡ |
| اواوایه مؤمنانوته چې کوز دې ساتئ دَنظرونوخپلونه اوبچ دې ساتئ عورتونه خپل. داطریقه پاك ساتونکې ده دوئ لره |
| اِنَّ اللّٰهَ خَبِيۡرٌۢ بِمَا يَصۡنَعُوۡنَ ۝٣٠ |
| بیشکه الله جَلَّ جَلَالُهُ خبردې په هغه کارونوچې دوئ ئې کوي. |

﴿قُل لِّلۡمُؤۡمِنِينَ يَغُضُّواْ﴾دادویم قانون ذکرکیږي په باره دَحفاظت نظراوعورت کښې اومفعول ثاني چې عمالایحل لهم نظرهم دې دَوجې دَظهورنه محذوف دې﴿ يَغُضُّواْ مِنۡ أَبۡصَـٰرِهِمۡ ﴾ یغضوا صیغه دَامرده لام امرپکښې محذوف دې او﴿مِنۡ أَبۡصَـٰرِهِمۡ ﴾ کښې من په مذهب دَاخفش زائددې، ځکه چې دَهغه په مذهب کښې په کلام مثبت کښې هم من زائدراتلې شي لکه څرنګه چې منفي کښې راځي. اوپه مذهب دَسیبویه من تبعیضیه دې، یعنې بعض نظرونه کوز ساتئ اودَدینه مرادهغه

نظردې چې بلاضرورته دبل چاعورت ته کولې شي. یانامحرم زنانه طرف کتل شو اوضرورت دوجي نه دبل چاعورت ته کتل ناجائزندی لکه يوطبيب نامحرم زنانه ته دضروت دوجي نه ګوري. یامخطوبې ته کتل شو. یانظرفجاءة(ناساپي نظر)شو داټول جائزدی اوګناه ئې نیشته دې اوبعض فرمائي چې غض په معنئ دنقصان اوکمې سره دې اومن صله دیغض دپاره ده یعنې په نظرکښ دکمې راولی یعني اقتصاردې په حلال مواضعو باندې کوي. اوحرام طرف ته دې تجاوزنه کوي

﴿وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ﴾یعنې دچانه چې عورت پټول فرض دي نودهغوئ نه خپل عورتونه پټ اومحفوظ ساتئ، چې هغه دخپلې بي بي اووينزي نه علاوه خلك دي اوچونكه دخپلې بي بې نه عورت نه پټول عقلاً اونقلاً معلومه خبره ده، نوددې وجې استثناء لفظي ضرورت نوو نوځكه استثناء لفظاًاونشوه، اودلته من رانوړې شو لکه څرنګه په غض الابصار کښ راوړې شوې وو، وجه داده چې امراومعامله دنظروسيع دې اوامردعورت مضيق دې حفاظت دعورت په کل اجزاؤ سره په کل اوقاتوکښ ضروري دې، حتي چې په خلوت کښ ناست وي نوبياهم حفاظت دعورت ضروري دې په خلاف دنظرنه،چې خپلومحارموته کتل مخطوبې ته کتل وغيره جائزدی.

اوهرکله چې سترګې دمیلان قلبي پیداکیدلودپاره قوي سبب دې، چه سترګوسره غلط محل ته یانامحرمې ته نظراوکړې شي نوپه زړه کښ اثراوهغې طرف ته میلان پیداشي نوددې وجې نه حفاظت دنظرمقدم کړې شوپه حفاظت دعورت باندې.

| |
|---|
| وَقُل لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ |
| اواوایه مؤمنوزنانوته چې کوزدې ساتي دنظرونوخپلونه اوبچ دې ساتي عورتونه خپل اوندې ښکاره کوي دول خپل |
| اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ ۠ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ |
| مګرهغه چې ښکاري دهغې نه(مجبورا) اواچوي دې لوپټې خپلې په ګريوانونو خپلوباندې اوندې ښکاره کوي سنګارخپل |
| اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اٰبَآئِهِنَّ اَوْ اٰبَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اَبْنَآئِهِنَّ اَوْ اَبْنَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اِخْوَانِهِنَّ |
| مګرخاوندانوخپلوته یاپلارانو خپلوته یاسخرانوخپلوته یاځامنوخپلوته، یابنځوخپلوته یاورونړوخپلوته |

اَوْ بَنِیْۤ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِیْۤ اَخَوٰتِهِنَّ اَوْ نِسَآىٕهِنَّ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَیْمَانُهُنَّ

یاوریرونوخپلوته یاخوریونوخپلوته یازنانوخپلوته اویاهغه وینځي چې مالکان دي پرې خي لاسونه ددوئ

اَوِ التّٰبِعِیْنَ غَیْرِ اُولِی الْاِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ اَوِ الطِّفْلِ الَّذِیْنَ لَمْ یَظْهَرُوْا عَلٰی عَوْرٰتِ النِّسَآءِ

یاهغه خدمتګاران چې ندي دشهوت والاداریئونه یاهغه ماشومان چې ندي خبرشوي په پټوخبرودزنانوباندي.

وَلَا یَضْرِبْنَ بِاَرْجُلِهِنَّ لِیُعْلَمَ مَا یُخْفِیْنَ

اونه دي ګدي په زورسره خپي خپلي (په زمکه باندي) دپاره ددي چې معلوم شي خلکوته هغه چې دوئ یې پټوي

مِنْ زِیْنَتِهِنَّ ؕ وَتُوْبُوْۤا اِلَی اللّٰهِ جَمِیْعًا اَیُّهَ الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۳۱﴾

چې زینت دې ددوئ اوتوبه اوباسئ اللهﷻ ته تاسوټول اې مؤمنانو، دې دپاره چې تاسوکامیاب شئ

﴿وَقُل لِّلْمُؤْمِنٰتِ یَغْضُضْنَ﴾ دادریم قانون ذکرکیږي دمؤمناتوزنانودپاره اوداقانون مشتمل دي په پنځه دفعاتو (ادابو) باندې (۱) ﴿یَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ﴾ مفعول ثاني دلته محذوف دي چې مالایحل لهن النظرالیه دي، چې هغه داجنبي سړي عورت ته کتل دي اوبعض فرمائي چې مفعول به مطلقا عن الرجال دي اودایت مقصد دادي چې داجنبي زنانه دپاره اجنبي سړي ته کتل جائزندی اودامسلك دبعض شوافعودي اودوئ استدلال کړیدې په روایت دنبهانرحمه الله سره چې نقل کړیدې امام ترمذیرحمه الله اوابوداودرحمه الله دام المؤمنین حضرت ام سلمهرضی الله عنها نه چې هغه فرمائي چې څه اوام المؤمنین حضرت میمونهرضی الله عنها دنبی پاكﷺ سره ناستي وو، چې پدیکښې یونابیناصحابي حضرت عبدالله ابن ام مکتومرضی الله عنه داخل شو اودادنزول حجاب نه ورستودورو، نونبی پاكﷺ مونږ ته اوفرمائیلوچې تاسوپرده اوکړئ نومونږه عرض اوکړو چې یارسول اللهﷺ آیادي ړوندندي؟ نه دي مونږ ویني اونه مونږ پیژني؟ نونبیﷺ اوفرمائیلوچې آیاتاسوهم ړندي یئ؟ اوتاسودي نه وینئ؟ نوددي حدیث نه هم معلومیږي چې زنانه به مطلقاسړي ته نظرنه کوي، لیکن دجمهورعلمآؤمسلك دادي چې دزنانه نظرسړي ته جائزدې، اواستدلال ئې کړیدې په روایت دام المؤمنین حضرت عائشهرضی الله عنها سره چې نقل کړیدې امام بخاریرحمه الله فرمائي، کنت

انظرالی الحبشة وهم یلعبون بحرابهم في المسجد،یعني حضرت عائشهﷺ فرمائي چې دَاخترپه ورځ مسجدنبوي سره قریب حبشیانو لوبې کولې، مابه ورته کتل، اونبې پاکﷺ به دَپردې دَپاره ماته مخې ته ولاړوو. نوددې حدیث نه جوازمعلومیږي. علامه نوويرحمه الله دَجمهورو دَاستدلال نه جواب کړیدې چې دَحضرت عائشهﷺ واقعه دَنزول حجاب نه مخکښ ده، اودَحجاب دَحکم نزول نه بعدممانعت اوشو اودویم جواب ئې داکړیدې چې حضرت عائشهﷺ پدغه وخت کښ نابالغه وه، نودَنابالغې زنانه کتل سړوته جائزدې، لیکن حافظ ابن حجررحمه الله دَعلامه نوويرحمه الله دادواړه جوابونه ردکړیدی اوفرمائي چې داځکه غلط دی چې په ځنې روایاتوکښ دی چې دَحضرت ام المؤمنینﷺ داواقعه مذکوره دَحبشې دوفدراتگ نه ورستووه اودَحبشې والاوفدپه سنه(۷ھ)کښ راغلې وو،اوپه دغه وخت کښ دَحضرت عائشهﷺ عمرشپاړلس(۱۶)کاله وو،اودَحجاب حکم هم نازل شوې وو،ځکه دَحجاب حکم(۵ھ)کښ راغلې وو بنابرقول اصح نودَدې وجې نه صحیح اوراجح قول دَجمهوردې،باقي دَحضرت ام سلمهﷺ دَروایت نه جمهورو جواب کړیدې چې ممانعت محمول دې په تقوېٰ باندې اوجواز محمول دې په فتوې باندې اویادَممانعت والاحکم مختص وو په ابن ام مکتومﷺ پورې،ځکه چې هغه نابیناوو،اوکله کله دَنابینادَجسم بعضې هغه حصې ښکاریدلوامکان وې چې هغې ته دزنانوکتل ناجائزوي. اودَدې مذهب تائید دَزنانوپه پرده کښ دکورنه راوتل دَپاره دَجمات یاضرورت دَپاره بازارته تلل اویانوراسفاروته تللو، سره هم کیږي چې دَپردې حکم صرف زنانوته شویدې اوسړوته دَپردې کولوحکم نیشته دې کچرته سړوته کتل ناجائزوي نودوئ به هم زنانوپشان پرده کوله،البته علامه سیوطيرحمه الله اونورعلماء فرمائي کچرته نظردَزنانه سړي ته بغیردَشهوت نه وو اوذریعه دَفتنې نه گرځیدلویعني دَفتنې نه، امن وو نوبیاخوجائزدې اوکه ذریعه دَفتنې گرځیدلو نوبیاندې جائز اودیته امام بخاريرحمه الله هم ترجیح ورکړیده لکه دَهغه دَصنیع نه معلومیږي چې هغه باب منعقدکړیدې باب نظرالمراءة الی الحبش ونحوهم من غیرریبة اودیته حضرت شیخ الحدیث مولانازکریاصاحبرحمه الله هم ترجیح ورکړیده.

﴿وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ﴾دادویم ادب اودویمه دفعه ده اوحفاظت دَفرج عام دې دَزنا نه بچ کیدلوته هم شامل دې اوهسې دَعورت پټولوته هم شامل دې، حضرت ابوالعالیهرحمه الله فرمائي چې قرآن

مجيد کښې چرته هم حفاظت دَفرج ذکراوشي نودَهغې نه مراد دَزنا نه بچ کيدل وي. علاوه دَدې اياتونونه چې دلته ترينه مراد عورت پټول دي.

**فائده**: سړې يازنانه کچرته خلوت کښې وي اوخوک هم نوي نوبياهم بلاضرورته عورت ظاهره ول جائزندی لکه په روايت دَترمذي،ابوداؤد وغيره کښې په سنددَبهزبن حکم سره منقول دی کچرته تاسوپه تنهائي کښې يئ نوبياهم خپل عورت مه ښکاره کوئ ځکه چې الله ﷻ زيات مستحق دې دَدې چې دَهغه نه حياوکړې شي اوپه روايت دَابن عمر رضي الله عنه کښې دي چې نبی پاک ﷺ ارشاد اوفرمائيلوچې تاسوپه خلوت اوتنهايئ کښې هم خپل عورت ظاهره ولونه ځان بچ ساتئ. ځکه تاسوسره داسي مخلوقات(فرشتي) دی چې هغه په هيڅ حالت ستاسونه،نه جداکيږي سيوادَقضائي حاجت اوبې بې ته دَنزديکت دَوخت نه،توپس تاسودَهغو نه حياکوئ اودَهغوعزت کوئ.

﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ﴾دادريم ادب اودريمه دفعه ده، اوزينت نه مراديامواضع دَزينت دی چې هغه بدن دَزنانه دې، ځکه چې نفس زينت اودَخائست والاخيزونه چې په بدن دَزنانه باندې نوي نودَهغې ابداء اوهغې ته کتل جائزدي اوياترينه مرادنفس زينت دې، چې بدن دَزنانوپوري متصل وي،اوهرکله چې نفس زينت ظاهره ول منع دی، نودَمحل دَزينت ابداء په طريق اولې سره ممنوع دې.اوزينت په دوه(۲)قسمه دې يوخلقي، بل کسبي، خلقي زينت هغه دې چې هغه دَانسان په اختيارکښې نوي، بلکه په خلقت دَالله ﷻ سره وي، لکه خائست دَمخ دَسترګو وغيره شو، اوکسبي هغه دې چې په کسب دَانسان سره وي،لکه نکريزي لګول، رانجه پوري کول، اورنګاررنګ کپړي اچول وغيره شواوبياهريودَدينه په دوه(۲)قسمه دې يوظاهري،بل باطني،نودَزنانه دَپاره خپل زينت اومواضع دَزينت ظاهرول جائزندی.

﴿إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا﴾دَدې په تفسيرکښې اقوال مختلف راغليدي يو(۱)قول دادې چې دااستثناء منقطعه ده اومرادترينه هغه ځائيونه دی چې دَمجبورئ نه ښکاره کيږي اوزنانه ئې قصداًنه ښکاره کوي، لکه څادر، برقعه وغيره شو چې دَهغې دَپاسه نورڅه نشي اچولې کيدلې، داقول دَابن مسعود رضي الله عنه نه مروي دې اودَحضرت عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چې دَدينه مراد دَمجبورئ دَوجې نه يوه سترګه ښکاره کول دی،دَدې دَپاره چې لاره پې اويني، اودغه شان دَضرورت دَپاره يوه ګوته ښکاره کول پکښې هم شامل دي، (۲) دويم قول دادی چې استثناء متصله ده اودَماظهرَنه

مراد مخ. خپي اولاسونه دي يعني زنانه دي خپل اعضاء دزينت نه ښکاره كوي البته مخ. خپي اولاسونه ښكاره كولي شي اودَدي قول نسبت شويدي. حضرت ابن عباسﷺ.حضرت عليﷺ اوحضرت سعيدبن جبيرﷺ ته اودغه شان يوقول حضرت عمرﷺ ته هم منسوب دي ليكن په دې خبرى باندې ځان پوهول پكار دى چه دلته مطلق كشف جواز ذكردي كشف للغير جوازذكر ندي يعنى زينت ظاهرى نه علاوه نور اعضاؤو پټول خو په هر حال كښ ضرورى دى نامحرم وى او كنه وى ليكن زينت ظاهرى چه هغه مخ او كفين دى (اوبعضو پكښ قدمونواضافه هم كړيده)هغې حكم دا ندي،يعنى نامحرم موجودګئ په صورت كښ هغې پټول خو ضروري دى.ليكن غير موجودګئ په صورت كښ يې پټولو ضرورت نشته.ځكه چه زنانه كور كارونه كوي،نودې پټولوصورت كښ په هغې كښ حرج رازى.ليكن دينه دانه ثابتيږى چه نامحرم په مخ كښ هم دَدې ستر نشته داځنګه كيدېشى چه ورستو (ولايضربن بارجلهن)كښ زيوارتو اواز ستركښ شمار شي اومخ اولاسونه دى هغى نه مستثنى شي؟بل داچه دادَ ولايبدين زينتهن الا لبعولتهن..سره هم منافى دى (از امداد الفتاوى ملخصا)

﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ ﴾داځلورم ادب دي اوپديكښ رددې په طريقه دَزماني دَجاهليت باندې،چې عام طورباندې به زنانوطريقه دَپړوني اولوپټي اچولو داوه چې په سرباندې به ئې لوپټه په داسي طريقي سره واچوله چې دَهغې دواړه طرفونه به شاطرف ته راغلو،اومخې طرف ته غاړه اوسينه به ئي ښكاريدله نودَهغوئ پدي طريقي باندې رد اوشو چې زنانه دي لوپټه په داسي طريقي سره اچوي چې دَسرسره سره مخې ته غاړه اوسينه هم پټه وي اوداحكم دكوردَپاره دې اوكله چې زنانه دَيوضرورت دَپاره دكورنه بهرته ځي نوبيادَبرقعي اودَمكمل پردي حكم دې او"خمر"جمع دَخماره هرپټوونكى شئ ته وئيلې كيږي دلته ترينه مراد هغه څادراولوپټه ده چې زنانه پري سر،غاړه اوسينه وغيره پټه وي.اوپديكښ اشاره ده چې هغه باريكي لوپټي چې په سر واچولې شي نوبياهم ويخنه.غاړه وغيره پكښ ښكاريږي نودَهغي استعمال جائزندي اوجيوب جمع دَجيب ده متعارف جيب ته هم وئيلې كيږي اوګريبان ته هم وئيلې كيږي، دلته ترينه دادويمه معنې مراده ده.

﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ﴾ دا جمله مکرر ذکر شوه مخکښې هم دَرخصت په سياق کښې ذکر شوې وه دلته هم دَرخصت په سياق کښې ذکر کيږي. فرق صرف دادې چه مخکښې دَدې ذکر په اعتبار دَ ''منظور'' سره وو دلته په اعتبار دَ ''ناظر'' سره ذکر کيږي بالفاظ ديگر مخکښې دَجسم هغه اعضا په باره کښې دَدې جملې ذکر وو چه هغه عمومي پردې حکم نه مستثنى وو او اوس دَهغه اشخاص او افراد په باره کښې ذکر کيږي چه هغه پردې حکم نه مستثنى دي. نو دا دولس (۱۲) قسمه کسان دي چې دَهغوئ نه پرده نيشته دې او دَهغوئ په مخ کښې اعضاء دَزينت ښکاره کول جائزدي اګرچه په دوئ کښې تفاوت شته دې

﴿إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ﴾ هر کله چې زنانه ته زيات اقرب دَهغې زوج وي او دَزنانه دَپاره مقصود په زينت سره هم زوج وي نو دَدې وجې نه زوج مقدم ذکر کړې شو.

**فائده**: دَښځې دَخاوندنه دَهيڅ يوعضوي او اندام پرده نيشته دې البته بلاضرورته دَزنانه مخصوص اعضاؤته کتل مکروه او خلاف اولى دى حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چې حضور ﷺ نه ماته (عضو خاص ته) کتلي دي او نه ما دَهغه عورت ته کتلي دي او په يو روايت کښې دي چې خپلې بې بې عورت ته کتل ړوندوالې پيدا کوي.

﴿أَوْ ءَابَآئِهِنَّ﴾ محل دَزينت لکه څرنګه چې زوج ته ښکاره کول جائزدي نو دغه شان محارمو ته هم جائز دى ځکه چې دَدوئ سره مخالطت اکثروي او وقوع دَفتنې پکښې کالعدم دې البته دي مذکور افرادو په مخ کښې عورت غليظه ظاهرول جائزندي، چې هغه مابين السرة الى الرکبة دې او دَاب په حکم کښې اب الاب يعني نيکه داخل دې او دَابن په حکم کښې ابن الابن داخل دې.

﴿أَوْ نِسَآئِهِنَّ﴾ غوره قول دادې چې ددينه مراد نساء مسلمات دي يعني يوه زنانه دَبلې مسلمانې زنانه په مخ کښې خپل اعضاء دَزينت ښکاره کړي، ماسيوا دَعورت غليظه نه نو دا جائزدي په خلاف دکافرې زنانه نه چې دَهغې نه پرده کول واجب دي دَمسلمانې زنانه دَپاره او دغه شان حکم دَفاحشې زنانه په باري کښې هم دې او علت دَپردې کولو دَدوئ نه وقوع دَفتنې دې ځکه چې کافرې او بدکارې زنانه دَمسلمانو زنانو حسن صفت خلکو ته بيانه وي.

﴿أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُنَّ﴾پدي باندي اتفاق دې چې وينزه اگرچه كافره وي نوبياهم دخپلي مالكي زنانه پرده ترينه نيشته دې اودغه شان غلام چې نابالغ وي دهغه نه هم پرده نيشته دې اختلاف په بالغ غلام كښ دې چې دېوي زنانه په ملك كښ بالغ غلام وي نوزنانه به دهغه نه پرده كوي اوكه نه به كوي؟ داحنافو مسلك دادي چې غلام اجنبي دې دهغه نه پرده كول ضروري دى اودشوافعو مسلك دادې چې غلام مشترك نوي اومكاتب نوي اوعفيف وي نودهغه نه پرده نيشته دې اودليل كښ دامذكورآيت پيش كړيدې اودغه شان استدلال ئې كړيدې په روايت دحضرت انس رضي الله عنه سره چې ذكركړيدې امام ابوداؤد په كتاب اللباس كښ چې يوځلي نبي پاك ﷺ د لورحضرت فاطمه رضي الله عنها سره څادروو نوچې په هغې سره ئې سرپټولونوخپې به ئې ښكاريدلې. اوچې خپې به ئې پټولې نوسربه ئې ښكاريدلو،نبي پاك ﷺ چې دهغې داتكليف اوكتلونواوفرمائيلو انه ليس عليك باسٌ انماهو ابوكِ وغلامكِ يعني دېردې نه كولو گناه په تاباندې نيشته دې ځكه چې دلته يوستاپلاراوبل ستاغلام دې او احنافو استدلال كړيدې په مشهورروايت سره چې ذكركړيدې امام بخاري رحمه الله چې نبي پاك ﷺ ارشاد اوفرمائيلوچې لايحل لامرأة ان تومن بالله واليوم الاخران تسافرسفراً فوق ثلاث الاّ مع ذي محرم.اوغلام دذې رحم نه ندې،نوكچرته دغلام نه پرده نوي نودهغه استثناء به هم شوي وه اودغه شان دقياس دتقاضه هم داده چې غلام نه پرده اوشي ځكه چې دغلام نه هم اشتها دنفساني خطره موجوده ده اوازادكيدلونه ورستودخپلي مالكي سره نكاح هم كولې شي.

اوباقي ايت مذكورنو احناف فرمائي چې پديكښ دماملكت ايمانهن نه مرادصرف وينزي دي اوغلامان پكښ ندي داخل،لكه دحضرت سعيدبن مسيب رحمه الله نه مروي دي چې لايغرنكم اية النورفان المراد بهاالاماء يعني دسورة النورپه ايت باندې دهوكه نشئ ځكه چې دهغې نه مراد وينزي دي.اوحديث په جواب كښ داوئيلې شويدې چې هغه غلام نابالغ وو . ليكن بعضي احنافو داقول كړيدې چې ايت مطلق دې تخصيص دپاره ئې څه نص نيشته دې اودغه شان حديث هم مطلق ذكردې. تخصيص ئې په نابالغ پوري كول هم بلادليله دي،نودې وجي نه كچرته غلام عفيف وي نوظاهردنص نه دهغه نه پرده نه كول معلوميږي اوكه عفيف نو نوبياترينه پرده ضروري ده.

﴿أَوِ ٱلتَّـٰبِعِينَ غَيْرِ أُوْلِي ٱلْإِرْبَةِ﴾ددينه مرادهغه نارينه دي چې ماده دشهوت پکښې نوي،اودزنانو طرف ته ئې رغبت اوميلان نوي اوتابع مقصددادې چې هغه دچاكورته داخليږي نوصرف ديوطفيلي په صورت ځي اودكوروالونه پاتې شوي روټئ وغيره خوري. اوددينه علاوه كورته داخليدلونه بل څه مقصدئې نوي.

﴿أَوِ ٱلطِّفْلِ ٱلَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُواْ﴾طفل اسم جنس دې دلته ترينه جمع يعني اطفال مراددى اواطفال يعني بچې په دري(۳)قسمه دې يو(۱)قسم هغه دې چې هغه بالكل ماشوم وي،خبري،خوراك هم نشي كولي،داقسم ماشوم په منزله دحجري دې،دده په مخ كښې هرقسم عورت ښكاركولو اجازت شته دې دويم(۲)قسم متوسط عمروالاماشوم دې.دهغه نه اګرچه پرده نيشته دې خودهغه په مخ كښې عورت غليظه ښكاره كول جائزندى (۳)دريم قسم مراهق دې چې دزنانوپه عوراتو اورازونوباندې خبروي اودجماع په مقصدپوهيږي نوددغه شان ماشوم نه پرده ضروري ده نومرادپه عورات سره پټ رازونه په باره دزنانودى،لكه جماع وغيره شو.

﴿وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ﴾دابل ادب ذكركيږي چې زنانه دې دتللوپه وخت كښې په داسي طريقې سره قدم نه ګدي چې دكالو اوازئې بل څوك واوري﴿لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ﴾ لام دعاقبت دپاره دې يعني نارينه ته پته اولګي چې دازنانه دكالووالاده،اوپدې سره دنارينه شهوت بيداريږي نوځكه داحرام اوناجائزدى اودبعض اسلافونه منقول دي چې دزنانه اواز زيات موجب دشهوت دې اوداايت دليل دې پدې چې زنانه دپاره هغه ټول څيزونه اختيارول ناجائز دي كوم چې دزنانوته توجه ګرځولوذريعه ګرځي، لكه مزيني برقعي اوفيشني برقعي،عطراوسپرې لګول وغيره شو، اوپه صحيح حديث كښې دي:المراءة اذا استعطرت فمرت بالمجلس فهي كذا كذا يعني زانية يعنې كله چې يوه زنانه خوشبو اولګوي اودنارينوپه مجلس تيريږي نوهغه داسي داسي(زناكاره)ده اودغه شان په بل حديث كښې چې دَ حضرت ابوهريرة رضي الله عنه نه مروي دې فرمايئ چې: سمعت حبيبي اباالقاسم ﷺ يقول لاتقبل الله صلوة امرأة طيبت لهذا المسجدحتى ترجع فتغسلهاغسل الجنابة(ابن كثير)يعني مادخپل محبوب ابوالقاسم ﷺ نه اوريدليدي چې هغه اوفرمائيلوچې كوم زنانه جمات ته راځي اوخشبواولګوي

نو الله ﷻ دَدي مونځ ترهغه وخته پوري نه قبلوي ترڅوچې داکورته واپس لاړه نشي اوهغه شان غسل اوکړي لکه دَجنابت نه چې غسل کيدې شي.

﴿وَتُوبُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ جَمِيعًا﴾ انسان چونکه کمزورې اوضعيف دې که ډيرکوشش اوکړي خوبياهم ترينه تقصيرات اوکوتاهياني کيږي نودَدي وجې نه په اخيرکښې دَتوبې حکم اوشولو

| |
|---|
| وَأَنْكِحُوا الْأَيَامٰى مِنْكُمْ وَالصّٰلِحِيْنَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَآئِكُمْ ۚ إِنْ يَّكُوْنُوْا فُقَرَآءَ |
| اونکاح اوکړئ دَلونډانوستاسونه اودَنيکانوغلامانواووينځوستاسونه کچرې دوئ وي فقيران |
| يُغْنِهِمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۗ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۳۲﴾ |
| نومالداري به ورکړي الله ﷻ دوئ ته دَفضل خپل نه اوالله ﷻ فراخ فضل والادې.په هرڅه عالم دې |

﴿وَأَنكِحُواْ ٱلْأَيَٰمَىٰ﴾ اصلاح دَمعاشرې دَپاره داخلورم قانون ذکرکيږې يعني ازاد سړې اوزنانه اودغه شان وينځې اوغلامان بغيردَواده نه مه پريدئ ځکه چې بغيردَواده نه پاتې کيدل په انسان کښې دَزناداعيه زياته وي چې هغه سبب دَفساد دَمعاشرې دَپاره ګرځي اودَواده سره شهوت په خپل ځائ کښې استعمال شي اودَزناموقعه کمه شي اوپدې سره اصلاح په معاشره کښې پيداکيږې

او﴿ٱلْأَيَٰمَىٰ﴾ جمع دَايم ده هغه نارينه اوزنانه ته وئيلې کيږې چې بې واده وي،برابره خبره ده چې واده ئې بالکل کړې نوي، اويائې کړې وي خووفات شوې وي اوفي الحال ئې واده نوي

او﴿وَأَنكِحُواْ﴾ صيغه دَامرده اواکثراهل علموپه نيزامردَپاره دَندب اواستحباب دې اوبعض فرمائې چې امردلته هم دَپاره دَوجوب دې ليکن غوره قول دادې چې دَنکاح حکم دَحالاتوپه اعتبارسره مختلف کيږې، بعض حالاتوکښې سنت،بعضوحالاتوکښې واجب اوبعض حالاتوکښې مکروه وي(والتفصيل فی کتب الفقه).

اوپه ﴿وَأَنكِحُواْ﴾ سره خطاب اګرچه اولياؤته دې ليکن دَدې نه داحکم ثابتول چې بغيردَولي نه نکاح نه کيږې ضعيف دے ځکه چې ايامی اطلاق لکه څرنګه په بې واده زنانه باندې کيږې نودغه شان په بې واده نارينه باندې هم کيږې اوحالانکه دَبې واده نارينه دَپاره دَولي په ضروري والي باندې چاهم قول ندې کړې .اوملاعلي قاري رحمه الله فرمائې چې پدې ايت کښې اولياؤته حکم

کول بناء دي په عرف او عادت باندې په طريقې دَندب او استحباب سره ځکه چې عام طور زنانه په داسې امورو کښې شرميږي او خپله دَخپل نکاح دَپاره نه ځي نو ددې وجې نه. او ولې خبره داده چې په نکاح کښې دَولي واسطه موجوده وي نو دا باعث برکت او ذريعه دَخير وي

﴿وَٱلصَّٰلِحِينَ مِنۡ عِبَادِكُمۡ﴾ دَصالحين نه مراد يا معنې لغوي ده. يعني هغه وينزې او غلامان چې هغوئ کښې دَواده صلاحيت او قابليت موجود وي. يعني بالغ وي او حقوق زوجيت پوره کولو باندې قادر وي، او يادديته شرعي معنى مراد ده يعني نيکان. او تخصيص دَصالحانو دې وجې نه او شو چې دَنکاح اصل مقصد، عفت، پاکدامني، دَخپل دين او ايمان حفاظت او دَنيک اولاد حصول دې او دا مقصد دَصالحانو پيش نظر وي.

﴿إِن يَكُونُواْ فُقَرَآءَ﴾ دَنکاح دَپاره لوئ رکاوټ غربت دې او دغه شان ځني خلک دَخپلو خويندو ، لونړو نکاح دَځني خلکو سره دَدې وجې نه نه کوي چې هغه غريب وي نو پدې ايت کښې په دغه شان خلکو باندې رد او دَغريبانو دَپاره بشارت دې چې دَعفت او پاکدامنۍ او دَخپل ايمان دَحفاظت دپاره دَنکاح خواهشمند وي خو دَغربت دَوجې نه ئې نشي کولې ،نو دَغربت دَوجې نه په نکاح کښې تاخير او يا چا ته انکار مه کوئ ځکه چې غربت او مالداري دواړه دَالله ﷻ په قدرت کښې دي نو الله ﷻ به دَدوئ غربت په مالدارئ سره بدل کړي

او په غناء سره بعضو غناء دَمال مراد کړيده او بعضو ترينه غناء نفس او قلب مراد کړيده .ليکن غوره خبره داده چې دواړه ترينه مراد دي چې الله ﷻ به دوئ ته غنا قلبي او مالي ورکړي او په حديث دَترمذي، او ابن ماجه کښې دي دَحضرت ابو هريرة رضي الله عنه نه مروي دي چې رسول الله ﷺ ارشاد او فرمائيلو چې ثلثة كلهم حق على الله عونه، المجاهد في سبيل الله، والناكح يريد العفاف، والمكاتب يريد الاداء، يعني دَدرې (۳) قسمه خلکو امداد الله ﷻ په ځان باندې ضروري کړيدې، (۱) يو مجاهد في سبيل الله (۲) او دويم هغه نکاح کوونکې چې عفت ئې اراده کړي وي، (۳) او دريم مکاتب چې دَبدل کتابت اداکولو اراده ئې کړي وي، او په يو بل روايت کښې دي چې يو کس نبي پاک ﷺ ته دَخپلې مالي بدحالئ شکايت اوکړو، نو نبي ﷺ ورته اوفرمائيلو عليكَ بالباءة يعني خامخا واده اوکړه.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلْيَسْتَعْفِفِ | الَّذِيْنَ | لَا | يَجِدُوْنَ | نِكَاحًا | حَتّٰى | يُغْنِيَهُمُ اللّٰهُ |

اوپاك دې ساتي خپل ځان هغه كسان چې طاقت نه لري دنكاح . ترڅو پورې چې مالداري به وركړي دوئ ته الله جل جلاله

مِنْ فَضْلِهٖ وَالَّذِيْنَ يَبْتَغُوْنَ الْكِتٰبَ مِمَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ فَكَاتِبُوْهُمْ

دفضل خپل نه. اوهغه كسان چې غواړي مكاتب كيدل دهغه غلامانو نه چې مالك دې پرې خې لاسونه ستاسو ،نومكاتب كړئ دوئ

اِنْ عَلِمْتُمْ فِيْهِمْ خَيْرًا ۖ وَّاٰتُوْهُمْ مِّنْ مَّالِ اللّٰهِ الَّذِيْٓ اٰتٰىكُمْ ؕ

كچرې پوهيږئ تاسوپه هغوئ كښ دخير(ايمان)اووركوئ دوئ ته دمال دالله جل جلاله نه هغه چې دركړيدي تاسوته

وَلَا تُكْرِهُوْا فَتَيٰتِكُمْ عَلَى الْبِغَآءِ اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا

اومه مجبوره كوئ جينكئ خپلي په بدكارئ باندې كچرې غواړي هغوئ پاكدامنى(نكاح)

لِّتَبْتَغُوْا عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَمَنْ يُّكْرِهْهُّنَّ فَاِنَّ اللّٰهَ مِنْۢ بَعْدِ

ددې دپاره چې اولټوئ تاسو سامان دژوندددنيا.چاچې زبردستي اوكړه په دوئ باندې نوبيشكه الله جل جلاله ورستو

اِكْرَاهِهِنَّ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۳۳﴾ وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكُمْ اٰيٰتٍ

دزبردستئ كولونه په دوئ باندې بخښنه كوونكې رحم كوونكې دې،اويقيناًنازل كړيدي مونږتاسوته اياتونه

مُّبَيِّنٰتٍ وَّ مَثَلًا مِّنَ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۳۴﴾

وضاحت كوونكي اونموني دهغه كسانوچې تيرشويدي مخكښ ستاسونه اووعظ دپاره دمتقيانو

﴿وَلْيَسْتَعْفِفِ الَّذِيْنَ﴾ پدې ايت كښ بل ادب ذكركيږي هغه كسانوته چې دغربت دوجې نه په نكاح باندې نوي قادراو مهرنشي اداكولې اوڅوك ورته خپل خور،لور نه وركوي نوهغه سړي دپاره حكم دادې چې دې دخپله پاكدامني اوعفت نه برباده وي بلكه خپل شهوت دې په خپل قابوكښ ساتي.اوپه حديث كښ دشهوت قابوساتلودپاره طريقه اوعلاج روژې نيول بيان شويدى. لكه په حديث دبخاري اومسلم كښ دي چې من لم يستطع فعليه بالصوم فانه له وجاء.

﴿وَٱلَّذِينَ يَبۡتَغُونَ ٱلۡكِتَٰبَ﴾ داپنځم قانون ذکرکیږي هرکله چې ماقبل ایت کښې اصلاح دمعاشرې دپاره دنکاح قابل وینزو اودغلامانودنکاح حکم اوشولو نواوس پدې جملې کښې اصلاح دمعاشرې دپاره دبدل کتابت حکم ورکولې کیږي چې کوم غلامان ستاسونه کتابت طلب کړي نوتاسوهغوئ مکاتب کړئ. ځکه چې عام طورباندې دغلام تربیت اودهغه دنکاح په معامله کښې اکثرمالکان غافله وي اوبې تربیته اوبې واده کس په معاشره کښې فساد پیداکوي اوددې وجې نه کثرت دغلامانواوینزو شرعاً ممدوح ندې نوځکه شریعت دغلامانودازادولوتعلیم ډیرورکړیدې اودغلام ازادولویوه ادنی طریقه کتابت دې. نوددې وجې نه پدې ایت کښې دکتابت حکم ذکرکیږي دجمهوروپه نیز ﴿فَكَاتِبُوهُمۡ﴾امردپاره داستحباب دې اودبعض اهل علموپه نیزدوجوب دپاره دې یعنې چې کله غلام کتابت طلب کړي نومولې دپاره عقدکتابت کول واجب دي.

﴿إِنۡ عَلِمۡتُمۡ فِيهِمۡ خَيۡرٗا﴾ دخیرنه مراد دادې چې دغه غلام عاقل وي، امانت اوتقوې پکښې وي دده په ازادولوسره مسلمانانوته څه قسم خطره نوي موجوده اودغه شان په کسب اوکار روزګارباندې قدرت لري ﴿وَءَاتُوهُم مِّن مَّالِ ٱللَّهِ ٱلَّذِيٓ﴾ امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام مالک رحمه الله په نیزداحکم استحبابي دې اوعام مسلمانانوته دې عموماً اومالکانوته دې خصوصاً اوداَیت مقصد دادې چې دکوم غلام سره کتابت کړې شوې وي نوتاسودهغه سره امداد اوتعاون کوئ اوخپل خیرات،صدقات وغیره هغه ته ورکوئ چې هغه پرې خپل ځان خلاص کړي اوامام شافعي رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیزداحکم وجوبي دې اوصرف مالکانوته دې اوددوئ په نیزداَیت مقصددادې چې مالکان دې مکاتبینوته څه حصه رقم معاف اوکمه کړي، اوپه مقدارد کموالي کښې اختلاف دې امام شافعي رحمه الله نه یو(۱)قول دادې چې دپوره بدل کتاب دریمه حصه به کمه وي (۲)اودویم قول ئې دادې چې مالک ته اختیاردې چې څومره حصه دهغه خوښوي پریدي به. لیکن احناف فرمائي چې دلته حکم دایتاء دې چې هغه تقاضادتملیک کوي یعنې دیوموجود څیزوالاځوک مالک جوړولو اومعاف کولو مقصدداوی چې اسقاط دڅه حصې اوشي، اواسقاط اوتملیک دواړه مفهوماً متنافیین دي.

﴿وَلَا تُكْرِهُوا فَتَيَـٰتِكُمْ﴾ دا شپږم قانون دي د اصلاح د معاشري د پاره په روايت د مسلم شريف کښې د حضرت جابر ﷜ نه منقول دي چې دا ايت په باره د رئيس المنافقين ابن ابي ابن سلول په باره کښې نازل شويدې چې د هغه دوه ‹۲› وينزې وې چې د يوې ‹۱› نوم مسيکة او د بلې نوم اميمه وو، هغه ملعون به دوئ په زناباندې مجبوره کولې، د دې د پاره چې مال پرې اوګټي او اولاد حاصل کړي. نو هغوئ راغلې او نبي پاک ﷺ ته ئې شکايت اوکړو، نو دا ايت نازل شو.

﴿إِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا﴾ د دېنه مراد ځان د زنا او بدکارئ نه بچ کول دي ﴿لِّتَبْتَغُوا عَرَضَ﴾ دا متعلق دې د منهي عنه سره او د نهي سره ندې متعلق او د دېنه مراد اجرت اغستل دی په زناباندې او ناجائز اولاد حاصلول دی.

د دې ايت په ظاهرباندې اشکال دې چې د دېنه دا معلوميږي چې وينزې په هغه صورت کښې په زناباندې مجبوره کول ندې پکار کجرته د هغوئ اراده د تحصن او پاکدامنئ وه او کچرې دا اراده ئې نوه نو بيائې مجبوره کول جائزدې او حالانکه اکراه على الزنا په دواړو صورتونو کښې ناجائزدی؟ د دېنه مختلف جوابات شويدې يو ‹۱› جواب دادې چې دا قيد احترازي ندې بلکه اتفاقي دې او د فعل مزيد تقبيح او تشنيع ظاهرولو د پاره دې يعني د وينزې زنا کول خوفې نفسه بدکاردې، خو د هغه مالك په حق کښې بيا ډيربدکاردې چې وينزه ئې ځان بچ کوي او دې ئې مجبوره وي او چونکه واقعه هم دغه شان شوې وه چې د رئيس المنافقين وينزو به ځان بچ کولو او هغه به مجبورولې نو دا ډيرلوئې بې غيرتوب وو نو د دې وجې نه دا قيد ذکرکړې شو ‹۲› دويم جواب ترينه داشويدې چې دقيد د اغلب حالاتو په اعتبارسره ذکرکړې شويدې ځکه چې اکراه په هغه صورت کښې ممکنه ده کله چې وينزه د تحصن او تعفف اراده کوي اوکله چې وينزه پخپله بدکاره وي نو بيا خو اکراه نوې متحققه ‹۳› دريم جواب دادې چې دلته ‹ان› شرطيه د اذا ظرفيه په معنې کښې دې او په دېکښې د تعليق معنې نيشته دې او په ځائې د اذا ان ځکه راوړې شو چې د وينزو د طرف نه پاکدامنې راتلل شاذ او نادردې.

‹۴› حضرت شيخ ﷫ د دې ايت يوبله توجيه کړيده د هغې په بنياد په دې ايت باندې څه اشکال نه واردېږي هغه فرمائې چې ﴿وَلَا تُكْرِهُوا﴾ کنايه ده د نکاح نه کولو نه، او ﴿فَتَيَـٰتِكُمْ﴾ نه مراد لونړه. خويندې دې او بغاء نه مراد زنادې، او ﴿إِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا﴾ نه مراد خواهش د نکاح دې

او ﴿لِتَبۡتَغُواْ عَرَضَ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا﴾ نه مراد مالدارخاندان اوډيرمهرتالاش كول دى نودايت مقصددادې چې كله ستاسولونړه، خويندې دپاكې زندګئ تيرولودپاره دنكاح خواهشمندې وي نوتاسودهغوئ نكاح خامخاكوئ اوددې وجې نه هغوئ بې واده اوبې نكاحه مه پريږدئ چې مالداره كس اوخاندان والاڅوك سرې ندې ميلاؤشوې ځكه چې داهغوئ په زنا باندې مجبوره كول دى اوحضرت شيخ رحمه الله فرمائي چې داسې لوئ لوئ امراء اوپيران هم شته دې چې دخپلولونړو نكاح صرف ددې وجې نه كوي چې ده دې شايان شان كس ندې ميلاؤشوې.

﴿وَمَن يُكۡرِههُّنَّ﴾ دامبتدامتضمنه ده معنې شرط لره اوخبرورله محذوف دې چې فلااثم عليهن دې او ﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ مِنۢ بَعۡدِ﴾ جمله قائمقام دخبرده، اوپديكښې اشاره ده چې كچرته بتقاضائ بشريت په وخت داكراه كښې ددوئ نه هم مطاوعت اوشي نو الله جل جلاله به ورته معافي كوي. ﴿وَلَقَدۡ أَنزَلۡنَآ إِلَيۡكُمۡ﴾ پديكښې ترغيب دې قرآن ته اومراد په ﴿ءَايَٰتٖ مُّبَيِّنَٰتٖ﴾ سره مذكوراحكامات دى داصلاح دمعاشرې دپاره، ﴿وَمَثَلٗا مِّنَ ٱلَّذِينَ﴾ مثل نه مراد عجيب واقعات دې دتهمت لكه په حضرت يوسف عليه السلام باندې لګولې شوې وو، اوالله جل جلاله دهغه براءت اوصفائي ديوماشوم په ذريعې سره اوكړه دغه شان حضرت مريم رضي الله عنها باندې تهمت لګولې شوې وو دهغې صفائي الله جل جلاله دحضرت عيسى عليه السلام په ذريعې سره اوكړه اودام المؤمنين رضي الله عنها صفائي اوبراءت الله جل جلاله پخپله اوكړو.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَللّٰهُ | نُوۡرُ | السَّمٰوٰتِ | وَالۡاَرۡضِ ؕ | مَثَلُ | نُوۡرِهٖ | كَمِشۡكٰوةٍ |
| الله جل جلاله نوردآسمانونواودزمكې دې مثال دنوردهغه (په زړه دمؤمن كښې) پشان دهغه طاقچې دې | | | | | | |
| فِيۡهَا | مِصۡبَاحٌ ؕ | اَلۡمِصۡبَاحُ | فِىۡ زُجَاجَةٍ | اَلزُّجَاجَةُ | كَاَنَّهَا | كَوۡكَبٌ دُرِّىٌّ |
| چې په هغې كښې چراغ وي (او) دا چراغ په شيشه كښې وي اوداشيشه ګوياچې ستورې دى پرقيدونكې | | | | | | |
| يُّوۡقَدُ | مِنۡ شَجَرَةٍ | مُّبٰرَكَةٍ | زَيۡتُوۡنَةٍ | لَّا شَرۡقِيَّةٍ | وَّلَا غَرۡبِيَّةٍ ۙ | يَّكَادُ زَيۡتُهَا |
| چې بله ولې شي (دتيلو) دونې بركت والانه چې خونه دې، نده مشرق طرف ته او نه مغرب طرف ته، نزدې دې تيل دهغې | | | | | | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُضِيٓءُ | وَلَوۡ | لَمۡ | تَمۡسَسۡهُ | نَارٌ | نُّورٌ | عَلَىٰ | نُورٍ ۗ | يَهۡدِي | ٱللَّهُ |
| چې رڼاوکړي اگرچې نوی لگیدلې هغې ته اور. رڼاده دپاسه دبلې رڼا هدایت ورکوي الله ﷻ | | | | | | | | | |
| لِنُورِهِۦ مَن يَشَآءُ ۚ وَيَضۡرِبُ ٱللَّهُ ٱلۡأَمۡثَٰلَ لِلنَّاسِ ۗ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٌ ﴿٣٥﴾ | | | | | | | | | |
| ددې نور دتوحيدخپل هغه چاته چې اوغواړي اوبيانوي الله ﷻ مثالونه خلكوته اوالله ﷻ په هرخيزباندې عالم دې. | | | | | | | | | |

﴿ٱللَّهُ نُورُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ هركله چې ماقبل اياتونوكښې په ام المؤمنين رضي الله عنها باندې دلگولې شي تهمت ذكراوشو اودفسادددفعيې دپاره قوانين ذكرشو، تهمت اوهغه امورچې دمعاشري دفساد ذريعه گرځي په منزله دتياروډې نوپډي ايت كښې اعاده دمسئلې توحيدكيږي چې دانوردې اودغه شان په ماقبل كښې مؤمنانوته حكم اوشو چې داخلاق رذيله اوصفات خبيثونه،ځان بچ كړئ چې دااخلاق اوصفات په منزله دتيارودى نواوس پدې ايت كښې دمؤمن صفات اودهغه په زړه كښې دايماني نورذكركيږي.

بيازده كړه داخبره چې نوريوصفت دې دصفاتودالله ﷻ نه، په مذهب دمتقدمينودډې اطلاق دالله ﷻ په ذات باندې حقيقة دې بلاكيف بلاتمثيل وتشبيه بالممكن. لكه څرنگه اطلاق دسمع،بصروغيره اطلاق متقدمين په ذات دالله ﷻ باندې حقيقة وائي اوجمهورمفسرين اومتاخرين فرمائي چې اطلاق دنورمعنې لغوې په اعتبارسره دالله ﷻ په ذات باندې ندې صحيح،نولهذا ددې ايت به تاويل صحيحه كيږي اوتاويل كښې ئې مختلف اقوال دي(١) دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دنورتفسيربه هادي سره منقول دې اوچونكه هدايت يونوردې په زړه دمؤمن كښې لكه سورة الزمرايت نمبر(٢٢)كښې دې، نوددې وجې نه هدايت نه تعبيربه نورسره كيږي او﴿ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ نه مراد اهل السموات والارض دي،يعني الله ﷻ نوردهدايت وركړيدې داسمان والو اوزمكي والوته(٢)بعض فرمائي چې نورپه معنې دمنور اومزين سره دې يعني الله ﷻ زمكي اواسمانونه نوراني اوخائسته كړيدي،اسمان ئې خائسته كړيدې په ملائكو، نمر،سپوږمۍ اوستوروسره اوزمكه ئې خائسته كړيده په انبياء كرام،علماء اوصلحاؤسره اودغه شان په ونو. اوبوټو سره (خازن)(٣)امام مجاهد رحمه الله دنورتفسيربه تدبيرسره كړيدې يعني الله ﷻ مدبرالسموت والارض،دزمكې اسمانونومدبر،متصرف اودهغې چلوونكې الله ﷻ

دي(۴) بعض فرمائي چې دلته مجازفي الحذف دي نورپه معنې دَذي النورسره دي. لکه زيدعدل په معنې دَذي عدل سره دي(۵) امام غزالي رحمه الله دَنورتفسيرپه موجداومظهرسره کړيدي.امام غزالي رحمه الله پدي باندې يوه مستقله رساله ليکلې ده اوپه هغې کښې پدې باندې يوطويل بحث کړيدي دَهغه دکلام خلاصه چې دَدې ځائ سره متعلق ده داده چې نورهغه ظاهرته وئيلې کيږي چې په هغه سره دَهرڅيزظهور راغلي وي، يعني چې کوم شئ ظاهرفي نفسه اومظهرلغيره وي نوهغه ته نوروئيلې شي اودَدې په مقابل کښې ظلمت راځي اودَدې التزاماًاطلاق په وجود اوعدم باندې هم کيږي، نوچې کوم څيزکښې ظهوروي نوهغه به خامخاموجودوي اوچې کوم څيزمعدوم وي نوهغه به ظلمت وي نولهذا هغه څيزچې برې وي دَظلماتودَعدم نه، ظهوردَوجود طرف ته نوهغه باندې اطلاق دَنورکيږي نودَهرشي وجود يونوردې اودانورعطاء کړې شويدې دَنوردَذات دَالله جل جلاله نه يعني دَهرممکن وجود قائم دي دَوجود دَالله جل جلاله نه اودَسموات اوارض نه مراد کل ممکنات دي نووجود اونوردَالله جل جلاله اصل شو اونور اووجود دَممکن ظل اوفرعه شو. نوهرظل اوفرعه په خپل اصل باندې دلالت کوي لکه ذره دَنمردلالت کوي په وجود دَنمرباندې نودغه شان دَدې کائنات هره هره ذره دَواجب الوجود په ذات باندې دلالت کوي کمال قال الشيخ السعدى رحمه الله:

برگ درختان سبزدرنظرهوشيار هرورق دفتريست معرفت کردگار

اوبيانورپه څلورقسمه دي(۱) يوهغه نوردې چې اشيآء دَسترگودَپاره ظاهره وي اوخپله څه شي نشي کتلې، لکه نوردَنمراوسپوږمۍ وغيره شو(۲) دويم نوردَبصردې چې هغه سترگودَپاره اشياء ظاهره وي اوخپله هم کتل کوي(۳) دريم نوردَعقل دې چې پدې سره اشيآء معقوله، مخفيه ظاهريږي دَپاره دَبصائريعني عقلونواودې ادراك هم کوي اورؤيت هم کوي(۴) څلورم نوردَالله جل جلاله دې چې پدې سره اظهاردَاشياء معدومه کيږي، چې پټ وي په ظلماتودَعدم کښې اودامعدومات اگرچه في ذاته معدوم اوغيرموجوددى، ليکن الله جل جلاله په علم کښې موجوددى نودَ ٱللَّهُ نُورُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ مقصد داشو چې الله جل جلاله مظهراوموجددَاسمانونواوزمکودې په خپل کمال قدرت ازلي سره،

﴿مَثَلُ نُورِهٖ كَمِشْكٰوةٍ﴾ دَدي ايت په تفسيركښ دَمفسرينوراۍ مختلف دی اومتعدد توجيهات كړی شويدي. ليكن دوه (۲) توجيهات ډيرغوره دی چې هغې كښ يوه توجيه حضرت شيخ رحمه الله غوره كړيده، خلاصه دَهغې داده چې داتمثيل دې يعني دَالله جل جلاله دَتوحيدتمثيل وركولې كيږي په كمال انجلائيت اوظهوركښ. لكه څرنګه يوچراغ وي اوهغه دَاعلې قسم خونه تيلونه بل كړې شوې وې اودغه چراغ په يوصفااوشفافه شيشه كښ وي چې دَهغې دَوجې نه رڼائې نوره هم زياته شي اوداسې ښكاري لكه پړقيدونكې ستورې اودغه شان داچراغ په يومحفوظه طاقچه كښ ايخودلې شوې وي،چې دَهغې دَوجې نه ئې رڼائې راټوله شوې وي اودَنورعلې نورمصداق ګرځيدلې وي، نودغه شان دَالله جل جلاله توحيددې چې دَجهان دزري زري نه واضح كيدلو اوظاهريدلو، دَانبياء كراموتعليماتواوكتب سماويه دَوجې نه پكښ نورهم وضاحت راغې اوداسې شولكه چې په ظلماتواوتياروكښ چې ستورې ځليږي اودَحضور ﷺ په نبوت سره اودَهغه په تعليماتو سره پكښ نورهم انجلائيت راغې اونورعلى نورشو.

اودويمه توجيه دَحضرت عثمانی صاحب وغيره حضراتوده چې هغه ډيره بې غباره اوواضحه توجيه ده چې دَدوئ په نيزداتشبيه مفروقه اومتعدده ده اودَقبيلې دَتشبيه المعقول بالمحسوس نه ده، ځكه چه دلته تشبيه دَهدايت ربانی ده په قلب مؤمن كښ دَچراغ محسوس سره. اوپه جانب دَمشبه به كښ امورمتعدده مقصوده دی اوپه جانب دَمشبه كښ هم امورمتعدده دی مشبه كښ (۱)طاق دې(۲)په هغې كښ يوصفاشيشه وی(۳)په هغې شيشې كښ چراغ وي لكه پړقيدونكی ستوری(۴)په چراغ كښ دَداسې خونه والاتيل وي چې هغه نه شرقي وي اونه غربي، عمده اوبهترين تيل وي اوداسې صفاتيل وي چې بغيردَاورلګونونه داسې ښكاريږي اوداسې پړقيږي چې اوورته وركړې شوې وي(۵)بياهغې ته اوروزكړې شي اونورئې نورهم زيات شي دغه شان په جانب دَمشبه كښ هم امورمتعدددې(۱)بدن اوسينه دَمؤمن چې پشانته دَطاق دې(۲)قلب مؤمن، پشانته دَشيشې دې(۳)په هغې كښ اعتقاد دَتوحيد په مثل دَمصباح اوچراغ دې(۴)داهدايت اونورايمانې دَهغې استعداد دَوجې نه دې چې الله جل جلاله په فطرت دَمؤمن كښ ايخې دې، اودا دَخونه دَتيلوپشان دې اوچونكه دانورايمانې دَذات دَالله جل جلاله نه،مستفيض دې اومبدا ورله دَالله جل جلاله ذات جليله دې،چې منزه دې دَجهاتونه، نودَدې وجې نه په جانب دَمشبه به كښ دَتيلو

مبداء، چې دخونه ونه ده دهغې توصف په لاشرقيه ولاغربيه سره اوشو(۵)دغې استعداد سره انورات دوحي اوتعليمات دشرعيت ورسره هم شامل شي نو د﴿نُورٌ عَلَىٰ نُورٍ ﴾مصداق اوګرځي

((لاشرقية ولاغربية))بالكل هموار ميدان په مينځ كښ وي.نه د نور خاته وخت كښ پرې سورې راځي او نه دنور ډوبې دووخت كښ پرې سورې راځى.هر وخت پرې نوروي.نو د دغه شان زيتون ونې تيل ډير عمده وي.ځنى مفسرينو وسره فقطقيد اضافه كړيده.اې لاشرقية فقط ولاغربية فقط.يعنى نه صرف شرقى ده.چې هر وخت پرې نور وي.او نه صرف غربى ده .چې هر وخت پرې سورې وي

**فائده(۱)**:پدې ايت كښ تشبيه دچراغ چې په شيشه كښ بندوي. دستوري سره وركړې شوه دنمراوسپوږمۍ سره ورنكړې شوه، وجه داده چې نمراوسپوږمۍ كله كله تندرنيسي اوستورو كښ تندرنيول نوي اوبعض فرمائي چې دلته محض دزجاجه تشبيه ده دستوري سره. اودمجموعي تشبيه نده، نوكچرته دشيشي تشبيه دنمرياسپوږمۍ سره وركړې شوې وي نودايت مقصد به التہ شوي وي ځكه چې پدې صورت كښ به دامعلوميدله چې دشيشي رڼرادچراغ رڼرانه زياته ده، حالانكه دايت مقصددادې چې دچراغ رڼرازياته ده اودشيشي رڼرا دچراغ دوجې نه ده اودهغې نه كمه ده.

**فائده نمبر۲**: بعض معاصرو مفسرينوپدې ځائ كښ ليكلي دې، څنګه چې چراغ دزيتون (خونه) دتيلونه بليګي دارنګ ايمان دمؤمن حاصل شوې دې دعلومودقرآن اوحديث نه اوكوم ايمان چې تقليدي وي نوپه هغې كښ شكونه اوشبهات راځي،دوام ئې نوي اوكوم ايمان چې دقرآن اوسنت نه ماخوذوي نوهغه دشك اوشبهې نه پاك وي اودائم وي.

ليكن اصل خبره داده چې دامفسردايمان تقليدي په حقيقت باندې ندې پوهه شوې، دلته دوه(۲)څيزونه دى يو(۱)دې نفس تقليد، چې هغه عبارت دې داعتقادجازمه غيرثابته نه، چې هغه قسيم ديقين دې، اودويم(۲)څيزدې ايمان تقليدي، دهغې مقصد دادې چې دېوكس په ضروريات ددين باندې مكمل يقين اواعتقادوي،البته دايمانياتو تفصيل اوتشريح په سلسلي كښ دحسن ظن په بنياد په يوامام اومجتهدباندې اعتماد اوكړي اوخپل ذاتي تشريح اوتفصيل پريدي اودهغه چاتشريح اختياركړي چاچه خپله زندګي ددين دپاره وقف كړې وه،تحقيقات دمسائل شرعيه دهغوئ دزندګئ مقصدوو، اوتدقيقات دمسائلواعتقاديه اوفرعيه دهغوئ نصب العين

وو ،ایمان تقلیدی پدې معنی کښې اعتبار کول دَ ټولو اهل سنت والجماعت متفقه مسلک دی.لهذا نفس تقلید او ایمان تقلیدی کښې فرق پکار دې.

| |
|---|
| فِيْ بُيُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ ۙ يُسَبِّحُ لَهٗ |
| په کورونو کښې حکم کړیدې الله ﷻ چې عزت او کړې شي دَهغې او یاد کړې شي په هغې کښې نوم دَ الله ﷻ تسبیح وائي هغه لره |
| فِيْهَا بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ﴿٣٦﴾ رِجَالٌ ۙ لَّا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ |
| په دې کښې صبائې او بیګائې،داسې سړي چې نه غافله کوي دوئ لره سوداګري او نه خرخول دَ ذکر دَ الله ﷻ نه |
| وَاِقَامِ الصَّلٰوةِ وَاِيْتَآءِ الزَّكٰوةِ ۙ يَخَافُوْنَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيْهِ الْقُلُوْبُ |
| او دَ پابندۍ کولو دَ مانځه نه او دورکولو دَ زکوٰة نه یره کوي.داسې ورځې نه چې ګډوډبه شي په هغې کښې زړونه |
| وَالْاَبْصَارُ ﴿٣٧﴾ لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا وَيَزِيْدَهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ |
| او سترګو .دَپاره ددې چې بدله ورکړي دوئ لره الله ج خائسته بدله دَعملونو دَدوئ او زیاتې ورکړي دوئ لره دَفضل خپل نه، |
| وَاللّٰهُ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٨﴾ |
| او الله ج روزي ورکوي چالره چې اوغواړي بې حسابه. |

﴿فِيْ بُيُوْتٍ أَذِنَ اللّٰهُ ﴾دَدې جملې په متعلق کښې نهه(۹)احتمالات دی، لیکن په هغه احتمالاتو کښې زیات غوره احتمالات دادی(۱)چې دامتعلق دې دَ ﴿يَهْدِى اللّٰهُ لِنُوْرِهٖ مَنْ يَشَآءُ﴾سره چې داتمثیل دې، او دَآیت مقصد پدې احتمال سره دادې چې پدې کښې دَمؤمنین خلکو محل او مستقربیان کړې شو یعني کوموکسانو ته چې الله ﷻ خپل نورهدایت ورکوي هغه کسان اکثر په مساجدو، مدارسو او په مراکزو دَدین کښې وي (۲)او یا متعلق دې دَ﴿يُوقَدُ﴾سره یعني توقدفي بيوت یعني دَایمان داچراغونه بلیږی په هغه کورونو کښې چې الله ﷻ دَهغې دَجوړولو او دَتعظیم کولو حکم ورکړیدې (۳)او دریمه توجیه دَحضرت شیخ القرآن مختاره ده، چې﴿فِيْ بُيُوْتٍ ﴾دَماقبل

سره ندي متعلق بلکه دا یا متعلق دي دمابعد ﴿یُسَبِّحُ﴾ سره او ﴿رِجَالٌ﴾ فاعل د ﴿یُسَبِّحُ﴾ دي او دویم خلي ﴿فِيهَا﴾ تاکیددي د ﴿فِي بُيُوتٍ﴾ اویا د ﴿فِي بُيُوتٍ﴾ دپاره متعلق محذوف دي چې هغه مقدر ﴿یُسَبِّحُ﴾ دي چې تفسیرئي په ورستو "یسبح" سره شویدي. او ﴿أَذِنَ اللَّهُ﴾ په معنې د "امرالله" سره دي او ﴿تُرْفَعَ﴾ نه مراد ظاهري، باطني رفع ده ظاهري رفع دجمات تعمیردهغې تزئین کول وغیره دی اوباطني رفع دهغې تعظیم کول او په هغې کښې عبادت کول دي. نو په دي تقدیردا ایت دلیل نقلي دي په توحیدباندې، دایت مقصددادي چې دالله ﷻ نیکان بندګان په هغه کورونو کښې دالله ﷻ تسبیح اوتقدیس بیانه وي چې دکوموکورونوتعمیراوتعظیم کولوحکم الله ﷻ ورکړیدي، چې هغه مساجداومدارس اومراکزددین دی نوددې توجیه په بنیاد دادلیل نقلي دي په توحیدباندې.

﴿أَذِنَ﴾ په معنې د "امر" سره دي او په لفظ د ﴿أَذِنَ﴾ کښې اشاره ده دیته چې انسان لپاره دالله ﷻ رضی والاکارونه ته هروخت مستعداوتیاراوسیدل پکاردی حتې چې دي صرف داذن منتظروي اودحکم کولونوبت ورته هم پیښ نشي. ﴿أَن تُرْفَعَ﴾ هرکله چې رفع ظاهري رفع یعني تعمیراوتزئین ته هم شامل دي، نوددې وجې نه علماء ددینه استنباط کړیدي چې دجمات باطني ابادئ سره سره دهغې ظاهري ابادې اودهغې تزیین کول موجب ثواب اوباعث برکت دي.

﴿یُسَبِّحُ لَهُ فِيهَا﴾ مرادترینه پنځه وخته مونځ اوعامواوقاتوکښې ذکرواذکارمراددې او ﴿بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ﴾ یاکنایه ده داکثرو اوقاتونه، اویاد "غد" نه مراد سحروخت دي او "اصال" نه مراد ماسپخین ،مازیګر،مابنام اوماسخوتن دې اویاترینه صرف سحراومازیګرمراددې اوتخصیص ددې دواړو اوقاتو دپاره داهتمام دي.

﴿رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ﴾ داخاص اوصاف بیانیږي دهغه کسانو والا چې الله ﷻ هغوئ ته دهدایت نورعطاء کړیدي اودالله ﷻ په کورونویعني مساجدو مدارسو اومراکزوددین کښې دی، نو ﴿رِجَالٌ﴾ اول صفت دي اوددینه مرادکمال في الرجولیت دي اوتخصیص درجال ځکه اوشوچې په

جمات كښې مونځ كول. ذكرواذكاركول دَنارينه دَپاره غوره دي. اوزنانه دَپاره په كوركښې دننه په كمره كښې عبادت كول اولى اوافضل دى. لكه په حديث دام سلمهﷺ كښې دى چې نبى پاكﷺ ارشاد اوفرمائيلوچې خيرمساجدالنساء قعربيوتهن يعني دَزنانودمانځه دَپاره غوره ځائ دَهغوئ كور تنگ اوتياري. والاځائ دې

﴿لَا تُلْهِيهِمْ ﴾يعني رزق حلال تالاش كوي اودَهغې تالاش دوئ دَاللهﷻ دذكرنه اودَنورعبادت نه، نه غافله كوي اوهركله چې حلال روزې دَپاري اقوى سبب تجارة وو. نودَدې وجې نه تخصيص دَتجارت اوكړې شو﴿وَلَا بَيْعٌ ﴾لفظ دَتجارت اگرچه مفهوم لغوي په اعتبارسره شامل دې بيع اوشراء دواړوته،ليكن كله كله عرفاًدَتجارت اطلاق صرف په شراء باندې كيږي نودلته دَتجارت نه مراد صرف شراء ده نوځكه لفظ دَبيع ذكرشواوبعض فرمائي چې ذكر دَبيع تخصيص بعد التعميم دې دَپاره دَاهتمام شان دَبيع ځكه چې دَشراء په نسبت اهميت دَبيع زيات دې، ځكه چې په شراء كښې توقع دَنفع وي اوپه بيع كښې تيقن دَنفع وي. امام رازيؒ فرمائي چې بيع تقاضه كوي دَتبديل العرض بالنقد يعني سامان په نقدي سره بدلول، اوشراء وئيلې كيږي تبديل النقدبالعرض ته يعني نقدي وركول اوسامان اغستل،نودَنقدي په اغستلوكښې رغبت زيات وي په نسبت سره وركولوته، نودَدې وجې نه تصريح په بيع باندې اوشوه اوفراء نه منقول دى چې دَتجارت تعلق دَاهل جلب يعني بهرنه مال راوړلواولين دين كولوسره دې اودَبيع تعلق په خپل شهركښې دننه لين دين دى (كبير).

﴿عَن ذِكْرِ ٱللَّهِ ﴾ددينه مرادعام ذكرهم دې اودغه شان شامل دې تلاوت دَقرآن اوشغل دَعلوم دينيوته هم،﴿وَإِقَامِ ٱلصَّلَوٰةِ ﴾مرادترينه په پابندئ سره په خپل وخت كښې دَتولوادابورعايت كولوسره مونځ كول دى. ﴿وَإِيتَآءِ ٱلزَّكَوٰةِ ﴾مرادترينه حقوق ماليه په پابندئ سره وركول دى، ﴿يَخَافُونَ﴾دابل صفت دې دَمؤمنانو، اوغوره قول دادې چې ﴿تَتَقَلَّبُ فِيهِ ٱلْقُلُوبُ ﴾كنايه ده دَاضطراب اودهشت نه يعني دَهغې سختي ورځي نه يريږي چې هغې كښې به خلك ډيرمضطرب اوپريشانه به وي، چې هغه دَقيامت ورځ ده اوپديكښې اشاره ده چې لكه څرنگه مؤمن دَاللهﷻ

دَرحمت نه مايوسه نوي، نو دغه شان دَالله ﷻ دَعذاب او دَ اخرت دَفكرنه غافله هم نوي. او په خپل عبادت باندې مغروره نوي.

﴿لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ﴾ بعض فرمائي چې لام دَعاقبت دې او دا متعلق دې دَ﴿يَخَافُونَ﴾ جملې سره او حضرت شيخ القرآن فرمائي چې لام تعليليه دې او دا متعلق دې دَمذكوره ټولو افعالو سره. يعني اهل نور او هدايت والا خلك دا كارونه ځكه كوي چې الله ﷻ دوئ ته ښه بدله وركړي. او خپل فضل او انعامات پرې نور هم زيات كړي.

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍۢ بِقِيْعَةٍ

او هغه كسان چې كفرئې كړې وي عملونه ددوئ پشان دَپړقيدونكي شګې دي په ميدان كښ

يَّحْسَبُهُ الظَّمْاٰنُ مَآءً ۭ حَتّٰٓى اِذَا جَاۗءَهٗ لَمْ يَجِدْهُ شَيْـــــًٔا

چې ګمان كوي په هغې باندې تږې سړې دَاوبو، تردې چې كله راشي هغې ته او نه مومي هغې لره هيڅ ځيز

وَّ وَجَدَ اللّٰهَ عِنْدَهٗ فَوَفّٰىهُ حِسَابَهٗ ۭ وَاللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ۝۳۹

او او مومي الله ﷻ دَهغې په خواه كښ نو پوره به وركړي ده ته حساب دده. او الله ﷻ زر حساب كوونكې دې.

اَوْ كَظُلُمٰتٍ فِيْ بَحْرٍ لُّـجِّيٍّ يَّغْشٰهُ مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ مَوْجٌ

يا مثال ددوئ پشان دَډيرو تيرو دې په درياب ډونګ (ژور) كښ چې پټ كړې وى هغې لره چپې چې دَپاسه ترينه بله چپه وي

مِّنْ فَوْقِهٖ سَحَابٌ ۭ ظُلُمٰتٌۢ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ ۭ اِذَآ اَخْرَجَ يَدَهٗ

چې دهغې دَپاسه وريځ وي، تيرې دي بعضې دَپاسه دَبعضونه، هركله چې راوباسي دې لاس خپل

لَمْ يَكَدْ يَرٰىهَا ۭ وَمَنْ لَّمْ يَجْعَلِ اللّٰهُ لَهٗ نُوْرًا فَمَا لَهٗ مِنْ نُّوْرٍ ۝۴۰

نزدې نده چې اويني دې هغې لره، او هغه څوك چې ورنكړي الله ﷻ هغه ته نور، نو نيشته هغه لره هيڅ نور

﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا﴾ دَاهل ايمان او اهل نور دَاعمالو دَتمثيل ذكر كولو نه ورستو پدې اياتونو كښ دَمشركينو او دكفارو دَاعمالو تمثيل بيانيږي. دَكفارو اعمال په دوه (۲) قسمه باندې

وو (۱) یو قسم هغه عملونه دی چې په ظاهرکښ صحیح اومفید معلومیږي لیکن په حقیقت کښ دکفر اوشرك دَوجې نه بې فائدې ګرځیدلې وي، لکه صله رحمې، قیدیانو ازاده ول، سقایة الحاج اوصدقات وغیره شو. (۲) دویم قسم هغه دی چې په ظاهرکښ هم بې فائدې وي اوپه حقیقت کښ هم بې فائدې وي، لکه ظلم، زناوغیره شو، نودَدې وجې نه مثالونه هم دوه (۲) بیانیږي اول مثال دَاول قسم اعمالودَپاره دې اودویم مثال دَدویم قسم اعمالودَهغوئ دَپاره دې، اوّل مثال خلاصه داده چې یوتږي کس وي، په سخته غرمه کښ دَلرې نه په صحراء کښ سراب اویني، سراب وئیلې کیږي هغې رقیق بخاراتو اوچمك ته چې په سخته ګرمئ کښ دَشګونه یادَ کانړونه، رااوچتیږي، چې دَلرې نه ورته انسان ګوري نوداسې ښکاریږي لکه جاري اوبهیدونکی اوبه اوپه حقیقت کښ اوبه نوي نوداتږې کس چې دَلرې نه سراب اویني په منډه منډه ځان اورسوي، نوچې هلته اوګوري نواوبه نه وي بلکه دَهلاکت ساعت ئې راغلې وي، اوالله ﷻ دَحساب دَپاره اومومې دغه شان دامشرکین هم په دنیاکښ سعي اودَنیك اعمالوکوشش کوي، چې پدې ښه اعمالوسره به په آخرت کښ مونږ ته ارام میلاؤشي اوپه دې اعمالوسره امیددَنجات کوي خوچې کله اخرت کښ دَالله ﷻ دربارته حاضرشي، نوهلته به دوئ دَپاره دَنجات هیڅ شي هم نوي موجود، بلکه دَالله ﷻ عذاب به وي، اودَدوئ ټول اعمال به ضائع اوهباءً منثورابه شي.

اوبعض مفسرین فرمائي چې دَامثالونه دَدوه (۲) قسم کفارودَپاره دې یو قسم کفار داسې دی چې هغوئ دکفرسره، سره دَنوروخلکودکفرذریعه هم اوګرځي یعني داعیان الی الکفروي داپه منزله دَجاهل مرکب دی اودویم قسم هغه دی چې داعیان نوي بلکه تابع وي دَنورو کفارو، نواول مثال دَاول قسم کفارودې، اودویم مثال دَدویم قسم کفارودې، نوپدې توجیه خلاصه دَمثال اول داده چې دَدې داعیانوکفارو خیال دادې چې زمونږ داکشران به په اخرت کښ هم زمونږ خیال ساتي اومونږ ته به هغه اقتداراوعزت حاصل وي، لکه څرنګه په دنیاکښ دې (څکه چې دوئ خوپه اقتدارپسې وګې تګې دی) خوچې کله قیامت کښ راحاضرکړې شي نودَدوئ داګمان به غلط ثابت شي لکه څرنګه په سراب باندې دَاوبو ګمان کوونکی خیال غلط ثابت شي اوهغه کشران به دَدوئ دَپاره به دښمنان شي اودابه وائي چې: ربنااٰتهم ضعفین من العذاب (احزاب:۶۸) اودغه شان په سورة الزمرایت نمبر (۲۹) کښ هم دي.

﴿وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ أَعۡمَـٰلُهُمۡ﴾ داولي توجيه په بناء دَاعمالو اضافت ضمير دَجمعي ته عهدي دي اومراد ترينه ددوئ اعمال البر، اواعمال الخيردي لکه صدقات، صله رحمي وغيره شو. ﴿كَسَرَابِۭ بِقِيعَةٖ﴾ "قيعة" جمع دَ قاع ده اويا په معني دَقاع سره دي صفا اوهموار ميدان ته وئيلې کيږي. ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَهُۥ﴾ داغايه دَمحذوف دپاره ده يعني يقصدولايزال جائياليه حتیٰ اذاجاءه يعني دَهغې سراب قصد اواراده ئې اوکړه اوهغې طرف ته په منډه منډه روان شو حتّې چې هغې سراب ته رااورسيدلو، نو ﴿لَمۡ يَجِدۡهُ شَيۡـٔٗا﴾ دلته هم ضمير راجع دې سراب ته او ﴿شَيۡـٔٗا﴾ نه مراد شئ نافع دې نونفي دَمطلق شئ نده بلکه دَشئ نافع ده.

﴿وَوَجَدَ ٱللَّهَ عِندَهُۥ﴾ دجمله هم تشبيه کښې داخله ده اومقصد دَايت دادې چې دغه تږي انسان په دغه ځائ کښې مقدوردَالله ﷻ اومومي چې هغه دَده هلاکت دې، ځکه چې دې خوسخت تږې وو اوبيا په سخته غرمه کښې په منډه منډه راغلي وو نوتنده ئې نوره هم سيوا شوه نودادَده دَهلاکت ذريعه اوګرځيدله اوداهلاکت دَده دَپاره الله ﷻ پدې ځائ کښې مقررکړې وو. نو دغه شان به کافرانو ته هم دَجزا په وخت کښې خپل نيک اعمال څه فائده ورنکړي، بلکه الله به ورسره دَ کفر حساب کوي، (روح) اوبعض فرمائي چې داجمله په تشبيه کښې نده داخله، تشبيه دَدينه مخکښې جملي باندې پوره شويده اوداجمله توضيح دَپاره ده، اوبعض فرمائي چې ضمائرمنصوبه په ﴿جَآءَهُۥ﴾ او ﴿لَمۡ يَجِدۡهُ﴾ کښې راجع دي اعمالوته، نودَ ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَهُۥ لَمۡ يَجِدۡهُ﴾ مقصد دادې چې داګمان کوونکې خپل عمل ته راشي نو ﴿لَمۡ يَجِدۡهُ شَيۡـٔٗا﴾ يعني دې به دَخپل نيک اعمالونه، څه عمل اونه مومي بلکه هغه به هبآءًمنثورا ګرځيدلي وي (والله اعلم).

﴿أَوۡ كَظُلُمَٰتٖ فِي بَحۡرٖ﴾ او دَتنويع دَپاره دې دادويم قسم اعمالودکفارومثال ذکرکيږي، تطبيق دَمثال دَممثل سره په اولي توجيه باندې داسې دې چې لکه څرنګه يوکس په سمندرکښې ډوب وي، چې دايوه تياره ده، بياپرې دَپاسې نه دَسمندرموجونه وي چې دادويمه تياره ده، اوبيادَهغې دَپاسه وريځ وي چې دَنمر، سپوږمۍ اوستورورڼائي ورنه پټه کړې وي، دادريمه تياره ده نوپه

دريم(۳) قسمه ظلماتو اوتياروكښې داسې پټ وي چې پدې وخت كښې ده ته خپل لاس هم نه ښكاري. نودغه حالت دكافردې چې دَشرك اوكفرپه سمندركښې ډوب دې. چې دا يوقسم ظلمت دې يعني ظلمت اعتقادي اوبيادده والابداعمال دى چې ظاهرا هم غيرمفيددى اوحقيقتاً هم غيرمفيددى، نودابل قسم ظلمت دې يعني ظلمت العمل والقول اوبيادده سره دَخپل ګناه احساس هم نوي دابل قسم ظلمت دې ،نوپه ده باندې داټول ظلمات راغليدي چې پدې وخت كښې دې دَالله ﷻ دكمال قدرت دلائلوته هم نه ګوري اوهغه نه ويني بلكه دَعناد دوجې نه دده نه استعداد دَهدايت سلب شوې وي، نو ﴿وَمَن لَّمۡ يَجۡعَلِ ٱللَّهُ﴾ يعني چې الله ﷻ ورته دَهدايت نورنه وركوي نوبل به ورته څوك وركړي.

اودويم توجيه په بناء دَمثال تطبيق دَممثل سره داسې دې چې داكافردكفراوشرك په سمندركښې راګيردې چې دا يوظلمت دې،بياپه خپل ګناه اوشرك باندې پوهيږي هم نه.نودابل ظلمت شو اوبيادګمراه مشرانوتقليدهم كوي نودا پكښې بل ظلمت شو ، نوپدې ظلماتوكښې دې په هيڅ خيزباندې نه پوهيږي اودَخلاصئ لارورته نه ميلاويږي نوكچري پدې حالت كښې الله ﷻ ده ته دَهدايت نوررنكړې نوبل ئې هيڅ څوك ورله نشي وركولې.

﴿بَحۡرٖ لُّجِّيّٖ يَغۡشَىٰهُ﴾،لجي منسوب دې لج ته په معنې دَعميق اوژورسره اوپديكښې اشاره ده چې ظلمت كامله كفراوشرك دې ﴿لَمۡ يَكَدۡ يَرَىٰهَا﴾ نفې دَقربت دَرؤيت ده نونفس رؤيت په طريق اولې سره منتفي دې اوچونكه انسان ته خپل لاس ډيرنزدې وي دَپاره دكتلونودَدې وجې نفې دَلاس خصوصاً ذكرشوه.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَمۡ | تَرَ | أَنَّ | ٱللَّهَ | يُسَبِّحُ | لَهُۥ | مَن | فِي | ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَٱلطَّيۡرُ |
| آيا ته نه ګورې چې بيشكه الله ﷻ تسبيح وائي هغه لره هغه څوك چې په اسمانونوكښې دې اوزمكه كښې دې اومارغان | | | | | | | | |
| صَٰٓفَّٰتٖۖ | كُلّٞ | قَدۡ | عَلِمَ | صَلَاتَهُۥ | وَتَسۡبِيحَهُۥۗ | وَٱللَّهُ | عَلِيمُۢ | بِمَا |
| غوړونكي دوزرودې . هريوپيژني طريقه دَمونځ خپل اودَتسبيح وئيلوخپله، اوالله ﷻ پوهه دې په هغه كارونو | | | | | | | | |

| |
|---|
| يَفْعَلُوْنَ ﴿٤١﴾ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿٤٢﴾ |
| چې دوئ ئې کوي اوخاص الله جلّ جلاله لره ده بادشاهي داسمانونو اودزمکې.اوخاص الله جلّ جلاله ته ورګرځيدل دي |
| اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُزْجِيْ سَحَابًا ثُمَّ يُؤَلِّفُ بَيْنَهٗ ثُمَّ يَجْعَلُهٗ رُكَامًا |
| آيا ته نه ګورې چې بيشکه الله جلّ جلاله راشړي وريځې بيا جوړخ راولي په مينځ(ټکړو)دهغې کښې بيا اوګرځوي داوريځ لاندې باندې |
| فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ ۚ وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ جِبَالٍ |
| نووينې ته غټ باران چې راوځي دمينځ دهغې نه اوراوروي الله جلّ جلاله (ګلئ) داسمان دطرف نه دوريځونه چې پشان دغرونو دي. |
| فِيْهَا مِنْۢ بَرَدٍ فَيُصِيْبُ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ وَيَصْرِفُهٗ عَنْ مَّنْ يَّشَآءُ |
| وي په هغې(وريځو)کښې دګلئ نه، نورسوي دې لره هغه چاته چې الله جلّ جلاله اوغواړي اواړوي ئې دهغه چانه چې اوغواړي |
| يَكَادُ سَنَا بَرْقِهٖ يَذْهَبُ بِالْاَبْصَارِ ﴿٤٣﴾ يُقَلِّبُ اللّٰهُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۚ |
| نژدې وي پړق دبريښنادهغه بوځي(ختم کړي)نظرونو لره، بدله وي رابدلوي الله جلّ جلاله شپې اوورځې لره، |
| اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّاُولِي الْاَبْصَارِ ﴿٤٤﴾ |
| بيشکه په دې کښې خامخا عبرت دې عقلونو والولپاره، |

﴿اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ﴾ دکفارو داعمالودتمثيل ذکرلونه پس پدې اياتونوکښې دلائل عقليه په توحيدباندې ذکرکيږي، دااول عقلي دليل دې په توحيدباندې،چې هرقسم مخلوق علوي، جوي، سفلي ټول دالله جلّ جلاله پاکي بيانه وي،تسبيح په خپلي معنې سره دې، اومرادترينه عام تسبيح دې که هغه قولي وي ياقلبي وي اوياقهري اوحالي وي،نوکه نمر، ستوري وغيره اشياء که تسبيح قولي ياقلبي نشي کولې ليکن تسبيح قهري اوحالي دهغوئ نه ثابته ده اوداهم ممکنه ده چې الله جلّ جلاله دوئ ته شعورورکړې وي اوداټول مخلوقات که هغه حيوانات دي ياجمادات دي اويانباتات وغيره دې په خپل طريقې سره تسبيح وائې اومونږه ئې ادراک نشوکولې،لکه په سورة الاسراء ايت نمبر(۴۴)کښې دي، بعض فرمائي چې مراد دتسبيح نه انقياد دې.

﴿مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾مرادترینه علوي اوسماوي. مخلوق دي لکه ملائك. نمر وغیره شو
﴿وَٱلۡأَرۡضِ﴾مرادترینه سفلي مخلوق دي. ﴿وَٱلطَّيۡرُ صَٰٓفَّٰتٖ﴾مرادترینه جوي مخلوق دي اوداجمله
عطف ده په ﴿مَن﴾باندي.او﴿صَٰٓفَّٰتٖ﴾حال دي دَ﴿وَٱلطَّيۡرُ﴾نه اوهرکله چي دَمارغانوداحالت زيات
واضح وو دَتسبيح قهري اوحالي دَپاره اوداحالت ئې ډيردلالت کولوپه کمال قدرت دَالله ﷻ
باندي نودَدي وجي نه په دي قيداوحالت سره مقيدکړي شو.اوبعض فرمائي چي مارغان پدي
حالت کښ تسبيح قولي زياته کوي.

﴿كُلّٞ قَدۡ عَلِمَ صَلَاتَهُۥ﴾تنوين په کلٌ کښ عوض دَمضاف اليه نه دي يعني کل واحدمن المذکور
اوصلوة متعلق دي په ملائکواوانسانانواوجناتوپوري،اوتسبيح متعلق دي په مارغانوپوري
اوبعض فرمائي چي تسبيح عطف تفسيري دي دَصلوة دَپاره، اودَضمائرو په مرجع کښ دوه(۲)
اقواله دي يوقول دادي چي ټول ضمائرراجع دي "کل"ته اودَايت مقصددادي چي هريومخلوق په
خپل تسبيح باندي ښه پوهيږي اوپه هغې طريقي سره تسبيح کوي کومه چي ورته الله ﷻ خودلي
ده اودويم قول دادي چي ﴿عَلِمَ﴾کښ ضميرراجع دي الله ﷻ ته،اوباقي ضميرونه"کلٌ" ته راجع
دی.مقصد دادي چي الله ﷻ دَهرمخلوق په تسبيح باندي پوهيږي اګرچه مخلوقاتوکښ ځني
دَيوبل په تسبيح باندي نه پوهيږي اوپديکښ اشاره ده چي دَهرمخلوق دَعبادت يوه خاص طريقه
ده چي هغه دَبل مخلوق دَعبادت دَطريقي نه جداده.

﴿وَلِلَّهِ مُلۡكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾يعني دَاسمانونواودَزمکواودَټول کائنات واکدار الله ﷻ دي اوهرڅه
دَهغه په قدرت اواختيارکښ دی.

﴿أَلَمۡ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ﴾دادويم دليل عقلي دي پدي کښ دَالله ﷻ دَقدرتونوکاملوذکردي.

﴿يُزۡجِي﴾دَ ازجاء نه دي په سهولت سره دَيوشي بوتللوته وئيلې کيږي،يعني الله ﷻ په خپل قدرت
کامله سره دَمختلف اطرافونه،وريځي يوځائ راجمع کړي.

﴿ثُمَّ يَجْعَلُهُۥ رُكَامًا﴾ركاما په معنې دمتراكماً سره دې. يعني لاندې باندې كيدل اي بعضه فوق بعض(روح) ﴿وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مِن جِبَالٍ فِيهَا مِنۢ بَرَدٍ﴾ دلته دري خله "من" راغليدې .راجح قول دا دي چې اول دواړه "من"ابتداءغايت دَ پاره دي."من السماء"مبدل منه دې او"من جبال"ورنه بدل دي، "السماء"او"جبال"نه يا حقيقي معنى مراد ده. يعنى آسمان كښ دګليؤ غرونه دي او الله تعالى دَ هغى نه ګلئ ناز لوي،لكه بعض مفسرينو داقول اختياركړيدى اويا"السماء"او"جبال"نه مجازى معنى مراد ده،"السماء"نه مرادوريځ ده،اوجبال نه مقصود تشبيه ده،دَويځو دَغرونو سره په لوئى والى اوعظمت كښ،معنى به داشى چې غرونو په شان لوئي لوئى وريځو نه الله تعالى ګلئ نازلوى،دا قول غوره دى.

﴿فِيهَا﴾صفت دى دَ جبال دَپاره اوضمير راجع السماته دي،او دريم "من"چې په "من برد"كښ دې،ياتبعيضيه دي،او مفعول به دې دَ "ينزل"فعل دپاره په واسطى دَ حرف جرسره،معنى به دې صورت كښ داسى شي،الله تعالى ګلئ وروي،دَ غرونوپه شان لوئ لوئ وريځو نه ،اويامن بيانه دې چې بيان دَ"جبال"كوي،اومحل دَنصب كښ حال واقع كيږى.اودې صورت كښ مفعول به "البرد"محذوف وي،اومعنى به داشي:دګليو نه ډک دَ غرونو په شان وريځو نه الله تعالى ګلئ وروي

﴿فَيُصِيبُ بِهِۦ﴾ يعني اللهﷻ ګلئ رااوروي نوځني خلكوته جاني اومالي نقصان اورسيږي اوځني خلك اللهﷻ محفوظ كړي﴿يَكَادُ سَنَا﴾ يعني پدي وريځوكښ چې كوم پړقونه وي نوهغه دومره تيزوي چې قريبه وي چې دَستركونظرختم كړي﴿يُقَلِّبُ اللَّهُ الَّيْلَ﴾ تقليب يعني اړول راړولونه مراد دَشپي نه ورستو ورځ اوورځي نه ورستوشپه راوستل دي،يعني څرنګه چې اللهﷻ وريځي بارانونه اوګلئ راوروي نودغه شان دَشپي تياره اودورځي رڼرابوتلل،راويستل دَاللهﷻ په قدرت كښ دي.

وَاللّٰهُ خَلَقَ كُلَّ دَآبَّةٍ مِّنْ مَّآءٍ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰى بَطْنِهٖ ۚ

او الله ﷻ پيدا كړيدي هرقسمه زنده سري د اوبو نه. نو ځيني د دوئ نه هغه دي چې ګرځي په خيټي خپلي باندې

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰى رِجْلَيْنِ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰٓى اَرْبَعٍ ؕ

او ځيني د دوئ نه هغه دي چې ګرځي په دوه خپو باندې او ځيني د دوئ نه هغه دي چې ګرځي په څلورو (خپو) باندې،

يَخْلُقُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٤٥﴾ لَقَدْ اَنْزَلْنَآ اٰيٰتٍ

پيدا كوي الله ﷻ هغه څه چې اوغواړي بيشكه الله ﷻ په هرڅيز باندې قدرت لري، يقينا نازل كړيدي مونږ آياتونه

مُّبَيِّنٰتٍ ؕ وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٤٦﴾ وَيَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا

ښكاره مضمون والا، او الله ﷻ رسوي چاله چې اوغواړي لاري نيغي ته، او وائي دوئ چې مونږ ايمان راوړيدي

بِاللّٰهِ وَبِالرَّسُوْلِ وَاَطَعْنَا ثُمَّ يَتَوَلّٰى فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ؕ وَمَآ اُولٰٓئِكَ

په الله ﷻ او رسول باندې او تابعداري كړيده مونږ بيامخ اړوي يوه ډله د دوئ نه ورستو د دي نه او نه دي دغه كسان

بِالْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٤٧﴾ وَاِذَا دُعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ

مؤمنان او كوم وخت چې اوبللې شي دوئ الله ﷻ ته او رسول د هغه ته د دي د پاره چې فيصله اوكړي په مينځ د دوئ كښ

اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿٤٨﴾ وَاِنْ يَّكُنْ لَّهُمُ الْحَقُّ يَاْتُوْٓا اِلَيْهِ مُذْعِنِيْنَ ﴿٤٩﴾

دغه وخت يوه ډله د دوئ نه مخ ګرځوي، او كچري وي دوئ د پاره واقعي حق (دنيوي) نو راځي هغې ته زر قبلونكي

اَفِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ اَمِ ارْتَابُوْٓا اَمْ يَخَافُوْنَ اَنْ يَّحِيْفَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ

آيا د دوئ په زړونو كښ مرض (ضعف) دې بلكه دوئ شكيان دي بلكه يريږي چې ظلم به اوكړي الله ﷻ په دوئ باندې

وَرَسُوْلُهٗ ؕ بَلْ اُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٥٠﴾

او رسول د هغه بلكه دغه كسان هم دوئ ظالمان دي

﴿وَٱللَّهُ خَلَقَ كُلَّ دَآبَّةٖ﴾ دا دريم دليل عقلي دې په توحيد باندې. يعني دا هم دَ الله ﷻ كمال قدرت دې چې هرځيزئې دَاوبونه پيداكړيدې اوبيائې پديكښ مختلف انواع ګرځولي دے. ځني هغه دي چې په خيټه باندې ګرځي لكه ماراوماهي وغيره شو. ځني هغه دي چې په دوه (۲) خپوباندې ګرځي لكه انسان، چرګان وغيره شواوځني هغه دي چې په څلورو خپوګرځي لكه عام څاروي شو. اودَ ﴿مَّآءٖ﴾ نه مرادبعض فرمائې چې نطفه ده يعني مني نوداحكم بياپه حسب دَاغلب اواكثرسره دې يعني اكثرمخلوقات الله ﷻ دَنطفي نه پيداكړيدى. اوكله كله په كل باندې حكم دَاكثرو اولږي، نودَدي وجي نه دلته ﴿كُلَّ دَآبَّةٖ﴾ ذكرشوورنه ملائكه دَنورنه پيدادي. جنات دَاورنه اوحضرت عيسىٰ عليه السلام دَنفخ جبرئيل عليه السلام نه پيدادې، اودغه شان ځني چينجي دَميوي اوځني دَګندګئ نه پيداكيږي اوبعض فرمائې چې ﴿مَّآءٖ﴾ نه مراد عام دې يعني كه هغه نطفه وي اوياعامي اوبه وي او ﴿دَآبَّة﴾ وئيلې كيږي كلّ مايدبّ على وجه الارض يعني هرهغه شئ چې مخ په زمكه باندې ګرځي اوكوم ځيزونه چې مخ په زمكه باندې ګرځي نودَهغې په تخليق كښ ماده دَاوبوځه ناځه درجي كښ خامخاموجوده وي، ياخودَنطفي نه پيداوي اويادَرطوباتودَجي نه پيداشوي وي اويائې رهائش اوسكونت په اوبوكښ وي اوبعض فرمائې چې دَهرمخلوق ماده اصلي اوبه دي ځكه چې دَهرڅه نه اول الله ﷻ اوبه پيداكړي اوبيادَهغې اوبونه،نورهم پيداكړو،ناراوهوائې هم ترينه پيداكړه (والله اعلم).

﴿يَخۡلُقُ ٱللَّهُ﴾ پديكښ اشاره ده هغه قسم مخلوقاتوته، چې دَڅلورونه ئې هم زياتي خپي وي لكه عنكبوت،لړم اوزنزه وغيره شو.

﴿لَّقَدۡ أَنزَلۡنَآ ءَايَٰتٖ﴾ داپه دريم ځلي ترغيب الي القرآن ذكركيږي.

﴿وَيَقُولُونَ ءَامَنَّا﴾ داشكوه ده په منافقينوباندې،اواعاده ده دَحالاتو اوصفاتو دَمنافقينودَپاره دَتقابل داوصافو دمؤمنانوسره چې په ظاهركښ په ژبه باندې دعوى دَايمان كوي ليكن عملاًدَايمان نه انكاركوي لكه بشرمنافق اودَيهودي په مينځ كښ څه تنازعه راغله نويهودي دَفيصلي دَپاره اصرار دَنبي ﷺ كولواومنافق دَمحاكمي اوفيصلي دَپاره

اصرار دیهودیانو مشر دکعب بن اشرف کولو اوبیا چې کله مجبوراً دفیصلي دپاره په نبیﷺ باندې راضي شو اونبي پاکﷺ فیصله اوکړه نوبشر منافق هغې فیصلې منلو ته تیار نوو، ددې واقعې تفصیل په سورة النساء ایت نمبر (۶۱، ۶۲) کښې تیر شویدې.

﴿وَإِذَا دُعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ﴾ دا دمنافقینو عام عادت دې چې کله دشریعت فیصله ددوئ په حق کښې نوې اوددوئ دمفاداتو اوخواهش خلاف وې نوبیا دوئ دالله ﷻ اودرسولﷺ فیصلې منلو ته تیار نوې، بلکه دهغې نه تیښته کوې.

﴿وَإِن يَكُن لَّهُمُ ٱلۡحَقُّ﴾ اوکچرې فیصله ددوئ په حق کښې وې اوددوئ دمفاداتو اوخواهش موافق وې نوبیا حق ډیرپه تلوارسره قبولوې، لیکن دا قبولول ئې ددې وجې نه نوې چې دحق سره ئې محبت وې بلکه دخپل مفادات ورته عزیزوې اودا حالت نن صبا دډیرو مسلمانانو هم دې، ددې آیت انطباق په تقلید باندې صحیح ندې ځکه چې فقهې روایات درحقیقت دقرآن وسنت دصحیح اومستند تشریح اودقرآن وسنت نه مستنبط کړې شوې جزئیاتو نوم دې، نه داچې مقابل دقرآن اوسنت دې. ﴿أَفِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ﴾ دا استفهام دپاره دزجراوتوبیخ دې اوپدې ایت کښې دنبي پاکﷺ دفیصلې نه انکارکولو دپاره درې (۳) اسباب ذکرکیږي یو (۱) سبب دانکاردپاره په زړه کښې دایمان نیشتوالې اودکفرتحقق دې دویم (۲) سبب ﴿أَمِ ٱرۡتَابُوٓاْ﴾ یعنې دنبی پاکﷺ په نبوت کښې شک کوې اودریم (۳) سبب ﴿أَمۡ يَخَافُونَ أَن يَحِيفَ ٱللَّهُ﴾ چې ددنیا په محبت کښې دومره انتهاء ته رسیدلې وې چې دهغې دوجې نه په الله ﷻ اوپه رسولﷺ باندې بدګماني کوې او "ام" په دې ټولو مواضعو کښې منقطعه دې په معنې د "بل" سره. ﴿بَلۡ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ پدیکښې اشاره ده چې الله ﷻ اونبی پاکﷺ باندې بدګماني کول اودهغوفیصلو باندې اعتراض کول موجب دظلم اوکفر دې.

| إِنَّمَا | كَانَ | قَوۡلَ | ٱلۡمُؤۡمِنِينَ | إِذَا | دُعُوٓاْ | إِلَى | ٱللَّهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه | ده | | وینا دمؤمنانو کله | چې | اوبللې | شي | الله ﷻ |

وَرَسُوْلِهٖ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ اَنْ يَّقُوْلُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ۭ

اورسول دَهغه ته دَدي دَپاره چې فيصله اوکړي دَدوئ په منځ کښ وائي دوئ واوريده مونږه اوتابعداري کومونږ

وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿٥١﴾ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَخْشَ اللّٰهَ

اودغه کسان هم دوئ خلاصي موندونکي دي اوڅوک چې تابعداري اوکړی دَالله او درسول دهغه اويريږي دَالله نه

وَيَتَّقْهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿٥٢﴾ وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ

اوځان بچ کړي دَعذاب دهغه نه نودغه کسان هم دوئ کامياب دي اوقسمونه کړي دي دوئ په الله باندې کلك قسمونه خپل

لَئِنْ اَمَرْتَهُمْ لَيَخْرُجُنَّ ۭ قُلْ لَّا تُقْسِمُوْا ۚ طَاعَةٌ مَّعْرُوْفَةٌ ۭ

کچري ته حکم اوکړي دوئ ته خامخادوئ به اوځي. ته اوايه قسمونه مکوئ. تابعداري ستاسومعلومه ده

اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿٥٣﴾ قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ

بيشکه الله خبردار دي په هغه کارونو چې تاسوئي کوئ. ته اوايه تابعداري کوئ دَالله اوتابعداري کوئ دَرسول،

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيْكُمْ

پس کچري مخ اوګرځولو تاسو نوپس بيشکه دهغه (حضور) په ذمې دي هغه کار چې هغه ته سپارلې شويدې اوستاسو په ذمې دي

مَّا حُمِّلْتُمْ ۭ وَاِنْ تُطِيْعُوْهُ تَهْتَدُوْا ۭ وَمَا عَلَى الرَّسُوْلِ

هغه چې تاسوته سپارلې شويدې، اوکه تابعداري اوکړئ دده نوهدايت به اوموم‌ئ، اونيشته په رسول باندې

اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿٥٤﴾

مګر رسول دي ښکاره.

﴿اِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ هر کله چې مخکښ اياتونو کښ صفات اوحالات دَمنافقينو ذکرشو نواوس پدي ايت کښ بطورتقابل صفات دَمؤمنانو ذکرکيږي چې دَمؤمن صفت دادې اودَهغه دَايمان تقاضاداده چې دَالله اودرسول په فيصله کښ هيڅ قسم چون، چرا نه کوي بلاتأمل

ئې تسليمه وي. ﴿وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ﴾ په دېکښې بشارت دې مخلص مؤمنانو ته، مراد په اطاعت دَ الله ﷻ سره اداکول دَفرائضو دي او اطاعت رسول نه مراد عمل دې په سنتو باندې. او مراد په ﴿وَيَخْشَ ٱللَّهَ﴾ سره دادې چې کوم ګناهونه ئې کړيدي په هغې باندې دَ الله ﷻ نه يره کوي او دَ ﴿وَيَتَّقْهِ﴾ مقصد دادې چې دَآئنده دَپاره دَګناه نه ځان بچ کوي، نوددې مذکوره صفاتو حاملين خلک به جنت ته داخل کړې شي او جهنم نه به بچ کړې شي.

قرطبي رحمه الله ليکلي دي چې دَحضرت عمر رضي الله عنه په مخکښې يوځلي يورومي عيسائي کلمه اوئيله او مسلمان شو حضرت عمر رضي الله عنه تري نه دَايمان راوړلو باعث تپوس اوکړو نو هغه ورته اوئيل چې ماتورات، انجيل ټول اسماني کتابونه وئيلي دي، نن ما دَيو مسلمان دَخولي نه دا ايت دَقرآن پاک واوريدلو نو ماته يقين اوشو دادَ الله ﷻ کلام دې ځکه چې صرف پدې يو ايت کښې دَټول سابقه کتابونو مضامين جمع کړې شويدي.

**فائده**: فلاح وئيلې کيږي نيل الخيروالنفع الباقی اثره ته يعني دَداسې خيراونفعې حصول چې اثرئې باقي اودائمي وي او فوز وئيلې کيږي الخلاص من المکروه مع الوصول الی المحبوب يعني تکليف والاشيزنه بچ کيدل او محبوب شيزته رسيدل نو فلاح مطلق کاميابي ده او فوز کامله کاميابي ده نو هرکله چې په اول ايت کښې صفات دَنفس ايمان والاذکروو نو دَدې وجې نه په هغې باندې نفس فلاح مرتبه شوه او دويم ايت کښې دکامل ايمان صفات ذکرشو نو دَدې وجې نه په هغې باندې فوز مرتب کړې شو چې هغه کمال کاميابي ده.

﴿وَأَقْسَمُوا بِٱللَّهِ﴾ په دېکښې زجردې په منافقينو باندې او دَهغوئ مزيد حالات او صفات ذکرکيږي، نبي پاک ﷺ ته ځني منافقين راغلل او قسمونه ئې اوکړل چې يارسول الله ﷺ والله لوامرتنا ان نخرج من ديارنا ونسائنا واموالنا لخرجنا ولوامرتنا بالجهاد لجاهدنا، يعني کچرته ته مونږته حکم اوکړې چې مونږ خپل کورونه خالي کړو خپلې بيبياني او خپل مالونه بهرته اوباسو نو مونږ ديته هم تياريو اوکه ته مونږ ته دَجهاد حکم کوې نو مونږ جهاد ته هم تياريو، او دا خبري به هغوئ صرف دَنبي پاک ﷺ مطمئن کولو او خپل کفرپټولو دَپاره کولې او دادَمنافقينو عادت دې چې په خلې باندې خبري غټي غټي کوي او دَبل کس مطمئن کولو دَپاره به قسم هم خوري، خو چې کله دَعمل وخت راشي او دکردار وخت راشي نو بيا تيښته کوي او حکم ته کولو ته تيارنوي.

﴿جَهْدَ أَيْمَـٰنِهِمْ﴾ دا یا مفعول مطلق دي دَفعل مقدردَپاره نو په اصل کښې داسي دي يجهدون ايمانهم جهدا نو بيا فعل حذف کړې شو او مفعول مطلق په مفعول به باندې مقدم کړې شو او هغې ته مضاف شو لکه ضرب الرقاب پشان اويا ﴿جَهْدَ أَيْمَـٰنِهِمْ﴾ په معنى دَمجتهدين في ايمانهم سره دي او حال واقع شويدې دَ ﴿وَأَقْسَمُوا﴾ نه اودا ماخوذ دې دَجهدالنفس نه چې کله يو کس دَ يو کار په کوشش او محنت کښې اخري حدته اورسيږي. او جهد يمين په شريعت کښې هغه قسم ته وئيلې کيږي چې دَالله ﷻ په ذات باندې اوخوړې شي

﴿لَئِنْ أَمَرْتَهُمْ لَيَخْرُجُنَّ﴾ مراد په خروج سره يا جهادته تلل دی اويا ترينه خپل اموال دَالله ﷻ په لاره کښې ورکول دي اويا ترينه هسي خپل کورونه. دَخپل اهل وعيال نه خالي کول دي يعني مونږ ستا دومره مطيع او فرمانبردار يو کچرته ته مونږ ته حکم اوکړې نو مونږ ستا په حکم باندې خپل اهل وعيال او خپلو کورونه، به اوځو.

﴿طَاعَةٌ مَّعْرُوفَةٌ﴾ دا مرکب توصيفي يا خبردې دَمبتدا محذوفي دَپاره او مبتدا ورله المطلوب منکم محذوف دي اي المطلوب منکم طاعة معروفة يعني قسمونو خوړلو ته ضرورت نيشته دې ځکه چې دَهغې مطالبه ستاسونه نده شوي ستاسونه مطالبۀ دَنيك كار او دَايمان شوي ده چې هغه اطاعت شرعيه دې يعني کردار به ذريعي سره دَخپل ايمان ثبوت ورکول پکاردی، نه په قسمونو سره (۲) او يا ورله مبتدا "طاعتکم" محذوف دې او دا جمله علت دَنهي دپاره دې يعني لاتقسموا طاعتکم طاعة معروفة يعني ستاسو قسمونه ناحق دي نو ناحق قسمونه مه خورئ ځکه چې ستاسو طاعت معروف او مشهور او هرچاته معلوم دی چې صرف په خلي باندې دعوه دَطاعت کوئ دَخپلو ذاتي مفاداتو دَپاره او په زړه کښې کفر لرئ (۳) او يا دا مرکب توصيفي مبتداء ده او خبرئې محذوف دې نو اصل عبارت داسي دې: طاعة معروفة اولى بکم مَن ايمانکم يعني طاعت شرعيه ستاسو دَپاره ستاسو دَقسمونو نه ډيرغوره دې مقصد دادې چې قسم خوړل ندې پکار بلکه ښه کردار او خائسته عمل کول پکاردي.

﴿قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ ﴾پدي ايت کښې توضيح اووضاحت دي دطاعت معروف اومنافقينوته دنفاق پريخودلودپاره دعوت ورکولې کيږي، يعني کچرته تاسوپه حقيقت کښې مؤمنان ئې نوپه اخلاص سره دالله ﷻ اودنبي ﷺ اطاعت اوکړئ، ﴿فَإِن تَوَلَّوْا ﴾ داشرط دي اوجزائې محذوفه ده چې "فلاضرر" دي او﴿فَإِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ ﴾په جزاء باندې متفرع دي اود﴿مَا حُمِّلَ ﴾نه مراد امت ته دعوت اوتبليغ کول دی اودخپلونوروفرائضوادائيګي کول دی.

﴿مَّا حُمِّلْتُمْ ﴾نه مراد ايمان نه راوړل اودالله ﷻ اودنبي پاک ﷺ اطاعت نه کول دي﴿وَإِن تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا ﴾ پديکښې اشاره ده چې سنت رسول ﷺ ذريعه دهدايت ده بغيردسنت نه اودنبي پاک ﷺ په تعليماتوباندې عمل کولونه بغيرهدايت ته رسيدل ممکن ندي.

| |
|---|
| وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ |
| وعده کړيده الله ﷻ دهغه کسانوسره چې ايمان ئې راوړې دي ستاسونه اوعملونه ئې کړيدي نيک |
| لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْأَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ |
| خامخاخلافت به ورکوي دوئ ته په زمکه کښې لکه چې خلافت ئې ورکړې وو هغه کسانوته چې ددوئ نه مخکښې وو |
| وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَىٰ لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُم |
| اوخامخاکلک به کړي دوئ لره دين ددوئ هغه چې غوره کړې ئ دي ددوئ دپاره اوخامخابدل به کړي دوئ لره |
| مِّن بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا ۚ يَعْبُدُونَنِي لَا يُشْرِكُونَ بِي شَيْئًا ۚ وَمَن كَفَرَ |
| روستودويرې ددوئ نه امن،په داسي حال چې بندګي به کوي ځما شريك نه جوړوي ماسره هيڅ څيز.اوچاچې کفراوکړو |
| بَعْدَ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ۝ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ |
| ورستو ددې نه نودغه کسان دوئ نافرمانه دي.او پابندي کوئ دمونځ اوورکوئ زکوة اوتابعداري کوئ درسول ﷺ |

لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿٥٦﴾ لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ ۚ

دَدې لپاره چې په تاسو رحم اوکړې شي. هرګز ګمان مکوه په هغه کسانو چې کفرئې کړيدي بچ کيدونکي دعذاب نه په زمکه کښې.

وَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ۖ وَلَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿٥٧﴾

اوځائې ده ستوګنې ددوئ جهنم دې. اوخامخا ډيربد ځائې دورتلو دې (جهنم).

﴿وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ ﴾ پدې ايت کښې درې اسباب دبشارت اودرې (٣) بشارتونه ذکرکيږي درې (٣) اسباب دبشارت دادې (١) ايمان (٢) عمل موافق دسنت (٣) دهرقسم شرک نه ځان بچ ساتل اودرې (٣) بشارتونه دادی (١) استخلاف (٢) تمکين اوقدرت دنفاذ داسلام (٣) امن.

**شان نزول:** قرطبي رحمه الله نقل کړيدی چې دمديني منورې په ابتدائې دورکښې يوکس نبی پاک ﷺ ته راغې اوعرض ئې اوکړو چې يارسول الله مونږ په هروخت کښې په خوف اوخطره کښې يواومسلح ګرځونو په مونږ باندې به چرته داسې وخت هم راشي چې بغيردخوف اوخطرنه مونږ ژوند تيرکړو، نونبی پاک ﷺ ورته اوفرمائيلو چې هاؤداسې وخت ډيرزرراتلونکې دې، نوپدې باندې داايت نازل شو چې الله ﷻ وعده ده چې تاسوته به په زمکه کښې خلافت درکړي اوکوم دين چې الله ﷻ ستاسودپاره غوره کړې دې هغه دنفاذ قوت اوطاقت به درکړي اودهرقسم خطراتونه به مو محفوظ کړي او ﴿مِنكُمْ﴾ کښې من تبعيضيه دې اوخطاب صحابه کرامو رضي الله عنهم ته دې نولهذا خلافت راشده موعودې وو، او ﴿وَعَدَ﴾ فعل دې ﴿اَللّٰه﴾ ورله فاعل دې او ﴿اَلَّذِيْنَ﴾ ورله مفعول اول دې اومفعول ثاني ورله محذوف دې چې استخلاف دې او ﴿لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ﴾ جواب دقسم محذوف دې يعني اقسم ليستخلفنهم اوحضرت والدصاحب رحمه الله به فرمائيلو چې خلافت موعودې دې اومطلوب ايمان اواعمال صالحه دی نونن صبامونږ موعود، مطلوب ګرځوليدې اومطلوب مومتروک ګرځوليدې اوقانون دادې چې کوم کس موعود، مطلوب کړي اومطلوب متروک کړي نوهغه مضروب وي نوځکه مسلمان په هرځائې کښې مضروب اوذليله دی.

﴿كَمَا ٱسْتَخْلَفَ ٱلَّذِينَ﴾ما مصدریه ده اصل عبارت داسي دي استخلافا كاستخلاف الذين من قبلهم او ﴿مِن قَبْلِهِمْ﴾نه مراد بني اسرائيل دي چې الله تعالی هغوئ ته دَجبابره دَمصر دَهلاکت نه ورستو دَمصر خلافت ورکړې وو او دَعمالقه دَهلاکت نه بعد دَشام خلافت ورکړې وو.

﴿يَعْبُدُونَنِي﴾دا یا جمله مستانفه ده ګویا چې سائل سوال کولو چې مابالهم يستخلفون ويؤمنون؟ نو جواب ترینه اوشو چې ﴿يَعْبُدُونَنِي لَا يُشْرِكُونَ بِي شَيْـًٔا﴾او یا دا جمله حال واقع شويده دَ الذين نه.

**فائده**: دا ایت دَخلفاء راشدین په عظمت شان او دَهغوئ دَخلافت په صحت باندې دلیل دې، ځکه چې من تبعیضیه دې او خطاب صحابه کرامو ﷺ ته دې نو خلافت دَهغوئ موعودي شو، او الله تعالی خپلې درې(۳) وعدې داسې پوره کړې چې دَنبی پاک ﷺ په دورکښ الله تعالی دین ته غلبه ورکړه، دَعرب اکثر علاقې لکه خیبر، بحرین، یمن او ځنې علاقې دَشام فتح کړې شوې، اسلامي نظام نافذ کړې شو، اکثر خلک مسلمانان شو په کافرانو باندې جزیه مقرر کړې شوه دنبی پاک ﷺ دَوفات نه پس بیا وعده دَاستخلاف پوره کړې شوه او الله تعالی دَخپل تکویني قانون او حکم ماتحت حضرت ابوبکر ﷺ خلیفه مقرر کړو او دَهغه په دورکښ مرتدین، مدعي نبوت او کفار دَجزیرة العرب نه ختم کړې شو، بصره، دمشق، حوران، بلاد مصر او ځنې علاقې دَفارس فتح کړې شوې او بیا حضرت عمر ﷺ خلیفه مقرر کړې شو، دَهغه په دورکښ ټولې علاقې دَشام، مصر او اکثر حصې دَفارس فتح کړې شوې، دَقیصر او کسرئ خزانې په مسلمانانو باندې تقسیم کړې شوې، دَده نه ورستو دریم خلیفه حضرت عثمان ﷺ مقرر کړې شو، دَهغه په دورکښ اسلام مشرق او مغرب ته اورسیدلو، مشرق کښ چین، عراق، خراسان، روس اهواز وغیره علاقې فتح کړې شوې، او په مغرب کښ اندلس، قبرص تر بحر محیط پورې علاقو ته اسلام داخل شو او بیا څلورم خلیفه حضرت علي ﷺ مقرر کړې شو، دَهغه په دورکښ اګرچه خانه جنګي وه لیکن غلبه دَاسلام برقراره وه، دَکفارو دَطرف نه مسلمانانو ته تکلیف رسول یا دَمسلمانانو ذلیله کول نو، لکه څرنګه مسلمانان په مکه کښ مقهورین او مطلوبین وو، نو دَایمان او عمل صالح په ذریعې سره الله تعالی قاهرین او طالبین اوګرځولو، چې دا ډیرلوئ امن او عزت دې او باقي په خپل مینځ کښ جنګ وجدال په خپل اختیار سره وو (احکام القرآن ابن العربي).

دابن العربيؒ اودابن کثيرؒ دکلام نه معلوميږي چې پدي ايت کښې دکوم خلافت ذکردې نودهغې نه مرادخلافت على نهج النبوة دې اودغې خلافت اووعدې ابتداء په دې ايت سره اوخودلې شوه چې دنبى پاکﷺ دوفات نه ورستو خلافت شروع شو اوانتهاء ئې په حديث سره اوخودلې شوه چې مروي دې دحضرت سفينهؓ نه هغه فرمائي چې قال رسول اللهﷺ خلافة النبوة ثلاثون سنة،ثم يؤتى الله الملك من يشآء اوبياحضرت سفينهؓ خپل شاګرد حضرت سعيدؓ ته اوفرمائيلوچې ته اوشماره دوه(۲)کاله خلافت دحضرت ابوبکرؓ وو. لس کاله دحضرت عمرؓ،دولس(۱۲)کاله دحضرت عثمانؓ اوشپږکاله دحضرت عليؓ خلافت وو، اوعلماء فرمائي چې ددوئي ټولوصحيح مدت راواغستلې شي يعني بغيردپوره کولو يادحذف کولودکسرنه. نوشپږمياشتې پاتې کيږي،هغه شپږمياشتې حضرت حسنؓ پوره کړې اودهغې نه پس خلافت على نهج النبوة ختم شوالبته مطلق خلافت اوخلفاء ددينه ورستونورهم کيدې شي لکه په روايت دمسلم کښې دحضرت جابربن سمرةؓ نه مروي دى چې نبى پاکﷺ ارشاداوفرمائيلوچې څمادامت کاربه صحيح روان وي ترڅوچې دولس خلفاء وي،نوددې حديث نه ددولس(۱۲)خلفاء پيداکيدلوثبوت معلوميږي چې دهغې نه څلورخلفاء راشدين دي اونور خلفاء په متعددو اوقاتوکښې څه تيرشويدي اوڅه به راځې اواخرې خليفه به امام مهديؒ وي اوددې ايت اوياحديث نه دشيعه ګانو دولس امامان ثابتول غلط دي ځکه چې موعودلهم صحابه کرام دي اودهغوئ په دورکښې اللهﷻ دين ته ترقي اوخلافت قيام اودهغې استحکام ورکړې وو اودغه شان صفات دوعدې داستخلاف په اکمل طريقې سره په هغوئ کښې موجودوو، اوکچرې صحابه کرام په دورکښې کومه وعده پوره کړې شوې نوې نوددې مقصد داشوچې ترڅوارلس سوه(۱۴۰۰)کاله پورې دې ايت مطابق زندګي په ذلت کښې تيره شوه اواللهﷻ خپله وعده پوره نکړه(العياذبالله).

﴿يَعْبُدُونَنِي﴾ داياجمله مستانفه ده اوياحال دې د ﴿الَّذِينَ﴾ نه اودادريم سبب دبشارت دې،

﴿وَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ﴾ دکفرنه مراددياکفرحقيقي دې اود ﴿الْفَاسِقُونَ﴾نه مراد كاملين في الفسق دې اوپه کمال فسق سره انسان دملت اواسلام نه خارج کيږي اوياکفرپه معنې لغوي سره دې اودايت مقصد دادې چې څوک داللهﷻ ددې انعاماتوقدراونکړې نوداخلک فاسقان دي اوددې انعام

ناشکري دتولونه اول هغه چاوکړه چې دحضرت عثمان ﷺ ئي شهيدکړو اودهغه نه ئې بغاوت کړې وو، نو الله ﷻ په خپلو انعاماتو کښې کمې راويستلو.

﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ﴾ دبقاء دخلافت اواصلاح نفس دپاره دري(۳) مرکزي امورذکرکيږي﴿لَا تَحْسَبَنَّ﴾ پدي کښې تخويف دي منکرينو ته اوتسلي ده مؤمنانوته چې ستاسو مخالفين اوکفارنه په دنياکښې دالله ﷻ عذاب نه بچ کيدې شي اونه په آخرت کښې.

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لِيَسْتَأْذِنْكُمُ الَّذِينَ مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ وَالَّذِينَ |
| اې مؤمنانو! پکارده چه اجازت دي غواړي ستاسونه هغه کسان چه مالك دي پرې خې لاسونه ستاسو (غلامان) اوهغه کسان |
| لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنْكُمْ ثَلٰثَ مَرّٰتٍ ؕ مِنْ قَبْلِ صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَحِيْنَ |
| چه ندي رسيدلي دبلوغ عمرته ستاسونه دري وخته،مخکښې دمونځ دسهارنه اوکوم وخت |
| تَضَعُوْنَ ثِيَابَكُمْ مِّنَ الظَّهِيْرَةِ وَ وَمِنْۢ بَعْدِ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ ؕ ثَلٰثُ عَوْرٰتٍ لَّكُمْ |
| چه کيږدئ اوباسئ تاسوجامې خپلې دغرمې په وخت کښې اوورستودمانځه دماسختن نه،دادري وختونه دپردې ستاسودي. |
| لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌۢ بَعْدَهُنَّ طَوّٰفُوْنَ عَلَيْكُمْ بَعْضُكُمْ |
| نيشته په تاسواونه پدوئ باندې څه ګناه سيوادې وختونه،(ځکه چه)ډيراتلونکي دي په تاسوباندې بعض دستاسو |
| عَلٰى بَعْضٍ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۵۸﴾ |
| په بعضوباندې،همدغه شان بيانوي الله ﷻ تاسوته حکمونه،اوالله ﷻ ډيريوهه دې حکمتونووالادې |
| وَاِذَا بَلَغَ الْاَطْفَالُ مِنْكُمُ الْحُلُمَ فَلْيَسْتَأْذِنُوْا كَمَا اسْتَأْذَنَ الَّذِيْنَ |
| اوکله چه اورسيږي واړه بچي ستاسونه بلوغ ته نواجازت دي غواړي لکه چې اجازت غوښتلو هغه کسانو |
| مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۵۹﴾ |
| چې ددوئ نه مخکښې بالغان شويدي،دغسې بيانوي الله ﷻ تاسوته احکامات خپل،اوالله ﷻ ډيريوهه حکمتونووالادې |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾دادَسورت دويمه حصه شروع کيږي چې پديکښې دَاصلاح دَمعاشرې دَپاره دري(۳)قوانين ذکرکيږي،نودااول قانون ذکرکيږي چې داپه باري دَاستيذان(اجازت غوختلو)کښې دې په ماقبل ايت نمبر(۲۷)کښې هم حکم اوقانون دَاستيذان ذکرشوې وو، خوهغه استيذان دَاجنبي اوغيرمحارم په باره کښې وو اوداستيذان په باره دَاقاربواومحارموکښې دې خلاصه دَدې داده چې دکوموخلکونه عام طورباندې پرده نيشته دې لکه رور،پلار،خوې،لور،خور وغيره نوچې کله هم هغوئ کورته داخليږي نوغاړه تازه کول سبحان الله وئيل دَدوئ دپاره مسنون عمل دې خوبياپه کورکښې دَننه دَيوبل مخصوص ځائ اوکمرې ته چې ځي نوپدې صورت کښې دري(۳) اوقات داسې دي چې دَيوبل نه اجازت اغستل ضروري اوواجب دي هغه دري(۳)اوقات دادي(۱) دسهرمانځه نه مخکښې(۲)دَماسخوتن دَمانځه نه ورستو(۳)دَغرمې ارام په وخت کښې اوچونکه پدې وختونوکښې انسان ازاد اوبې تکلف اوسيدل غواړي دَخپل بي بي سره اختلاط کښې مشغول وي اوپدې اوقاتوکښې ځنې خلک زائدې جامې هم دَځان نه لرې کوي،نودَدې وجې نه پدې اوقاتوکښې محارم اواقارب(سيوا دزوج نه)په يوبل باندې داخليدل بغيردَاجازت نه ممنوع دي حتَّې چې پدې اوقاتوکښې غلامان اونابالغ اولاد چې مراهق وي په عوراتوباندې پوهيږي دَداخليدلودَپاره به اجازت غواړي،اودَدې اوقاتونه علاوه په باقي اوقاتوکښې دَاقاربو دَپاره اجازت اغستل ضروري ندي،دَپاره دَدې چې حرج اوتکليف لازم نشي.

**فائده:** پديکښې دَعلمآؤ اختلاف دې چې داحکم مذکوردَاستيذان وجوبي دې اوکه استحبابي،اومنسوخ دې که محکم نودَجمهوروقول دادې چې داحکم وجوبي دې اومحکم دې، منسوخ ندې، دَحضرت ابن عباس﵁ اوسعيدبن جبير﵀ نه مروي دي چې انّ ناساً يقولون نسخت والله مانسخت ولکنّهاممّاتهاون بهاالنّاس(خازن) يعني ځنې خلک داوائي چې داايت منسوخ دې په الله﷯ باندې قسم چې دامنسوخ ندې ليکن خلک دَدې ايت دَحکم نه غفلت کوي.

﴿مَلَكَتْ أَيْمَٰنُكُمْ﴾دَدينه مراد وينزې اويانابالغ غلامان دي ځکه چې بالغ غلام اجنبي دې دَهغه حکم مخکښې تيرشويدې،﴿وَٱلَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا۟ ٱلْحُلُمَ﴾ دَدينه مرادنابالغ بچې دي اوحکم په حقيقت کښې اوليآؤ اومشرانوته دې چې خپل اولاد اوغلامانوته داادب اوتربيت ورکړئ چې پدې

اوقاتو کښې بغیرد اجازت نه په تاسو باندې نه داخلیږي نو دا اعتراض نه واردیږي چې ماشومانو ته څرنګه حکم اوشو حالانکه هغوئ مکلف ندي.

﴿ثَلَٰثَ مَرَّٰتٍۚ﴾ غوره قول دادې چې دَدینه مراد درې(۳) وختونه دي اوقرینه پرې ورستوکلام دې چې هغه دَدې تفسیر دې، ﴿مِّن قَبْلِ صَلَوٰةِ ٱلْفَجْرِ﴾ داوخت دَخوب نه دَبیدارئ دې اودَخوب نه دَبیداریدلو په وخت کښې کله کله انسان په داسې حالت کښې وي چې نه غواړي چې پدې حالت کښې ماشوك اوګوري اودغه شان په دې وخت کښې خلك دَشپې والاجامې هم بدلوي.

﴿وَحِينَ تَضَعُونَ ثِيَابَكُم﴾ دا تصریح په علت دَمنع باندې ده، او﴿مِّنَ ٱلظَّهِيرَةِ﴾ نه مراد دَغرمې وخت دې اودَثیاب نه مراد هغه جامې دي چې په حالت دَیقظت یعنې بیدارئ کښې اچوي اوبیادَغرمې دَقیلولې دَپاره ځنې خلك دَځان نه لرې کوي اومن یابیانیه دې چې بیان ئې کړیدې دَحین اویا مِن په معنې دَفي سره دې یعنې فِي الظهيرة اویاپه معنی دَلام اجلیه سره دې اوظهیرة نه مراد شدة الحر یعنې سخته ګرمي ده نومقصد دادې چې تاسو کپړې لرې کوئ دَسختې ګرمئ دَوجې نه چې داوخت دَغرمې دې اوهرکله چې پدې وخت کښې عام طورباندې خلك زائدې جامې لرې کوي دَپاره دَارام اوعرفا پدې وخت کښې څوك جماع نه کوي، نوځکه په علت باندې تصریح اوکړې شوه او ﴿تَضَعُونَ ثِيَابَكُم﴾ ورسره ذکرشو په خلاف دَدې نورو دوه(۲) اوقاتونه، چې پدغه دوه(۲) اوقاتو کښې دَجامولرې کولوسره سره جماع کول هم وي نوځکه دَهغې سره یو مخصوص علت ذکرنکړې شو. ﴿ثَلَٰثُ عَوْرَٰتٍ لَّكُمْ﴾ داخبردې دَمبتدا محذوفې دَپاره اصل عبارت داسې هنَّ ثلث عوراتِ كائنة لَكم اوداعلت دې دَدې مذکوره اوقاتو کښې دَداخلیدلودَمنع دَپاره، اوعورت په اصل کښې خلل اونقصان ته وئیلې کیږي،دیوال کښې چې سورې وي هغې ته هم عورت وئیلې کیږي لکه په سورة الاحزاب کښې دي: انَّ بيوتنا عورةٌ اوبعض فرمائي چې عورت دَعارنه مشتق دې.
نوپدې مذکوره درې(۳) اوقاتو باندې اطلاق دَعورت یادَدې وجې نه دې چې پدې اوقاتو کښې عام طورخلك دَخپل عورت دَحفاظت نه غافله وي اودَخپل عورت په حفاظت کښې خلل اونقصان راویستلې وي پدې اوقاتو کښې انسان بغیردَجامونه(بربنډ) کتلې کیدې شي چې دادَانسان دَپاره باعث عار اوباعث شرم وي نودَدې وجې نه دې اوقاتو ته عورات اوئیلې شو.

﴿طَوَّٰفُونَ عَلَيۡكُم﴾ دا علت دي دَماقبل جملي دَپاره يعني ددې دري(٣) اوقاتونه علاوه باقي اوقاتو کښې اجازت اغستلو ضرورت څکه نيشته دې چې دوئ په تاسو باندې دَخدمت دَپاره يادَنورڅه کاردَپاره په کثرت سره داخليږي کچرته هرڅلي اوهروخت کښې اجازت غوختل ضروري شي نوډيرلوئ حرج به لازم شي ﴿بَعۡضُكُمۡ عَلَىٰ بَعۡضٍ﴾ دا جمله تاکيد ده دَماقبل دَپاره تقديردَدي جملي داسي دې بعضكم طوافون على بعض.

﴿وَإِذَا بَلَغَ ٱلۡأَطۡفَٰلُ﴾ يعني چې کله نابالغ هلکان بلوغت ته قريب شي اويابالغ شي نوبيابه دي بغيردَاجازت نه نه داخليږي بلکه دوئ دَپاره به اجازت اغستل ضروري وي لکه څرنګه ايت نمبر(٢٧) کښې تيرشويدي.

| |
|---|
| وَالۡقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَآءِ الّٰتِيۡ لَا يَرۡجُوۡنَ نِكَاحًا فَلَيۡسَ عَلَيۡهِنَّ جُنَاحٌ اَنۡ يَّضَعۡنَ ثِيَابَهُنَّ غَيۡرَ |
| اوبوډئ ګانې دَزنانونه هغه چې اميدنه لري دَنکاح نونيشته په دوئ باندې ګناه چې کيږدي(لري کړي) دوئ پروني خپل. نه وي |
| مُتَبَرِّجٰتٍۢ بِزِيۡنَةٍ ؕ وَاَنۡ يَّسۡتَعۡفِفۡنَ خَيۡرٌ لَّهُنَّ ؕ وَاللّٰهُ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ ۞ ٦٠ |
| ښکاره کونکي دَخپل ډول، اوداچه دوئ خان اوساتي(دپروني لري کولونه) بهترغوره دي دوئ لره، اوالله ﷻ اوريدونکې پوهه دي |

﴿وَٱلۡقَوَٰعِدُ مِنَ ٱلنِّسَآءِ﴾ دا دويم قانون دي دَپاره دَاصلاح دَمعاشرت اودَپاره دَعفت او﴿وَٱلۡقَوَٰعِدُ﴾ جمع دَالقاعد ده مرادترينه هغه زنانه دي چې دَهغوئ جنسي جذبات ختم شوي وي اودَحمل اوحيض نه نااميده وي فواعل په وزن جمع دَ فاعلة راځي خوهرکله چې انقطاع دَحمل اوحيض صفات مختصه دَزنانو دي نودَدي وجې نه لفظ دَ قاعد هم مختص شو په زنانوپوري نو ورله جمع قواعد بروزن فواعل راوړې شوه ،﴿لَا يَرۡجُونَ﴾ دا صفت کاشفه دَ﴿ٱلۡقَوَٰعِدُ﴾ دَپاره دي يعني دَبوډاوالي دَوجې نه دَعمرهغه حصې ته رسيدلي وي چې څوك ورته هم رغبت نه کوي اودَنکاح يادَجنسي خواهش دَتکميل نه ورنه هرڅوك نفرت کوي.

﴿أَن يَضَعۡنَ ثِيَابَهُنَّ﴾ دثیاب نه مراد بعض ثیاب دي لکه چې په قرائت دابن مسعود رضی الله عنه اوابی ابن کعب رضی الله عنه کښې دي "من ثیابهن" اومراد ترینه زائدي کپړي یعني پړوني اوبرقعه وغیره دي یعني چې کله یوه زنانه ډیره بوډۍ شي نودهغې دپاره اجانب کالمحارم شي نوچې دکوموا عضاؤ پټول دمحارمونه ضروري ندي نودهغې اعضاؤ پټول ددي دپاره داجانبونه هم ضروري ندي.

﴿غَيۡرَ مُتَبَرِّجَٰتِۭ﴾ داحال دي دفاعل نه یعني دبوډۍ ګانو دپاره دااجازت شته دې چې دوئ دي پړوني یابرقعه کیدي اوندي استعمالوي لیکن دَنه استعمالولو مقصدبه دانوي چې داخلکوته اظهاردزینت کوي نوکچرته متې. غاړه اوسینه ئې ښکاریدله نوداجائزندی یادغه شان نورزینت ئې کړې وي. شونډې سرې کړې وي، رنګونه ئې لګولي وي اوبې پردې رااوځي نوداجائزندي بلکه دغه شان بوډۍ زنانه، به بیاپرده کوي. ﴿وَأَن يَسۡتَعۡفِفۡنَ﴾ یعني پړوني اوبرقعه نه استعمالول اګرچه رخصت دې دبوډۍ ګانو دپاره خوکچرې دوئ په عزیمت باندې عمل کوي اوپړوني استعماله وي نوداډیربهترده ځکه چې پدیکښې عفت سره سره ځوانانو ښځوته دپردې کولوترغیب هم دې.

لَّيۡسَ عَلَى ٱلۡأَعۡمَىٰ حَرَجٞ وَلَا عَلَى ٱلۡأَعۡرَجِ حَرَجٞ وَلَا عَلَى ٱلۡمَرِيضِ حَرَجٞ وَلَا عَلَىٰٓ أَنفُسِكُمۡ

نیشته دې په ړوندباندې ګناه اونه په ګډباندې ګناه اونه په مریض باندې ګناه اونه په ځانونوستاسوباندې

أَن تَأۡكُلُواْ مِنۢ بُيُوتِكُمۡ أَوۡ بُيُوتِ ءَابَآئِكُمۡ أَوۡ بُيُوتِ أُمَّهَٰتِكُمۡ أَوۡ بُيُوتِ إِخۡوَٰنِكُمۡ

چه خوراك کوئ دکورونوخپلونه یادکورونودپلارانوخپلونه یادکورونودمیاندوخپلونه یادکورونودورڼوخپلونه

أَوۡ بُيُوتِ أَخَوَٰتِكُمۡ أَوۡ بُيُوتِ أَعۡمَٰمِكُمۡ أَوۡ بُيُوتِ عَمَّٰتِكُمۡ أَوۡ بُيُوتِ أَخۡوَٰلِكُمۡ

یادکورونودخویندوخپلونه یادکورونودترونوخپلونه یادکورونودترورپانوخپلونه اویادکورونودماماګانوخپلونه

أَوۡ بُيُوتِ خَٰلَٰتِكُمۡ أَوۡ مَا مَلَكۡتُم مَّفَاتِحَهُۥٓ أَوۡ صَدِيقِكُمۡ

یادکورونودماسیګانو نوخپلونه یادهغې کورونونه چه مالك یئ تاسودچابیانودهغې،یاددوستانوخپلونه

| |
|---|
| لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَأْكُلُوْا جَمِيْعًا اَوْ اَشْتَاتًا ؕ فَاِذَا دَخَلْتُمْ بُيُوْتًا فَسَلِّمُوْا |
| نيشته په تاسو باندي ګناه چه خوراك كوئ په يوځائ ياځان ځان له،پس كله چي داخليږئ تاسو كورونوته نوسلام كوئ |
| عَلٰى اَنْفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُبٰرَكَةً طَيِّبَةً |
| په اوسيدونكودغي باندي،ادب دملاقات دي دطرفه دالله ﷻ نه ،بركتي ،ږره خوشاله كونكي دي |
| كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿٦١﴾ |
| دغه شان بيانوي الله ﷻ تاسو ته حكمونه دپاره ددي چي دعقل نه كار واخلئ. |

﴿لَيْسَ عَلَى الْاَعْمٰى حَرَجٌ﴾ دادريم قانون ذكركيږي داصلاح معاشرت اودرفع دحرج دپاره، اوهركله چي ماقبل اياتونوكښ داستيذان حكم وو نوپدي اياتونوكښ دغي امورو په باره كښ اداب ذكركيږي كوم چي داستيذان نه وروستوواقع كيږي لكه خوراك، سلام وغيره شو.

**شان نزول**: ددي ايت په شان نزول كښ مفسرينومتعدد روايات ذكركړيدي اودغي واقعاتو په خپل مينځ كښ څه تعارض نيشته دي ليكن زيات غوره هغه روايت دي چي ذكركړيدي امام مالك رحمه الله مرسلا دسعيدبن مسيب رحمه الله نه اودغه شان په مسندبزاركښ دحضرت عائشه رضي الله عنها هم منقول دي چي (١) كله به صحابه كرام رضي الله عنهم دنبي ﷺ سره جهاد ته تللو نوځني صحابه كرامو رضي الله عنهم به دخپل كورچابياني هغه معذورينوصحابه رضي الله عنهم ته حواله كړي چي هغوئ به جهادته نشوتللي، اودامعذورين به يادډوئ عزيزاواقارب وو اويابه ئي دوستان وو اودغوكسانوبه دي معذورينوته دخپل كورونونه دخوراك كولو اجازت هم وركړو خودغي باوجود دي معذورينو به ددوئ دكورونونه پدي خيال خوراك نه كولوچي كيدي شي چي دوئ مونږته اجازت په طيب نفس سره نوي راكړي نودوئ به په لوئ حرج كښ واقع وو نوالله ﷻ داايت نازل كړو چي پدي كښ الله ﷻ ديوولس (١١) قسمه كسانودمال نه بغيرداجازت صريحي خوراك كولواجازت وركړيدي (٢) په بعضوروااياتوكښ دي چي كله ايت ياايهاالذين امنوا لاتاكلوا اموالكم بينكم بالباطل نازل شونو ځني كسانوبه دمعذورينوسره خوراك نه كولوپدي خيال چي ړوندڅه ويني نه، نوخوراك په ارام ارام سره كوي اوګډ سم كيناستلي نشي نوهغه هم صحيح خوراك نشي كولي، نوداسي نه چي چرته

مونږ دَدوئ نه زيات خوراك اوكړو او ګناه ګارشو، نودَدفع دَحرج دَپاره داايت نازل شو(۳) اوپه ځني رواياتو كښ داسي راغليدي چې معذورينوبه دروغوخلكوسره په يوځائ باندې دَدي وجي نه خوراك نه كولوچې كيدې شي مونږ دوئ دَپاره دَتكليف ذريعه اوګرځوځكه چې بعض خلك دَړوندسري نه كراهت محسوسه وي اوګډسړي كله كله ځائ زيات اونيسي نو الله ﷻ داايت نازل كړو چې ﴿لَّيْسَ عَلَى ٱلْأَعْمَىٰ حَرَجٌ﴾ نوغوره قول دادې چې على په خپلي معنې باندې دې يعني پدي معذورنيوباندې څه ګناه نيشته دې كچرته دوئ خوراك اوكړي اويامطلب دادې چې ليس على الاعمى حرج في مواكلة غيره يعني كچرته دامعذورين دَبل چاسره خوراك كوي نوپه دوئ باندې څه ګناه نيشته دې اوياعلىٰ په معنې دَ(فى)سره دې اواصل عبارت داسي دې چې: ليس فى مواكلة الاعمى حرج يعني كچرته تاسودَمعذورينوسره شريك خوراك كوئ نوڅه حرج نيشته دې اومراد په ﴿مِنۢ بُيُوتِكُمْ﴾ سره دَخپل اولاد والاكور دې چې كله ورنه هغوئ جداوي، اودَاولاد كورداسي وي لكه دَپلارخپل كور، لكه حديث كښ راځي: انت ومالك لابيك نودَدي وجي نه اضافت ئې ضميردَمخاطب ته اوشو ،لهذا دااعتراض نه واردېږي چې داحكم غيرمفيددې ځكه چې دَخپل كورنه خوراك كولوكښ نيشتوالي دَحرج بديهي اوهرچاته معلوم دې اوابن كثيرفرمائي چې ﴿مِنۢ بُيُوتِكُمْ﴾ نه مراد خپل ذاتي كورونه دي اودائې ځكه ذكركړوچې مساوات فى الحكم راشي دَمعطوف اومعطوف عليه كښ،يعني ديته اشاره شي چې دي ورستو مذكوركسانودكورونونه،خوراك كول داسي دي لكه چې دَخپل كورنه خوراك كولې شي نوڅرنګه چې دَخپل كورنه خوراك جائزدې اوڅه ترددپكښ نيشته دې نودغه شان دَدي مذكوره كسانودكورونونه دَخوراك حكم هم دې،وانّما ذكرهذا وهو معلوم ليعطف عليه غيره فى اللفظ وليساوي به مابعده(ابن كثير).

﴿أَوْ مَا مَلَكْتُم مَّفَاتِحَهُۥٓ﴾ ددينه مرادهغه كسان دي چې هغوئ ته دكورچابيانې حواله كړې شوي وي اودوئ محافظين ګرځولې شوي وي نوكچرته داخادم اومحافظ دكورنه بقدرضرورت خوراك اوكړي نوداجائزدې. ﴿أَوْ صَدِيقِكُمْ﴾ ددينه مراد هغه بې تكلفه دوست دې چې هغه پدي

﴿فَإِذَا دَخَلْتُم بُيُوتًا﴾ داكورته دداخليدلو ادب بيانيږي ﴿فَسَلِّمُوا عَلَىٰٓ أَنفُسِكُمْ﴾ ددينه مرادسلام اچول دي دكورپه اوسيدونكوخلكوباندې،كه هغه والدين وي،يااولاداوبې بې وي اودغه شان پدې حكم كښې جمات هم داخل دي اوكچرته په كوركښې ياجمات كښې هيڅ څوك نوو،نوبياداسې سلام اچول پكاردي:السلام علیناوعلی عبادالله الصلحين اوحديث شريف كښې راځي چې ملائك دي انسان ته ددې دسلام جواب وركوي، ﴿تَحِيَّةً مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ﴾ داپامفعول مطلق من غيرلفظه دې د ﴿فَسَلِّمُوا﴾ دپاره اي سلموا تحية اوپديكښې اشاره ده چې دپومسلمان بل مسلمان ته لوي تحفه سلام اچول دی اوپادې دپاره عامل مقدردې، چې حيّوا دې يعني حيّو تحيّة من عندالله يعني تاسوتحيه كوئ په تحيې كولوسره چې ثابته اومقرره ده دجانبه دالله ﷻ چې هغه سلام دې اوهركله چې سلام سبب دحيات اودعادحيات ده نودې وجې نه ورته تحيه اوئيلې شوه، دحضرت انس رضي الله عنه نه مروي دې فرمائې چې: اوصاني النبي ﷺ بخمس خصالٍ قال ياانس اسبغ الوضوء يزدفي عمرك، وسلّم على من لقيكَ من امّتی تكثرحسناتكَ، واذا دخلت يعني فی بيتك فسلّم على اهلك يكثرخيربيتك، وصلّ صلوة الضُحىٰ فانّها صلوٰة الاوّابين قبلك،ياانس!ارحم الصّغير ووقّرالكبيرتكن من رفقائی يوم القيٰمة، يعني فرمائي چې ماته نبی پاك ﷺ دپنځو خصلتونو اوعادتونوخپلولو خصوصي حكم اوفرمائيلو چې اي انس! خپل اودس مكمل كوه، دابه ستادپاره دعمرزيات والي ذريعه اوګرځي،ځمادامت نه چې څوك درسره ميلاؤشي نوسلام پرې اچوه، دابه ستانيكياني زياتي كړي اوچې كله كورته داخليږي نوپه خپل اهل باندې سلام اچوه دابه ستادكور،خيراوبركت زيات كړي اودچاشت مونځ كوه چې داستانه مخكښې خلكو(امتونو)دپاره اوابين مونځ وو،اي انس! په كشرانو باندې رحم كوه اودمشرانوعزت كوه نوتاته به ځمارفاقت اوملګرتيادقيامت دورځي حاصله شي(ابن كثير). ﴿مُبَٰرَكَةً﴾ يعني ذريعه دبركت ده ځكه چې دسلام په ذريعې سره محبت راځي اوحسد اوعداوت ورسره ختميږي،

﴿طَيِّبَةً﴾ يعني بل مسلمان پدې سره خوشحاله كيږي ﴿كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ﴾ داترغيب الي القرآن ذكركيږي.

إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِذَا كَانُوا مَعَهُ عَلَىٰ أَمْرٍ

بې شکه مؤمنان هغه کسان دي چې ایمان ئې راوړیدې په الله اوپه رسول دَهغه اوکله چې وي دَهغه سره په یو کار

جَامِعٍ لَّمْ يَذْهَبُوا حَتَّىٰ يَسْتَأْذِنُوهُ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ

جمع کونکي باندې نونه ځي دوئ ترډې چه اجازت اوغواړي ورنه، بې شکه هغه کسان چه اجازت غواړي ستانه. دغه کسان هغه دي

يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ۚ فَإِذَا اسْتَأْذَنُوكَ لِبَعْضِ شَأْنِهِمْ فَأْذَن

چه ایمان لري په اللهﷻ اوپه رسول دَهغه، پس هرکله چه اجازت غواړي دوئ ستانه دَبعضِ خپل کاردَپاره نو اجازت ورکړه

لِّمَن شِئْتَ مِنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمُ اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٦٢﴾

هغه چاته چه خوښه شي ستادَدوئ نه اوبخنه غواړه دوئ لره دَاللهﷻ نه، بې شکه اللهﷻ بخنه کونکې رحم کونکې دې

لَّا تَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاءِ بَعْضِكُم بَعْضًا ۚ قَدْ يَعْلَمُ اللَّهُ الَّذِينَ

مه ګرځوئ بلنه دَرسول پخپل مینځ کښې پشان دَبلني دَبعضِ ستاسونه بعضولره، یقیناًپیژني اللهﷻ هغه کسان چه

يَتَسَلَّلُونَ مِنكُمْ لِوَاذًا ۚ فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ

خوئیږي اوځي ستاسودَمجلس نه، پټ پټ پس اودې یریږي هغه کسان چه خلاف کوي دَامر (دَطریقې) دَرسول نه،

أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٦٣﴾ أَلَا إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ

چه اوبه رسیږي دوئ ته فتنه یابه اورسیږي دوئ ته عذاب دردناک خبرداربې شکه صرف دَاللهﷻ دَپاره دې اختیاردَهغه څه چې په اسمانونو

وَالْأَرْضِ ۖ قَدْ يَعْلَمُ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ وَيَوْمَ يُرْجَعُونَ إِلَيْهِ

اوزمکه کښې دي، یقیناًاللهﷻ عالم دې په هغه حال باندې چه تاسوپه هغې یئ، اوپه کومه ورځ چه اوبه ګرځولې شي دوئ هغه ته

فَيُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا ۗ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٦٤﴾

نوخبربه ورکړي دوئ ته اللهﷻ په هغه چه دوئ کړیدي، اواللهﷻ په هرڅه خبرباندې عالم دې

﴿إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ﴾هر کله چې ماقبل اياتونو کښې کورته داخليدلو په وخت کښې داستيذان اودسلام اچول تعليم ورکړې شو نواوس پدې ايت کښې تعليم ورکولې کيږي چې دتللو په وخت کښې هم استيذان او اجازت غواړئ اوداپه دويم حصې کښې دمؤمنانو اودمنافقينو تقابلې صفات ذکر کيږي چې دمؤمنانو صفت دادې چې دپيغمبرﷺ دمجلس دادابو پابندې کوي اودهغې مکمل خيال ساتي اودمجلس نه بلاضرورته نه پاځي اوکچرې ډيرضرورې عذردوجې نه پاسيدل اوغواړې نوبيا خامخا اجازت غواړي.

﴿ءَامَنُواْ بِٱللَّهِ﴾دا اول صفت دې اومراد په ايمان سره تصديق اويقين دې يعني ظاهراً اوباطناً تصديق کوونکې وي﴿وَإِذَا كَانُواْ مَعَهُۥ﴾ دادويم صفت دې او﴿أَمْرٍ جَامِعٍ﴾ نه مراد هرهغه کاردې چې هغه داجتماعيت سره تعلق لري اودهغې دپاره دخلکو راجمع کول ضرورې وی لکه جهاد، ياصلوة العيدين شواواسناد دامر جامع ته اسنادمجازي دې ځکه چې دغه اجتماعي امراوکارسبب دجمعي دې.

﴿لَمْ يَذْهَبُواْ حَتَّىٰ يَسْتَـْٔذِنُوهُ﴾يعني دخپل انفرادي ضرورت اوذاتي ضرورت دپاره بغيرداجازت نه، نه ځي اوداحکم نن صباهم دې چې کوم کسان صاحب الرائ وي اواميرئې دمشورې دپاره منتخب کړی نوهغوئ دپاره بغيرداجازت نه تلل جائزندی بلکه اجازت اغستل ورله ضرورې دې.

﴿أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ﴾استيذان اګرچه جزء دايمان نه ندې، خومنافقينوبه دنبی پاکﷺ نه په خاص مجالسواوخاص اوقاتوکښې هم استخفافاًاجازت نه غوختلو، اواستخفافاً اجازت نه غوختل دنبیﷺ نه کفردې،اوتعظيماً اجازت غوختل عين ايمان دې نودذې وجې نه دايمان علامه استيذان اوګرځولې شوه.

﴿فَأْذَن لِّمَن شِئْتَ﴾دا اختيارامام اوخليفه وقت ته هم حاصل دې دپاره دمصلحت ځنې کس داسې وي چې دهغه پاتې کيدل ضرورې وي اوځنې کس داسې وي چې دهغه تلل ډيرضرورې وي نوامام ته اختياردې چې دموقعه مطابق چاته اجازت ورکوي اوچاته نه ورکوي.

﴿وَٱسۡتَغۡفِرۡ لَهُمُ ٱللَّهَ﴾ دعا استغفار دَپاره دَاجازت غوختونكو علامه ده چې دوئ ته اجازت په خوشحالئ سره وركړې شويدې، اوپديكښ اشاره ده چې حتى الوسع په اجتماعي كاربانديې ذاتي كارته ترجيح وركول ندي پكار، اوكه دډېرضرورت دَوجې نه اجتماعي كارپريخودلې شي نودا اګرچه جائزدې خوبياهم استغفاركول پكاردې ځكه چې داصورةً اعراض دې.

﴿لَّا تَجۡعَلُواْ دُعَآءَ ٱلرَّسُولِ﴾ پدې ايت كښ دَنبي پاكﷺ متعلق عام امت ته دَادب تعليم وركولې كيږي اودَنبيﷺ عظمت شان بيانيږي، دَدې جملې درې(٣)توجيهات كړې شويدې(١)اوله توجيه داده چې دعا مصدرمضاف دې فاعل ته،اوپه معنې دَبلنې اوحكم سره دې نودَايت مقصددادې چې كله دَضرورت په وخت كښ پيغمبرﷺ تاسوراوبلې اوتاسوته حكم اوكړې نودَهغه بلنه اوحكم دَخپلوبلنو ، اوحكمونوپشان مه كنړئ دَهغه دَبلنې اجابت كول اودَهغه دَحكم اتباع كول فرض دې اودادَايمان علامه ده اومنافقينوبه دَنبيﷺ اوازاوريدلودَهغې باوجود كله كله به ئې قصداًجواب نه وركولو(٢)دويمه توجيه داده چې دعا په خپلې مشهورې معنې سره دې اواضافت الى الفاعل دې نومخكښ ايت كښ نبيﷺ ته حكم اوشوچې دوئ دَپاره مغفرت دعااوكړه اوپدې ايت كښ ترغيب وركولې كيږي مؤمنانوته چې دَنبي پاكﷺ دعادَخپلودعاګانوپشان مه كنړې دَهغه دعاقبوله ده(٣)دريمه توجيه داده چې مصدرمضاف دې مفعول ته اودعاء نه مراد نداء ده په تسمي سره،نومقصد دادې چې كله تاسوپيغمبرﷺ ته اوازكوئ اوهغه ځان ته مخاطب كوئ نوپه هغه طريقې سره بلنه اواوازورته مه كوئ كومې طريقې سره چې تاسويوبل ته بلنه اواوازكوئ لكه نوم دَپيغمبرﷺ اغستل شوچې يامحمدﷺ اوئيلې شي بلكه يارسول الله اويانبي الله وئيل پكاردى اودغه شان په اوچت اوازسره بلنه كول هم جائزندى اودغه شان ذكرپه سورة الحجرات ايت نمبر(٢ ، ٣)كښ هم دې اوداخصلت دَمنافقينوو چې نبي پاكﷺ ته به ئې قصداً اوتوهين دَپاره نوم اغستلواوپه اوچت اوازسره به ئې بلنه كوله اوصحابه كرامو به نبيﷺ ته په نوم سره بلنه نه كوله بلكه يارسول الله اويانبي الله به ئې وئيلو اوكچرې يوديهاتي اوبانډيچي صحابي په نوم سره اويااپه اوچت اوازسره نبيﷺ ته بلنه كړې وي نوهغه دَناپوهئ دَوجې نه وو اوتوهين ئې مقصدنوو.

﴿قَدْ يَعْلَمُ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ﴾ دا بل خصلت دَمنافقينو دې چې دوئ به دَنبيﷺ په مجلس كښې ناست وو نو بغير دَاجازت نه به وتلو او طريقه به ئې دا اختيار وله چې يو طرف ته به ئې او كتلو نو دَبل كس شاته به پټ شو او غلي شان به اووتلو. ﴿يَتَسَلَّلُونَ﴾ تسلل وئيلې كيږي پټ خوئيدلو ته او ﴿لِوَاذًا﴾ مصدر مفعول مطلق من غير لفظه دې، ديتسللون فعل لپاره اويا په معنی دَاسم فاعل سره حال دې دَ "يتسللون" فاعل نه. ځان دَبل چا دَنظرنه پناه كولو ته وئيلې كيږي.

﴿فَلْيَحْذَرِ ٱلَّذِينَ﴾ دا تخويف دنيوي او اخروي دې منافقينو ته عن امره عن يازائد دې ځكه چې ﴿يُخَالِفُونَ﴾ بالذات مفعول ته متعدي كيږي اويا ﴿يُخَالِفُونَ﴾ متضمن دې معنې دا عراض لره او مخالفت نه مراد اعراض كول دي نو ځكه په صله كښې عن راوړې شو او امر دَرسول اللهﷺ په حقيقت كښې سنت او شريعت او منهاج دَهغه دې نو دَهر قول، فعل او عمل موازنه دَپيغمبرﷺ دَسنت سره به كولې شي نو كچرته دَهغې سره موافق وو نو قبليږي به ورنه رد كولې به شي.

﴿أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ﴾ ددينه مراد دنيوي عذابونه دي، لكه قحط، زلزلې، بدامني وغيره شو ﴿أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ مراد ترينه اخروي عذاب دې او دَپاره دَمانعة الخلود دې.

﴿أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دا په اخير كښې مسئله توحيد سره دَردپه شرك في التصرف والعلم ذكر كيږي، او اشاره ده ديته چې دكومي مسئلې دَوجې نه تهمت لګيدلې وو نو هغه دا مسئله توحيد ده. ﴿وَيَوْمَ يُرْجَعُونَ﴾ پديكښې اثبات دَقيامت دې او دا ظرف مقدم دې دَ﴿فَيُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا﴾ دَپاره. ﴿وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ﴾ دَهر څه علم اللهﷻ ته دې دَانسان په ټولو احوالو باندې عالم دې كه څوك خپل كفر او ګناه پټوي او يا ښكاره ګندوي اللهﷻ ته ښه معلوم دي اللهم اجعلنا من المؤمنين الكاملين، وارزقنا اتباع نبيك الامين، واغفرلنا ولوالدينا ولجميع المؤمنين (امين يارب العلمين).

| ركوعاتها (۶) | سورة الفرقان مكية | آياتها (۷۷) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دي شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۴۲) وحسب النزول (۲۵)**

سورة الفرقان مكي سورت دي،ترتيب نزولي كښ(۴۲)نمبراوترتيب لوح محفوظ كښ(۲۵)نمبرسورت دي،دَسورت فاطرنه مخكښ اودَسورت يٰس نه وروستونازل شويدې. زمانه دَنزول ئي دورمتوسط دَمكي معظمي دې،په اوه اويا(۷۷)اياتونو ،اواته سوه دوه اتيا كلماتواودرې زره اوه سواتيا (۳۷۸۰)حروفوباندې مشتمل دې.

**ربط اسمي** : دَسورة الفرقان ربط نامي اواسمي دَسورت النورسره دادې چې سورة النوركښ ذكرووچې مسئله توحيددَاسمانونواودزمكي نوردې،اودَتوحيد دَنوردَوجې نه زمكي،اسمانونه اودانظام مشاهدقائم دې اوپدې سورت كښ ذكردې چې دَدې نورپه ذريعې الله ﷻ فرق راولى په مينځ دَحق اوباطل كښ اوفرقان الله ﷻ دَحق دَتوضيح دَپاره نازل كړيدې.

**ربط معنوي**:په اعتباردَمضامينوسره دَسورة الفرقان ربط دَسورة النورسره په څووجوهاتو سره دې(۱)سورة النوركښ ردپه شرك فى الاعتقاداوفى التصرف باندې ووچې دټولوامورو مدبراومتصرف صرف الله ﷻ دې،بل څوك نه دې،پدې سورت كښ رددې په شرك فى البركة باندې(۲)په سورة النوركښ ذكردَاوصاف ذميمه دَمنافقينووپدې سورت كښ عقائدذميمه دَمشركانوذكركيږي دَپاره دَاجتناب دَهغې نه(۳)په سورت النوركښ ذهغې تهمت جواب ذكرشوكوم چې منافقينوپه ام المؤمنين ﷺ لګولې وو،پدې سورت كښ دَهغې الزاماتوجواب وركولې كيږي كوم چې مشركانودَطرف نه دَنبي پاك ﷺ په نبوت باندې لګولى شويدې(۴)په سورت النوركښ دَتوحيداوشرك فرق په مثال سره بيان كړې شو،پدې سورت كښ دَاهل حق اواهل باطل فرق په اعتباردَصفاتوسره ذكركولې شي(۵) مخكښ سورت كښ احكامات ذكرووا وپديكښ دلائل عقليه ونقليه ذكركيږي.

**دعوه دَسورت**:دَدې سورت دعوه رددې په شرك فى البركة باندې،اودادعوىٰ درې(۳)خلي

ذكركيږي اول ځلي په اول ايت كښ ذكركيږي،دويم ځلي په ايت نمبر(۱۰)اودريم ځلي په ايت نمبر(۲۱)كښ ذكركيږي،اول ځلي ورنه مرادبركات دنيويه دي په دويم ځلي ورنه مرادبركات اخرويه دي اوپه دريم ځلي ورنه مراد بركات رووحانيه دي.

**مختصره خلاصه**:دَسورت دَمضامينومختصرخلاصه داده چي دريږ(۳)ځلي دعوه ذكركيږي په دعوىٰ باندي دولس(۱۲)عقلي دليلونه اواوه(۷)نقلي دليلونه ذكركيږي، دَاوه(۷)شبهاتو جوابونه،څه زجرونه،څه تخويفونه اوتسلي ګاني ذكركيږي اوپه اخيركښ دَنيكانوبندګانو اوصاف ذكركيږي.

**تفصيلي خلاصه**:ايت نمبر(۱)او(۲)كښ دعوه دَسورت اوپه هغي باندي دريږ(۳)عقلي دلائل ذكركيږي،په ايت نمبر(۳)كښ څلورم عقلي دليل اوزجرذكركيږي.په ايت نمبر(۴)او(۵)او(۲)كښ دريږ شكوى اوشبهږ اودَهغي جوابونه ذكركيږي په ايت نمبر(۷، ۸) كښ څلورمه، پنځمه اوشپږمه شكوى اوشبه ذكركيږي،په ايت نمبر(۹)كښ زجردي اوپه ايت نمبر(۱۰)كښ بيااعاده ده دَدعوى دَسورت،ايت نمبر(۱۱)نه تر(۱۴)پوري تخويفات اخروي ذكركيږي،په ايت نمبر(۱۵، ۱۲)كښ بشارت اخروي ذكركيږي،ايت نمبر(۱۷)نه تر(۱۹)پوري تخويفات اخرويه دي،په ايت نمبر(۲۰)كښ دڅلورمي شكوى اوشبهي جواب دي،په ايت نمبر(۲۱)كښ دَپنځمي شكوى اعاده مع الزيادة ده،په ايت نمبر(۲۲، ۲۳)كښ دَپنځمي شكوى جواب دي په ايت نمبر(۲۴)كښ بشارت اخروي دي،دَايت نمبر(۲۵)نه تر(۳۱)پوري تخويف اخروي دي په ايت نمبر(۳۲)كښ اومه شكوى اودَهغي جواب ذكركيږي،په ايت نمبر(۳۳)كښ تسلي ده په ايت نمبر(۳۴)كښ تخويف اخروي دي،دَايت نمبر(۳۵)نه تر(۴۰)پوري اوه(۷)دلائل نقليه ذكركيږي سره دَتخويف نه،دَايت نمبر(۴۱)نه تر(۴۴)پوري زجرونه دي،دَايت نمبر(۴۵)نه تر(۴۹)پوري پنځم شپږم،اوم دليل عقلي ذكركيږي،په ايت نمبر(۵۱، ۵۰، ۵۲)كښ زجردى په معاندينوباندي،په ايت نمبر(۵۳، ۵۴)كښ اتم نهم دليل عقلي ذكردى په ايت نمبر(۵۵)كښ ثمره اونتيجه دَدلائلوذكركيږي،په ايت نمبر(۵۲، ۵۷)كښ دكفارودَطرف نه دَيوسوال مقدرجواب ذكركيږي،په ايت نمبر(۵۸)كښ تسلي ده نبي پاك ﷺ ته،په ايت نمبر(۵۹)كښ لسم دليل عقلي دي په توحيدباندي،په ايت نمبر(۲۰) كښ شكوه ده،په ايت نمبر(۲۱)كښ په دريم ځلي دعوه دَسورت ذكركيږي سره يولسم(۱۲)دليل عقلي نه،په ايت نمبر(۲۲)كښ دولسم(۱۲) دليل عقلي ذكركيږي اودَايت نمبر(۲۳)نه تر(۷۴)پوري

دنیکانوبندګانواته(۸)صفات ذکرکیږي،په ایت نمبر(۷۵، ۷۲)کښې بشارت اخروي دي اوپه ایت نمبر(۷۷)کښې تخویف دنیوي دي.

| |
|---|
| تَبٰرَكَ الَّذِیْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهٖ لِیَكُوْنَ لِلْعٰلَمِیْنَ نَذِیْرَا ۙ ﴿۱﴾ |
| برکت ورکونکې دې هغه الله چه نازل کړې ئې دې قرآن په خپل بنده باندې دپاره ددې چه شي دې خلقوله یرونکې |
| الَّذِیْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَمْ یَتَّخِذْ وَلَدًا وَّلَمْ یَكُنْ لَّهٗ شَرِیْكٌ |
| هغه الله چه هغه لره ده بادشاهي دآسمانونواودزمکې اونه یې دې نیولې ولداونشته ده لره شریك |
| فِی الْمُلْكِ وَخَلَقَ كُلَّ شَیْءٍ فَقَدَّرَهٗ تَقْدِیْرًا ﴿۲﴾ |
| په بادشاهئ کښې اوپیداکړیدې ده هرڅیزبیااندازه ئې لګولې ده دهغې بالکل صحیح اندازه |

﴿تَبَارَكَ الَّذِی﴾دادعوه دسورت ده په اول ځلي،او تبارك باب تفاعل دي،دامشتق دي د برك نه برکت وئیلې کیږي كثرة الخیر اوپه اصطلاح دشرع کښې عبارت دي ثبوت الخیرالالٰهي فی الشيئ،نه اوباب تفاعل کله کله دموافقت دپاره وي،نوکله دي موافق دمجردووي اوکله موافق دمزیدیعني دباب افعال وي،نوچه کله موافق دمجردووي نوعموماًلازمي استعمالیږي،نوچه تبارك په معنیٰ د برك سره شي نومعنیٰ به ئې داشي بلنددي په خپل ذات صفات اوافعالوکښې هغه ذات چه فرقان ئې نازل کړیدي،ای تعالی الله عماسواه فی ذاته وصفاته وافعاله التي من جملتها تنزيل القرآن الكريم(ابوسعود)اوکچري موافق دباب افعال شي نومعنی به ئې شي اعطآء البركة،اومقصددآیت دادي چه دخیراوبرکت ورکوونکې ذات الله ﷻ دي،نعمتونوپیداکوونکې اوپه هغې نعمتونوکښې اثراوزیادتې کوونکې ذات صرف الله ﷻ دي اوهرکله چه دادواړه معانی مختص دی په الله ﷻ پوري نودَدي وجې نه اطلاق ئې په بل چاباندې کول جائزندی،اوهرکله چه دالفظ مختص شوپه الله ﷻ پوري نودَدي وجې نه دَدي تصریف یعني ګردان نشی کیدلې.

﴿اَلَّذِی نَزَّلَ اَلْفُرْقَانَ﴾ دااول دلیل عقلی دې په دعوی باندې،موصول سره دَصلې نه په منزله دَعلت دي دَماقبل دَپاره،دلته اشکال واردیږي چه قانون په موصول کښې دادې چه ثبوت

دَصلي ده ته معروف اومعلوم عندالسامع وی.نوبیاتعبیرپه موصول سره اوشی دَپاره دَتعظیم شان اوحالانکه پدي ځائ کښ ثبوت دَصلې خپل موصول ته معروف اومعلوم ندې عندالسامع ځکه چه کفاردَدینه منکروو چه داقرآن منزل من عندالله دې،نوبعضوورنه جواب(۱)کړیدې چه مخاطبین اوسامعین دَدي کلام مؤمنان دی اوثبوت دَصلي موصول ته عندالمؤمنین معروف اومعلوم دې(۲)بعضوورنه جواب پدي شان کړیدې چه سامعین دَدي کلام مؤمنان اوکافران ټول دی لیکن هرکله چه پدي باندې قوې دلائل موجودووچه داکلام اوقرآن منزل من عندالله دې ځکه چه دامعجزدي نودَقوت دلائل دَوجي نه،دَدوئ انکارپه منزله دَعدم انکاراوګرځولي شو.

اوهرکله چه په ټولوخیرونواوبرکتونوکښ لوئی اوعظیم برکت نزول دَقرآن وو،ځکه چه داذریعه دَسعادت ابدیه،دینیه اودنیویه دَپاره ده نودَدې وجي نه،تخصیص دَنزول قرآن اوکړې شو،او"فرقان"مصدردې په معنیٰ دَ"فرق"راویستلوسره،دَمعنیٰ لغوی په اعتبارسره دَدي اطلاق په ټولوکتب سماویه باندې کیږی،لکه په سورة الانبیآء آیت نمبر(۴۸)کښ په تورات باندې شویدې،اوپه اصطلاح دَشرعیت محمدیهﷺ کښ دَدې اطلاق په قرآن پاك باندې صرف کیږی،اوقرآن مجیدته"فرقان"ځکه وئیلي کیږی چه پدې سره دَحق اوباطل تمیزراځی اودغه شان اهل حق دَاهل باطلونه جداکوی.

**فائده**:اکثراهل لغت وائی چه دَفرق اوتفریق(مجردواودَمزیدو)په مینځ کښ څه فرق په اعتباردَمعنی سره نیشته دې لیکن ابن العربیؒ فرمائی چه "فرق"یعنی په تخفیف سره په معانیوکښ استعمالیږی،اوپه تشدیدسره په اعیانوکښ استعمالیږی یعنی په کوم ځائ کښ فرق حسی نه وی بلکه معنوی وی نوهلته به"فرق"په تخفیف سره استعمالیږی اوکوم ځائ کښ چه فرق حسی وی نوهلته به په تشدیدسره استعمالیږی،لکه فرقتُ بینَ الکلامین(په تخفیف سره)اوفرّقت بینَ العبدین(په تشدیدسره)اوقرآن چونکه فرق حسی هم راولي چه اهل حق دَاهل باطلونه،جداکوی،اوفرق معنوی هم راوَلي نودَدی وجي نه دواړه صیغی دَقرآن دَپاره استعمالیدې شی.

﴿لِيَكُونَ لِلْعَٰلَمِينَ﴾داغرض دَانزال دې اوضمیرراجع دې یا"فرقان"ته اویا"عبد"ته

او "عالمين "نه مراد انسانان اوجنات دی اودا ايت دليل دې پدي چه قرآن اخرى كتاب دې اونبي پاك ﷺ اخري نبى دې اونبوت ئي عام دې ټولو انسانانو اوجناتو ته. او ﴿نَذِيرًا﴾ په معنىٰ دَاسم فاعل يعنى "منذر "سره دي اويا په معنىٰ دَ "انذار "سره دې، لكه "نكير "په معنىٰ دَ "انكار "سره راځي. اوكه څوك اشكال اوكړى چه بركت خوكثرت دَخيرته وئيلي كيږى اوانذار خومنافي دې دَخيرسره ځكه چه انذارخوموجب دَغم اودَخوف دې، نودَايت صدراواخيركښ مناسبت نيشته دې، نوجواب ورنه دادې چه انذارذريعه دَلوئى سعادت اخرويه ده ځكه چه دَدې په وجې سره مخلوقات دَالله ﷻ دَنافرمانئ نه اودَمعاصيونه بچ شى، لكه څرنګه پلاردَخپل بچى سره محبت وي اودَهغى محبت په بنيادپلاربچي دَهغه شى نه يره وي كوم څيزچه دَبچى دَپاره دَنقصان اوخطري ذريعه ګرځى، نودَالله ﷻ محبت دَخپل مخلوق سره ډيرزيات دې، نوچه كوم كارمخلوق دَپاره دَنقصان ذريعه ګرځى، نوالله ﷻ ورته دَهغې نه يره وركوى، نو "انذار "هم يولوئى سعادت اوخيردې نوځكه ئى ذكركړو.

﴿الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ﴾ دادويم دليل عقلي دې، يعنى دَاسمانونواوزمكي تصرف اوبادشاهى دَالله ﷻ ده، اوداټول مخلوقات دَالله ﷻ مملوك دى دوئ ته الله ﷻ دَبركتونو وركولواختيارنه دې وركړې، ﴿وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا﴾ "ولد "نه مرادنائب دې اوداردد دې په يهوديانو، عيسائيانواومشركينوباندې چه يهوديانوبه حضرت عزير ﷺ ته دَالله ﷻ ولداو نائب وئيلو، عيسائيانوبه حضرت عيسىٰ ﷺ ته اومشركينوبه فرشتونه دَالله ﷻ اولادوئيلو ﴿وَلَمْ يَكُن لَّهُ شَرِيكٌ﴾ دا رد دې په مجوسيانوباندې، يعنى الله ﷻ دَځان سره څوك هم شريك اوحصه دارندې جوړكړې.

﴿وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ﴾ دادريم دليل عقلي دې، دَالله ﷻ دَذات اوصفاتونه علاوه هرڅه دَالله ﷻ مخلوق دي اومخلوق دَخدائى صفاتوباندې نه شى متصف كيدلې، اوهركله چه دا توهم كيدلې شوچه خالق دي دَهرڅه الله ﷻ وى ليكن بل چاته دې هم اختيارورى چه پدې نعمتونوكښ دې كمي اوزياتي كولې شى، نوجواب ورنه اوشوچه ﴿فَقَدَّرَهُ تَقْدِيرًا﴾ يعنى

څرنګه چه الله ﷻ خالق دې اودَهرشی پیداکوونکې دې نودغه شان الله ﷻ دَهرڅیزاندازي مقررکوونکې هم دې، دکمي اوزياتي ورکولواختيارئی هم چاته ندې ورکړې.

وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً لَّا يَخْلُقُوْنَ شَيْـًٔا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ

اونیولی دی مشرکانوماسِویٰ دَالله نه نورخدایان چه نشی پیداکولې هیڅ څیزبلکه دوئ پخپله مخلوق دی

وَلَا يَمْلِكُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا وَّلَا يَمْلِكُوْنَ مَوْتًا وَّلَا حَيٰوةً

اوندی مالکان لپاره دَخپلوځانونودَضررلری کولو اونَه نفعې رسولو،او ندی مالکان دَمړکولواونه دژوندی کولو

وَّلَا نُشُوْرًا ﴿٣﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اِفْكُ ِۨافْتَرٰىهُ

اونه بیاژوندی کولودَمړو«دَقبرنه».اووائی کافران چه ندې داقرآن مګر دروغ دی چه دی پیغمبردَځان نه جوړکړیدې

وَاَعَانَهٗ عَلَيْهِ قَوْمٌ اٰخَرُوْنَ ۚ فَقَدْ جَآءُوْ ظُلْمًا وَّزُوْرًا ﴿٤﴾ ۚ وَقَالُوْٓا

اومددکړیدې دَده پدې دروغوکښې یوقوم بل،یقیناًدوئ راتلل اوکړل ډیرظلم اودروغونه،اووائی دوئ چه داقرآن

اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلٰى عَلَيْهِ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ﴿٥﴾ قُلْ

دروغوقصی دَپخوانوخلقودی چه په بل چائ لیکلې دی اوپه ده لوستلې کیږی سهاراوماښام،ته ورته اوایه

اَنْزَلَهُ الَّذِيْ يَعْلَمُ السِّرَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

«داسی نده بلکه» نازل کړیدې داقرآن هغه الله چه عالم دې په هرپټ څیزچه په اسمانونوکښې دې اوپه زمکه کښې دې.

اِنَّهٗ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿٦﴾

بې شکه هغه بخونکې رحم کونکې دې.

﴿وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ﴾ دا زجردې په مشرکانوباندې اودَدې په ضمن کښې څلورم دلیل عقلي هم ذکرکیږی، یعنی برکات ورکونکې ذات صرف الله ﷻ دې، اوبل څوك ندې ځکه چه برکات ورکولودَپاره کوم صفات ضروري دی هغه صفات صرف په الله ﷻ پوري خاص اوبل چاکښې نیشته دې، من جمله دَهغې نه شپږ(٦)صفات دلته ذکرکیږی.(١)خلق کول(٢)نفع ورکول(٣)ضرر

دفع کول(۴)مرګ ورکول(۵)ژوندورکول(۶)دوباره راژوندي کول

﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ﴾دااوله شکوی ذکرکیږی چي مشرکان وائی چه دَنبي ﷺ دادعوه چه برکات ورکونکي صرف اللهﷻ دي دادَه خودساخته خبره ده اودَاللهﷻ دَطرف نه.نه ده.ای اخترعه رسول اللهﷺ ولم ینزل علیه علیه السلام(روح)﴿وَأَعَانَهُۥ عَلَيۡهِ قَوۡمٌ﴾دادویمه شکوی ده

ٔقوم اخرون ٔ نه مرادیهودیان دی،چه دَنبي پاکﷺ مجلس ته به راتلل څنی مسلمانان شوی وو،اوځني به هسی راتلل،نومشرکانو به وئیل چه دغه کسان چه اوس مسلمانان شویدي اویاهسی دَنبیﷺ مجلس ته حاضریږی نودوئ دي پیغمبرﷺ ته دَزړو امتونو حالات بیانه وی اودي ئی پخپله ژبه کښی بیانقل کوی،اوبعض وائي چه دَ ٔقوم اخرون ٔنه مرادټول مؤمنان دی

﴿فَقَدۡ جَآءُو ظُلۡمٗا وَزُورٗا﴾داادخال الهی دي ٔفاء ٔدَترتب دَپاره ده اوپه ماقبل کښی دوه(۲)شکوی ذکرشوی نوپه هغې باندي دوه(۲)امرین مرتب کیږی یوظلم اوزور،نو ٔظلم ٔمرتب دي په اول کلام ددوئ باندي اوظلم وئیلی کیږی وضع الشی فی غیرمحله،ته اوتنوین پکښی تفخیم دَپاره دي،یعنی دوئ خالص حق ته خودساخته دروغ وائی،حالانکه داقرآن داسي معجزکتاب دي چه دَدوئی لوئ لوئی فصحاوُدَدي دَمقابلي کولونه عاجزدي،نوداسي معجزکلام ته افتراء وئیل ظلم عظیم دي،او ٔزور ٔمرتب دي په دویم کلام دَدوئی باندي، او ٔزور ٔپه لغت کښی میلان ته وئیلی کیږی اوعرف کښی ئی اطلاق په هغه کلام باندي کیږی چه په دروغو کښی خپل انتهاء ته رسیدلي وی،

﴿وَقَالُوٓاْ أَسَٰطِيرُ ٱلۡأَوَّلِينَ﴾ داخلورمه شکوه ده چه دي کفاروبه وئیلوچه داقرآن دَپخوانو خلکودَدروغو قصي(افساني)دی.﴿ٱكۡتَتَبَهَا﴾داپه معنیٰ دَ ٔاستکتبها ٔسره دي یعنی دَبل چانه طلب دکتابت کول اوبل چاته وئیل چه(اولیکه)اودائی ښکه وئیلوچه نبیﷺ به خپله لیکل نه شو کولي.﴿فَهِيَ تُمۡلَىٰ عَلَيۡهِ﴾یعنی دي خپله لوستلي هم نه شی بلکه بل څوک ئي پري لوئي دَدي دَپاره چه یادئی کړی﴿بُكۡرَةٗ وَأَصِيلٗا﴾دایاکنایه ده دکل اوقاتونه اویادَاکثراوقاتونه

او یا ورنه حقیقةً وخت دَصبائی او بیګائی مراد دي ﴿قُلْ أَنزَلَهُ الَّذِي﴾ داجواب دَدرې(۳) وارو شکو دي، خلاصه دَجواب داده چه داقرآن چه دَدې دعوې ذکرکوي چه برکت ورکونکي صرف دَالله ﷻ ذات دي، دادَبوبشرخود ساخته کلام ندي اونه دَچاپه اعانت سره دي، اونه دَمخکنو خلکو دَدروغو قصې دي، بلکه دادَهغه ذات دَطرف نه نازل کړې شوې کتاب دې چه هغه دَټولو مخلوقاتو په خفيه رازونو باندې واقف او عالم دې اودَدې وجې نه داکلام ئې معجزګرځولې دې، او کچرته دادَدغې ذات دَطرف نه، نورې نوبيابه معجزهم نه وو

﴿يَعْلَمُ السِّرَّ﴾ هرکله چه الله ﷻ په پټورازونو باندې خبردې نو په ښکاره څيزونو باندې په طريق اولی سره عالم دې نودَدې وجې نه "الجهر" ذکرنه کړو،

﴿إِنَّهُ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ په دې کښې ترغيب دې منکرينوته دَتوبې ويستلو اودَانابت الی الله کولو، چه دَګناهونو کذب، عنادباوجود کچرې دوئی توبه اوباسی نو الله ﷻ به ورته بخښنه اوکړی، ابن کثير رحمه الله دَحسن بصری رحمه الله نه نقل کړيدي چه، اوګورئ کرم اوجود دَالله ﷻ ته، چه خلك دوستان دَالله ﷻ وژنی او الله ﷻ دوئ ته دَتوبې اورحمت دعوت ورکوی(ابن کثير).

| |
|---|
| وَقَالُوا مَالِ هٰذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ لَوْلَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ |
| او وائی دوئ داڅنګه رسول دې چه خوری خوراك اوګرځي په بازارونو کښې، ولې نه شی نازلولې ده ته يو فرشته |
| فَيَكُونَ مَعَهُ نَذِيرًا ۝ أَوْ يُلْقَىٰ إِلَيْهِ كَنزٌ أَوْ تَكُونُ لَهُ جَنَّةٌ يَأْكُلُ مِنْهَا ط |
| چه هغه وی دده سره يرونکې(بادی ګاډ) ياغورځولې کيدې ده ته خزانه دَاسمان نه(ياوی دَ لره يوباغ چه خورلې ئی دَهغې نه |
| وَقَالَ الظّٰلِمُونَ إِنْ تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلًا مَّسْحُورًا ۝ اُنْظُرْ |
| او وائی مشرکان(مؤمنانوته)اتباع نه کوئ تاسومګردَداسې سړی چه سحرېرې کړې شويدې، اوګوره اې پيغمبره |
| كَيْفَ ضَرَبُوا لَكَ الْأَمْثَالَ فَضَلُّوا فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا ۝ |
| څنګه بيانوی دوئ تاله مثالونه پس ګمراهان شول دوئ نوطاقت نه لری دَلارې دَهدايت |

﴿وَقَالُواْ مَالِ هَـٰذَا ٱلرَّسُولِ﴾داخلورمه شكوه اوشبهه ده دكفارودطرف نه په نبوت دنبی پاكﷺ باندې، دوئی په وئیلوچه داپیغمبرﷺ زمونږپشان خوراك ته محتاجه دې اودضرریاتو دپاره بازارته ځی كچرې دي پیغمبروې نودې به خوراك،څكاك ته نه وومحتاج.اودكسب معاش دپاره به بازارته نه تللو .ددوئی دطرف نه نبی پاكﷺ ته الرسول وئیل استهزاء وو.

﴿لَوْلَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ﴾داپنځمه شكوی اوشبهه ده یعنی كچری دې رسول وې نوددہ سره یوه فرشته پكاروه چه ددہ سره گرځیدلې اوددہ دنبوت تصدیق ئي كولې اوخلك ئي دده دمخالفت نه یره ولې.﴿أَوْ يُلْقَىٰٓ إِلَيْهِ كَنزٌ﴾داشپږمه شكوه اوشبهه ده یعنی كچري دې پیغمبروې نودخوراك،څكاك احتیاج نه دبي فكره كیدلودپاره پكارده چې دده سره خزاني وې یاورله یوزبردست باغ وې چه بنه بي غمه،په ارام اوپه عیش وعشرت سره ئی ژوند تیرولې.

خلاصه ددې ټولوشبهاتوداده چه زمونږاوددې پیغمبریه مینځ كښ هیڅ فرق نیشته دې،مونږخوراك كوو،دې هم كوی،مونږطلب دمعاش دپاره بازارته ځو،دې هم داتكلیف اوچتوی،مونږبغیردفرشتي نه گرځو،دې هم گرځی،زمونږه هم خزاني اولوئی لوئی باغات نیشته دې اوددہ هم نیشته دې،نودې څرنگه پیغمبرشو.﴿وَقَالَ ٱلظَّـٰلِمُونَ﴾داددې مذكوره شبهاتوسره متعلق دې،چه كله به دوئی ته اوئیلې شوچه ددې پیغمبرامتیازستاسونه اگرچه دنیوی مال ومتاع وغیره كښ نیشته دې،لیكن امتیازئي په قرآن سره دې چه یوفصیح بلیغ كلام دې اوذات ددې پیغمبراواخلاق كریمانه دده متأثركن دی،نودې ظالمانوبه وئیل مسلمانانوته چه دې خوساحردې اوتاسوديوساحراتباع كریده(نعوذبالله)وضع داسم ظاهرچه الظالمون دې په ځائی دضمیرباندې دپاره دتنبیه پدې خبره چه دومره فصیح او بلیغ،اومعجزكلام لوستونكې ته ساحروئیل بدترین ظلم دې مسحور په معنی دساحرسره دې اویا مسحور په خپلې معنی سره دې یعنی داسې خبري كوی نوپده باندې سحركړې شویدې اویا مسحور ماخوذدې د سحرالطعام نه نومسحورپه معنی دمحتاج سره دې خوراك ته.

﴿ٱنظُرْ كَيْفَ ضَرَبُواْ﴾دازجردې په مشركینوباندې،او كوم مثالونه چې پیغمبرﷺ لپاره پیش كوې هغې باندې تعجب دې یعنی ته خواوگوره دوئی څرنگه باطل مثالونه اوصفتونه

تاته ثابته وی، کله وائی چه ساحردې اوکله وائی مسحوردې، کله وائی چه مجنون دې اوکله وائی چه شاعردې، کله وائی کاهن دې اوکله وائی کاذب دې، نودوئی پدې القابولګولوکښې سرګردانه دی، یولقب هم دَدوئی والاپه نبی پاکﷺباندې نه چسپان کیږی ﴿فَضَلُّوا فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا ﴾یعنې دَدې غلطو اوباطلو مثالونو دَوجې نه په دوئی باندې مهرجباریت ثبت شو اوهدایت استعداد ورنه سلب شو.

تَبٰرَكَ الَّذِيْٓ اِنْ شَآءَ جَعَلَ لَكَ خَيْرًا مِّنْ ذٰلِكَ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ

برکت ورکونکې دې هغه الله چه کچرته اوغواړی دربه کړی تاته غوره دَدغې نه باغونه چه بهیږی به

مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۙ وَيَجْعَلْ لَّكَ قُصُوْرًا ١٠ بَلْ كَذَّبُوْا بِالسَّاعَةِ ۣ وَاَعْتَدْنَا لِمَنْ

دَلاندې دَهغې نه نهرونه اودربه کړی تاته بنګلې، بلکه تکذیب کړیدې کافرانوپه قیامت، اوتیارکړیدې مونږهغه چالره چه

كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيْرًا ١١ اِذَا رَاَتْهُمْ مِّنْ مَّكَانٍۢ بَعِيْدٍ سَمِعُوْا لَهَا

تکذیب ئې کړې وی په قیامت ګرم اوردَجهنم، کله چه اووینی دغه اُوردوئ دَخائ لرې نه نووابه وری دوئ هغې لره

تَغَيُّظًا وَّزَفِيْرًا ١٢ وَاِذَآ اُلْقُوْا مِنْهَا مَكَانًا ضَيِّقًا مُّقَرَّنِيْنَ دَعَوْا

غرمبارې اوغوریدل اوکله چه اوغورځولې شی دوئ دَدوزخ نه په تنګ ځائ کښې ترلې شوی نواوآزونه به کوی

هُنَالِكَ ثُبُوْرًا ١٣ لَا تَدْعُوا الْيَوْمَ ثُبُوْرًا وَّاحِدًا وَّادْعُوْا ثُبُوْرًا كَثِيْرًا ١٤

هلته هلاکت ته، «فرشتې به ورته اووائی» مه غواړئ نن صرف هلاکت یوبلکه اوغواړئ هلاکتونه ډیر.

﴿تَبَارَكَ الَّذِيْٓ اِنْ شَآءَ ﴾داپه دویم خلې دعوه دَسورت ذکرکیږی اودَدې برکاتونه، مرادبرکات اخرویه دی یعنی دَجهنم نه بچ کول اودَجنت نعمتونه ورکول، اوبطور لف، نشر غیرمرتبه سره دَشپږمې شکوی اوشبهې جواب دې، چه مشرکینوشبهه کوله، چه تاسره باغات، خزانې اودنیوی نعمتونه ولې نشته دې؟ نوجواب ورنه اوشولوچه ﴿اِنْ شَآءَ جَعَلَ لَكَ ﴾ او"ان" په معنی دَ"اذا" سره دې ځکه چه دَنبیﷺ دَپاره نعمتونه دَجنت دَالله ﷻ دَطرف نه یقینی

دی،اوماضی په معنیٰ دَمستقبل سره دې،نودآیت مقصد دادې چه په دنیاکښ ستادَپاره خزانې اوباغات نیشته دې نوپدیکښ دَالله ﷻ لوئی حکمت دې،چه دَدې دنیانعمتونوپه بدله کښ به الله ﷻ تاته په اخرت کښ خائسته باغات اولوئی لوئی جنتونه درکړی.اویاورنه مراددنیوی باغات اوبنګلې دی،اودآیت مقصددادې کچری الله ﷻ اوغواړی نوپه دنیاکښ به تاته لوئی لوئی باغات اولوئی لوئی بنګلې درکړی لیکن الله ﷻ دخپل حکمت بالغه دَوجې نه،داسې نه کوی اونبی ﷺ هم نه غوختلې،ابن کثیر رحمه الله،ابن جریر رحمه الله وغیرهمادَحضرت خثیمه رضی الله عنه روایت نقل کړیدې چه نبی پاک ﷺ ته یوځلې دَالله ﷻ دَطرف نه اوئیلې شوکه ته غواړې نودَزمکې خزانې به تاته درکړې شی،داسې خزانې چه نه به ستانه مخکښ چاته ورکړې شوی وی،اونه به ستانه ورستوچاته ورکړې شی اوکوم نعمتونه اواجرستادَپاره په آخرت کښ دي په هغې کښ به هم څه کمې نه راځی،نبی پاک ﷺ اوفرمائیلواې الله ﷻ څمادَپاره داټول نعمتونه آخرت له جمع کړه.

﴿بَلْ كَذَّبُوا بِالسَّاعَةِ﴾دَدې آیت په اولې جملې کښ دَشبهاتووجه بیانیږی،او"بل"دَپاره دَاضراب دې نوداانتقال دې،بیان دَعلت داعیه دَشبهاتواودَتکذیب ته،چه داکفارداشبهات څکه کوی چه دوئی دَاخرت نه منکردی،اویا"بل"دَپاره دَترقی دې،اوداترقي ده دَدوئی په جنایاتواوبدافعالوکښ چه دوئی صرف داجرم ندې چه شبهات کوی بلکه دآخرت دَوقوع نه هم منکردی،﴿وَأَعْتَدْنَا﴾په دي دویمه جمله کښ تخویف ذکرکیږی،اوداآیت دلیل دې پدې چه جهنم پیدا کړې شویدې اودامذهب دَاهل سنة والجماعت دې.

﴿إِذَا رَأَتْهُم مِّن مَّكَانٍۭ﴾دادَجهنم اودَجهنمیانوځنې حالات ذکرکیږی،اوضمیرمستترراجع دې"نار"ته او"نار" چونکه مؤنث سماعی دې نودَ دې وجې نه فعل مؤنث ذکرکړې شو،اومرادپه "مکان بعید"سره هغه اقصیٰ اولرې ځائ دې چه دَهغې نه لیدل ممکن دی،بعضودَهغې حدسل(۱۰۰)کاله مسافت اوبعضوپنځه سوه کاله ذکرکړیدي،

﴿سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا﴾دابل حالت دَجهنم ذکرکیږی، او"تغیظ"وئیلې کیږی اظهاردَهغه سختې غصې ته چه په زړه کښ پټه وی،نواعتراض واردیږی چه تغیظ خوقابل دَسماع نه دې یعنی داوریدلووالاشی ندې،نو څرنګه به جهنمیان واوری؟

نویو(۱)جواب ورنه داکړې شویدې چه داعبارت په حذف دَمضاف سره دې،چه هغه لفظ دَصوت دې ای سمعوا صوت تغیظها،چه هغه غړمبارې،دې،
دویم(۲)جواب ورنه دادې چه دلته فعل مقدردې چې هغه راوا دې،او تغیظاً معمول دَفعل مقدردَپاره دې،نوتقدیردکلام داسې دې راو تغیُّظاً وسمعوا زفیراً او(۳)دریم جواب ورنه دادې چه سمعوا په معنیٰ دَ ادرکوا سره دې یعنې ادرکوالهاتغیظاوزفیراً یعنی دوئی به معلوم کړی غصه دَهغه، او اوآزونه دَهغه،او زفیر نه دلته مرادسخت قسم آوازونه دی.
**فائده**:دَاهل سنة والجماعة مسلك دادې چه نسبت دَرؤیت جهنم ته داپه حقیقت باندې محمول دې یعنی دَجهنم دَپاره سترګې دی اوهغه پرې کتل،لیدل کولې شی اګرچه کیفیت ئې مونږه ته تفصیلاً نه دې معلوم،اودغه شان غړمبارې کول،او اوازونه ویستل اوخبرې کول په حقیقت باندې محمول دی او الله ﷻ به جهنم ته احساس اوشعورورکړی،اودیرنصوص اواحادیث پدې باندې دال دې،اومعتزله وائی چه دَدینه مرادمجازی معنی ده اوهغوئ ظاهردآیت تاویل کوی خلاف ظاهرته،اوداوائی چه رؤیت دَپاره حیات شرط دې اوجهنم کښې حیات نیشته دې، نولهذادَجهنم دپاره به رؤیت هم نه وی حقیقةً،نودلته یامجازفی الحذف دې نو ﴿إِذَا رَأَتْهُم﴾نه مراد اذارأت الخزنة هم دې،اوبعضوپکښې تاویل داسې کړیدې چه دَ رؤیت نه مراد رأی یعنی مخامخ کیدل دی،یعنی چه کله دوئی جهنم ته په دومره اندازه کښې مخامخ شی چه هغه فاصلې کښې یوکتونکې کتل کولې شی نو﴿سَمِعُوا لَهَا﴾لیکن قول دَاهل سنت والجماعة زیات غوره دې اوموافق دې دکتاب الله اواحادیثوسره.

﴿وَإِذَا أُلْقُوا مِنْهَا﴾پدیکښې حالت دَجهنم اودَجهنمیانوذکرکیږی،اوپه تنګ ځائ کښې غورځول دَعذاب دَشدت دَپاره به وی،ځکه چه وسیع مکان کښې څه نه څه راحت وی،اوتنګ ځائې تفسیردَنبی کریمﷺ نه په حدیث کښې داسې منقول دی چه دوئی به په داسې تنګ ځائ کښې به واچولې شی لکه میخ چه په دیوال کښې په زورټومبلې شی،﴿مُقَرَّنِينَ﴾داحال دې دَضمیردَجمع دَ﴿أُلْقُوا﴾نه دَجهنمیانودې او﴿مُقَرَّنِينَ﴾نه یامرادیادادې چه دَدوئی لاسونه به شاطرف نه څټ سره تړلې شوی وی،اویاورنه مراددادې چه دوئی به دَخپلوخپلوشیاطینوسره تړلې،شوی

وی، ﴿دَعَوْا هُنَالِكَ ثُبُورًا﴾یعنی دوئی چه کله جهنم ته اوغورځولې شی نودوئی به چیغې

اوباسی چه واثبوراه یعنی اې هلاکته! راشه﴿لَا تَدْعُوا الْيَوْمَ ثُبُورًا﴾داجواب به ورته دجانبه

دملائکونه،وی، چې یوځل نه باربار مرګ غواړئ،ځکه چه مرګ غوختلو سبب عذاب دې.او

هغه عذاب څه وقتې نه دې او نه یو قسم دې بلکه مختلف قسمونه ئې دی.نو اوس

یوځل نه بلکه باربارېی غواړئ،خوهغه به تاسو نه راځي ،چې نجات اومندئ،

﴿ثُبُورًا كَثِيرًا﴾مرګ یوځل دې خو کثیرورته په اعتبار د غوختوسره وئیلې شوی دی.ځنې

مفسرینودآیت مطلب داسې بیان کړیدې چې فرشتې به ورته اوائې چې داخه دیوورځ خبره

خونده او نه په تاسو صرف دا یوقسم عذاب دې چه ختم به شی،او ورنه خلاص به

شئ،صبراوکئ لاخودینه هم سخت سخت مختلف عذابونه مخکښ راروان دی،نوصرف

دیوعذاب ته ژړامه کوئ دې تېولو عذابونوته ژړاکوئ.دې تفسیر مطابق((کثیرا)) ورته مختلف

انواعو اعتبارسره وئیلې شوی دی..

| |
|---|
| قُلْ اَذٰلِكَ خَيْرٌ اَمْ جَنَّةُ الْخُلْدِ الَّتِيْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ ۭ كَانَتْ لَهُمْ جَزَآءً |
| ته اووایه آیادا جهنم ښه دې اوکه جنت دهمیشه اوسیدلو ،هغه چه وعده ئ کړې شویده دپرهیزګارانوسره،وی به جنت دوئ لره بدله |
| وَّمَصِيْرًا ۞ لَهُمْ فِيْهَا مَا يَشَآءُوْنَ خٰلِدِيْنَ ۭ كَانَ عَلٰى رَبِّكَ |
| اوځائ دورتلو ،وی به دوئ لره په جنت کښ هغه څه چه ددوئ خوښ وی همیشه به وی پکښ ،دې ورکول جنت په رب ستاباندې |
| وَعْدًا مَّسْـُٔوْلًا ۞ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ وَمَا يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ |
| وعده چې غوښتلې شوې ده.اوپه هغه ورځ چه راجمع کړی الله ﷻ دوئ اوهغه چه دوئ ئی عبادت کوی ماسوی دالله نه |
| فَيَقُوْلُ ءَ اَنْتُمْ اَضْلَلْتُمْ عِبَادِيْ هٰٓؤُلَآءِ اَمْ هُمْ ضَلُّوا السَّبِيْلَ ۞ |
| نوالله به ورته وائی آیاتاسوګمراه کړی وو ځمادابندګان اوکه دوئ پخپله ګمراه شوی وو دسمی لاری توحید نه |

﴿قُلْ أَذَٰلِكَ خَيْرٌ﴾پدې آیاتونوکښ بشارت اخروی دې او ذلك سره اشاره ده جهنم اودهغې

احوالوته،اوکه څوك اشکال اوکړی چه خیر اسم تفضیل دې اوقانون په اسم تفضیل کښ

دادې چه مفضل اومفضل علیه په نفس فعل کښې شریك وی، نودَقانون مطابق دآیت دَظاهرنه دامعلومیږی چه په جهنم کښې هم نفس ِخیر ِشته دې اگرچه ډیرندې اوحالانکه په جهنم کښې بالکل خیرنشته دې،دغه شان دَجهنم ِبې خیری ِمتیقنه ده اوهرچاته معلومه ده نوپه صورت دَاستفهام کښې راوړلوڅه ضرورت وو،چه دادلالت په تردداوعدم تیقن باندې کوی.

(۱)نو امام رازی رحمه الله ورنه جواب کړیدې چه استفهام او تفضیل ِدواړه دَتقریع یادَتوبیخ سره دَتهکم نه،دپاره دی اودَدی مثال داسې دې لکه دَیوسړی دَپاره غلام وی داسړې هغه ته ښه ډیرمال،بنگلی اونوراسباب ورکړی،اوهغه غلام سرکشی اونافرمانی اختیارکړی نومالك ورنه هرڅه واپس واخلی اوسخته سزاورله ورکړی،اوبیاورته اوائی چه داحالت غوره دې اوکه دا،حالانکه هرڅوك پدې پوهیږی چه هغه اول حالت غوره وو،اوپه دې دویم حالت کښې هیڅ خیرنیشته دې

(۲)او بعضوورنه جواب کړیدې چه ِخیر ِدلته په تفضیل کښې ندې مستعمل،بلکه دَعربودَعام عادت مطابق ذکرشویدې چه عرب کله دَیوشی خصوصیت اوبهتری بیانوی اودَمقابل څیزنه بیانه وی نوتعبیرورنه په صیغې داسم تفضیل سره کوی، خوزیادت علی الغیرپکښې معتبرنه وی.

اوتوصیف دَ ِجنت ِپه ِالخلد ِسره دَپاره دَبیان دَصفت کمال دې،لکه ِالخالق البارئ ِ.

﴿كَانَتْ لَهُمْ جَزَآءً وَمَصِيرًا﴾صیغه دَماضی یعنې کانت،دَوجې تیقن نه راوړې شویده یعنی داجنت چه دَانسان دَنیك اعمالوبدله ده دَالله ﷻ دَطرف نه دَمؤمن سره داسې متیقنه وعده ده چه گویاچه داواقع شوی ده،اودلته اکتفاء په صرف ِجزاءً ِاونه کړې شوه بلکه ِمصیراً ِورسره هم ذکرکړې شوځکه جزاء مستلزمه ِمصیر ِلره نه ده،لکه په دنیاکښې کله یوکس ته دَیوکارپه بدله کښې باغ وغیره میلاؤشی،نوپه هغې کښې استوگنه،لری خبره بلکه کله کله ئی اوهم نه گوری.

﴿لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَآءُونَ﴾ددینه مرادهغه نعمتونه دی چه دَجنت سره مناسب دی اوکوم نعمتونه چه صرف ددنیاسره مناسب دی اوجنت سره مناسب ندی نودَهغې خواهش به الله ﷻ دَجنتی دَزړه نه ختم کړی لکه خواهش دَتوالداوتناسل شو،اوپدیکښې اشاره ده چه ټول خواهشات دَانسان والاصرف جنت کښې پوره کیږی،﴿كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ﴾ضمیردَ ِکان ِراجع دې

جنت اودهغې نعمتونو ته،او﴿وَعۡدٗا مَّسۡـُٔولٗا ﴾كنايه ده(۱) دوعدې دعظمت نه يعنى دا داسې عظيمه وعده چه ددې لائقه ده چه غوښتنه ئې اوكړې شي.اى حقيقًاان يسئل ويطلب(روح) اويا(۲)د"مسئولاً"نه مراددادې چه مؤمنان ئې په خپلو دعاګانو كښې غوښتنه اوسوال كوى لكه په سورة آل عمران ايت نمبر(۱۹۴)كښې دى،ياورنه(۳)مراد دادې چه ملائك ئې دالله ﷻ نه دمؤمنانو دپاره غواړى اوسوال ئې كوى لكه سورة المؤمن ايت نمبر(۸)كښې دى.

او(۴)بعض فرمائى چه قيامت په ورځ به متقيان ددې سوال اومطالبه كوى لكه ابن جريرطبرى رحمه الله اوابن كثير رحمه الله دحضرت ابوحازم رحمه الله نه نقل كړيدى فرمائى چې كله دقيامت ورځ وى نومؤمنان به اوائى،ربناعملنالك بماامرتنافانجزلناماوعدتنا.اې الله!مونږستا درضادپاره هغه عملونه كړيدى دكوموچه تاامركړې وو،نوكومه وعده چه تاكړې وه هغه پوره اوفرمايه.

(۵)اويا"مسئولاً"په معنىٰ دواجب سره دې،ليكن ددې وجوب نه مرادوجوب تفضلى دې ځكه حقيقتا وجوب اومسئوليت په الله ﷻ باندې نيشته دې.

﴿وَيَوۡمَ يَحۡشُرُهُمۡ ﴾داتخويف اخروي دې اود﴿وَمَا يَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾نه مراد دلته دقرينې عقليې دوجې نه انبياء كرام،ملائك اواولياء الله دى چه دهغوئى عبادت كړې شوې وو،اودهغوئى په باره كښې عقيده ددې وه چه دوئى بركات وركوونكى دى،اودغه جاهلان اومشركان خلك داهم وائى چه مونږدوئى عبادت ځكه كووچه،دوئى مونږته حكم كړيدې چه تاسوزمونږعبادت كوئى،نوقيامت په ورځ به الله ﷻ په مشركانو باندې الزام دپاره ددې نيكانوبندګانوبه پوښتنه اوكړى چه آياځماداېندګان تاسوګمراه كړيدى،اوتاسودوئى ته وئيلى ووچه زمونږ عبادت كوئى،دسورة المائده په اخيركښې،ددغه شان سوال اوتپوس دحضرت عيسىٰ عليه السلام په باره كښې ذكردې، اومرادپه﴿أَضۡلَلۡتُمۡ عِبَادِي ﴾ سره دعوت وركول دى ګمراهئ طرف ته﴿أَمۡ هُمۡ ضَلُّواْ ٱلسَّبِيلَ ﴾ دادقبيلې دحذف لايصال نه دې،په اصل كښې داسې دې(ام هم ضلّواعن السّبيل)اومقصددآيت دادې چه ددوئى په بې لاره كيدلو كښې ستاسوڅه دخل نيشته دې بلكه دوئى ځانونه پخپله بې لارې كړيدى،چه اعراض ئې كړيدې دپيغمبراودكتاب

نه .چه دا ذریعه دګمراهئ ده اوددې آیت نه استدلال کول پدې چه انسان دَخپلو افعالو اختیار یو ،یادَافعال سیئه خالق دې،باطل استدلال دې.

| |
|---|
| قَالُوْا سُبْحٰنَكَ مَا كَانَ يَنْۢبَغِيْ لَنَآ اَنْ نَّتَّخِذَ مِنْ دُوْنِكَ مِنْ اَوْلِيَآءَ وَلٰكِنْ |
| نوهغوئ به اووائی پاکی ده تالره دَشریك نه.نده مناسب مونږلره چه مونږاونیسوبې دَستانه نوردوستان لیکن |
| مَّتَّعْتَهُمْ وَاٰبَآءَهُمْ حَتّٰى نَسُوا الذِّكْرَ ۚ وَكَانُوْا قَوْمًۢا بُوْرًا ⑱ |
| تاښه معاش ورکړې وو دوئ اوپلارانودَدوئ ته تردې چه هیرکړودوئ نصیحت.اووُدوئ قوم هلاك شوې. |
| فَقَدْ كَذَّبُوْكُمْ بِمَا تَقُوْلُوْنَ ۙ فَمَا تَسْتَطِيْعُوْنَ صَرْفًا |
| نوالله تعالی به کافرانو ته اوائ:په تحقیق سره تاسوبې دروغژن ثابت کړلئ معبودانو په خپلو تولوخبرو کښې،نونه موشته وس دَعذاب لرې کولو |
| وَّلَا نَصْرًا ۚ وَمَنْ يَّظْلِمْ مِّنْكُمْ نُذِقْهُ عَذَابًا كَبِيْرًا ⑲ وَمَآ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ |
| او نه دَمدد اوچا چه ظلم اوکړو ستاسونه نواوبه څکو هغه ته عذاب لوئ،اوندی لیږلی مونږمخکښې ستانه دَرسولانونه |
| اِلَّآ اِنَّهُمْ لَيَاْكُلُوْنَ الطَّعَامَ وَيَمْشُوْنَ فِي الْاَسْوَاقِ ۗ وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ |
| مګرهغوئ وُچه خوړلوبه ئې خوراك اوګرځیدل په بازارونوکښې،اوګرځولی دی مونږبعض ستاسونه |
| لِبَعْضٍ فِتْنَةً ۗ اَتَصْبِرُوْنَ ۚ وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيْرًا ⑳ |
| دَپاره دَنورو امتحان. چه آیاتاسوصبرکوئ اوکه نه کوئ، اودې رب ستالیدونکې. |

﴿قَالُوا سُبْحٰنَكَ﴾ سبحٰنك دَذکریاصرف تمهیداً دې اواصل جواب دَ﴿مَا كَانَ يَنْۢبَغِي﴾ نه شروع کیږی،اویاذکردَسبحٰنك دَتعجب دَپاره دې اودوئی ته چه کله دَدې بهتان اوالزام پته اولګی،چه دې خلکوپه مونږباندې دومره عظیم بهتان اوالزام لګولې دې نوفوراًبه اوائی چه سُبحٰنك چه مونږبه هغه کارڅرنګه اوکړوکوم کارچه دَابلیس دې اویا﴿سُبْحٰنَكَ﴾په جواب کښې داخل دې اومقصددادې چه،مونږ خوستاتسبیح ویونکی یواوپدې باندې موسوم اوموصوف یو،اوابتداء نه زمونږعقیده دَتوحیدده نومونږبه بل چاته څرنګه دَشرك دعوت

ورکړې وی.

﴿مَا كَانَ يَنۢبَغِى لَنَآ ﴾ ينبغي دلته په معنی دَيصح او يجوزسره دې.نو دَ﴿مَا كَانَ يَنۢبَغِى لَنَآ ﴾معنی ده،ماکان يصح يعنی ماصح ومااستقام لنا(قرطبی)﴿أَن نَّتَّخِذَ مِن دُونِكَ﴾ اتخذ فعل کله مفعول واحدته متعدی کيږی اوکله دوه(۲)مفعولينوته متعدی کيږی،نوکه اول احتمال معتبرکړې شی نومفعول دَ﴿أَن نَّتَّخِذَ﴾دپاره﴿مِنْ أَوْلِيَآءَ ﴾دې اوکه دويم احتمال معتبرکړې شی نوبيا غوره قول دادې چه﴿مِنْ أَوْلِيَآءَ ﴾مفعول اول مؤخردې او من پکښې زائددې دَتاکيددَنفی دَپاره دې او﴿مِن دُونِكَ ﴾مفعول ثانی مقدم دې اومرادپه اولياء سره تابع دی اودَ ولی اطلاق چه لکه څرنګه په متبوع باندې کيږی نودغه شان په تابع باندې هم کيږی پشان دَلفظ دَ مولی چه اطلاق ئی په اعلی او اسفل دواړو باندې کيږی.

﴿وَلَٰكِن مَّتَّعْتَهُمْ ﴾دااستدراك دې دَماقبل نه،هرکله چه دغه نيکان بندګان خپله صفائی پيش کړی نوبيابه دَدوئی دګمراهئ لوئی سبب ذکرکړی،چه اې الله ﷻ تادوئی قسم قسم نعمتونه ورکړی وو،مال،دولت،صحت،عمر وغيره اودانعمتونه ذريعه دَمعرفت دَحق دَپاره وو،خودوئی پديکښې دومره انهماك اوکړوچه حق ئی هيرکړواوپه شهوات کښې مبتلاشو، کفراوشرك ئی اختيارکړو

﴿حَتَّىٰ نَسُوا۟ ٱلذِّكْرَ ﴾ذکرنه مرادايمان اوتوحيددې اودغه شان احکامات دکتب،اوتعليمات دَرسولانوورنه هم مراددی.﴿فَقَدْ كَذَّبُوكُم ﴾داخطاب دَجانبه دَالله ﷻ نه دې،کفاروته اودايادنياکښې دې اوماضی په معنیٰ دمضارع سره ده يعنی اې کفاروقيامت په ورځ به ستاسودامعبودان به ستاسودَدې خبرې تکذيب کوی،اويابه ورته پا اخرت کښې وئيلې شی او دَدينه مخکښې يقال لهم مقدردې يعنی دَنيکانوبندګانودَخپلې صفائی اوجواب ورکولونه، پس به دې مشرکانوته اوئيلې شی چه تاسوخووئيلوچه مونږته دې نيکانو خلکو دَشرك دعوت راکړيدې اودوئی خوانکاراوکړو.﴿بِمَا تَقُولُونَ﴾باپه معنی ده "في"کښې ده، او "ما"

مصدريه ده أي في قولكم

﴿فَمَا تَسْتَطِيعُونَ صَرْفًا ﴾صرف نه مراددفع کول دَعذاب دی اوتنوین پکښ دَپاره دَتنکیردې،یعنی په هیڅ وجې سره هم تاسودَځپل ځان نه،عذاب نشئ،دفع کولې نه بالذات اونه بالواسطه یعنی نه پخپله دَځان نه،عذاب دفع کولې شئ اونه ستاسوالهه ستاسونه،عذاب دفع کولې شی،اودغه شان په﴿وَلَا نَصْرًا ﴾کښ هم تنوین دَپاره دَتنکیردې یعنی په هیڅ طریقې سره امدادنشئ حاصلولې،﴿وَمَن يَظْلِم مِّنكُمْ ﴾غوره قول دادې چه داخطاب ټولو مکلفینوته دې او ظلم نه مراد شرک دې،یعنی چه څوک هم په تاسوکښ دَشرک مرتکب شی اوپه حالت دَشرک باندې مړشی نوهغه ته به لوئی عذاب ورکولې شی.

﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ ﴾دتخویفاتواودَاحوالودَجهنم اودَجهنمیانوذکرکولونه پس دکفارو دَځلورمې شکوې اوشبهې جواب ورکولې کیږی،دوئی به وئیل چه داپیغمبرخوراك ولې کوی اودکسب معاش دَپاره بازارته ولې ځی؟ دَجواب خلاصه داده چه خوراك،څکاك کول اودَدینی،دنیوی ضروریات دَپاره بازارونوته تلل،منافی دَرسالت نه دی،ځکه چه مخکښ څومره انبیاء کرام راغلیدی چه دَهغوئی نبوت دوئی هم منی نوهغوئی به هم خوراك کولواودَدینی،دنیوی ضروریاتودَپاره به بازارته هم تللو،اودَ"الاّ"نه ورستو"انّ"په فتحې سره راځی خودلته په کسرې سره دې،وجه داده چه داجمله یعنی﴿إِلَّآ إِنَّهُمْ ﴾صفت واقع شویده دَموصوف محذوف دَپاره چه"احداً"اویا"رسولاً"دې،نوتقدیردَعبارت دارنګه دې"ومآارسلنا قبلك رسولاً ،یااحداًمن المرسلین"اوبیاموصوف حذف شواواکتفاء اوکړې شوه په جارمجرورباندې چه"من المرسلین"دې(مدارك،قرطبی).

﴿وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ ﴾داتتمه دَجواب ده اوتسلی ده نبی پاكﷺته،کفاروبه نبیﷺاوصحابه کرامو رضی الله عنهم ته دَغربت اودفقروفاقې پیغورونه ورکولو،نودَنبی پاكﷺ دَتسلئ دَپاره داآیت نازل کړې شو،مقصددآیت دادې چه دادنیادارالامتحان دې،دَازمائش اودَابتلاځائی دې،دَفقیرپه غنی،سره اودَمالداره په فقیرسره ابتلاء کیږی،دَصحت مندپه

بیمار سره او د بیمار په صحت مند سره امتحان اغستلې کیږی. د شریف په جاهل سره او د جاهل په شریف سره امتحان اغستلې کیږی، دغه شان د پیغمبر په امتی سره او د امتی په پیغمبر سره ابتلاء کیږی.

﴿أَتَصْبِرُونَ﴾ دا غرض د امتحان او د ابتلاء دې او ام لاتصبرون ورسره مقدر دې. یعنی دا ازمائشونه او امتحانات دې د پاره دی چه تاسو صبر کوئی او که نه کوئی. که په تکالیفو باندې صبر او کړئی نو اجر به درته میلاؤشی او که چرې او نکړئی نو غم او پریشانی به ستاسو نوره زیاته شی. د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه نه روایت دې چه نبی پاک ﷺ ارشاد او فرمائیلو چه: انظروا الی من هواسفل منکم ولاتنظروا الی من هوفوقکم فهواجدرُ ان لاتزدروانعمة الله علیکم(بخاری) یعنی تاسو هغه چاته گورئی چه ستاسو نه (د مال، جسم یا صحت وغیره) په اعتبار سره کمزورې وی، نو دا به تاسو د الله تعالیٰ د ناشکرئی نه بچ کوی.

﴿وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيرًا﴾ یعنی الله تعالیٰ د هر چا په حالت باندې عالم دې، صبر کوونکی ته به د هغه د صبر اجر ورکوی او بې صبره ته به سزا ورکړی او یا مقصد دا دې چه الله تعالیٰ بغیر د امتحان اغستلو نه، د انسانانو او د مخلوقاتو په ټولو احوالو باندې عالم دې، دا امتحان او ازمائش د الله تعالیٰ په علم کښې څه زیاتی نه راولی، لیکن دا امتحانات د الزام حجت د پاره دې.

وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ نَرٰى

او وائی هغه کسان چه نه یریږی زمونږ د ملاقات نه ولې نشی نازله لولې په مونږ فرشتې یا ولې نه وینو مونږ خپله

رَبَّنَا ؕ لَقَدِ اسْتَكْبَرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ وَعَتَوْ عُتُوًّا كَبِيْرًا ﴿۲۱﴾ يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ

رب خپل، یقیناً دوئ خپل ځان لوئ گنړلې دې په خپلو زړونو کښې او تجاوزئ کړیدې تجاوز لوئ په کومه ورځ چه او وینی دوئ فرشتې

لَا بُشْرٰى يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِيْنَ وَيَقُوْلُوْنَ حِجْرًا مَّحْجُوْرًا ﴿۲۲﴾

نو نه به وی خوشالی په دغه ورځ لپاره د مجرمانو او وائ به فرشتې چه منع ده خوشالی د دوئ نه په منع کیدلو سره.

وَقَدِمْنَآ اِلٰى مَا عَمِلُوْا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنٰهُ هَبَآءً

او راوبه شو مونږ هغه عملونو ته چه دوئ کړیدی څه عمل نه نو اوبه گرځوو مونږ هغه نیک عمل په شان د دوړې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَّنۡثُوۡرًا ۞ اَصۡحٰبُ الۡجَنَّةِ يَوۡمَئِذٍ خَيۡرٌ مُّسۡتَقَرًّا وَّاَحۡسَنُ مَقِيۡلًا ۞ وَيَوۡمَ | | | | | |
| نوستلي شيندلي شوي ياران دَجنت پدغه ورځ ډيره غوره به وي قيام گاه «دَدوئ» او ډيرښه به وي آرام گاه دَ دوئ او هغه ورځ | | | | | |
| تَشَقَّقُ السَّمَآءُ بِالۡغَمَامِ وَنُزِّلَ الۡمَلٰٓئِكَةُ تَنۡزِيۡلًا ۞ اَلۡمُلۡكُ يَوۡمَئِذِ الۡحَقُّ | | | | | |
| چه توټې توټې به شی اسمان په وريځو سره او نازلې به کړيشی فرښتی په نازلولو سره پرله پسی بادشاهی پدغه ورځ کښ ثابته ده | | | | | |
| لِلرَّحۡمٰنِ | وَكَانَ | يَوۡمًا | عَلَى | الۡكٰفِرِيۡنَ | عَسِيۡرًا ۞ |
| صرف الله ﷻ لره، | | اوده دغه ورځ | په | کافرانو | سخته. |

﴿وَقَالَ الَّذِيۡنَ﴾ دا اعاده دَپنځمې شکوې اوشبهې ده، سره دَزيادت دَيوې بلې شکوې، چه دامشرکان چه دَالله ﷻ دَملاقات امیدنه لري داوائی چه په مونږ باندې دې ملائك نازل شی چه دَدې نبی په صدق باندې مونږته خبرراکړی ﴿لَا يَرۡجُوۡنَ﴾ رجاء اګرچه امیدته وئیلی کیږی خوکله کله په معنٰی دَخوف سره هم راځی دلته "لايرجون" په معنٰی دَ "لايخافون" سره دې ﴿أَوۡ نَرٰى رَبَّنَا﴾ یعنی یامونږ په خپلوسترګوباندې الله ﷻ اوګوروچه مونږته پخپله اوائی چه داځماد طرف نه نبی دې.

﴿لَقَدِ اسۡتَكۡبَرُوۡا﴾ دا زجردې په اولې وینادَدوئی باندې، یعنی دَقرآن پشان معجزکتاب په موجودګې کښ، دَملائکودَنزول مطالبه کول محض تکبراوتعنت دې، ﴿وَعَتَوۡ عُتُوًّا كَبِيۡرًا﴾ دازجردې په دویمې وینادَدوئی باندې او "عتو" په اصل کښ سخت ترین کفراوبدترین ظلم ته وئیلې کیږی، والعتواشدالکفروافحش الظلم(قرطبی) اوتوصیف دَ "عتو" په "کبیراً" سره دَپاره دَمبالغې دې، یعنی په دنیاکښ دَالله ﷻ دَرؤیت سوال کول تعنتًا، لوئی کفراوبدترین ظلم دې، اودَدې آیت نه مطلقًاپه نفی دَرؤیت دَباری تعالٰی باندې استدلال کول باطل دی، ځکه چه دهغې ثبوت په نصوص قطعیه سره دې اودغه شان دَآیت سیاق اوسباق هم ددینه اباء کوی، بلکه دَآیت سیاق اوسباق په دې دلالت کوی چه دازجرصرف په دنیاکښ دَرؤیت سوال

کول، اومطلقًا سوال باندې هم نه بلکه تعنتًا دَرؤيت په سوال کولو باندې دې

﴿يَوْمَ يَرَوْنَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةَ﴾ دا جواب دَدې مذکورې شکوې اودَشبهې دې يعنى په کومه ورځ چه دوئى ملائك اوينى نودغه ورځ به دَدوئى دَپاره دَخوشحالئ نه وى بلکه ددوئى دَ پاره به دَناکامئ اودَخسران والاوى، اوملائك به ورته وائى چه خوشحالى په تاسوباندې حرامه ده اومراددَ﴿يَوْمَئِذٍ﴾نه ورځ دَځنکدن ده، اوياورځ دَقيامت ده، ﴿وَيَقُولُونَ حِجْرًا﴾ حجر په اصل کښ منعې ته وئيلې کيږى، اودَدې قول قائلين ياملائك دى چه په وخت دَځنکدن کښ اوياپه ورځ دَقيامت به دوئى ته وائى چه خوشحالى په تاسوباندې حرامه اومنعه ده، يعنى په دوئى باندې دَهغې شى بشارت حرام دې دکوم څيزبشارت چه متقيان ته ورکولې کيږى. اوياقائلين دَدې قول کفاردى اوداکلمه يعنى﴿حِجْرًا مَّحْجُورًا﴾ عرب په موضع دَاستعاذې کښ استعماله وې يعنى عرب چه دَڅه څيزنه پناه غواړى نووائى"حجرامحجوراً"نودَايت مقصددادې چه داکفارخواوس دَملائکودَنزول مطالبه کوى خوچه کله ملائك اوګورى، اودَعذاب مشاهده اوکړى نودوئى به چيغې اوباسى چه﴿حِجْرًا مَّحْجُورًا﴾چه مونږپناه غواړو پوره پوره پناه خوپناه اونجات اوخلاصې به نوى.

﴿وَقَدِمْنَآ إِلَىٰ مَا عَمِلُوا۟﴾ داتخويف اخروى دې، اودَيوتوهم دفعيه ده توهم داکيدلوچه دَدې کفاروخوځنې نيك اعمال هم شته دې لکه صله رحمى، صدقې کول وغيره نوکيدى شى چه دَدوئى دغه نيك اعمال دوئى ته نجات ورکړى، نودَدې جواب اوشو چه﴿وَقَدِمْنَآ﴾اوهرکله چې دَقدوم څپله معنى په الله ﷻ کښ محاله وه نودَدې وجې نه﴿وَقَدِمْنَآ﴾په معنىٰ دَ"عمدنا"سره دې او﴿مِنْ عَمَلٍ﴾نه مراددوئى ځنې نيك اعمال دى مثلاًصله رحمى کول، دَپريشان حال خلکوسره امدادکول، ميلمستياکول اوغلامان ازادول وغيره شو، نودَجواب خلاصه داده چې دَدې مشرکانودغه نيك اعمالوطرفه ته به مونږمتوجه شواودااعمال به ئى داسې کړولکه نوستلې شوې دَوړه(ګردوغبار) اوتوصيف دَ﴿هَبَآءً﴾به﴿مَّنثُورًا﴾سره پديکښ اشاره ده مکمل بطلان دَاعمالودَدوئى ته، ځکه چه کله کله ګرد(دوړه)موجوده وى اونوستلې شوى نوى نودڅه فائدې اخستلواميدورنه کيږى، خوچه

کله اونوستلي شی نه دفائدې اخستلو امیدئی هم ختم شی نو دغه شان ددوئی اعمال به په اخرت کښې بالکل عدیم النفع وی.

﴿أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَنَّةِ﴾ دا بشارت اخروی دې، ﴿خَيۡرٌ مُّسۡتَقَرًّا﴾ خیر اسم تفضیل دلته په خپلې معنیٰ یعنی دتفضیل په معنیٰ کښې ندې مستعمل، بلکه دنفس زیادت یعنی مبالغې دپاره دې او مستقر صیغه دظرف مکان ده معنیٰ ئې ده ځائی دقرار دلته ترینه مراد دجنتیانو هغه ځائی دې چه دوئی به پکښې اکثردیوبل سره ناست وی اوخبرې، ترې به کوی، او مقیل دقیلولې والاځائ ته وئیلې کیږی، اوقیلوله د نصف النهار یعنی دغرمې ارام ته وئیلې کیږی، که خوب پکښې وې یانوی اوچونکه په جنت کښې خوب نیشته دې نودې وجې نه د مقیل نه مراددجنتیانوالاهغه ځائی دې چه دوئی پکښې دخپلوبیبیانواوحوروسره میلاویږی اودهغوئ نه فائده اخلی اوجماع به ورسره کوی، اودغه ځائی ته خاص نوم د مقیل ځکه ورکړې شوچه په حدیث کښې دی چه الله ﷻ به دقیامت په ورځ دمخلوقاتودحساب، کتاب نه فارغ شی نونصف النهاربه وی نودقیلولې په وخت کښې به اهل جنت، جنت ته لاړشی اواهل جهنم به جهنم ته لاړشی(قرطبی، خازن)او مقیلا سره حسن ذکرکولوکښې اشاره ده دیته چه دجنتیانودپاره به دغه مخصوص ځائی دارام والا،ب په ښائسته ښائسته نقش ونګاراو تصویرونو سره مزین کړې شوې وی، لکه څرنګه چه په دنیاکښې عام رواج دې چه دغه شان کمرې خلك منقش اومزین کوی.

﴿وَيَوۡمَ تَشَقَّقُ ٱلسَّمَآءُ﴾ دا تخویف اخروی دې، دلته د تشقق نه مراد فتح یعنی کولاویدل دی چې دابه دحساب کتاب شروع کیدلوپه وخت کښې وی اوهغه تشقق ورنه نه دې مرادکوم چه به په نفخه اولی په وخت کښې وی اوپه بالغمام کښې باء یادسببیت ده اوداوریځ به سبب وی دشق داسمان دپاره، نود بالغمام معنی ده بسبب الغمام اوداوریځ به سبب دشق داسمان دپاره یاددې وجې نه وی چه دابه ډیره ثقیله اودرنه وی، لکه بعضی مفسرینوذکرکړیدی چه داوریځ به داوه(۷)اسمانونودپاځه وی اودې ثخل اوثقل به دومره وی لکه دااوه(۷)واړه اسمانونه، نوهراسمان باندې چه داوریځ راځی نوهغه اسمان به ددې ثقل نشی برداشت کولې اوڅیریږی به، اویاوجه داده چه ددې وریځې طلوع به دملائکودنزول دپاره وی اوملائکودنزول دپاره به

اسمانونه کولاؤکړې شی اوملائك به پدې وريځې کښې لاندې راکوزلوشی نودشق داسمان دپاره اصل سبب نزول دملائکودې دپاره دحساب وکتاب اووريځ به په هغې باندې علامه وی،نومجازااطلاق دعلامې په ذی علامې باندې اوکړې شواوديته سبب اونيلي شواويا باء په معنیٰ د"عن سره ده او باء،عن اوعلی دیوپه بل ځائ باندې استعمالیدل شائع اوکثیردي.

نود بالغمام"معنی ده عن الغمام اودآیت مقصددادې چه اسمان به ټکړې کړې شی دوريځې نه يعنی دوريځې نه به جداکړې شی اوکولاؤبه کړې شی،اوپه دغه وريځې کښې به ملائك راکوز کړې شی،حضرت شيخ الهند رحمه الله دې احتمال ترجمه غوره کړيده اوبعض فرمائی چه جار مجرورمتعلق دی په متلبسة مقدرپورې اومتعلق سره دمتعلق نه حال واقع شويدې د"السماء نه نومقصددادې چې یوم تشقق السماء حال کونه متلبسة بالغمام،اوحضرت شيخ فرمائی چه دغمام نه مرادملائك دی چه دهغوئی مجموعی هيئت داسپينووريځوپشان وی نود بالغمام معنیٰ ده بسبب نزول الملائكة.او﴿وَنُزِّلَ الْمَلٰٓئِكَةُ﴾ عطف تفسيری دې اوبيان دې دماقبل دپاره چه دغمام مقصددادې چه مونږ به ملائك ډلې ډلې نازلې کړو،اودعام مفسرينودتوجيه مطابق﴿وَنُزِّلَ الْمَلٰٓئِكَةُ﴾عطف دې په تشقق باندې اوداپه دويمې طريقې سره تخويف ذکرکيږی اومقصددادې چه ملائك به داسمان نه ډلې ډلې راکوزيږی،نوداحالت چه صرف مجرمان نه بلکه هرانسان ئی چه اوګوری نوانتهائی وحشت اودخوف په عالم کښې به شی(الاّماشآء الله)اودملائکودانزول به دميدان حشردانتظام دپاره،به وی.

﴿اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذِ ۣ الْحَقُّ﴾""الملك مبتداده او"الحق"ورله صفت دې او"للرحمٰن"په اعتبار دمتعلق سره خبردې او يومئذ ظرف دمبتداء دې اوپه هغې پورې متعلق دې اومبتداء مقيده کول په قيدد يومئذ سره،پديکښې اشاره ده چه دقيامت دورځې بادشاهی به صرف دالله ﷻ وی،څوك به ورسره شريك نه وی،حقيقة اوصورتًادواړه قسمه تصرف به دالله ﷻ وی،نه به څوك دچاسفارش کوی بغيرداجازت نه اونه به څوك دچاامدادکولې شی،په خلاف ددنيادژوندون نه،چه پديکښې هم اګرچه حقيقةً تصرف اوبادشاهی دالله ﷻ ده ليکن انسان ته ئی ظاهرأصورتاً اختيارورکړيدې اومجازأده ته ئی بادشاه وئيلې دی.

﴿وَكَانَ يَوْمًا عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ﴾ اسم دَ كان ضمیرمستتردې چه راجع دې یوماً مذکورته،
او عسیراً ئې خبردې او علی الکفرین جارمجرورمتعلق دې د عسیراً سره، یعنی دقیامت ورځ به
په کافرانوباندې ډیره سخته وی اوهرچه دې مؤمن نوپه هغه باندې بهٔ اسانه وی اودَ ایمان
دکمال اودقوت مطابق به دَمؤمن سره دَیسرا وسهولت معامله کیږی، یعنی چه څومره ئې ایمان
قوی وی اوکمال پکښې موجودوی نوهومره به ورته اسانی اویسروی، حتّی چه په یوکامل
مؤمن باندې به داورځ دومره په سهولت سره تیره شی لکه دَیوفرض مونځ والاوخت، لکه په
روایت دَحضرت ابوسعید خدری رضي الله عنه کښې دی چه: قیل یارسول الله: یوم کان مقدارهٔ خمسین الف
سنة ماطول هٰذااليوم فقال رسول الله ﷺ والذی نفسی بیده انه لیخفف علی المؤمن حتی یکون
اخف علیه من صلوة مکتوبة یصلیهافی الدنیا(ابن کثیر) یعنی دَنبی پاک ﷺ نه دآیت یوم کان
مقداره متعلق تپوس اوکړې شوچه داخوډیره اوګده ورځ ده؟ نونبی پاک ﷺ ورته اوفرمائیلو چه
خمادې قسم وی په هغه ذات چه دَهغه په قبضه، قدرت کښې خماروح دې، چې دَمؤمن دَپاره به
داورځ اسانه کړې شی حتّیٰ چه دَیوفرض مونځ دَوخت نه به هم ددپاره به زیاته اسانه
اومختصر کړې شی.

| |
|---|
| وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ يَقُولُ يَٰلَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُولِ |
| اوپه هغه ورځ چه چکونه به لګوی ظالم په خپلودواړولاسونواووائ به آفسوس ارمان چه مانیولې وې دَرسول سره |
| سَبِيلًا ﴿٢٧﴾ يَٰوَيْلَتَىٰ لَيْتَنِي لَمْ أَتَّخِذْ فُلَانًا خَلِيلًا ﴿٢٨﴾ لَقَدْ أَضَلَّنِي عَنِ الذِّكْرِ |
| لاره دایمان،های خماهلاکت، کاش چه نه وې نیولې مافلانکې سړې دوست یقیناً ګمراه کړې ووم ده څه دَقرآن نه |
| بَعْدَ إِذْ جَاءَنِي ۗ وَكَانَ الشَّيْطَٰنُ لِلْإِنسَٰنِ خَذُولًا ﴿٢٩﴾ وَقَالَ الرَّسُولُ يَٰرَبِّ |
| ورستودَی چه کله ماته راغلو، اودې شیطان انسان لره رسواکونکې اووائ به رسول ﷺ چه ای ربه! |
| إِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوا هَٰذَا الْقُرْآنَ مَهْجُورًا ﴿٣٠﴾ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا |
| بی شکه خماقوم ګرځولې وو داقرآن پریښودلې شوې، اوهم دغه شان ګرځولې وو مونږ هرنبی لره دشمن |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنَ الْمُجْرِمِيْنَ | ۭ وَكَفٰى | بِرَبِّكَ | هَادِيًا | وَّنَصِيْرًا | ﴿٣١﴾ |
| دکافرانونه، | اوکافي دي | رب | ستاهدايت | کونکي | اومددگار |

﴿وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ﴾داهم تخويف اخروی دې او"عض اليدين"يعني په لاسونوباندې چکونه لګول به دډيرسختئ غصې اوداافسوس دوجې نه به وی،اوداارمان به کوی چه کاش! خه هم دپيغمبر په لارې تلې وې اودهغه خبره مې منلې وې،کاش! چه مادغلطوخلکوسره ملګرتيانونې کړې،چه خه ئې دقرآن نه غافله کړم اودسيدهې لارې نه ئې خطاء کړم.

مفسرينودې آيت په شان نزول کښې واقعه ذکرکړېده چه دمکې په سردارانوکښې يوسرداروو چه دهغه نوم عقبه ابن ابی معيط وو،دده عادت به داوو چه کله به هم دسفرنه راغې نوبيابه ئې خلکوته دعوت کولواودې به اکثردنبی پاکﷺ سره هم ميلاويدلواودهغه خبرې به ئې اوريدلې نويوځلې دې دسفرنه راغې نودعادت مطابق دمکې معززينوته ئې دعوت اوکړواودعوت ته ئې نبي پاکﷺ هم رااوغوختلوچه کله طعام حاضرکړې شونونبی پاکﷺ دخوراك نه انکاراوکړواودائی ورته اوفرمائيلوچې ترڅوپورې تاکلمه نه وی وئيلې نوترهغې پورې به خه ستاپه کورکښې خوراك اونکړم،ترکومې پورې چه ته مسلمان شوې نوې ،نوعقبه لااله الاالله محمدرسول الله ،اوئيلواونبی پاکﷺ دهغه روټئ اوخوړله،دعقبه يوبل ملګرې ابی ابن خلف ووچه هغه ملعون دنبیﷺ اودمسلمانانوسخت دشمن وونوچه کله هغه ته ددې پته اولګيدله چه مسلمان شويدې نوډيرسخت خفه شواوعقبه ته ئې اوئيلوچه ته بې دينه شوې ئې يعنی مسلمان شوې ئې،عقبه ورته اوئيلوچه ځمادې په خدائی قسم وی چه ماخپل دين ندې پريخې بلکه ځماکورته معززميلمه راغلې وواوهغه ترهغه وخته پورې روټئ نه خوړه چه ماکلمه شهادت نوې وئيلې اوځماغيرت دانه برداشت کوله چه ځماکورته څوك راشی اوبيابغيردخوراك نه لاړشی نوددې وجې نه ماکلمه اوئيله نوابی ابن خلف ورته اوئيلوچه ستا خبره خه ترهغه پورې نه منم چه ترڅوپورې ته تلې نه ئې اودنبی پاکﷺ په مخ باندې دې توکلې نوې،عقبه دخپل دملګری په خبروکښې راغې اولاړودنبیﷺ په مخ مبارك باندې توکی اوچولوکوشش اوکړوخوهغه توکې واپس لاړې اودعقبه په مخ باندې اولګيدلې اوپه مخ کښې نشان جوړشو،اونبیﷺ ده ته اوئيلوچه کچرته ماته دمکې نه بهراومندلې نوخه به تاقتل کوم

چنانچه په بدرجنګ کښې دې ګرفتارکړې شو ،اونبی پاكﷺ ته پیش کړې شو اونبیﷺ حضرت علي ؓ ته حکم اوکړو اوهغه قتل کړو .نوعقبه دَخپل دَدې بدملګری دَلاسه خپل دنیااوآخرت تباه کړو،نوپه اخرت کښې چه کله عذاب اوګوری نوحسرت اوافسوس به کوی چه کاش! مادَپیغمبراتباع کړې وې اودَخپل بدملګری ملګرتیامی نه وې کړې،نودَدې واقعې په بنیادپه ﴿ٱلظَّالِمِ﴾کښې الف لام دَعهددپاره دې اومرادورنه عقبه دې اود﴿فُلَانًا﴾نه مراد ابی ابن خلف دې لیکن قانون دادې چه اعتبارخصوص دَواقعې لره نه وی بلکه عموم دَالفاظولره وی، نوغوره خبره داده چې الف لام په﴿ٱلظَّالِمِ﴾کښې جنسی دې،اومرادورنه جنس ظالم اوکافردې چه په شرك اوکفرکښې مبتلاوی اودَپیغمبردَاطاعت نه مخ ګرځوی اودَ﴿فُلَانًا﴾نه مرادګمراه متبوع جنی اوانسی شیطان دې.

**فائده**:په لاسونوباندې چکونولګولوتخصیص دَدوه(۲)وجوهاتونه،دې یوددې وجې نه.چه داعام عادت دَپښیمانه سړی وی چه دَپښیمانتیاپه وخت کښې په خپلولاسونوباندې چکونه اچوی،اودویم دَدې وجې نه چه عام طورباندې لاسونودِډیروجرمونودَپاره ذریعه وی.

﴿يَقُولُ يَٰلَيۡتَنِي ٱتَّخَذۡتُ﴾دابه دَدغه ظالم اودکافردَطرف نه قولی اولسانی ارمان وی،یعنی دې به چیغې اوباسی اودَرسول په اتباع پسې به ارمان کوی﴿يَٰوَيۡلَتَىٰ لَيۡتَنِي﴾یعنی دَډیرافسوس دَوجې نه به ځان ته بددعاکوی یعنی ځه دې هلاك شم چه مادَدې ګمراه اوغلط ملګری سره ملګرتیاکوله او"ویلتیٰ"په اصل کښې"ویلتی"په کسرې دَتاء اوپه فتحې دَیاء متکلم سره وو ،حرکت دَیاء ماقبل ته نقل کړې شو ،یاء ماقبل مفتوح په الف سره بدل کړې شوه نو ویلتیٰ ورنه جوړشو ،نودا آخیری الف حرفی نه دې بلکه اسمی دې،چه په اصل کښې یاء دَمتکلم وه

﴿لَّقَدۡ أَضَلَّنِي﴾داعلل اواسباب دَافسوس اودَارمان ذکرکیږی،او لام موطئه للقسم دې.﴿عَنِ ٱلذِّكۡرِ﴾دَ ذکر نه مراد :ایمان،توحیداوقرآن دې مقصددادې چه،ځه دې غلط ملګری دَایمان نه محرومه کړم اودَقرآن نه ئې غافله کړم،اونسبت دَاضلال فلان یعنی ملګری ته کول تسبیبًادی،ځکه شیطان په مختلفووسوسوسره انسان ګمراه کوی،﴿وَكَانَ

اَلشَّيْطٰنُ ﴾داجمله ياتتمه ده دكلام دَدغي ظالم والا.اوياداكلام دَالله جل جلاله دي.دپاره دَتحذيردَشيطان نه،اومرادپه شيطان سره هرسركش اومتمرددي چه دَالله جل جلاله دلاري نه منع كول كوي،كه هغه انسي وي ياجني وي،وهوكل متمردعات حسد عن سبيل الله من الجن والانس(خازن) او"خذولا" مبالغه ده په"خذلان"كښ په اصل كښ وتيلي كيږي شرمنده كولواو ذليله كولوته،دلته ورنه مراد هغه ملګري دي چه وعده اوكړي دَمددكولواوبيادَضرورت په وخت كښ ياغائب شي اويا مخالف شي نودَيوانسان سره داكاردَهغه شرمنده كول دي.او دادَشيطان شيوه ده چه انسان ته وسوسې اچوي چه كچرته په تاتكليف راغې نوځه به داسې وكړم ستامددبه اوكړم ليكن دَتكليف په وخت كښ اوعذاب دوران كښ به بياانسان ته وائي چه"فلاتلوموني ولوموا انفسكم ماانابمصرخكم".

**تنبيه**:پدې آيت كښ اشاره ده چه دَبددوست اوملګري نه ځان بچ ساتل پكاردي،كوم دوستان اوملګري په معصيت اوګناه باندې قائم وي قيامت په ورځ به پدې خپلې دوستۍ باندې ژاړي،اودغه شان يوانسان به افسوس كوي چه مادَدې بدملګري سره ولې ملګرتياكوله،بدملګرې دنيااودَاخرت دَهلاكت اوبربادئ ذريعه ګرځي،حضرت ابوموسىٰ اشعري رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي پاك صلى الله عليه وسلم اوفرمائيلوچه دَنيك ملګرى مثال دَعطر فروش دې چه دَعطرفروشى دوكان ته لاړشي نويابه څه عطرواخلې ورنه كم ازكم هغه خوګ بوئي به درباندې اولګي(دماغ به دې تازه شي)اودَبدملګرى مثال دَلوهاردَبټۍ پشان دې چه هلته كينې نويابه درباندې توركې"او"بخركې"اولګي ګنده به دې كړي كپړې به درته اوسوزوي كنې كم ازكم بدبوئي به درته دراورسيږي اوپريشانه به دې كړي(بخاري)،شيخ سعدي رحمه الله فرمائي چه:

دور باش ازاختلاط يارِبد - يارِبد بدتربوداز مارِبد
مارِبدورنهاهمى برجان زند -يارِبدبرجان وبرايمان زند

﴿وَقَالَ الرَّسُوْلُ يٰرَبِّ ﴾داهم تخويف اخروى دې او"قال"په معنىٰ د"يقول"سره او"الرسول" نه مرادنبي پاك صلى الله عليه وسلم دي،مطلب دادې چه دَقيامت په ورځ به نبي پاك صلى الله عليه وسلم دَخپل قوم اوامت خلاف ګواهي وركوي چه دوئي په قرآن باندې عمل نه ووكړې اودغه شان مضمون په سورة

النسآء ایت نمبر(۴۱)کښې هم دي اوبعض فرمائی چه قال په خپلې معنیٰ سره دې اوداکلام نبیﷺ په دنیاکښې کړيدې، کله چه نبی پاکﷺدخپل قوم دطرف نه مخالفت اودقرآن پشان واضح معجزکتاب نه انکاراوکتلونودالله جل جلاله په دربارکښې اظهارافسوس دپاره شکایت اوکړوچه﴿إِنَّ قَوۡمِي ٱتَّخَذُواْ هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانَ مَهۡجُورٗا﴾اود مهجور یوه معنی ده متروك یعنی قرآن ئی پریخې دې ایمان پرې نه راوړی، عمل پرې نه کوی، دویمه معنیٰ ده فضول خبرې نوداپه اصل کښې مهجورفیه دې، اوبیاجارمجرورحذف کړې شو، نومقصددایت دادې چه نبی پاکﷺبه شکایت اوکړی چه ځماقوم به ددې قرآن په بارې کښې فضول خبرې اوبکواسات کولو، کله به ئی وئیلوچه شعردې کله به ئی وئیلوچه سحردې، کله به ئی ورته اساطیرالاولین، وئیلووغیرذلك.

اوابن کثیر رحمه الله لیکلي دي چه هجران دقرآن عام دې، دقرآن تصدیق نه کول، په ده باندې ایمان نه راوړل، دتلاوت په وخت کښې شورکول قرآن کښې سوچ اوفکرنه کول، دقرآن په مقابلې کښې نورفضول اوبیهوده کتابونواوشعروشاعری ته ترجیح ورکول، وغیرذلك، دې ټولوته هجران شامل دې، اومرادپه﴿إِنَّ قَوۡمِي﴾سره امت دې خوهرکله چه هجران دقرآن اولاقریش مکه اوکړونوځکه﴿إِنَّ قَوۡمِي﴾اوئیلي شو.

﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلۡنَا﴾هرکله چه مخکښې آیت کښې دنبی پاکﷺ دخپل امت نه دشکایت ذکروو، نواوس پدې آیت کښې نبی پاکﷺ ته تسلی ورکولې کیږی، او کاف په کذلك کښې دحضرت شیخ رحمه الله په نیزدپاره دبیان کمال دې، اودعاموفسرینوپه نیزدپاره دتشبیه دې، اومشبه محذوفه ده نواصل عبارت داسې دې، کماجعلنالك اعدآءً من مشرکی قومك جعلنالکل نبی(زادالمسیر)یعنی لکه څرنګه ستادقوم مشرکین ستاسره دشمنی کوی نودغه شان دهرنبی سره دهغه دقوم مجرمانودشمنی کړیده داڅه نوې خبره نده، دهغه انبیاء کراموطریقه داوه چه صبربه ئی کولونوته هم صبرکوه، دغې خلکوته هدایت ورکول اودهغوئی دشرنه بچ کیدل، دهغوئی نه بدله اغستل دالله جل جلاله په اختیارکښې دی اوهغه ددې دپاره کافی دې.

وَقَالَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لَوۡلَا نُزِّلَ عَلَيۡهِ الۡقُرۡاٰنُ جُمۡلَةً وَّاحِدَةً ‌ۚ كَذٰلِكَ ‌ ۚ لِنُثَبِّتَ

اوواې کافران ولې ندې نازل کړېشوې پدې پیغمبر قرآن ټول په یوځل. همدارنګه (جداجدای نازلوو) لپاره ددې چه محکم کړو

بِهٖ فُؤَادَكَ وَرَتَّلۡنٰهُ تَرۡتِيۡلًا ۝ وَلَا يَاۡتُوۡنَكَ بِمَثَلٍ

پدې سره زړه ستااولوستلي دي مونږداقرآن په ارام لوستلوسره. اونه راوړي دوئ تاته یومثال (اعتراض)

اِلَّا جِئۡنٰكَ بِالۡحَـقِّ وَاَحۡسَنَ تَفۡسِيۡرًا ۝ اَلَّذِيۡنَ يُحۡشَرُوۡنَ

مګرراوړومونږتاته (دهغې) صحیح جواب اوډیرښه تفسیر. هغه کسان چه جمع کولې به شي

عَلٰى وُجُوۡهِهِمۡ اِلٰى جَهَنَّمَ ۙ اُولٰٓـئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّاَضَلُّ سَبِيۡلًا ۝

په مخونوخپلو (پرمخې) جهنم ته، دغه کسان ډیره بې کاره یې ده ټکانه اوډیربې لاره دي

﴿وَقَالَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا﴾ دااومه (۷) شکوی اوشبه ده دجانبه دمنکرینونه کفاروبه اعتراض کولوچه کچرې داقرآن دالله ﷻ دطرف نه، وې نودابه په یوځلې نازل شوې وې لکه څرنګه مخکښې کتابونه، تورات، انجیل په یوځل سره نازل شوی وو، نوداقرآن به هم په یوځل سره نازل شوې وواولګ لګ به نه نازلیدلو؟ ﴿كَذٰلِكَ لِنُثَبِّتَ بِهٖ﴾ ددې شکوې اوشبهې دپاره درې (۳) جوابات ذکرکیږی نوداول جواب دې کذلك متعلق دې په فعل مقدرپورې چه انزلناه دې او کاف اسمی په معنی د مثل سره دې اومشارالیه د ذلك متفرق دې چه هغه مدلول د ﴿لَوۡلَا نُزِّلَ عَلَيۡهِ الۡقُرۡاٰنُ﴾ دې، څکه چې دکفارودامذکوره قول په معنی د لم نزّل علیه متفرّقا سره دې، او لام په لنثبت کښې دپاره دتعلیل دې، نوددې اول جواب خلاصه داده چې داقرآن نجمانجمایعنی لږلږ څکه نازل شویدې چه پدیکښې تثبت یعنی دزړه مضبوطوالې دې اوداتثبت په مختلفووجوهاتوسره دې، اول وجه داده چې قرآن په ډیروتکالیف شرعیواواحکاماتوباندې مشتمل دې، نوکچرې داپه یوځل باندې نازل شوې وې نودنبی ﷺ سره سره په ټولوخلکوباندې به ډیرشاق اوګران ووطبعًانوالله ﷻ نجمًانجمًانازل کړوچه پدې کښې سهولت هم دې اوتقویت پکښې هم دې دزړونودپاره، دویمه وجه داده چې نبی پاك ﷺ ته به

په وظيفه دَنبوت کښې دَمنکرينو دَطرف نه مختلف قسم اذيتونه اوتکليفونه رسيدلو ،نو الله ﷻ دَقرآن په نجمًانجمًانزول سره دَنبي پاک ﷺ زړه مبارك ته تسلي اومضبوطي ورکوله،دريمه وجه داده چه قرآن نجمانجمًانازليدلونوپه هرهرآيت کښې کفاروته تحدّی اوچيلنج وونوهرکله چه دوئی دَنجمًانجمًاقرآن مقابله اونکړې شوه نودَپوره قرآن مقابله په طريق اولی سره نشی کولې نوپدې سره دَنبي پاك ﷺ زړه ته تثبت ميلاويدلو ،لکه څرنگه چه دَپيسواوروپوپه مقابله کښې يوجانب نه لږې پيسې رااوباسلې شی اومخالف جانب والادَهغه لږوپيسومقابله اونکړی اواوتختی نودې اول فريق ته ډيره خوشحالی اوشی چه ځمادَلږوپيسومقابله اونکړې شوه نودَډيروپه طريق اولی سره نشی کولې،څلورمه وجه داده چه نجمًانجمًانازليدلوکښې به تجدددَوحی وو ،اوپه تجدددَوحی سره دَنبي پاك ﷺ په زړه مبارك کښې به تثبت اوتقويت راتللو ،لکه څرنگه باران رحمت دې چه په لږلږوريدلوسره دَفصل دَبهترکيدلوذريعه گرځی اوهمداوجه ده چه کله به هم يونوې آيت نازل شونودَصحابه کرامو په ايمان کښې به ترقی اوزيادتی راتلله،پنځمه وجه داده چې قرآن مجيدالله ﷻ دَنبي پاك ﷺ په زړه کښې محفوظ کولونوکچرته قرآن کريم په يوځلې نازل شوې وې نودَبشري تقاضی دَوجې نه به په نبي پاك ﷺ باندې ډيرشاق گرځيدلې وې ځکه چه لوئی کتاب اوبيا غيرمکتوب طبعاًپه سينه کښې محفوظ کول مشکل وی.

﴿وَرَتَّلْنَٰهُ تَرْتِيلًا﴾دادويم جواب دې،خلاصه دَدې جواب داده چه آيات دَموقع اوواقعې اودَضرورت مطابق نازليدل په مراد او اومقصد باندې دَپوهيدلوذريعه گرځی،کچرته ټول قرآن په يوځل باندې،نازل شوې وې،نودَشان نزول،اودَواقعې اودَموقعې اودَضرورت پته نه لگيدلودَوجې نه دَآيت په مقصداومرادباندې پوهيدل به هم ډيرمشکل وو ،نودَدې وجې نه الله ﷻ داقرآن په دمه دمه باندې درويشت(۲۳)کالوکښې نازل کړو.

﴿وَلَا يَأْتُونَكَ بِمَثَلٍ﴾دادريم جواب دې،خلاصه دَدې جواب داده چه دَقرآن مجيدډيرآياتونه دَمشرکينودَباطل اعتراضاتوپه جواب کښې نازل شويدی اوظاهره ده چې جواب دَسوال نه ورستوورکولې کيږی اودَاعتراض نه ورستوشافی جواب ميلاويدل دَخاص بصيرت اومعرفت سبب وی،اوپه خائسته طريقې سره وضاحت دَحق اوشی،نومراد په مثل سره دکفارودَطرف نه عجيب اوغريب باطل اعتراضات دی،اوپه الحق سره مراددَهغې

اعتراضاتوصحيح جواب دې.

﴿اَلَّذِينَ يُحْشَرُونَ عَلٰى وُجُوهِهِمْ﴾داتخويف اخروى دې دَهغه منكرينودپاره چه فضول سوالات كوى اوداتخويف مشتمل دې په درې(۳)حالاتوباندې.اول﴿يُحْشَرُونَ عَلٰى وُجُوهِهِمْ﴾ اوددې مقصد دادې چه ددوئى حشربه په مخونوباندې وى يعنى دوئى به ميدان حشرته په مخونوباندې روان وى اودَدې تائيدپه روايت دَابوهريرةﷺ سره كيږى چه نقل كړيدې امام ترمذىﷺاوامام احمدﷺ فرمائى چه:قال رسول اللهﷺيحشرون الناس يوم القيمٰة ثلاثة اصناف،صنفًا مشاةً وصنفًاركبانًاوصنفًايمشيهم على وجوههم قال انّ الذى امشاهم على اقدامهم قادرعلى ان يمشيهم على وجوههم.نبى پاكﷺاوفرمائيلوچه قيامت په ورځ به دَخلكوحشربه درې(۳)قسمه باندې وى،يوقسم به هغه خلك وى چه پيدل به روان وى،دويم قسم به هغه خلك وى چه په سورلئ باندې به روان وى اودريم قسم به هغه خلك وى چه په مخونوباندې به روان وى،نويوكس عرض اوكړوچه يارسول الله!چه په مخونوباندې به څرنگه روان وى؟نونبى پاكﷺورته اوفرمائيلوچه كوم ذات دوئى به خپوباندې گرځوى هغه ذات پدې هم قادردې چه دوئى په مخونوباندې روان كړى، اوبعض فرمائى چه(يحشرون)په معنى دَ"يسحبون"او"يساقون"سره دې يعنى دوئى به جهنم ته په مخونوباندې راخكلې شى يعنى دوئى به جهنم ته په خوشحالئ سره نه ځى نو فرشتى به ئى راكاږى اوجهنم ته به ئى غورځوى.

﴿أُولَٰئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا﴾اسناددَشر،مكان ته اسنادمجازى دې دَپاره دَمبالغى او"مكان"نه مرادجهنم دې او﴿وَأَضَلُّ سَبِيلًا﴾كښ هم اسنادمجازى دې اوپه دې دواړو ځايونوكښ اسم تفضيل په خپلى معنىٰ سره نه دې بلكه دَمبالغې دَپاره دې اودَدې جملې مقصد دادې چه دَدوئى ددې بيهوده قسم سوالاتودَپاره باعث اوسبب ددوئى گمراهى ده په دنياكښ اويامقصد دادې چه په اخرت كښ به دوئى ته پته اولگى چه مونږه خوډير خطاء وو.

| |
|---|
| وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَجَعَلْنَا مَعَهٗٓ اَخَاهُ هٰرُوْنَ وَزِيْرًا ۞ فَقُلْنَا |
| او يقيناً وركړې وو مونږ موسیٰ ﷺ ته توراة او ګرځولې وو مونږ د ده سره ورور د ده هارون مددګار پس او وئيل مونږ |
| اذْهَبَآ اِلَى الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ؕ فَدَمَّرْنٰهُمْ تَدْمِيْرًا ۞ |
| چه دواړه لاړشئ هغه قوم ته چه تکذيب ئې کړيدې زمونږ د اياتونو ،نو بيا هلاك كړل مونږ دوئ په پوره هلاكولو سره. |
| وَقَوْمَ نُوْحٍ لَّمَّا كَذَّبُوا الرُّسُلَ اَغْرَقْنٰهُمْ وَجَعَلْنٰهُمْ لِلنَّاسِ اٰيَةً ؕ |
| او هلاك موكړو قوم د نوح كله چه تكذيب ئ اوكړو د رسولانو ،مونږ غرق كړل هغوئ او او موګرځول هغوئ خلقو له نښانه د عبرت |
| وَاَعْتَدْنَا لِلظّٰلِمِيْنَ عَذَابًا اَلِيْمًا ۞ |
| او تيار كړيدې مونږ ظالمانو له عذاب دردناك |

﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا ﴾دا په دعوى د سورت باندې دلائل نقليه ذكر كيږى سره د تخويفاتونه، نو دا اول دليل نقلى دې د موسىٰ ﷺ او هارون ﷺ نه،خلاصه داده چه موسىٰ ﷺ او هارون ﷺ ته بركات وركوونكې په صورت د نبوت،كتاب او هلاكت د دشمن كښ مونږه وو،يعنى مونږ موسىٰ ﷺ ته نبوت او كتاب وركړې وو او هارون ﷺ د هغه سره معاون پيغمبر جوړ كړې وو،او دوئ فرعون ته د توحيد د دعوت د پاره تللى وو،ليكن هغه او د هغه قوم انكار او كړو نو مونږ هلاك كړو.

﴿فَقُلْنَا اذْهَبَآ اِلَى الْقَوْمِ الَّذِيْنَ ﴾پدې ايت باندې اشكال واردېږى چه حضرت موسىٰ ﷺ او هارون ﷺ د دې خطاب تروخته پورې فرعون او د هغه قوم ته نه وو تللى نو د معجزاتونه انكار څرنګه متصور شو؟د معجزاتونه انكار د فرعونيانو ورستو د ورتللو د موسىٰ ﷺ او هارون ﷺ نه وو،نو بعضو ورنه جواب داسې كړيدې چه﴿بِاٰيٰتِنَا﴾نه مراد دلائل عقليه دى په توحيد باندې چه الله ﷻ د هر انسان په نفس كښ او د هغه خواؤشاؤ ته داسې نښانيانې او دلائل پيدا كړيدى چه په هغې كښ سوچ او فكر كولو سره د انسان عقل د الله ﷻ په وجود او وحدانيت باندې ګواهى وركوى نو په دغه دلائلو كښ سوچ او فكر نه كول،تكذيب

دَدغې دلائلودي،نوفرعونيانوپه دغې عقلي دلائلوكښې سوچ اوفكرنووكړي اوپه شرك كښې مبتلاؤنوځكه اوئيلې شوچه﴿كَذَّبُوا بِـَٔايَـٰتِنَا ﴾والمرادبهادلائل التوحيدالمودعة فى الانفس والآفاق(روح)اوبعضوورنه داجواب كړيدې چه د﴿بِـَٔايَـٰتِنَا﴾نه مرادمعجزات دَمخكنيوانبياء كرامودى،اودَيوپيغمبرتكذيب مستلزم دې دَټولوانبياء كراموتكذيب لره. نوفرعونيانودَ سابقه پيغمبرانوتكذيب كړې وو،نوځكه دَهغوئ په باره كښې اوئيلې شوچه﴿كَذَّبُوا بِـَٔايَـٰتِنَا﴾ اوبعضوورنه داجواب كړيدې چه دَ﴿بِـَٔايَـٰتِنَا﴾نه مراد تورات اودَحضرت موسى ﷺ معجزات دى او﴿كَذَّبُوا﴾ماضى په معنىٰ دَمضارع يعنىٰ سيكذبون بآيتنا سره دې،والله اعلم.

﴿فَدَمَّرْنَـٰهُمْ تَدْمِيرًا ﴾فاء فصيحيه ده اوپه كلام كښې اضماراوتقديردې اصل عبارت داسې دې فذهبااليهم وانذرافكذبوهمافدمّرناهم يعنى دوئى دواړه فرعون اودَهغه قوم ته لاړواوهغه ته ئى ويره وركړه خوهغه تكذيب اوكړونوموږه هلاك كړل په پوره هلاكت سره. ﴿وَقَوْمَ نُوحٍ ﴾ دادويم دليل نقلى دې دَنوح ﷺ نه،يعنى نوح ﷺ خپل قوم ته دَتوحيددعوت وركړونو هغوئى انكاراوكړونوموږه هلاك كړل اودَراتلونكوخلكودَپاره مودَعبرت نشان اوګرځولو، او﴿وَقَوْمَ نُوحٍ ﴾عطف دې په ضميرمنصوبه دَ﴿فَدَمَّرْنَـٰهُمْ﴾باندې نودَدې وجې نه دې هم منصوب دې.

﴿لَّمَّا كَذَّبُوا الرُّسُلَ ﴾هركله چه تكذيب دَيورسول مستلزم دې تكذيب دَټولو رسولانو لره نودَدې وجې نه﴿الرُّسُلَ﴾جمع ذكرشو،ورنه په ظاهركښې دَنوح ﷺ قوم دَټولو رسولانو تكذيب نه ووكړي بلكه صرف دَنوح ﷺ تكذيب ئې كړې وو، ﴿وَجَعَلْنَـٰهُمْ لِلنَّاسِ ﴾ دَنوح ﷺ قوم معذّب قوم دې نودَدې وجې نه دَهغوئ هلاكت ورستوټولو راتلونكو خلكو دَپاره دَعبرت نشانى اوګرځولې شوه.

وَّعَادًا وَّثَمُوْدَاْ وَاَصْحٰبَ الرَّسِّ وَقُرُوْنًا بَيْنَ ذٰلِكَ كَثِيْرًا ﴿۳۸﴾ وَكُلًّا ضَرَبْنَا لَهُ

اوهلاك موكړل قوم عاد اوقوم ثمود اودكوهي والا اونورخلق په مينځ ددوئ كښ ډير اوهريوته بيان كړي وو مونږ هغه ته

الْاَمْثَالَ وَكُلًّا تَبَّرْنَا تَتْبِيْرًا ﴿۳۹﴾ وَلَقَدْ اَتَوْا عَلَى الْقَرْيَةِ الَّتِىْٓ اُمْطِرَتْ

مثالونه،اوټول هلاك كړل مونږ په پوره هلاكولو سره اويقينًا تير شوي(راغلي) دي دوئ په هغې كلي باندې سدوم چه ورولي شوې وې

مَطَرَ السَّوْءِ ۭ اَفَلَمْ يَكُوْنُوْا يَرَوْنَهَا ۚ بَلْ كَانُوْا لَا يَرْجُوْنَ نُشُوْرًا ﴿۴۰﴾ وَاِذَا رَاَوْكَ

باران ناكاره،ولې نو دوئ نه ويني دَ غه كلې،بلكه دوئ عقيده نه لرى دَدوباره ژوندون اوچه كله دوئ تاووينى

اِنْ يَّتَّخِذُوْنَكَ اِلَّا هُزُوًا ۭ اَهٰذَا الَّذِيْ بَعَثَ اللّٰهُ رَسُوْلًا ﴿۴۱﴾ اِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا

نونه كوې تاسره (بل څه) بې دَ ټوقونه،،اووائي آيا دا هغه دې چه راليږلې دې الله رسول بې شكه نيز دې وو چه مونږ به ئې ګمراه كړې وو

عَنْ اٰلِهَتِنَا لَوْلَآ اَنْ صَبَرْنَا عَلَيْهَا ۭ وَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ حِيْنَ يَرَوْنَ الْعَذَابَ

دَخدايانو خپلونه كچرته صبرنه وې كړې مونږ په عبادت دَهغوئ.اوزرده چه پوهه به شي چه كله اووينى داكافران عذاب

مَنْ اَضَلُّ سَبِيْلًا ﴿۴۲﴾

چه څوك زيات بې لارې دې

﴿وَعَادًا وَّثَمُوْدَاْ﴾ په دې كښ مزيد (۴) څلورنقلي دلائل ذكركيږي،عاديانو ته هود عليه السلام اوثموديانوته صالح عليه السلام راغلې وو او"اصحب الرس" كښ اختلاف دې"رس" په لغت كښ كچه كوهى ته وئيلې كيږي،قرآن كښ ياپه حديث صحيح كښ دَدې دَمصداق په تعين كښ څه واضح حكم اونص نيشته دې نودَدې وجې نه ائمه مفسرينودَاسرائيلى روايات اودَقرائنوپه بنيادددې په تعين كښ مختلف اقوال ذكركړيدى،نوبعض فرمائى چه"اصحب الرس" قوم دَشعيب عليه السلام ووچه دوئى به په كوهى باندې جمع كيدلواوهلته به ئې دخپلوبتانوعبادت كولو،كله چه دوئ شعيب عليه السلام خبره اونه منله بلكه هغه ته ئې اذيت اوتكليف وركړلو نوالله تعالى په دوئ باندې زلزله راويستله دكوهى سره خواؤشاؤنه دوئى په خپلوكورونوكښ موجودووټول په زمكه كښ ننوتلو اوهلاك شو،بعض فرمائى دوئ بقيه دَثموديانو وو،چه آباد

ووپه کوهی باندې، بعض فرمائی چه داپه بنی اسرائیل کښې یوقوم وؤچې الله ﷻ دوئی ته صفوان بن حنظله مبعوث کړې وو، اوداهغه قوم ووچه په دوئ باندې عنقاء مارغه مسلط وو، ددوئ نه به ئې بچې تختولو، نوحضرت صفوان ﷺ په دعاسره الله ﷻ هغه مارغه دَدنیانه ختم کړو. اودې قوم دَدې باوجودپه هغه باندې ایمان نه راوړوبلکه هغه ته ئی اذیت اوتکلیف ورکړو اوهغه ئې شهید کړو، اویوکوهی ته ئې اوغورځولونو الله ﷻ دوئ باندې سخت عذاب راویستلواودوئ ئې هلاک کړل. اوراجح قول په باره دَ اصحاب الرس کښې دادې چه داهغه قوم دې چه په انطاکیه کښې ابادوواوحبیب النجارصاحب دَیٰسٓ ئې شهید کړې وو، اوبیائې کوهی ته غورځولې وو، دَهغه واقعه به په سورة یٰسٓ کښې تفصیل سره راشی، انشآء الله، اودې قول ته اکثرمفسرینوترجیح ورکړیده.

﴿وَقُرُونًا بَيْنَ ذَٰلِكَ﴾ای اهلکناقرونا، یعنی دَقوم نوح، عاد، ثموداودَاصحاب الرس په مینځ کښې ډیرامتونه تیرشویدی چه هغوئ دَخپلوپیغمبرانونافرمانی کړې وه الله ﷻ هغوئ هلاك کړی وو، ﴿وَكُلًّا ضَرَبْنَا﴾ کلاً مفعول به دَفعل مقدردپاره دې چه انذرنا یا حذرنا دې اودادَباب ماأضمرعلی شریطة التفسیرنه دې ځکه چه دَانذرنا، حذرنااوضربنامعنیٰ یوه ده، ﴿الْأَمْثَالَ﴾ نه مراد عبرت ناکې قصې دی چې هغه دَ سترګو کهلاویدو لپاره کافی دی مطلب دادې چه دوئ ټولوته مونږوعظ اونصیحت کړې ووویره موورکړې وه. ﴿وَكُلًّا تَبَّرْنَا﴾ دلته کښې کلاً مفعول مقدم دې دَ تبرنا دپاره، یعنی هریودَې منکرامت نه مونږپه پوره هلاکت سره هلاك کړو.

﴿وَلَقَدْ أَتَوْا﴾داوم(٧)دلیل نقلی دې په هلاکت دَقوم لوط ﷺ سره، او﴿أَتَوْا﴾کښې ضمیردَفاعل راجع دې اهل مکه ته او القریة نه مرادعلاقه دَسدوم وغیره دی، چه پکښې قوم دَلوط ﷺ ابادوو، اهل مکه به چه کله دَتجارت دَپاره شام ته تللونودَسدوم وغیره علاقې به دَدوئی په لاره کښې راتللې، دَدوئ آمدورفت به پدغه علاقوباندې وو، اودَهغوئ په کنډراتوباندې به دوئی تیریدلو، نو الله ﷻ فرمائی چه﴿أَفَلَمْ يَكُونُوا يَرَوْنَهَا﴾استفهام تقریری دې یعنی دوئ پدې کنډراتوباندې چه تیریږې نودوئ دیته ګوری نه اودوئ داکنډرات نه

وینی، ﴿بَلْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ﴾ دااضراب دي دَماقبل نه،یعنی ښه ئي وینی اوګوری ئي خولیکن عبرت ورنه نه اخلی،ځکه چه ددوئی عقیده په دوباره ژوندی کیدلوباندې نیشته دې ﴿وَإِذَا رَأَوْكَ﴾ دازجردې په مشرکینوباندې،مشرکینومعاندینوبه چه کله حضورﷺاوکتلو نواستهزاء به ئی پوری کوله ﴿أَهَٰذَا الَّذِي﴾ دَدینه مخکښ یقولون مقدردې اوداجمله دَهغې قول مقدردَپاره مقوله ده،اسم اشاره ذکرکول،اودَنبیﷺنه تعبیربه موصول سره کول دَپاره دَاستصغاردی، ﴿إِن كَادَ لَيُضِلُّنَا﴾ ان مخففه عن المثقله دې اسم ئې ضمیرشان مقدردې اولام په لیضلنا کښ لام فارقه دې په مابین دَان شرطیه او ان مخففه کښ،دَآیت مقصددادې چه کفاروبه داوئیلوکچرې مونږبه دې خپل دین باندې کلك نه وې نودې پیغمبردومره کوشش اوکړوچه قریب وه چه مونږتول ئی دَخپل دین نه اړولې وې،نو﴿لَوْلَا أَن صَبَرْنَا﴾ جواب دَ لولا محذوف دې چه په هغې باندې دلالت ماقبل جملې کړیدې چه هغه لصرفناعن عبادتنا دې، ﴿وَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾ داتخویف اخروی دې یعنې دوئ خودین ته دګمراهئ نوم ورکوی اوخپلې بې دینئ ته دَدین نوم ورکوی نوالله ﷻ فرمائی چه عنقریب دوئ ته به پته اولګی چه کله عذاب اوینی چه په حق باندې څوك دی اوګمراه څوك دی.

| |
|---|
| اَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ ؕ اَفَاَنْتَ تَكُوْنُ عَلَيْهِ وَكِيْلًا ﴿۴۳﴾ اَمْ تَحْسَبُ |
| آیاته وینی هغه څوك چه نیولې ئ دې خپل معبودخواهش خپل،آیاته ئی په هغه نګران آیاګمان کوی ته |
| اَنَّ اَكْثَرَهُمْ يَسْمَعُوْنَ اَوْ يَعْقِلُوْنَ ؕ اِنْ هُمْ اِلَّا كَالْاَنْعَامِ بَلْ هُمْ اَضَلُّ |
| داچه بیشکه اکثردَدوئ نه آوری یاپوهیږی.ندی دوئ مګرپه شان دَځناورودی بلکه دوئ دَځناورونه زیات بې لارې دی |
| سَبِيْلًا ﴿۴۴﴾ اَلَمْ تَرَ اِلٰى رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ الظِّلَّ ۚ وَلَوْ شَآءَ لَجَعَلَهٗ |
| آیانه دې لیدلې تا قدرت دَرب خپل چه څنګه ئی اوګدکړیدې سورې،اوکچرته ئی خوښه وې نوګرځولې به ئی وې |

سَاكِنًا ۚ ثُمَّ جَعَلْنَا الشَّمْسَ عَلَيْهِ دَلِيْلًا ﴿٤٥﴾ ثُمَّ قَبَضْنٰهُ اِلَيْنَا قَبْضًا يَّسِيْرًا ﴿٤٦﴾

په ځائ ولاړ بیامونږ اوګرځونوربه دې سورې دليل بياراټول كړومونږداخپل خان ته په راټولو آسانوسره

وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ لِبَاسًا وَّالنَّوْمَ سُبَاتًا وَّجَعَلَ النَّهَارَ نُشُوْرًا ﴿٤٧﴾

اوالله ﷻ هغه ذات دې چه ګرځولى ئ ده ستاسو لپاره شپه لباس(پرده) اوخوب ئى ګرځولې دې آرام اوګرځولې ده ورځ دګرځيدلو

﴿أَرَءَيْتَ مَنِ ٱتَّخَذَ﴾ استفهام دپاره دتعجب دې او "الهه" مفعول اول د "اتخذ" دې او "هواه" ورله مفعول ثانى دې اومراد په "هواه" سره "مايهواه" دې يعنى معبودئي دځان دپاره هغه څيزګرځولې دې چه كوم څيزته دده خواهش پيداشى اوتعلق ئي ورسره جوړشى،لكه مشركين مكه چه ديوبت عبادت به ئي كولوخوچه بل بت به ورته خائسته ښكاره شونوبيابه ئى هغه اول بت پريخودلواودهغه دويم والاعبادت به ئي شروع كړو،اوداحالت دنن صبادځني قبرپرستواوپيرپرستوخلكوهم دې چه ديو "بابا" قبرته سجده لګوى اوكله دبل "بابا" قبرته،او بعض فرمائى چه مفعول اول د "اتخذ" دپاره "هواه" دې او "اِلٰهَهُ" ورله مفعول ثانى مقدم دې او تقديم دمفعول ثانى په اول باندې دپاره داهتمام شان اودحصردې نواصل كښ عبارت داسې دې "اتخذهواه الهه" يعنى خپل خواهش ئى دځان دپاره خدائى جوړكړيدې،يعنى څۀ چه دده خواهش وي هغه كوى،دخپل نفس هرخواهش پوره كولوكوشش كوى نوداداسې ده لكه ده خپل خواهش خپل معبودګرځولې وې صاحب كشاف فرمائى:من كان فى طاعة الهوىٰ فى دينه يتبعه فى كل مايأتى ويذرلايتبصردليلاًولايصغى الى برهان فهوعابدهواه،يعنى چاچه دخپل دين بنياددخپل خواهش اطاعت جوړكړوڅه چه دده خواهش تقاضه وى هغه كاركوى اوڅه چه دده خواهش نه غواړى هغه پريدى،دليل ته سوچ اوفكرنه كوى اونه دچادليل اورى نودې دخپل خواهش بنده دې،اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه مروى دى چه خلاف شرع خواهش يوبت دې چه دهغې عبادت كولې كيږى(قرطبى)اودغه شان ذكرپه سورة الجاثيه ايت نمبر(۲۳)كښ هم دې.

﴿أَفَأَنتَ تَكُونُ﴾ استفهام انكارى دې يعنى ستاپه ذمه صرف تبليغ دې ته په دوئى باندې څه نګران نه ئى مقرركړې شوې چه ته به دوئى په زبردستئ سره مسلمانان كوې، ﴿أَمْ تَحْسَبُ أَنَّ

أَكۡثَرَهُمۡ ﴾یعنی ستاداخیال دې چه اکثرددې کفاروبه دَالله ﷻ کلام اوستاوعظ اونصیحت
به اوری اودَهغې په غرض اومرادکښې به سوچ اوفکرکوی،لیکن داسې نده دوئی نه ستاخبره
په سماع قبول سره اوری اونه ورباندې څه سوچ اوفکرکوی،بلکه ددوئی مثال دَځناوروپشان
دې،نوپدې ځائی کښې هم استفهام دَپاره دَانکاردې یعنی داګمان مه کوه اوداخیال مه کوه چه
دوئی به یادَالله ﷻ کلام واوری اویابه په حق خبرې باندې څه سوچ اوفکراوکړی اواکثرڅکه
اوئیلې شوچه څنې خلکوددوئی ایمان راوړې وو.

﴿إِنۡ هُمۡ إِلَّا كَٱلۡأَنۡعَٰمِ ﴾یعنی آلات اوقویٰ دَادراك ئې شته دې لیکن دَهغې نه فائده نه
اخلی،چه قبول سماع ورسره اوکړی اویاسوچ اوتدبیراوکړی لکه څرنګه چه ځناوردی.﴿بَلۡ
هُمۡ أَضَلُّ سَبِيلًا ﴾یعنی دوئ دَځناورونه هم بدتراوزیات بې وقوفه دی،ځکه چه ځناورمکلف
دَاحکام شرعیونه دی اودوئی ته عقل ورکړې شویدې اومکلف ګرځولې شویدی اودغه شان
ځناوردَخپلې فائدې والاځائ پیژنی اودخپل مالك تابعداری کوی،اوکفارداسې ندی.

﴿أَلَمۡ تَرَ إِلَىٰ رَبِّكَ ﴾داپنځم دلیل عقلی دې په دعوی دَسورت باندې یعنی تاسودَالله ﷻ
قدرت کامله ته اوګورئ چه څرنګه سورې غوړه وی اواوګده وی،کچرته الله ﷻ خوښه وې
نوهمیشه دَپاره به ئې سورې کړې وې پدیشان چه نمربه ئې نه ووپیداکړې،یابه ئې نمرپه
یوځائ باندې اودرولې وې اویابه ئې دَنمرشعاګانې زمکې ته نه وې رارسولې،مرادپه رؤیت
سره پدې قول کښې چه﴿أَلَمۡ تَرَ ﴾دې رؤیت بصری دې او﴿إِلَىٰ رَبِّكَ ﴾په حذف دَمضاف سره دې
یعنی الی صنع ربك.﴿كَيۡفَ مَدَّ ٱلظِّلَّ ﴾دَظل نه مرادپدې ځائ کښې وخت دَطلوع فجرنه
ترطلوع شمس پورې دې اوداوخت دَبهترینواوقاتونه،شماره لې کیږی،اودَدې وجې نه الله ﷻ
دَجنت په صفاتوکښې ذکرکوی،وظلٍّ ممدودٍ(الواقعة:۳۰)اوپه عرف کښې ظل هغه سوری ته
وئیلی کیږی چه دَماسپخین یعنی زوال نه وړاندې وی،اودَماسپخین نه پس سوری
ته فیئ وئیلې کیږی،امام ابوعبیده رحمه الله نه مروی دی چه ظل هغه سوری ته وئیلې کیږی چه
په نمرسره زائله کیږی،لکه دَسهروخت والاسورې شواو فیئ هغې سوری ته وئیلې کیږی چه

په هغې سره نمرزائله کیږی

﴿وَلَوْ شَآءَ لَجَعَلَهُۥ سَاكِنًا﴾یعنی کچرې دَالله ﷻ خوښه شوې وې نو دا سورې په ئی په خپل ځائی باندې ساکن کړې وې اوپه نمرسره به ئی نه وې زائله کړې اوبعض فرمائی چه دَسکون نه مراددادې چه نمربه ئې نوې راخیژولې، ﴿ثُمَّ جَعَلْنَا ٱلشَّمْسَ﴾یعنی نمرراخیژول دلیل دې په پیژندلودَسوری باندې، ځکه سورې ضددَنمردې اومشهورقانون دې چه "الاشیآء تعرف باضدادها" یعنی څیزونه په خپل ضدسره پیژندلې کیږی، ﴿ثُمَّ قَبَضْنَٰهُ إِلَيْنَا﴾داعطف دې په "مدالظل" باندې اومقصددادې چه نمراراووخیژی نودانمربه دمه دمه اوچتیږی نو "سورې" هم په دمه دمه کمیږی حتّی چه استواوخت راشی اوسایه اصلی نه علاوه باقی سورې ختم شی دیته "قبض یسیر" وئیلې کیږی اودَهغې نه پس بیا "فیئ" شروع شی او﴿إِلَيْنَا﴾نه جهت دَالله ﷻ نه دې مراد، ځکه چه الله ﷻ دَجسم اوجهت نه منزه دې، نوددې وجې نه داعبارت په حذف دَمجرورسره دې، نواصل کښ داسې دې "ثمّ قبضنٰه الی الجهة اللتی اردناه" خوهرکله چې داقبض په محض په قدرت دَالله ﷻ سره دې اودَالله ﷻ نه علاوه بل څوك پدې قبض باندې اودَدې سورې بل طرف ته ګرځولوباندې قادرنه دی نوځکه﴿إِلَيْنَا﴾اوئیلې شو۔

﴿وَهُوَ ٱلَّذِى جَعَلَ﴾داشپږم دلیل عقلی دې چه الله ﷻ ستاسودَفائدې دَپاره شپه پشان دَلباس ګرځولیده اوخوب ئې ذریعه دَارام پیداکړیده، اوورځ ئی دګرځیدلو، راګرځیدلواو روزئ تلاش کولودَپاره پیداکړیده، شپې ته "لباس" وئیل تشبهًا دی لکه څرنګه لباس دَانسان بدن پټه وی نودغه شان شپه هم څیزونه پټه وی. ﴿وَٱلنَّوْمَ سُبَاتًا﴾ "سبات" دَسبت نه دې اوسبت په اصل کښ وئیلې کیږی پریکولوته اویاخالی کولوته، اودَدې وجې نه هفته(خالی)ورځې ته یوم السبت ته وئیلې کیږی چه هغه خالی پاتې شوې وه، الله ﷻ پکښ څهٔ "نووپیداکړی، اودلته دَسبات نه مرادارام دې، ځکه چه په خوب سره هم هغه مشاغلوپریخودل راځی کوم چه په حالت دَیقظت کښ کولې کیږی۔

| |
|---|
| وَهُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ الرِّيٰحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ۚ وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ |
| او الله ﷻ هغه ذات دي چه رالیږی هوا ګانې زيرې ورکونکې مخکښې دَوريدلو دَباران رحمت نه اونازلې کړيدی مونږ دَاسمان نه |
| مَآءً طَهُوْرًا ۝ لِّنُحْيِۦ بِهٖ بَلْدَةً مَّيْتًا وَّنُسْقِيَهٗ مِمَّا خَلَقْنَآ |
| اوبه ډيرې پاکې.لپاره دَدی چه ژوندئ کړوپدې اوبوسره زمکه اوچې اوڅکوؤدغه اوبه پخپلومخلوقاتوباندی |
| اَنْعَامًا وَّاَنَاسِيَّ كَثِيْرًا ۝ وَلَقَدْ صَرَّفْنٰهُ بَيْنَهُمْ لِيَذَّكَّرُوْا ۖ |
| چې څناوردی اوخلق ډير.اوپه تحقيق سره تقسيم کړې دې مونږ باران په مينځ دَدوئ کښې لپاره دَدې چه دوئ نصيحت واخلی. |
| فَاَبٰٓى اَكْثَرُ النَّاسِ اِلَّا كُفُوْرًا ۝ وَلَوْ شِئْنَا لَبَعَثْنَا |
| نو نه دي کړې اکثر خلقو (بل څه کار) سوادَناشکرئ نه، اوکه خوښه وې زمونږنوليږلې به وې مونږ |
| فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ نَّذِيْرًا ۝ فَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَجَاهِدْهُمْ بِهٖ جِهَادًا كَبِيْرًا ۝ |
| په هرکلی کښې جداجدا يره ونکې پيغمبر.پس ته طاعت مکوه دکافرانواوجهادکوه دوئ سره پدې قرآن جهادلوئ. |

﴿وَهُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ الرِّيٰحَ﴾ دااووم (۷) دليل عقلی دې يعنی الله ﷻ دَباران ورولونه مخکښې هواګانې اوچلوی چه هغه زيرې ورکوونکی وی دَباران، اوبيا الله ﷻ دَاسمان نه پاکې اوبه رااوروی چه په هغې سره مړې زمکې راژوندئ شی اورزغونی شی اوهغه اوبه انسانان اوڅناور څکی، ﴿مَآءً طَهُوْرًا﴾ طهور په کلام دَعربو کښې ددوه (۲) معانيو دَپاره استعماليږی يوه معنٰی صفتی اوبله معنٰی اسمی، نوکچرې دلته دَدينه صفتی معنٰی مرادشی، نوداصفت دې دَ مآء دَپاره اوداتوصيف دَماء په طهورسره مبالغې دَپاره دې، نومعنٰی به ئې داوی چه ډيرې پاکې اوبه لکه سورة الدهرکښې الله ﷻ فرمائی چه وسقهم ربهم شرابا طهوراً اودباران اوبوته طهور پدې اعتبارسره وئيلې کيږی چه داداسمان نه راوريږی اودزمکې دَاجزاؤدَ آميزش نه پاکې وی، هم په اعتباردَمقرسره اوهم په اعتباردَممرسره، اويا طهورصيغه دَمبالغې ده معنٰی ئې داده چه داسې اوبه چه پاکئ راوستلوکښې کاملې وی، لکه صبور معنٰی ده ډير صبر کوونکې، اودَدې وجې نه بعض مفسرينو دَطهورتفسيرکړيدې په طاهر، مطهر، سره يعنی

خپله هم پاکې وی اوبل څیزلره هم پاکه وونکی وی.
اویادَطهور نه معنی اسمی مرادده،چه هغه آلې دَطهارت ته وئيلې کیږی.لکه حدیث کښې دی:التراب طهورالمؤمن،نودَماء طهوراً نه مراددادې چه اوبه آله دَطهارت ده یعنې پدې سره پاکی حاصلیږی.
**فائده**:امام مالك‌رحمه‌الله اوامام شافعی‌رحمه‌الله پدې آیت سره استدلال کړیدې چه هغه اوبه چه دَتقرب اویادَازالې دَنجاست حکمیه دَپاره استعمال کړې شی،یعنی ماء مستعمل نودغه اوبه بیاهم دَازالې دَنجاست حکمیه دَپاره استعمالیدې شی یعنی ماء مستعمل سره اودس اوغسل کول جائزدی ځکه چه دلته لفظ دَطهور ذکرشویدې،اودَطهورمعنی ده بارباریاکې راوستونکی لکه قطوع هغې آلې ته وئیلی کیږی چه باربارپریکول کوی.نولهذااوبه به باربارصفائی راوستونکی وی اګرچه مستعملې وی اودَاحنافوپه مسلك باندې په ماء مستعمل سره بیاپاکی حاصلول اواودس یاغسل ورسره کول جائزنه دی،اوجواب ئې دَدې ایت نه داکړیدې چه طهور په وزن دَفعول سره اګرچه صیغه دَمبالغې ده لیکن پدې کښې قانون دادې کچرته فعول دَباب متعدی نه وونوبیابه مبالغه فی العدداوتکرارفائده کوی.لکه قطوع شو ،اوکچرې دَباب لازمی نه وو،نوبیابه مبالغه په نفس فعل کښې فائده کوی،او تکرار به پکښې نه وی،نوطهور صیغه دَمبالغې ده دَلازمی نه،نولهذادابه په نفس فعل کښې مبالغه فائده کوی اوتکرارپکښې فائده نه کوې،باقی تفصیل په کتب دَاحادیثواوپه کتب دَفقه کښې ذکردې.
﴿لِّنُحْيِۦَ بِهِۦ بَلْدَةً﴾پدیکښې دَباران دَفوائدونه،دوه(۲)فائدې ذکرکیږی (۱)یوه داچه باران دَزمکې دَرازرغونیدلوذریعه اوسبب دې،اودویمه(۲)داچه دَانسانانواودَځاروودَڅکاك شی دې او﴿بَلْدَةً﴾اګرچه په ظاهرکښې مؤنث دې خومعنیً مذکردې،نوځکه ئې صفت مذکراوړې شو ،اوپدې آیت کښې دَباران په فوائدوکښې دَزمکې ژوندې کیدل ئې مقدم کړوپه هغه فوائدوباندې چه ځاروی یاورنه انسانان اخلی،ځکه چه حیات دَزمکې سبب دې دَحیات دَځاروواوانسانانودَپاره،اوبیاځاروی مقدم کړې شوپه انسانانوباندې ځکه چه اکثراسباب معیشت حصول دَځاروسره وابسته دی اوبیاپدې آیت کښې ذکردَځاروواوشواومرغئ اونور وحوش ذکرنشوځکه چه دَانسان عام منافع دَځاروسره وابسته دی،اوانسان دَدې نسل زیاته

وی.

﴿وَأَنَاسِيَّ كَثِيرًا ﴾ اناسی دبعضوپه نیزجمع دانسی ده اوبعض فرمائی چه جمع د انسان ده لکه سراحین جمع د سرحان ده نودا په اصل کښ اناسینٌ وو، نون په یاء سره بدل کړې شو اویاء په یاء کښ مدغم کړې شوه اناسی ورنه جوړشو.

دلته اشکال واردیګی چه څرنګه اوبوڅکلوته ټول ځاروی محتاجه دی نودغه شان ټول انسانان هم ورته محتاجه دی نودَ ﴿كَثِيرًا﴾ قید ذکرکولوڅه ضرورت وو؟

نوجواب ورنه دادې چه کثرت په اعتباردَحاجت دباران اوبوته دې یعنی دَباران اوبوته ډیرخلك محتاجه دی اوڅکی ئی اوځنی خلك داسې هم شته دې چه دَباران اوبوته نه وی محتاجه اوهغه نه څکی بلکه دَسمندراوبه دځان دَپاره صفاکوی اوهغه څکی،دویم جواب ورنه دادې چه دلته تقدیم اوتاخیردی خلقنا فعل فاعل دی او کثیرا ورله مبدل منه دې او انعامًا او اناسی" ورنه بدل واقع شویدی یعنی دَباران اوبه مونږډیرومخلوقاتوته ورڅکوو، چه هغه ځاروی اوانسانان دی.

﴿وَلَقَد صَرَّفْنَٰهُ بَيْنَهُمْ ﴾داهم زجردې منکرینوته اوپه صرّفنٰه کښ ضمیرپاراجع دې مطر(باران)ته دآیت مقصددادې چه داباران په مختلف طریقوسره دَدوئی په مینځ کښ ګرځوواګرځوو، په ځنی زمکه باندې باران په یووخت کښ اوشی اوځنې باندې په بل وخت کښ اوشی، په ځنې زمکې باندې کم باران اوشی اوپه ځینوباندې ډیراوشی اودادې دَپاره چه دوئی ورنه نصیحت واخلی،اویادَتصریف باران نه دَباران اوبه مختلفوعلاقوته په مختلفوصورتونوسره رسول مراددی،دَنهرونو، سیندوپه ذریعې سره دَباران اوبه الله ﷻ مختلف علاقوته رسوی،اویاضمیرراجع دې ماقبل مذکورټولودلائلوته،نودآیت مقصددادې چه په توحیدباندې دلائل مونږپه مختلف اندازسره باربارپیانه وو، دې دَپاره چه دوئی وعظ اونصیحت قبول کړی.

﴿فَأَبَىٰٓ أَكْثَرُ ٱلنَّاسِ ﴾یعنی اکثرخلك دَالله ﷻ دَنعمتونوناشکری کوی،څوك دَباران راوریدل ستوروته منسوب کوی اوڅوك ئې موسم ته منسوب کوی اودَالله ﷻ قدرت لره

پکښې څه تاثیرنه کړی ﴿وَلَوْ شِئْنَا لَبَعَثْنَا ﴾داتسلی ده نبی پاک ﷺ ته اوتشجیع ورکولې کیږي هغه ته.دآیت مقصددادې چه څرنګه الله ﷻ باران راحمت په مختلفوعلاقوباندې راوروی نودغه شان کچرته الله ﷻ غوختلې نونبوت چه پشانته دباران دې دابه ئې هم ستاپه زمانه کښې تقسیم کړې وې اوهرې هرې علاقې ته به ئې جداجداپیغمبرلیږلې وولکه څرنګه چه مخکښې امتونوته الله ﷻ جداجداانبیاء کرام لیږلی وو.لیکن الله ﷻ فیصله دااوکړه چه ستامرتبه بلنده کړی،اوتاته په نوروانبیاء کراموباندې فضیلت درکړی.نوستانبوت ئې ټولومخلوقاتودپاره عام کړواونبوت سلسله ئې په تاباندې ختم کړه.داآیت دلیل دې په ختم نبوت باندې،

﴿فَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ﴾داهم تشجیع ده نبی پاک ﷺ ته،یعنی هرکله چه تاته الله ﷻ دومره لوئی منصب اوفضیلت درکړوچه ته ئې خاتم النبیین اوګرځولې،نوته دَالله ﷻ خصوصی شکراداکوه اودکفارواطاعت مه کوه،اوکتمان حق مه کوه بلکه پدې قرآن سره دوئی سره جهادکبیرکوه اوجهادکبیردادې چه دَقران دَتبلیغ اونشرواشاعت دَپاره خپل پوره قوت صرف کړې شی اوسستی پکښې اونکړې شی،نودلته دَجهادنه مرادمصطلح جهادندې څکه چې داسورت مکی دې لکه صاحب دَروح المعانی فرمائی:الت تعلم ان السورة مكية ولم يشرع فى مكة الجهادبالسيف.بلکه دَجهادنه مرادتبلیغ دَقرآن اواشاعت دَدین دې.

| |
|---|
| وَهُوَ الَّذِيْ مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَّهٰذَا مِلْحٌ اُجَاجٌ ۚ |
| اوالله ﷻ هغه ذات دې چه یوځائ ئې روان کړیدی دوه دریابونه دایوخوږدې تنده ماتونکې اودابل تریودې سخت |
| وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا وَّحِجْرًا مَّحْجُوْرًا ﴿۵۳﴾ وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ مِنَ الْمَآءِ بَشَرًا ط |
| اوګرځولې ئې ده په منیځ دَدواړوکښې پرده اوبندپوخ.اوالله ﷻ هغه ذات دې چې پیدایې کړو دَاوبونه انسان |
| فَجَعَلَهٗ نَسَبًا وَّصِهْرًا ۗ وَكَانَ رَبُّكَ قَدِيْرًا ﴿۵۴﴾ وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ |
| نوګرځولې ئې دې خاوندنسب اوسخرګنئ.اوستارب ښه قادردې.اوعبادت کوی مشرکان ماسوی دَالله ﷻ نه |

| | |
|---|---|
| مَا لَا يَنْفَعُهُمْ وَلَا يَضُرُّهُمْ ۗ وَكَانَ الْكَافِرُ عَلٰى رَبِّهٖ ظَهِيْرًا ﴿۵۵﴾ | |
| دغه معبودانوچه نه ورته نفع ورکولې شي اونه ضرر.اودې کافرپه نافرمانئ درب خپل کښې مددګار(دشیطان) | |

﴿وَهُوَ الَّذِي مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ﴾ داتم(۸) دليل عقلی دې په دعوی دسورت باندې،يعنی دالله ﷻ په برکات ورکولوباندې دادليل هم دې چه دوه(۲)قسمه سمندرونه خوږاوتريخ په يوځائ باندې چلوی اودَدوئ په مينځ کښې غيرمحسوسه قدرتی پرده ده چه دَيوسمندرخوندا وذائقه په بل باندې نه غالبه کيږی حالانکه اوبه مائع دی ميلاويدلوسره ئې اختلاط دَيوبل سره راځی،او"مرج"په اصل کښې ازادپريخودلوته وئيلې کيږی لکه عرب وائی"مرجت الدابة"چه کله سورلئ خريدلووالاځائی کښې ازاده پريخودلې شی،دلته ورنه مراد دواړه سمندرونه متصلً جاری کول دی پديشان چه دَيوبل سره التباس اواختلاط نه راځی،﴿هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ﴾داتفصيل دَ"بحرين"دې او"فرات"دَفرت نه دې اودامقلوب دَرفت نه دې اورفت په اصل کښې"کسر"يعنی ماتولوته وئيلې کيږی اوخوږواوبوته ځکه فرات وئيلی کيږی چه پدې سره تنده ماتيږی،اوابن کثير رحمه الله فرمائی چه دَدينه مرادهغه اوبه دی چه جاری وی لکه انهار،عيون،اوسيندونه شواودَ"ملح اجاج"نه مرادهغه اوبه دی چه ولاړې دی اوجاری ندی صرف موجونه اوچپې پکښې راځی،لکه بحيره عرب،بحرهند اوبحرمحيط وغيره شو.

﴿وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا﴾دَ"برزخ"نه مرادهغه قدرتی مانع اوپرده ده چه په ظاهرکښې ستر ګوباندې په نظرنه راځی خويوسمندرپه بل باندې غالب کيدلونه منع کوی.﴿وَحِجْرًا مَّحْجُورًا﴾دامبالغه ده په عدم اختلاط کښې اوداکلمه په اصل کښې کلمه دَتعوذده،چه پناه اغستونکې پدې سره پناه غواړی،ګوياچه هريوسمندردَبل نه پناه غواړی،دلته ورنه مجازا هغه مضبوط مانع مراددې چه دااوبه دَيوبل سره ګډون ته نه پريدی.يعنی باوجوددَدې چه دَدواړوسطح يومعلوميږی خوالله ﷻ دَدوئ په مينځ کښې يوداسې حدفاصل،پيداکړيدې چه دَملتقی دَيوجانب نه چه اوبه راواغستلې شی نوهغه به خوږې وی اوبل طرف نه چه بالکل

متصل دي دهغې نه چه راواغستلې شي نوهغه به ترخې وي اوداپه ميلونو ميلونوپورې متصلي رواني وي اودېوبل سره ئې اختلاط نه راځي، دادالله ﷻ دقدرت لوئي دليل دي

**فائده**: دالله ﷻ په هركاركښې بې شمارحكمتونه وي چه هغه زمونږپه عقل اوفهم كښې نه راځي نودغه شان دوه(۲)سمندرې پيداكول(خوږ، ترېخ)پديكښې هم دالله ﷻ ډيرحكمتونه دي منجمله دهغې حكمتونونه يوحكمت داهم علماؤذكركړيدې چه لكه څرنگه انسان ته دڅكلو دپاره دخوږواوبوضرورت وي نودغه شان انسان دپاره دصفاماحول هم ضرورت دې.دخوږو اوبوخاصيت دادې چه دابدبوداره كيږي،كچرته ديته گنده اوبه لاړې شي ياپكښې حيوان مړشي. نودااوبه بدبونشي ختمولې،بلكه دهغې گنده اوبويادحيوان دمرداربدلودوجې نه دااوبه هم بدبوداري شي،اودترخو(مالگينې)اوبوخاصيت دادې چه داسخاكيږي هم نه،او كچرته گنده اوبه،ياحيوان پكښې مردارشي،نودهغې بدبوبهرته نه راځي،نوكچرته ټولې اوبه خوږې وې نوانسان ته به په زمكه باندې ژوندتيرول ډيرگران وو،ځكه چه گنده اوبه به دې خوږواوبوسره ميلاويدلې نودابه هم بدبوداري كيدلې اودغه شان كوم ځناوراوحيوانات چه پديكښې مړه كيدلې نودهغې به هم سخته بدبوئي بۀ وه نوالله ﷻ دخپل حكمت بالغه سره ځنې اوبه ترخې پيداكړې چه داټول گندگي هغې ته ځي اوهلته كښې ختميږي،اودانسانانوماحول صاف،ستهراوي.

﴿وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ﴾دانهم دليل عقلى دې يعنى الله ﷻ هغه عظيم قدرت والادې چه انسان ئې دمنى دنطفې نه پيداكړيدې اوبيائې پرې داعظيم اولوئې احسان اوكړوچه دمصاهرت(سخرگنئ)والائې اوگرځولو،نوتخليق اوسخرگنئ دواړه دانسان دپاره لوئې لوئې نعمتونه دي نومعلومه شوه چه بركات وركونكې ذات صرف الله ﷻ دې.

﴿مِنَ الْمَآءِ﴾غوره قول دادې چه مراددينه نطفه دمنى ده او"بشراً"نه مراداولاد دآدم ﷺ دى اوبعض فرمائي چه د"مآء"نه مرادمعروفى اوبه دى او﴿بَشَرًا﴾نه مرادآدم ﷺ دې اوچونكه دآدم ﷺ خاوره په اوبوكښې ميلاؤكولونه پس دآدم ﷺ صورت اوشكل ورنه جوړكړې شو، نواوبه جزء دى دمادې دبشرنه اگرچه عنصرغالب پكښې خاوره ده ليكن زيات كرداراودخل پكښې اوبولره دې نوځكه اوئيلې شوچه بشريعنى آدم ﷺ داوبونه پيداشويدې.

﴿فَجَعَلَهُۥ نَسَبًا وَصِهْرًا ﴾داد ده وه(۲)لوئ لوئ نعمتونوتذکره ده،نسب هغې رشتي ته اوقرابت ته وئیلی کیږی چه دپلار ریادَمورد طرف نه وی او صهر هغې قرابت ته وئیلې کیږی،چه دبی بی دَطرف نه وی چه هغې ته سخرګنئ وئیلی کیږی،اودادواړه قرابتونه دلوئ انعاماتونه دی،﴿نَسَبًا﴾داحاصلیږی په پیدائش سره﴿وَصِهْرًا﴾داحاصلیږی په نکاح سره نونسب دبقاء دانسان دپاره دې اوصهریت دحفاظت دنسب دپاره دې،اوهرکله چه بقاء دانسان وی نود دنیازینت به قائم وی،اوچه حفاظت دنسب وی نومعاشره کښې امن،سکون وی، دپلار، مور،خورااورورتمیزوی،دهریوخپل حق متعین وی اوکله چه حفاظت دنسب ختم شی نودامذکوره امتیازات هم ختم شی اوانسان صرف محض،حیوان شی،خوراك،څکاك اوشهوت پوره کول دده دژندګئ مقصداوګرځی اونن صبادکفری قوتونوپوره زورپدې دې چه حفاظت دنسب ختم شی اودشریعت دحدودونه ازاده معاشره جوړه کړې شی چه په هغې کښې دورور،خورامتیازدزنانه دپردې تصورختم کړی،مختلف این،جی،اوزدفلاحی خدماتوپه جامه کښې دکفری قوتونودامشن مکمل کول غواړی(اللّهم اناںعوذبك من الفتن،ماظهر منها ومابطن،آمین ثم آمین).

﴿وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾داشکوه بطورزجرده،یعنی ددومره واضح دلائلو باوجودمشرکین دشرك فی البرکت قائله دی اوهغه چاته دبرکاتوورکوونکې وائی چه هغوئی نه دوئی ته نفع رسولې شی اونه ددوئی نه ضرردفع کولې شی نوربه څهٔ برکت دوئی ته ورکړی،﴿عَلَىٰ رَبِّهِۦ ظَهِيرًا ﴾ظهیریعنی فعیل په معنٰی فاعل یعنی مظاهر سره دې، اومظاهرمعاون اومددګارته وئیلی کیږی،نودآیت معنی داده چه کافردَالله ﷻ ددین اودهغه دپیغمبرﷺپه مقابله کښې دشیطان معاون اومددګاردې اویا ظهیر په معنیٰ دذلیل اوسپك سره دې اوداماخوذدې د"ظهرت"نه کله چه یوکس طرف ته یادهغه کارطرف ته توجه ورنکړې شی نوعرب وائی:ظهرت به یاظهرفلان بحاجتی،یعنی فلانې څماحاجت شاته اوغورځولو،اوسورة هود ایت نمبر(۹۲)کښې هم دی چه:واتخذتموه وراء کم ظهریا،اودَدې وجې نه عرب متروك څیزته مظهوروائی،نودآیت مقصددادې چه کوم کس دَالله ﷻ علاوه دنوروڅیزونوعبادت کوی

حالانکه هغه ځیزونه دوئی ته نه په نفع ورکولوباندې قادردي اونه ضررر سولوباندې قادردي
نودغه کافربه دَالله ﷻ په دربارکښې ډیرذلیله اوسپک به وی.

وَمَآ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا مُبَشِّرًا وَّنَذِيۡرًا ۝۵۶ قُلۡ مَآ اَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ مِنۡ اَجۡرٍ

اومونږ ته نه ئې لیږلې مګرزیرې ورکونکې اویره ونکې، ته اوایه(دې مشرکانو ته)څه نه غواړم ستاسو نه پدې قرآن هیڅ اجر

اِلَّا مَنۡ شَآءَ اَنۡ يَّتَّخِذَ اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيۡلًا ۝۵۷ وَتَوَكَّلۡ عَلَى الۡحَىِّ الَّذِىۡ لَا يَمُوۡتُ

مګرهغه څوك چې خوښه ئې شی داچه ونیسی خپل رب ته لار(نودغه غواړم) اوتوکل کوه په ژوندی ذات باندې چې نه مری

وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِهٖ ؕ وَكَفٰى بِهٖ بِذُنُوۡبِ عِبَادِهٖ خَبِيۡرًا ۝۵۸ الَّذِىۡ خَلَقَ

اوپاکی وایه سره دَحمددَالله ﷻ نه، اوکافی دې الله ﷻ په ګناهونودَبندګانوخپلوخبردار، هغه الله ﷻ چه پیداکری ئې دی

السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ وَمَا بَيۡنَهُمَا فِىۡ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسۡتَوٰى عَلَى الۡعَرۡشِ ۛۚ

آسمانونه اوزمکه اوڅه چې په مینځ دَدې دواړوکښې دی په مقداردشپږوورځوکښې بیائې استوی کړیده په عرش،

اَلرَّحۡمٰنُ فَسۡـَٔلۡ بِهٖ خَبِيۡرًا ۝۵۹ وَاِذَا قِيۡلَ لَهُمُ اسۡجُدُوۡا لِلرَّحۡمٰنِ ۚ

الله ﷻ ډیرمهربانه دې نوته سوال کوه دَخبردارذات نه، اوکله چې اووئیلې شی دوئ ته سجده اوکړئ رحمان ذات ته

قَالُوۡا وَمَا الرَّحۡمٰنُ ۗ اَنَسۡجُدُ لِمَا تَاۡمُرُنَا وَزَادَهُمۡ نُفُوۡرًا ۝۶۰

نووائی دوئ څه ځیزدې رحمان، آیاسجده اوکړوهغه چاته چې ته ئې مونږته امرکوې اوزیاتوی(دغه حکم دسجدې)دوئ ته نفرت

﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ إِلَّا مُبَشِّرًا﴾ پدې آیت کښې تسلی ده نبی پاك ﷺ ته چې ته مونږ په دوئی باندې چوکیداریانګهبان نه ئې لیږلې ته صرف زیرې ورکوونکې اوویره ورکوونکې ئې نودَدوئی په ایمان نه راوړلوباندې مه پریشانه کیږه، اودغه شان دکفارودَیوسوال جواب هم دې، کفاروبه دَنبی پاك ﷺ نه سوال کولوچې کچرې ته ریښتونې پیغمبرئې نوزمونږدَفرمائش مطابق معجزه پیش کړه، ته ولې زمونږدَفرمائش مطابق معجزه نه پیش کوې؟ نوجواب ورنه اوشوچې دَنبی دَنبوت مقصددَالله ﷻ دَاحکاماتوتبلیغ اورسول دی، کوم خلك چه دَالله ﷻ احکامات اومنی هغوئی ته زیرې ورکوی اوڅوك چه اونه منی هغه ته یره ورکوی، معجزه

دَهغه په خپل قدرت او اختیار کښې نه وی بلکه الله ﷻ دَخپل حکمت مطابق هرپیغمبرته په خپل دور کښې مناسبه معجزه ورکړیده.

﴿قُلْ مَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ﴾ داتاکیددې په صدق دَنبوت دَنبی پاک ﷺ باندې،یعنی اې پیغمبره!ته دوئی ته دااوایه چې څمادَدعوت اوتبلیغ مقصدستاسونه څه مالی،دنیوی فائده اغستل ندی څه پدې خپل وعظ اونصیحت سره ستاسونه بدله یاچنده نه غواړم،څمامطالبه صرف داده چې تاسودَالله ﷻ دین قبول کړئی.﴿إِلَّا مَن شَآءَ﴾اکثروعلمآؤقول دادې چه دااستثناء منقطعه ده"الاّ"په معنیٰ دَ لکن سره دې،اوجزاء دَمن په اخیرد کلام کښې محذوفه ده چه"فليفعل"دې اوده﴿أَن يَتَّخِذَ﴾نه مراددَالله ﷻ قربت حاصلول دی په انفاق اوصدقاتو سره، نودآیت مقصددادې چې څه خوستاسونه دَمال یاچندې یادَتنخواه مطالبه نه کوم،البته که څوك الله ﷻ ته قربت حاصلول غواړي په خپل مال سره نوانفاق دې اوکړی اویادَ﴿أَن يَتَّخِذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ﴾ نه مرادمطلق هدایت دې اوجزاء په اخیرکښې"فليتبعني"مقدره ده نودآیت مقصددادې کچرې څوك غواړی چه الله ﷻ طرف ته صحیح لاره اونیسی یعنی هدایت اومومی نوهغه دې څمااتباع اوکړی اوبعض فرمائی چه استثناء متصله ده اودَ"الاّ"نه ورستوپه کلام کښې حذف دَمضاف دې،نواصل عبارت داسې دې:مااسئلکم علیه من اجرٍالاّفعلُ من شآء ان یتّخذ الی ربّه سبیلاًبالایمان،یعنی څه ستاسونه دَاجرت اودَتنخواه مطالبه نه کوم مګرڅمااجرت صرف دَهغه چادکارفائده ده چې ایمان قبول کړی،یعنی څمااجرت څه بل څیزندې بلکه څمااجرت دادې چه تاسوڅمادعوت قبول کړئی اوایمان راوړئی،اودَداسې قسم عباراتوده(۲)مقصدونه وی بواظهاردکمال شفقت وی لکه یوبوډاپلارخپل اولادته وائی چه تاسوخورئی اوڅکئ څماخوراك اوڅکاك بس دادې چه تاسواوخورئی اواوڅکئ،نودغه شان نبی پاك ﷺ هم دوئی ته اونیلوچه څمابله څه فائده نیشته دې سیوادَستاسودَفائدې نه یعنی ستاسوایمان راوړل ستاسوخپله فائده ده خوداسې ده لکه څمافائده،اودویمه فائده ئې نفی بالکلیه دَلالچ وغیره مقصودوی،لکه داقول دَشاعردې:

ولاعیب فیهم غیران نزیلهم ‌ ‌ ‌ ‌ یعاب بنسیان الاحبة والوطن

يعنى پدې قوم كښې بل هيڅ عيب نيشته دې سيواددينه چه ددوئى په ميلمه باندې داعيب لرى چه هغه خپل ملګرى اووطن هيره وى،يعنى خپل ميلمه ته دومره محبت وركړى چه هغه مليمه خپل نورملګرى اووطن هيركړى،حالانكه داخوعيب ندې خوپه صورت دَاستثناء كښې ذكركول تاكيدپه نفى دَعيب كښې مقصوددې اوداپه منزله دَتاكيدالمدح بمايشبه الذم نه دې.

﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِي﴾داتسلي ده نبى ﷺ ته،يعنى هركله چه داخبره ثابته شوه چه نفع اوضرررسونكي بل څوك نيشته دې سيوادَالله ﷻ نه اوته په خپل وعظ اونصيحت باندې دَځه اجرت اودَمالى معاوضي مطالبه هم نه كوى نودَدې وجې نه ته دكفاروپه تكاليفو اواذيتونوباندې صبركوه اوپه هغه ذات باندې توكل اوبهروسه كوه چه په حيات حقيقى سره متصف دې،﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِهِ﴾دَتسبيح اوتحميدنه،تسبيح اوتحميدقولى هم مرادكيدې شي،اوتسبيح عملى،يعنى مونځ ورنه هم مرادكيدې شى اودادواړه انسان ته دَاستقامت سره،سره دَتكليف نه نجات اوخلاصى هم وركوى،نوځكه دادواړه دَتوكل نه ورستوذكركړې شو.

﴿وَكَفَىٰ بِهِ بِذُنُوبِ﴾دازجردې منكرينوته اوثمره دَتوكل اوتسبيح وتحميد ذكركيږى،يعنى الله ﷻ دَدې معاندينوكفارودَجرم نه اوګناه نه بې خبره ندې،الله ﷻ به دوئى ته پوره پوره سزاوركړى،﴿الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ﴾دالسم(۱۰) دليل عقلى دې په دعوه دَسورت باندې چه اسمانونه اوزمكې اوهغه ټول څيزونه چه دَدې دواړوپه مينځ كښې دى الله ﷻ دَشپږووړخومدت په اندازې باندې پيداكړيدى اوبيائى پديكښې تصرف هم په خپل اختياركښې اغستې دې بل هيڅ چاته ئې ندې حواله كړې نومعلومه شوه چه بركات وركوونكې هم صرف هغه دې دَدې آيت تشريح په مختلفومواضعوكښې تفصيلاًتيره شويده،سورة اعراف ايت نمبر(۵۴)سورة يونس آيت نمبر(۳)اوسورة الرعدآيت نمبر(۲)كښې كتلې شئ اودغه شان په باره دَاستواء كښې مذاهب هم تفصيلاذكرشويدې اوهلته ذكرشويدې چه استواء كښې تاويلى معنىٰ مرادكول جائزدى غلط ندى بلكه متاخرينوعلماؤتاويل اسلم ګڼړلې دې نوتاويل ته

ناجائزوئیل غلط دی﴿ٱلرَّحۡمَٰنُ فَسۡـَٔلۡ بِهِۦ﴾ الرحمٰن خبردمبتداء محذوفی دپاره یعنی هوالرحمن یعنی رحمت اوبرکت ورکوونکې ذات صرف الله ﷻ دې عبادت اوسجده بل چاته نده جائزه سیوادهغه نه.ای هوالرحمٰن الذی لاینبغی السجودوالتعظیم الاله(کبیر)او﴿فَسۡـَٔلۡ بِهِۦ﴾کښې باء یازائده ده لکه رأیت به اسداً،چه داپه اصل کښې رأیت اسداً،دې نوداترکیب هم په اصل کښې فسئله خبیراً دې نومعنی ئې داده چه سوال کوه ته دخبرداره ذات نه،چه الله ﷻ دې اویاباء زائده نده بلکه دتوسل په معنی سره ده اوضمیرراجع دې اسم درحمٰن ته او﴿خَبِيرٗا﴾حال واقع شویدې درحمن نه نومعنیٰ داشوه چه سوال کوه ته په وسیله داسم درحمٰن سره حال داچه خبیرذات دې اویا باء په معنی دعن سره ده،لکه سال سائل بعذاب واقع کښې باء په معنی دعن سره ده ای عن عذاب واقع،اوخبیراًنه مرادهغه څوك دې چه عارف وی په صفاتودرحمت اودبرکت دالله ﷻ باندې،نومعنی ئې داشوه چه دالله ﷻ دصفاتودبرکت اورحمت په باره کښې هغه چاته تپوس اوکړه چه عالم اوخبرداره وی پدې صفاتوباندې چه انبیاء کرام دی یاعلماء دی چه وارثان دانبیاء کرامودی.

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱسۡجُدُواْ﴾داشکوه ده په منکرینوباندې،یعنی هرکله چه دوئی ته اوئیلی شی سجده اوکړئی رحمان ذات ته،نودوئی انکاراً اوتعجباً داخبره کوی چه مونږخو رحمٰن نه پیژنو؟رحمان څوك دې؟ اوددوئی داسوال یامبنی ووپه جهالت باندې اویاپه تجاهل باندې،که په جهالت باندې مبنی شی نوجهالت ددوئ یاذات درحمٰن نه وو،یعنی دوئی ذات دالله ﷻ نه پیژندلولکه په بل ځائی کښې الله ﷻ فرمائی وهم یکفرون باالرحمٰن (الرعد: ۳۰)اویائی جهالت په تسمیه کښې وو،یعنی دوئی ته دالله ﷻ ذات معلوم ووخودهغه دپاره درحمٰن نوم استعمالیدل دوئی ته نه ووٰمعلوم نوځکه ئې تپوس اوکړوچه﴿وَمَا ٱلرَّحۡمَٰنُ﴾ اویاداجهالت په عهدکښې ووچه ددوی په معاشره کښې لفظ درحمٰن به مسیلمة الکذاب ملعون دپاره استعمالیدلواوهغه مشهوروو،په نوم درحمٰن الیمامة سره،نوددې وجې نه دوئی انکار،اوکړواوپوښتنه ئې اوکړه چه رحمٰن څوك دې؟ رحمٰن خوصرف رحمٰن الیمامة

دي اوياددوئی داسوال مبنی ووپه تجاهل باندې.يعني دوئی به تجاهلاًاوعناداً دَمسمی اوذات دَ رحمٰن په باره کښ تپوس کولو ،اودیته ترجیح ورکړیده صاحب دَروح المعانی

﴿أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا﴾استفهام دَپاره دَانکاردې يعنی مونږ هغه رحمٰن"ته سجده نه کووکو.

ذات ته چه دَسجدې لګولوحکم ته مونږته کوی؟﴿وَزَادَهُمْ نُفُورًا﴾يعني داحکم په سجده لګولوسره ددوئی نفرت دَدین اوایمان نه نورهم زیاته وی.

| |
|---|
| تَبٰرَكَ الَّذِىْ جَعَلَ فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا وَّجَعَلَ فِيْهَا سِرٰجًا |
| برکت ورکونکې هغه الله دې چه پیداکړی ئی دی په آسمان کښ برجونه اوپیداکړې ئی ده په دې اسمان کښ ډیوه(نور) |
| وَّقَمَرًا مُّنِيْرًا ۝ وَهُوَ الَّذِىْ جَعَلَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ خِلْفَةً لِّمَنْ |
| اوسپوږمۍ روښانه اوالله ﷻ هغه ذات دې چه ګرځولې ئ ده شپه اوورځ يوبل پسې راتلونکې لپاره دَهغه چاچې |
| اَرَادَ اَنْ يَّذَّكَّرَ اَوْ اَرَادَ شُكُوْرًا ۝ وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِيْنَ يَمْشُوْنَ عَلَى الْاَرْضِ هَوْنًا |
| اراده لرې چې نصیحت واخلی یااراده لرې دَشکرکولو،اوبندګان دَرحمان هغه دی چې ګرځی په زمکه په عاجزئ سره. |
| وَّاِذَا خَاطَبَهُمُ الْجٰهِلُوْنَ قَالُوْا سَلٰمًا ۝ وَالَّذِيْنَ يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا |
| اوکله چې خبرې کوی دوئ سره جاهلان نوکوی دوئ خبره سمه .اودوئ هغه دی چې شپه تیروی خپل رب ته سجده کونکی |
| وَّقِيَامًا ۝ وَالَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ ۖ اِنَّ عَذَابَهَا |
| اواودریدونکی، اودوئ هغه دی چې وائی اې ربه زمونږ واړه وه زمونږنه عذاب دَجهنم، بې شکه عذاب دَجهنم |
| كَانَ غَرَامًا ۝ اِنَّهَا سَآءَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا ۝ |
| عذاب همیشه دې بې شکه جهنم ډیربدځای دې دَقرارئ اودَاوسیدلو |

﴿تَبَارَكَ الَّذِي جَعَلَ﴾دَسورت په اخیرکښ اعاده دعوی دَسورت کیږی ،اویولسم(۱۱)

اودولسم(۱۲)دلیل عقلی ذکرکیږی په دعوه دَسورت باندې،اوبیاصفات دَمؤمنانو ذکر

کیږی،نودااعاده دَدعوی ده سره دَدولسم(۱۲)دلیل عقلی نه يعني برکات ورکوونکې ذات

صرف الله جَلَّجَلَالُهُ دي چه هغه په اسمان کښې مختلف برجونه پیداکړیدی اونمراوسپوږمۍ ډَرنړاوالاپیداکړیدی.او برُوج په اصل کښې لوئی لوئی محلونوته وئیلي کیږی.خودلته ورنه یامراددَزیات غوره قول مطابق،دولس(۱۲)مشهورمنازل دی،اوه(۷)سیاراتودَپاره،څکه چه دامنازل په منزله دَلوئی محلاتودی دَ(۷)اوه سیاراتودَپاره چه تفصیل ئې سورة الحجر آیت نمبر(۱۷)اوسورة یونس آیت نمبر(۵)کښې تیرشویدې اویادَبروج نه نفس محلات اوقصورمراددی چه قریب دَاسمان کښې واقع دی دَپاره دَچوکیدارملائکوچه محافظ ملائك په هغې کښې موجودي وی.

﴿وَجَعَلَ فِيهَا سِرَٰجًا﴾ فيها کښې ضميرياراجع دې بروج ته اويااسمان ته اودَسراج نه مرادنمردې اونمرته سراج وئیل او قمر متصف کول په صفت دَنور سره پدیکښې اشاره لطیفه ده چه نمررنړابذاته ده اودَسپوږمۍ رنړااستفاده ده دَرنړادَنمرنه،﴿وَهُوَ ٱلَّذِى﴾دَاآخیری اودولسم دلیل عقلی دې یعنی الله جَلَّجَلَالُهُ شپه،ورځ دَیوبل نائب اویوبل پسې زرزرراتلووالا پیداکړیدی،دې دَپاره چې انسان پدیکښې سوچ اوفکراوکړی اودَالله جَلَّجَلَالُهُ شکریه اداکړی ﴿خِلْفَةً﴾ نه مرادخلیفه،نائب اودَیوبل قائمقام جوړیدل دی،اودانیابت یاپدې اعتبارسره دې چې یوځی نوبل راځی،شپه لاړه شی،نوورځ راشی اوورځ لاړه شی نوشپه راشی،اویانیابت اوقائمقام پدې اعتبارسره دې چې کوم ورداوعمل په یووخت کښې پاتې شی نوپه بل وخت کښې ئې راګرځولې شی،لکه په حدیث دَانس رضی الله عنه کښې دی چې نبی پاك ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه ته اوفرمائیلوچه:یاابنِ الخطّاب لقدانزل الله فيكَ آيةً،وتلاوهوالذی جعل اللّیل والنّهارخلفة، مافاتك من النوافل بالليل فاقضه في نهارك ومافاتك من النهارفاقضه فی ليلك.یعنی اې عمر رضی الله عنه الله جَلَّجَلَالُهُ ستاسودَسهولت په باره کښې ایت نازل کړیدې اوبیانبی ﷺ دامذکورآیت تلاوت کړواوبیائې اوفرمائیلوچه کوم نفلی عمل دَشپې ستانه پاتې.شی نوهغه دَورځې پوره کوه اوچه دَورځې پاتې شی نودَشپې ئې پوره کوه،اوبعض فرمائی چه﴿ خِلْفَةً ﴾دَمخالفت نه دې یعنی دَیوبل مخالف ئې پیداکړیدی،ورځ دَرنړاوالاده اوشپه دَتیارې والاده،لیکن اوله معنی زیاته غوره ده.

﴿لِمَنْ أَرَادَ أَن يَذَّكَّرَ﴾پدیکښ دوه(۲)قرائته دی یوقرائت دَجمهوروديِ چه په تشديدسره دې،معنی ئی ده نصيحت قبولول،يعنى دااختلاف اونيابت دې دَپاره دې چه څوك وعظ اونصيحت قبولواراده لرى نوهغه پديكښ سوچ اوفكراوكړى اووعظ اونصيحت قبول كړى اودليل اونيسى په وحدانيت اووجوددَالله ﷻ باندې،چې دَدې اختلاف پيداكوونكې تن تنهايوعظيم ذات دې،دغه شان ذكرپه سورة ال عمران آيت نمبر(۱۹۰، ۱۹۱)كښ هم دې،اودويم قرائت دَبعضودې چه يذكرپه تخفيف سره دې چه دَذكرنه مشتق دې،نومطلب دادې چې دَشپې اوورځې اختلاف دَدې دَپاره دې چې څوك دَالله ﷻ دَذكراراده كوى اوپاتې شوې عمل پوره كوى،چې هغه دَپاره سهولت وى اوخپل عمل پوره كړى،اى يذكرالله اوالمنسى فيقضى(مدارك).

﴿أَوْ أَرَادَ شُكُورًا﴾ يعنى په هغه انعاماتوباندې شكراداء كړى كوم چې الله ﷻ پدې شپې اوورځ كښ پيداكړيدى،دَشپې لوئى نعمت داوې چې دَورځې ستړې ستومانه انسان په ارام سره خوب اوكړى،توله ستومانتيائې ختم شى،اودَورځې والالوئى نعمت دادې چې انسان پكښ طلب دَرزق حلال اوكړى،لكه سورة القصص ايت نمبر(۷۳)كښ ذكردى،او دَلته دَمانعة الخلودَپاره دې يعنى دَشپې اوورځې دااختلاف ددې نه خالي كيدل ندى پكار،يادې استدلال اوكړى ددينه په لوئى قدرت اووحدانيت دَالله ﷻ باندې اويادې انعاماتوته نظراوكړى اودَالله ﷻ شكردې اداكړى،نودَدې دواړوحالاتونه دې نه خالي كيږي،اوكه دواړه جمع شونوډيربهتردې،

﴿وَعِبَادُ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلَّذِينَ﴾داپه اخيركښ څوارلس صفات دَمؤمنانوذكركيږى،دَدې اياتونو ربط دَماقبل سره دادې چه ماقبل كښ دَدې ذكروو چې دنياكښ بركاتووركوونكې ذات الله ﷻ دې نوپدې اياتونوكښ دَدې ذكركيږى چه په آخرت كښ هم بركاتووركوونكې ذات صرف الله ﷻ دې،چه خپلونيكانوبندګانوته به بركات وركوى اونيكان بندګان څوك دى نودَهغوئ اوصاف ذكركيږى اودغه شان په ماقبل كښ ذكروو چې "لمن اراد ان يذكر"نوپدې آياتونوكښ دَنصيحت قبولوونكواوشكراداكوونكوخلكواوصاف بيانيږى.

﴿وَعِبَادُ ٱلرَّحْمَٰنِ﴾ عباد الرحمن مرکب اضافی مبتداده اوخبرئې په آخیرکښ ذکرکیږی
چه﴿أُوْلَٰٓئِكَ يُجْزَوْنَ ٱلْغُرْفَةَ﴾دې، اودې په مینځ کښ دنیکانوبندګانوڅوارلس(۱۴)صفات
بیانیږی، اوداصفات په دوه(۲)قسمه دی یوصفات تحلیه دی اودویم قسم صفات تخلیه
دی، په اول پنځوایاتونوکښ یعنی ایت نمبر(۲۷)پورې، صفات تحلیه دی، اوبیاصفات تخلیه
دی اوهرکله چه صفات تحلیه مستلزم ووصفات تخلیه لره نوځکه اولاًذکردصفات تحلیه
اوکړې شواوبیاورپسې تاکیداًذکردصفات تخلیه کیږی، اواضافت د عباد رحمٰن ته دپاره
دتشریف اوتعظیم دې، اوعبادنه مرادتشریعی اواختیاری عبدیت دی ورنه تکوینی طورباندې
هرشئ دالله ﷻ بنده دې، اوعبدتشریعی هغه څوک دې چه په خپلوعقائدو، افعالو، او
خواهشاتوکښ دالله ﷻ مرضی مطابق وی اوهرقسم عبادت که جانی وی، یامالی وی صرف
دالله ﷻ دپاره کوی اودیته حق عبادت وئیلې کیږی، ای الذین یعبدونه حق عبادته(کبیر)او
داجمله دکفاردهغې قول په مقابل کښ ذکرشوه چې کله به هغوئی ته اوئیلې شوچه رحمٰن ته
سجده اوکړئی نوهغوئ به وئیلوچه: ماالرحمٰن؟ یعنی رحمٰن څوک دې، مونږخوئې نه پیژنو؟ نو
دهغې په مقابلې کښ اوئیلې شو، چې وعبادالرحمٰن الذین، یعنی دالله ﷻ اودرحمٰن معرفت
دهغه تشریعی بندګانوته حاصل دې، هغوئی دده عبادت کوی اوڅوک ورسره نه شریکه وی.

﴿ٱلَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى ٱلْأَرْضِ﴾ دااول صفت دې﴿هَوْنًا﴾ یاصفت دې دمفعول مطلق
محذوف دپاره نوپه اصل کښ داسې دې، یمشون مشیاهونًا، اویاحال دې دضمیرد یمشون نه ای
یمشونه هینین او هون په اصل کښ نرم اواسان ته وئیلې کیږی، دلته ورنه مرادسکون اوعاجزی
ده یعنی چه ګرځی نوپه سکون اووقاراوعاجزئی سره ګرځی، غروراوتکبرنه کوې ډیررو،
اوتکبرانه اندازسره ګرځیدل شرعًامذموم اوخلاف سنت دی، په حدیث شریف کښ دنبی
پاک ﷺ دګرزیدلوکیفیت داسې بیان کړې شویدې چې حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی:
کان رسول الله ﷺ اذامشی تکفی کانماینحط من صبب، یعنی حضور ﷺ تلل به داسې ووچه ګویا
چه داوچت ځائ نه لاندې ځائ ته څوک کوزیږی اوپه بل روایت کښ دی چې: کانماالارض تطوی
له، یعنی ګویاچه زمکه به حضور ﷺ دپاره رانولیدله، ابن کثیر رحمه الله نقل کړیدی چې حضرت

عمرﷺ یونوجوان اوکتلوچی ډیررو.رو روان وو.حضرت عمرﷺ ورنه تپوس اوکړوچی ته بیماریې؟ هغه ورته اوئیلوچه.نا،څه خوبیمارنه یم نوحضرت عمرﷺدره وربانديې اوچته کړه اوحکم ئې ورته اوکړوچی قوت سره ګرځه،نودديې نه معلومه شوه چی ډیررو.روتګ بلاضرورته شرعاًمذموم دي اودغه شان ډیرتیزتلل هم شرعاً مذموم دی.صاحب دَروح المعانی په حوالې دَابونعیم سره دَحضرت ابوهریرةﷺ نه اوپه حوالې دَابن النجارسره دَابن عباسﷺ نه حدیث نقل کړیدې فرمائی چه:قال رسول الله ﷺ سرعة المشي تذهب بهاء المؤمن. یعنی ډیرتیزتلل دَمؤمن وقاراوسنجیدګی ختم کوی نودَهونا مطلب داشوچی نه ډیرسست رفتاریې سره تلل پکاردی چی داعلامه دَتکبرده ارنه ډیرتیزتلل پکاردی چی پدې سره وقار،اوسنجیدګی ختمیږی،بلکه معتدل طریقې سره تلل پکاردی،سورة لقمان آیت نمبر(۱۹) کښ دَدینه تعبیرپه قصد سره شویدې.

امام رازیؒ دَزیدبن اسلمﷺ نه دَدې تفسیرداسې نقل کړیدې چی:هم الذین لایریدون الفسادفی الارض،یعنی دَدینه مرادهغه خلك دی چی دَهغوئی تلل دَفساددَپاره نوی،دَدې مطلب دادې چی دَمؤمن دَتللواودَرفتارکیفیت هم صحیح وی،یعنی موافق دَسنت وی اومقصددَرفتارئی هم صحیح وی،چاته تکلیف ورکول یانورمعاصی کول دَده دَتللوپه مقاصدوکښ نوی شامل.

﴿وَإِذَا خَاطَبَهُمُ ٱلْجَٰهِلُونَ﴾دادویم صفت دې یعنی چه کله جاهلان دوئی سره مخاطبه کوی اودوئی سره غیرمناسبه رویه استعمالوی،دوئ ته سپکې خبرې اوکنځل کوی نودوئ دَدې جاهلانوسره جهالت نه کوی،بلکه دوئی ورته سلام،وائی،اومراددَسلام نه یاسلام متارکت دې چی مقصودپه هغې سره مقاطعه اوبراءت کول وی لکه سورة القصص ایت نمبر(۵۵)کښ دی اویادَسلام نه مرادقول سدیدیعنی حقه ویناکول دی،اوقول سدیدیعنی حقه ویناته سلام ځکه وئیلې کیږی چی پدیکښ انسان بل چاته ایذا اوتکلیف رسولونه،اودګناه نه محفوظ وی.

﴿وَٱلَّذِينَ يَبِيتُونَ﴾دادریم صفت دې،هرکله چه ماقبل آیت کښ دَدوئ دورځې تصرفات ذکروو،اوس پدې آیت کښ دَدوئ دَشپې افعالواوتصرفاتوذکردې،یعنې دَالله ﷻ

د نیکانو بندګانو صفت داهم دي چه شپه په عبادت کښ تیره وی. اومراد په ﴿يَبِيتُونَ﴾ سره یا ټوله شپه اویا اکثر حصه دشپي عبادت کول دی اوبعض فرمائی چه مرادورنه دتهجدمونځ دي بعض فرمائی چه دماسخوتن مونځ نه پس دوه «۲» رکعات مونځ کول ورنه مراددی اوبعض فرمائی چه پدي کښ دماسخوتن اوسهارمونځ په جمعي سره کول هم پکښ داخل دی. باقی دشپي نوافل اوتهجدکول دهغې فضیلت په ډیرواحادیثوکښ دي چه معروف اومشهوردی.

﴿وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا﴾ دا څلورم صفت دي یعنی دالله ﷻ نیکان بنده ګان دعبادت اواطاعت سره سره دالله ﷻ دعذاب نه خوف اویره هم لری اوپه خپل عبادت باندي صرف اعتمادنه کوی بلکه دالله ﷻ نه دعاګاني غواړی اودجهنم دعذاب نه پناه غواړی، اودادعاګاني په مانځه کښ هم غوختلي شی اودمانځه نه پس هم غوختلي شی، ﴿إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا﴾ دا تعلیل دي دپناه غوختلودعذاب جهنم نه او "غرام" شرلازم اوعذاب دائم ته وئیلي کیږی. ﴿إِنَّهَا سَاءَتْ﴾ دابل تعلیل ذکرکیږی دپناه غوختلودعذاب جهنم نه، چه داجهنم ډیربداوناکاره ځائی دي ځکه ورنه پناه غوختل ضروری دی، اودي دواړوایاتونوپه مینځ کښ حرف عطف رانوړي شودپاره ددي چه تنبیه راشی چه دادواړه مستقل علتونه دی

| |
|---|
| وَالَّذِينَ إِذَا أَنْفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا |
| اودوئ هغه دی چه کله خرچ کوی مال نونه اسراف کوی اونه کموالي کوی |
| وَكَانَ بَيْنَ ذَٰلِكَ قَوَامًا ﴿٦٧﴾ وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ |
| اووی خرچ ددوئ په مینځ ددي کښ برابر، اودوئ هغه دی چه نه راغواړی دالله سره بل خدائ، اونه قتلوی |
| النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ ۚ وَمَنْ يَفْعَلْ |
| هغه کس چه حرام کړیدي الله ﷻ قتلول دهغه مګرپه حق سره اودوئ زنانه کوی. اوچاچه اوکړو |
| ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا ﴿٦٨﴾ |

يو ډېرغوكارونونه نواوبه مومنې سزاډه غې

﴿وَٱلَّذِينَ إِذَآ أَنفَقُواْ﴾ماقبل اياتونوكښې عبادت بدنى اوقولى ذكروو،پديكښې دهغه صفاتوذكردې چه تعلق ئې دمال سره دې اودادرې(۳)صفات بيانيږي.اول داچه انفاق كوى،دويم داچه اسراف نه كوى اواسراف وئيلې كيږى خرچ كولودمال ته په غيرداطاعت دالله ﷻ اورسول ﷺ كښې يعنى معاصيواوګناهونوكښې خپل مال خرچ كول اګرچه لږاومعمولى غوندې ولې نوى ديته اسراف وئيلې كيږي.

﴿وَلَمْ يَقْتُرُواْ﴾يعنى اقتارنه كوى اقتار وئيلې كيږى بخل كولوته په خرچ كولودمال كښې دپاره داطاعت دالله ﷻ لكه زكوة نه وركول،تبليغ ياجهادكښې خپل مال نه خرچ كول وغيره شو﴿قَوَامًا﴾قوام په فتحې دقاف اوپه كسرې دقاف سره وئيلى كيږى وسط اوعدل ته،يعنى عبادالرحمٰن په خپل مالونوكښې نه اسراف كوى چه په معاصيوكښې خرچ كړى اونه بخل كوى چه دينى كارونوكښې هم نه خرچ كوى،بلكه معتدله اووسط لاره ئې اختياركړې وى.﴿وَٱلَّذِينَ لَا يَدْعُونَ﴾پدې ايت كښې مزيددرې(۳)اوصاف ذكركيږى،اوداصفات تخليه دى،

**شان نزول**:ددې آيت شان نزول په روايت دبخارى اومسلم كښې داسې ذكرشويدې چه دمشركانوځه كسان ووچه ډيرقتلونه اوزناګانې ئې كړې وې،نبى پاك ﷺ ته راغلل عرض ئې اوكړوچى كوم دين ته،ته مونږرابلې،داخوډيربهترين دې،خومونږه ډيرګناهونه كړيدى كچرې زمونږداګناهونه معاف كيدى شى نومونږبه ايمان راوړو،نوالله ﷻ داآياتونه يعنى لايدعون نه تر الامن تاب وامن پورې نازل شو.

﴿لَا يَدْعُونَ مَعَ ٱللَّهِ﴾مرادورنه هرقسم عبادت كښې شريك ګرځولونفى ده اوهركله چې شرك په ټولوكښې لوئى ګناه اوجرم دې نوددې وجې نه په صفات تخليه كښې دټولونه.اول ذكرشو،په روايت دبخارى اومسلم كښې دحضرت عبدالله بن مسعود ؓ نه مروى دى فرمائى چې:قُلتُ يارسول الله اىُّ الذّنب اكبرعندالله،قال ان تدعولله ندًّاوهوخلقكَ،قلتُ ثمّ اىُّ؟ قال ان تقتُل ولدَك مخافة ان يّطعم معكَ،قلتُ ثمّ اىُّ؟قال ان تزنى حليلةَ جارَكَ،فانزل اللهُ تصديقها والذين

لایدعون الخ یعنی حضرت ابن مسعود ﷛ فرمائی چه ماعرض اوکړوچه یارسول الله دالله په نیزکوم ګناه ډیرلوئ دې،نونبی ﷺ اوفرمائیلوچه ته دالله ﷻ سره شریك جوړکړې حالانکه هغه ته پیدا کړې ئې.ما بیاعرض اوکړوچه بیاکوم ګناه لوئ دې نونبی ﷺ اوفرمائیلوچه ته خپل بچې قتل کړې دَدې ویرې نه چه ستاسره به خوراك کوی(دَهغه دَمالی بوج دَوجې نه بچې قتل کړی)مابیاعرض اوکړوچه بیاکوم ګناه لوئ دې؟نونبی ﷺ اوفرمائیلوچه دَخپل ګاونډی دَزنانه سره بدکاری اوکړې نوددې په تصدیق کښې الله ﷻ داایت نازل کړو.

**فائده**:غوره خبره داده چې دَدې آیت شان نزول اوله واقعه ده اوپدې حدیث کښې دَدې سوالاتوجواباتوورکولو په تصدیق کښې دَدې آیت نزول وئیل مجازاًاوتوسعًادی،لکه چه یوسړې غل ته اوائي چه ستاپه باره کښې:السارق والسارقة آیت نازل شویدې.

﴿وَلَا يَقۡتُلُونَ ٱلنَّفۡسَ﴾یعنی چه دکوم نفس قتل الله ﷻ حرام کړیدې نوهغه نه قتل کوی،نو حرم الله په معنی دَ حرم الله قتلها سره دې،﴿إِلَّا بِٱلۡحَقِّ﴾استثناء مفرغه ده اوباسببیه ده نواصل کلام داسې دې:لایقتلونها بسبب من الاسباب الابسبب الحق،اوسبب حق نه مرادهغه شرعی جرم چه عصمت دَنفس ورسره ختمیږی اوموجب دَقتل ګرځی اودَهغې درې صورتونه دی(۱)ارتدادبعد الاسلام(۲)قتل نفس عمداً(۳)زنابعدالاحصان.

امام رازی ﷫ دَدې مذکوره استثناء یوعجیبه نکته بیان کړیده،فرمائی چه دَشرعی جرم دَوجې نه یونفس قتل کیدل،په حرّم الله یعنی مستثنی منه کښې هسې هم داخل نه ووخوبیاهم په صورت دَاستثناء کښې ذکرکول اوپه استثناء سره خارجول دَپاره دَتنبیه دی پدې خبره چه مقتضیٰ دَقتل حرمت ابدی دې اوجوازدَقتل دَعارض دَوجی نه وي،نوبه حرّم الله کښې اشاره ده حرمت ابدی ته،اوپه الابالحق کښې اشاره ده حلت عارضی ته(کبیر).

﴿يَلۡقَ أَثَامٗا﴾داتخویف اخروی دې او اثام جمع دَ اثم ده،چه ګناه ته وئیلې کیږی،دلته ورنه مرادسزاګانې دګناهونودی یعنی عقوبات.

يُضَٰعَفۡ لَهُ ٱلۡعَذَابُ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ وَيَخۡلُدۡ فِيهِۦ مُهَانًا ۝٦٩ إِلَّا مَن تَابَ

دوچنده به کړې شی ده ته عذاب په ورځ دَقیامت اوهمیشه به وی په هغې کښې ذلیله،مګرچاچې توبه اوباسله

| |
|---|
| وَاٰمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا فَاُولٰٓئِكَ يُبَدِّلُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِهِمْ حَسَنٰتٍ ؕ |
| اوایمان ئې راوړواوعمل ئې اوکړو عمل نیك نودغه کسان بدل به کړي الله ګناهونه ددوئ په نیکوسره |
| وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۞ وَمَنْ تَابَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَاِنَّهٗ يَتُوْبُ اِلَى اللّٰهِ |
| اوالله ﷻ بخونکي رحم کونکي دی.اوچاچه توبه اوباسله اوعمل ئې اوکړونیك نوبې شکه دې رجوع کوی الله ته |
| مَتَابًا ۞وَالَّذِيْنَ لَا يَشْهَدُوْنَ الزُّوْرَ وَاِذَا مَرُّوْا |
| په ښه رجوع کولوسره،اودوئ هغه دی چه نه حاضريږی مجلس دګناه ته.اوچه کله تیريږی |
| بِاللَّغْوِ مَرُّوْا كِرَامًا ۞ |
| په عبثوکارونونوتيريږی ورنه ځان ساتونکی |

﴿يُضٰعَفْ لَهُ الْعَذَابُ﴾داتفصيل دَسزاګانودې چې درې(۳)قسمه سزاګاني به دوئی ته میلاویږی(۱)جهنم کښې به دو(۲)چندسزاورکولې کيږی(۲)همیشه والاسزابه وی(۳)اهانت والابه وی اوتضعیف دَعذاب یاپه اعتباردکمیت سره دې چه دَشرك اوکفرسره دَنوروجرائم سزامثلاًزنا ،قتل وغیره سزابه هم ورته میلاویږی،اویاتضعیف په اعتباردکیفیت سره دې چه تشدیدورنه مراددې،خوبهرتقدیرداعذاب خاص دې په کفاروپورې،عصاة مؤمنانوته به الله ﷻ داسې سزانه ورکوی.

﴿اِلَّا مَنْ تَابَ﴾دااستثناء متصله ده دَماقبل نه اوبشارت اخروی دې دَتوبه کوونکودَپاره یعنی کوم کس چه توبه اوباسی اوایمان راوړی اونیك اعمال اوکړی نوهغه ته به سزانه میلاویږی بلکه دهغه په اکرام کښې به اضافه کیږی،سیئات به ئې په حسناتوسره بدل کړې شی،نودَجمهوروپه مسلك دااستثناء متصله ده،ځکه چې دااستثناء په حقیقت کښې دَهغه مؤمن نه ده چه اول کافراومشرك وواوورستوایمان قبول کړی،نومستثنٰی منه کفراوشرك دې اومستثنیٰ ورنه فی الحال ایمان دې اویادااستثناء دَضمیرمستتره دَ"یلق"نه ده اوصاحب دَبحرفرمائی چه استثناء منقطعه ده ځکه چه کچرته استثناء متصله وی نومستثنی منه کښې تضعیف دَعذاب ذکروو ،یعنی يُضٰعَف له العذاب،نودااستثناء متصلې په صورت کښې به نفی

دتضعیف دعذاب راشي اومعنٰی به ئې داشي چه الآمن تاب فلایُضٰعف له العذاب اونفی دتضعیف مستلزمه نده نفی دمطلق عذاب لره نومطلب به داشي چه کوم کس دشرك نه توبه اوباسی.ایمان راوړی اونیك عمل شروع کړی نوهغه ته به تضعیف دعذاب نه میلاویږی،حالانکه دامطلب اغستل پدې ځائ کښ مناسب ندی.نودې وجې نه غوره خبره داده چه استثناء منقطعه ده دپاره ددې چه نفی دعذاب مطلقه راشي.نومعنٰی به ئې داشي،لکن من تاب وآمن وعمل صالحًافلایُلقٰی عذاباًالبتة(بحر)لیکن دجمهورو دطرف نه جواب ممکن دې چه تضعیف دعذاب کچرته په اعتبارد کیفیت سره مرادشي چه تشدیددې نودادجهنم دعذاب وصف اوخاصیت لازمه دې نوددې په انتفاء سره انتفاء دنفس عذاب راځی،اوکچرته دتضعیف نه مرادپه اعتباردکمیت سره شي چه تضعیف دعذاب په اعتباردکفراوشرك اوبدواعمالوسره وو،نوپه تاب وآمن سره شرك اوکفر ختم شواوپه عمل صالحًا سره نوربداعمال ختم شونودتضعیف په انتفاء سره نفس عذاب هم ختم شو.والله اعلم.

﴿فَأُولَـٰٓئِكَ يُبَدِّلُ ٱللَّهُ﴾سیأت اوحسنات عام دی نولهذاتبدیلی هم عامه ده،نوداشامله ده دیته هم چه دبدنوم په ځائ باندې دوئی ته ځائسته نوم ورکړې شی،دکافر،په ځائ دده نوم مؤمن اوګرځیدلو دعاصی په ځائ مطیع شو،دغه شان دبدواوصافوپه ځائ دځائسته اوصافوو الااوګرځیدلو،دزانی په ځائی عفیف شو،دغه شان ددوئ بداعمال دتوبې په ذریعې سره وران کړې شی اودهغې په ځائ ورته ځائسته اودنیك اعمالوتوفیق ورکړې شی،نودمسلمانانوسره دقتال په ځائ دمشرکینوسره دجهادکولوتوفیق ورکړې شی، نوخلاصه داشوه چې یبدل الله سیآتهم نه مراددادې چې ددوئ بدنومونه الله ﷻ په ښه نومونو سره به بدل کړی،ددوئ بداوصاف به الله ﷻ په ښه اوصافوسره بدل کړی اوددوئ دګناه والاافعال په ځائ به الله ﷻ دوئ ته دنیك اعمالوکولوتوفیق به ورکړی اوددوئ په عملنامه کښ دګناهونوپه ځائ نیك عملونه اولیکلی شی اوابن کثیر رحمه الله فرمائی چې تبدیلئ نه مراددادې چه دوئ په زمانه دجاهلیت اوکفر کښ څومره ګناهونه کړیدی،ایمان راوړلونه پس دهغې ګناهونوپه ځائ نیکئ به اولیکلې شی،اووجه داده چه دایمان راوړلونه پس چې کله هم دوئ ته دجاهلیت والاګناهونه رایادیګی نودوئ ته ندامت اوپښیمانتیامخې ته راځی،اودوئ

تجدید دتوبې کوی نودډې وجې نه دهغوئ دګناهونو په بدله کښې الله ﷻ نیکیانې ورکوی.

﴿وَمَن تَابَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا ﴾ماقبل کښې دکافراومشرك دتوبې ذکروونو اوس پدې آیت کښې دمضمون دتوبې پوره کولودپاره دعاصی مؤمن دتوبې ذکرکیږی.نولهذادَمن نه مرادعاصی مؤمن دې یعنی کوم ګناه ګارمؤمن دګناهونونه،توبه اوباسی اونیك اعمال اوکړی نو الله ﷻ به دده توبه قبوله کړی اورحم به پرې اوکړی.﴿وَعَمِلَ صَٰلِحًا ﴾ عمل صالح شرط دعدم تلبس بالناردپاره دې اوشرط دقبول دتوبې دپاره ندې،یعنی دامطلب دآیت ندې کچرته عمل صالح ئې اوکړونوتوبه به ئې قبوله شی اوکه عمل صالح ئې اونکړونوبیابه ئې توبه نوی قبوله.بلکه دآیت مطلب دادې چه الله ﷻ دانسان توبه هروخت کښې قبلوی که دتوبې بعدعمل صالح وی اویانوی البته دجهنم نه دبچ کیدلودپاره عمل صالح ضروری دې.

﴿فَإِنَّهُۥ يَتُوبُ ﴾داعلت دې دجزامقدرې دپاره،یعنی دَمن تاب دپاره جزامقدره ده چه فلیقبل توبته دې،او﴿فَإِنَّهُۥ يَتُوبُ ﴾علت دې ددغې جزاء مقدرې دپاره،نومقصددادې چه دده توبه قبوله کړې شویده ځکه چې ده الله ﷻ طرف ته په اخلاص سره رجوع کړیده اوبعض فرمائی چه الاّمن تاب کښې دهغه چادتوبې ذکرووچې دهغه نه شرك،قتل،زناټول ګناهونه ورنه صادرشوی وو،اوپدې آیت کښې دهغه چادتوبې ذکردې چې صرف شرك ورنه شوې وی اونورګناهونه ورنه نوی شوی،او﴿يَتُوبُ إِلَى ٱللَّهِ مَتَابًا ﴾نه مراددمرګ نه پس انعامات دی،دآیت مقصددادې چې کوم کس دشرك نه توبه اویستله اودځپل عمل اصلاح ئې اوکړه نوده په حقیقی طورالله ﷻ ته رجوع اوکړه،اودمرګ نه پس به دده الله ﷻ خواتې لوئی عزت اواکرام وی په نسبت سره هغه چاته چه شرك سره ئې نوربداعمال هم کړی وی

﴿وَٱلَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ ﴾پدې آیت کښې یوولسم(١١)اودولسم(١٢)صفت ذکرکیږی،او لایشهدون یادشهود نه دې،په معنٰی دحاضریدلوسره،اوالزورنه مرادهرقسم مجلس دګناه دې،که هغه مجلس دګانواوګډاګانووی،یامجلس دماتم اودویرونووی، یامجلس دفحش خبرواودزناګانووی،یامجلس دغیبت اودبهتانونووی،اویاداسې مجلس چې

په هغې کښې بې پردګی وی.یاهغه لوبې چه پکښې عورات ښکاریږی.لکه نن صباختې لوبې،چه په هغې کښې لوبې کوونکی صرف دومره څیزاچولې وی چه په هغې صرف عورت غلیظه پټ وی پتون وغیره ئې ښکاریږی اودغه شان پدیکښې مجالس دبدعاتوهم داخل دی لکه دختې مبتدعینوعرسونه شول،یادهغوئی والانورمحافل اومجالس شول لکه یولسمه وغیره شو ،اویا"یشهدون"دشهادت نه دې په معنٰی دګواهی ورکولوسره او"الزور"نه مرادباطله ګواهی ده،که هغه دعقائدومتعلق وی،لکه الله ﷻ سره شریك جوړول اویادفروعاتومتعلق وی لکه عبادات یاپه معاملاتوکښې ګواهی ورکول شونومقصددادې چه دمؤمن صفت دادې چه باطله ګواهی نه ورکوی.

﴿وَإِذَا مَرُّوا بِاللَّغْوِ﴾"لغو"نه مرادخلاف شرعه مجالس دی،مقصددادې چه مؤمن خوخلاف شرعه مجلسونوته نه حاضریږی،خوکچرته اتفاقاًمؤمن په لاره باندې تیریدلواوخلاف شرعه مجلس ئې اوکتلونوپه هغې کښې شرکت هم نه کوی اوتماشه ئې هم نه کوی بلکه ځان ورنه ساتی اومخ ورنه په بل طرف اړه وی،او"کراماً"ماخوذدې د"اکرم نفسه عنه" نه یعنی خپل ځان دعیب والاخبرواوکارونونه،پاك ساتل،اواهل لغت وائی چه د"کَرُمَ"په صلې کښې چه"عن"راشی نومقصدئې اعراض وی په شرافت سره،نود"مرّواکراماً"مقصددادې چه مؤمن دګناهونووالامجالس قابل نفرت ګڼړی البته تکبراوغرورنه کوی چه خپل ځان ډیردینداره اولوئی اوګڼړی اودنوروخلکوتحقیراوکړی.

| |
|---|
| وَالَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ لَمْ يَخِرُّوا عَلَيْهَا صُمًّا وَعُمْيَانًا ﴿٧٣﴾ وَالَّذِينَ |
| اودوئ هغه دی چه کله نصیحت اوکړیشی ورته په آیاتونو درب دد وئ ،نو نه پریوځی په هغې کانړه اوړانده، اودوئ هغه دی |
| يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ |
| چه وانی ای ربه زمونږراعطاکړه مونږته دښځوزمونږنه اودأولاده زمونږنه یخوالې دسترګو |
| وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ﴿٧٤﴾ أُولَٰئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوا |
| اوګرځوه مونږپرهیزګارانولپاره پیشوا ،دغه کسان بدله به ورکولې شی دوئ ته بنګلې دجنت په سبب ددې چه دوئ صبرکړې وو |

| |
|---|
| وَيُلَقَّوْنَ فِيْهَا تَحِيَّةً وَّسَلٰمًا ﴿۷۵﴾ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا ﴿۷۶﴾ |
| اواچولې کيږی به په دوئ په جنت کښې دعااوسلام هميشه به وی په هغې کښې.خائسته دې داجنت ځائ دقرارئ اواسيدلو. |
| قُلْ مَا يَعْبَؤُا بِكُمْ رَبِّيْ لَوْلَا دُعَآؤُكُمْ |
| ته اووايه هيڅ باك نه كوی تاسوته په عذاب دركولورب ځما كچرته نوې امدادغوښتل د ستاسو(د الله نه سختو كښې |
| فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُوْنُ لِزَامًا ﴿۷۷﴾ |
| نويقيناًتاسوتكذيب اوكړونوزرده چه عذاب لازم شی په تاسو |

﴿وَالَّذِيْنَ إِذَا ذُكِّرُوْا﴾داديارلسم(۱۳)صفت دې،يعنی دَنيكانوبندګانوصفت دادې چه دَالله ﷻ كلام اوقرآن آياتونه ښه په پوره توجه سره اوری،په هغې كښې ښه سوچ اوفكركوی،بغيردَسوچ اوفكرمحض دَتكلف اوريادَپاره په سجده كښې نه پريوځی لكه دَمنافقينو پشان بلكه دآيت په مقصدباندې ښه غوراوفكركولواودَپوهيدلونه ورستويادَډيرې خوشحالئ دَوجې نه(په آيت دَرحمت كښې)اويادَډيرخوف اوخشيت دَوجې نه(په آيت دَعذاب كښې)په سجدې كښې پريوځی.﴿لَمْ يَخِرُّوْا عَلَيْهَا صُمًّا﴾دَمشهورقانون مطابق نفی متوجه ده فقط قيدته اواصل كلام ته نده متوجه،نومطلب دادې چه دَصم اوعميان په حالت كښې نه پريوځی،او صم كنايه ده دَغفلت نه،او عمياناً كنايه ده دَعدم تاثيرنه،نومطلب دادې چه مؤمن صم نوی يعنی غفلت كوونكې نه وی او عميان هم نه وی،يعنی داسې هم نه وی چه دَالله ﷻ كلام په دوی باندې اثراونكړی اوهركله چه دَغفلت دَپاره لويه ذريعه كونړوالې دې،نودَدې وجې نه صم كنايه اوګرځولې شوه دَغفلت نه،اودَتاثير دَظهوردَپاره لوئی ذريعه سترګې دی،ځكه چه په زړه باندې اثراوشی نودَسترګونه اوښكی بې اختياره روانې شی اوڅوك ئې منع كولی نيشی نودَدې وجې نه عميان كنايه اوګرځولې شوه دَعدم تاثيرنه.

﴿وَالَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ﴾دااخری اوڅوارلسم(۱۴)صفت دې دَ عبادالرحمٰن دَپاره،خلاصه ئې داده چه څرنګه عبادالرحمٰن پخپله نيكان وی اوپدې مذكوره صفاتوباندې متصف وی نوهمدغه شان هغوئی سره دَخپل اولاد،ذريت اودَخاندان هم دَديندارکيدلوسوچ

اوفکروی، اودَهغوئ دَپاره دعاګانې کوی چه اې الله!زمونږبيبيانې اوزمونږاولاد داسې نيکان کړې چه مونږورته اوګورو چه دَهغوئی په دينداری موسترګې يخې شی. اومونږدَورع اوتقوی هغې مقام ته اورسوې چه خلك راته اوګوری نوزمونږاقتداء شروع کړی اومونږهغوئ ته فائده اورسوو. ﴿ قُرَّةَ أَعْيُنٍ ﴾ کنايه ده دَسروراوخوشحالئ نه، او"قرة"مأخوذدې دَ"قر"نه وئيلې کيږی يخ والی ته اومشهوره ده چه دَخوشحالئ اوښکی يخې وی اودَغم اوښکی ترمې اوګرمې وی، نوځکه"قرة اعين"کنايه دَسروراوخوشحالئ نه ګرځی، اوبيادَانسان دَپاره حقيقی اولويه خوشحالی داوی چه دَهغه اولادنيکان، پاکيزه سيرت اوښه اخلاقووالاوی، اوپديکښ اشاره ده چه دَاولاد په دينداری باندې خوشحاله کيدل، دَهغوئ دينی تربيت کول اودَهغوئ په بې دينئ باندې خفه کيدل دکمال ايمان علامه ده، اودَهغوئ دَدينی تربيت نه غافله کيدل اودَهغوئ په بې دينی باندې نه خفه کيدل دَنقصان دَايمان علامه ده.

﴿وَٱجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ﴾يعنی مونږداسې اوچتواخلاق اوکردارووالا اوديندار جوړ کړې چه خلك مونږته ګوری نورشك راباندې کوی اوزمونږاقتداء کوی، اومقصود پدې دعا سره امامت غوختل ندی اګرچه دَهغې غوختل څه مذموم ندی، بلکه دَموقعې مناسب مطلوب اوممدوح دی ليکن دلته دآيت دَسياق نه معلوميږی چه دادعادَخپل اهل وعيال ته دکمال تقویٰ دَحصول اوکمال ديندارئ دَپاره ده، نوګويامقصوداصلی دکمال تقویٰ دعاکول دی چې دَهغې سره لازم امامت دې، نودَ﴿إِمَامًا﴾مطلب داشوچه مونږاوزمونږذريت داسې اعلی درجې تقویٰ دارجوړکړې چه متقيان خلك دَدين په احکاماتوکښ زمونږاقتداکوی، داتوجيه دَحضرت ابراهيم نخعیؒ اوحضرت مکحولؒ نه منقول ده اوبعض علماء فرمائی چه هرپلاردَخپل اولاددَپاره په منزله دَامام اوپيشواوی، نوچه اولادمتقيان شی نوطبعی طور باندې دې سړی ته دَمتقيانو امامت ميلاؤشونوګويا﴿ وَٱجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا﴾خپل اولادته دعادَتقوی کول دی، اوبعضِ علمآء فرمائی چه پدې آيت کښ قلب شويدې په اصل کښ داسې دې"واجعل المتقين لنااماما"يعنی زمونږدَپاره حاکمان اوامامان متقين اوګرځوی ځکه چه"النّاس علی دينِ ملوکهم"

﴿أُوْلَـٰٓئِكَ يُجْزَوْنَ ﴾داخبردي دَمبتدادپاره چه عبادالرحمٰن وو.اودَمبتداوخبرپه مينځ كښ اوصاف تحليه اوتخليه ذكرشو.قرطبى رحمه الله فرمائى چه دَدې خلاصه داده چه جنت الله تعالىٰ كمال تقوى والاته وركوى اوكمال تقوى دَپاره دامذكوره اوصاف ضرورى دى دَدې اوصافوخلاصه داده.تواضع،حلم،تهجد،خوف الهى،انفاق،ترك اسراف،ترك اقتار،نزاهة عن الشرك،عفت عن الزنا،اجتناب عن القتل،توبه،احترازعن الكذب.ترك دَلغومجالسو.قبولول دَمواعظو.تربيت دَاولاد اوتوجه الى الله،اللهم وفقنالماتحب وترضى واجعل الاخرة خيرالنامن الاولى.﴿ٱلْغُرْفَةَ ﴾ وئيلې كيږى بالاخانې ته،پديكښ اشاره ده چه دَجنت اعلىٰ بنګلې پدې اعلىٰ صفاتوسره حاصليږى،سورة سبأآيت نمبر(۳۷)كښ"غرفات"په جمعې سره وئيلى شويدى.او دلته"الغرفة"اوئيلى شو،وجه داده چه هلته كښ مرتب دې په ايمان اواعمال صالحوباندې. اودَاعمال صالحوپه اعتبارسره خلك متفاوت دى،نوځكه هلته جمع راوړې شوه چه هريوكس ته دَهغه دَعمل موافق بنګله اوجنت به ميلاؤيږى اودلته مرتب دې په ټولواوصافوكاملو مذكوروباندې اودَدې اوصافو حاملين په اعتباردَجزاء سره به متفاوت نوى لكه څرنګه چه پدې اوصافوكښ متفاوت ندى نودَدې وجې نه دلته جمع ذكرنشوه بلكه اسم جنس ذكرشو.

﴿بِمَا صَبَرُوا۟ ﴾پديكښ اشاره ده چه نفس اتصاف پدې اوصافوباندې ندې معتبربلكه استقامت سره اتصاف معتبردې،﴿وَيُلَقَّوْنَ فِيهَا تَحِيَّةً ﴾فرق په مينځ دَتحية اوسلام كښ دادې چه"تحيه"وئيلې كيږى دعاءته په طول عمرسره،او"سلام"وئيلې كيږى دعادَسلامتياته دَهرقسم ضرراوتكليف نه،اوداتحيه اوسلام به دَچادَطرف نه وى؟نوپدې كښ اقوال متعددى بعض فرمائى چه"تحيه"به دَجانبه دَملائكونه وى او"سلام"به دَجانبه دَالله تعالىٰ نه وى اوبعض فرمائى چه"تحيه"به ددوئى دَيوبل باندې وى اوسلام به دَجانبه دَالله تعالىٰ اوملائكونه وى،اوبعض فرمائى چه"تحيه"او"سلام"يودى،"سلام"عطف تفسيرى دَ"تحية"دې اومقصوددآيت دادې چه په جنت كښ به دوئ ته اداب شاهى پيش كولې شى،نوداتحيه اوسلام به دَالله تعالىٰ دَطرف نه به هم وى،دَملائكودَطرف نه به هم وى اوددوئ خپل مينځ كښ به هم وى.

بهرتقديرادعا دَتحيې اودعادَسلامتيا دابه محض يومباركى اودَسروراوخوشحالئ

دپاره وی اودې دپاره به نوی چه جنت کښې امکان دفناياد تکليف رسيدلو شته دې، چه په دعاسره دهغې نه امن اوغوختلې شی.﴿خَٰلِدِينَ فِيهَا ﴾يعنی په تنعيماتو دجنت کښې به دوئ هميشه دپاره وی نه به ورنه ويستلې کيږی نه به فناء کيږی اونه به مريضان کيږی، ﴿حَسُنَتۡ مُسۡتَقَرّٗا ﴾دا په مقابله دوصف دجهنم کښې دې، دجهنم په باره کښې وئيلې شوی وو ﴿سَآءَتۡ مُسۡتَقَرّٗا ﴾.

﴿قُلۡ مَا يَعۡبَؤُاْ بِكُمۡ ﴾پدې آيت کښې تخويف دنيوی دې داآيت دمشکل اياتونونه دې، دمفسرينو پديکښې مختلف توجيهات دی، پدې باندې اتفاق دې چه ﴿مَا يَعۡبَؤُاْ ﴾کښې "ما" يانافيه ده اويا استفهاميه ده اواستفهام انکاری دې نورجعه ددواړو او مقصد ددواړو يودې چې نفی اوانکاردې، اوله توجيه داده چې ﴿مَا يَعۡبَؤُاْ ﴾په معنی د"ماياِلی" سره دې او "بکم" کښې باء تعدية دپاره ده اوخطاب مشرکين مکه ته دې او "ربی" فاعل د"يعباؤا" دې، اوجواب د"لولا" محذوف دې چې "لعذبکم" دې، نودآيت مطلب داد*ې چه ای پيغمبره!ته اوايه چه ځمارب پرواه نه کوی تاسوته دعذاب درکولو کچرته نه وې دعوت دالله ﷻ تاسوته دتوحيد طرف ته، نوځامخابه ئې تاسوته عذاب درکړې وې، اويقيناً تاسوخوتکذيب پس ددعوت نه اوکړونو دالله ﷻ عذاب به خامخاپه تاسوپورې اونخلی. پدې صورت کښې دعاء کم کښې اضافت اضافة المصدر الی المفعول دقبيل نه دې.

(۲) دويمه توجيه داده چه "دعا" مصدر مضاف دې فاعل ته، او "دعا" ياپه معنی دعبادت سره دې اوياپه معنی د"ايمانکم" سره دې او "بکم" کښې خطاب مؤمنانوته دې، اوجواب د"لولا" محذوف دې چه "لمااعتدبکم" دې، دآيت مقصد داد*ې پرواه نه کوی ځمارب ستاسو کچرته نوې اې مؤمنانو ستاسو عبادت ياستاسو ايمان هغه لره نوهيڅ پرواه به ئې نوې کړې او ﴿فَقَدۡ كَذَّبۡتُمۡ ﴾کښې خطاب کفاروته دې يعنی اې کفاروتاسو تکذيب اوکړو دعبادت نه يادايمان راوړلو نه، نوځکه په تاسوپورې به دالله ﷻ عذاب اونخلی.

(۳)دریمه توجیه داده چه دعاپه معنیٰ دَامدادغوختلواوبلنې سره دې او﴿بِكُمْ﴾كښې خطاب مشركينوته دې اوجواب دَ﴿لَوْلَا ﴾هلكتم يالعذبتم.دې دَايت مقصد دادې چه.كچرته اې كفاروستاسوامدادغوختل په سختيوكښې دَالله ﷻ نه نوې نوتاسوبه ئې هلاك كړې وې﴿فَقَدْ كَذَّبْتُمْ ﴾مقصددادې چه تاسوبیاهم تكذيب اوكړونوزرده چه عذاب به په تاسوپورې اونخلي

(۴)خلورمه توجيه داده چه دعاكښې اضافت دَمصدرفاعل ته دې،اوخطاب كفاروته دې،او"دعا"په معنیٰ دَغيرالله لره بلنه كول دى،او"بكم"په معنیٰ دَ"بمغفرتكم"سره دې،نومعنیٰ دايت داده چه څمارب هيڅ پرواه نه كوى ستاسوپه بخنه باندې،كچرته ستاسوبلنه غيرالله لره نوې،المعنیٰ مايبالى سبحانه بمغفرتكم لولادعاؤكم معه الهه(روح)او"فقدكذبتم"معنیٰ ده چه اې كفاروتاسوتكذيب اوكړواودغيرالله بلنې موشروع كړې نوزرده چه دَدې شرك دَوجې نه به عذاب په تاسوپورې اونخلي.

(۵)ليكن دَټولونه بهترين توجيه داده چه "يعبأ"دَ"عبو"نه مشتق دې په معنیٰ دَوزن اوحيثيت سره،نودَ"مايعبأ"معنیٰ ده چه ستاسوڅه حيثيت نيشته دې او"بكم"كښې خطاب مؤمنانوته دې او"دعا"مصدرمضاف دې فاعل ته په معنیٰ دَعبادت اوبلنې سره دې اوجواب دَ"لولا"دَپاره"مايعبأ"مقدم دې او"ربى"فاعل دَ"يعبأ"دې نواصل عبارت داسې دې:قل لولاايمانكم مايعبأبكم ربى،يعنى اې پيغمبره!ته دوئ ته اوايه چې اې مؤمنانوكچرې تاسوايمان نوې راوړې نودَالله ﷻ خواته به ستاسوهيڅ حيثيت نوې ځكه چې دَانسان حيثيت اوقدرعندالله په عبادت اوتقوىٰ سره جوړيږى اوعبادت خومنشأ دَتخليق دَانسان ده،نوځكه قدراوحيثيت په تقوىٰ اوعبادت سره دې او﴿فَقَدْ كَذَّبْتُمْ ﴾كښې خطاب كفاروته دې،يعنى دې كفاروتاسوتكذيب اوكړونوځكه الله ﷻ خواته ستاسوحيثيت نشته دې بلكه دَدې تكذيب دَوجې نه به تاسوپورې دائمى عذاب اونخلي﴿لِزَامًا ﴾نه مراددَغوره قول مطابق جهنم عذاب دې،چه هغه دائمى دې اوابن مسعود ﷺ فرمائى چه ددينه مراددَبدردَورځې عذاب دې چه الله ﷻ دكفارواويا(۷۰)كسان هلاك كړل.

دَسورت دَاول او اخیرپه مینځ کښ ربط دادې چه دَسورت په ابتداء کښ ذکروو چه قرآن الله تعالیٰ دَحق او باطل په مینځ کښ دَفرق دَپاره نازل کړیدې او دَواضح فرق باوجود کچرې بیاهم یو کس انکارکوی نو دَهغه دَپاره دائمی عذاب دې.

| ركوعاتها (۱۱) | سورة الشعراء مكية | آياتها (۲۲۷) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۲۶) وحسب النزول (۴۷)**

سورة الشعراء مكي سورت دې سيوا د آخرى پنځو اياتونو نه چه هغه مدنى دى ترتيب نزولى کښې اوه څلويښتم (۴۷) نمبر او ترتيب قرآنى کښې شپږويشتم (۲۶) نمبر سورت دې . د سورة النمل نه مخکښې او د سورة الواقعه نه ورستو نازل شويدې ، زمانه د نزول يې دور متوسط د مكې معظمې دې ، په (۲۲۷) اياتونو ، يوولس (۱۱) ركوعاتو ، (۱۲۹۷) كلماتو او په (۵۵۴۲) حروفو باندې مشتمل دې .

**ربط اسمى** : د دې سورة د ما قبل سورة سره نامى او اسمى ربط دا دې . (۱) چه په سورة الفرقان کښې ذکر وو چه ﴿ تَبَارَكَ ٱلَّذِى ﴾ يعنى بركات وركوونكې ذات صرف الله ﷻ دې، او ددې د توضيح د پاره الله ﷻ فرقان نازل كړيدې او په سورة الشعرآء كښې ذكر دى چه ﴿وَٱلشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ ٱلْغَاوُۥنَ ﴾ يعنى دا كلام شاعرانه كلام ندې.ځكه چه مشرك او جاهلان شاعران ګمراه وي . (۲) او دغه شان په سورة الفرقان كښې اشاره ده چه حق ته رسيدلو او هدآيت موندلو دپاره قرآن باندې او د هغې په تعليماتو باندې عمل كول ضرورى دى او خپل زړه د قرآن په نور باندې منور كول ضرورى دي . ځكه چه قرآن الله ﷻ د حق او باطل په مينځ كښې فرق د پاره نازل كړيدې.او په سورة الشعرآء كښې اشاره ده چه د مشرك او جاهلانو شاعرانو د كلام اتباع كول ندى پكار ځكه چه هغو ئى د شيطاني عمل اتباع كوي.

**ربط معنوى** : د مضامينو په اعتبار سره د دې سورت د ما قبل سره ربط په څو وجوهاتو سره دې (۱) ما قبل سورة كښې رد د شرك فى البركت په دلائلو عقليو تفصيليو سره وو . او دلائل نقليه پكښې اجمالاً او مختصراً ذكر شوى وو ، پدې سورة كښې د نفى د شرك فى البركت د پاره دلائل نقليه په تفصيل سره ذكر كيږي ، او دليل عقلى پكښې صرف يو ذكر كيږى .

(۲) د سورة الفرقان په آخیر کښې وئیلې شوی وو چه﴿ فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَاماً ﴾یعنی تکذیب کوونکو ته تخویف ذکر شوې وو ، نو د سورة الشعرآء په ابتداء کښې الله ﷻ فرمائی : چه﴿فَقَدْ كَذَّبُوا فَسَيَأْتِيهِمْ أَنْبَؤُا ﴾ یعنی د دې سورة ابتداء د هغې قومونو په حالاتو سره کیږی چه الله ﷻ د دې مسئلې د منولو د وجې نه هلاك کړی دی . یعنی نمونې د تخویف دپاره بیانیږی .

(۳) ما قبل سورت کښې ذکر وو چه﴿ فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَاماً﴾یعنی تخویف دنیوی وو چه تکذیب کوونکی قومونه به هلاك کړې شی ، نو پدې سورت کښې تسلی ورکولې کیږی نبی پاك ﷺ ته چه﴿لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ ﴾چه کچرې دوئ ایمان نه راوړی او خپل ځانونه ، هلاکت ته غورځوی نو ته د خفګان د وجې نه ځان مه هلاك کوه .

**دعوی د سورت** : رد شرك فی البرکة او تسلی ده نبی ﷺ ته .

**مختصره خلاصه** : د دې سورت مختصره خلاصه دا ده چه پدیکښې تمهیدوالترغیب دې . تسلی ، زجرونه ، تخویفات دنیوی ، یو دلیل عقلی او اوو (۷) پکښې دلائل نقلیه تفصیلیه دی . په آخیر کښې د دوه شبهاتو جوابونه دی –

**تفصیلی خلاصه** : دا سورت په درې(۳) حصو باندې مشتمل دې اوله حصه کښې آیت نمبر(۱ ، ۲)کښې تمهید او ترغیب دې – په آیت نمبر ۳ ، ۴ کښې تسلی ذکر کیږی نبی پاك ﷺ ته . په آیت نمبر(۵) کښې زجر دې په آیت نمبر(۲) کښې تخویف د نیوی دې،په آیت نمبر (۷)تا(۹)کښې دلیل عقلی دې په توحید باندې . د دینه ورستو بیا دویمه حصه شروع کیږی چه اوه دلائل نقلیه په ضمن د اوه واقعاتو کښې ذکر کیږی . نو د آیت نمبر(۱۰)نه تر(۲۸) پورې اول دلیل نقلی دې په ضمن د واقعی د موسیٰ ﷺچی مشتمله ده په څلورو مقاماتو باندې . د آیت نمبر(۲۹)نه تر(۱۰۴) پورې دویم دلیل نقلی په ضمن د واقعې د حضرت ابراهیم ﷺ کښې ذکر کیږی . د آیت نمبر(۱۰۵) نه تر(۱۲۲) پورې دریم دلیل نقلی په ضمن د واقعې د حضرت نوح ﷺ کښې ذکر کیږی د آیت نمبر(۱۲۳) نه تر(۱۴۰) پورې څلورم دلیل نقلی په ضمن د واقعې د حضرت هود ﷺ او د هغه قوم عادیانو کښې ذکر کیږی . د آیت نمبر(۱۴۱) نه تر(۱۵۹) پورې پنځم دلیل عقلی په ضمن د واقعې د قوم صالح ﷺ چه ثمودیان دی ذکر کیږی . د آیت نمبر(۱۲۰) نه تر(۱۷۵) پورې شپږم دلیل نقلی په ضمن د

واقعې د قوم لوط ﷺ کښې ذکر کیږی د آیت نمبر (۱۷۲) نه تر (۱۹۱) پورې اوم دلیل نقلی په ضمن د واقعې د حضرت شعیب ﷺ او د هغه قوم کښې ذکر کیږی

او بیا د آیت نمبر (۱۹۲) نه دریمه حصه د سورت شروع کیږی نو په آیت نمبر (۱۹۲) کښې صدق د قرآن او صدق د رسول ﷺ ذکر کیږی په دلیل وحی سره په آیت نمبر (۱۹۳) نه تر (۱۹۵) کښې بل دلیل دې په صدق د قرآن او رسول باندې. د آیت نمبر (۱۹۲) تا (۱۹۹) کښې دلائل نقلیه ذکر کیږی په صدق د قرآن او رسول باندې. په آیت نمبر (۲۰۰) کښې زجر دې. په آیت نمبر (۲۰۱) تا (۲۰۳) کښې تخویف د نیوی دې، په آیت نمبر (۲۰۴) کښې بیا زجر دې د آیت نمبر (۲۰۵) تا (۲۰۹) پورې زجر دې په استعجال د عذاب باندې. په آیت نمبر (۲۱۰) تا (۲۱۲) ﴿وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيَاطِينُ﴾ کښې جواب د اولې شبهې دې په آیت نمبر (۲۱۳) تا (۲۲۰) پورې ثمره د دلائلو ذکر کیږی په خلورو طریقو سره په آیت نمبر (۲۲۱) تا (۲۲۳) پورې تتمه د جواب د اولې شبهې ده. په آیت نمبر (۲۲۴) (۲۲۵) (۲۲۶) کښې د دویمې شبهې جواب دې. چه دوئ به وئیلو چه دا قران شاعرانه کلام دې، نو د دې جواب په درې طریقو سره ورکولې کیږی. او په آخیری آیت، آیت نمبر (۱۲۳) کښې د نیکانو شاعرانو صفات ذکر کیږی. او اختتام د سورت په تخویف دنیوی سره کیږی. (تمت)

| |
|---|
| طٰسٓمٓ ۝۱ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝۲ لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ اَلَّا يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ۝۳ |
| طسم داقرآن آياتونه دكتاب بيانونكي دي آيانه هلاكونكي دخان ئ پدې وجه چه نه كيږي دوئ مؤمنان |
| اِنْ نَّشَاْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ اٰيَةً فَظَلَّتْ اَعْنَاقُهُمْ لَهَا خٰضِعِيْنَ ۝۴ |
| كه خوښه شي زمونږنونازل به كړوپدوئ داسمان نه نښه اوبه ګرځي څټونه ددوئ هغې ته غاړه ايښودونكي |

﴿طٰسٓمٓ﴾ غوره خبره دا ده چه دا حروف مقطعات د متشابهاتو نه ، دې معنیٰ او مقصد اګر چه شته دې ليکن مونږ ته ندې معلوم . صرف يو راز دې په مابين د الله ﷻ او رسول ﷺ كښ . بعض مفسرينو د امكان په درجې كښ د دې حروفو تاويلات كړيدى . نو بعضى فرمائي چه ( طاء ) مخفف دې د ( طول ) يعنى قدرت نه ، او ( س ) مخففِ دې د ( سنا ) يعنى نور نه . او ( ميم ) مخفف دې د ( مجد ) يعنى بلندى نه . نو معنیٰ ئې دا ده چه ( اقسم بطوله وسنائه ومجده ثلث آيت الكتب الخ ) بعضى فرمائي چه ( طاء ) كنايه ده د شجر طوبى نه ، ( سين ) كنايه ده د سدرة المنتهى نه او ( ميم ) كنايه ده د محمد ﷺ نه . نو معنیٰ ئې دا ده چه د شجرة الطوبى نه په لاره د سدرة المنتهى باندې نازل شويدې په محمد ﷺ باندې بعضى فرمائي چه دا نوم دې د اسماؤ د الله ﷻ نه ، نو الله ﷻ په خپل اسم او ذات باندې قسم خورى ، بعضى فرمائي چه اسم دې د اسماؤ د نبى پاك ﷺ نه ، نو الله ﷻ قسم خورى په نوم د محمد ﷺ باندې ، بعضى فرمائي چه نوم دې د سورت او پديكښ مضامينو د سورت ته اشاره ده .

نو كچرې دا د متشابهاتو نه شى لكه چه دا غوره قول دې نو بيا د دې دپاره محل د اعراب نيشته دې ، او كچرته تاويل ئې اوكړې شى نو بيا دا مرفوع دې محلا بنابر ابتدائيت . چه دا مبتدا واقع شويده . او دا ورستو تول ور له خبر دې ﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْمُبِينِ ﴾ دا تمهيد دې او ترغيب الى القران ذكر كيږى او په ﴿تِلْكَ﴾ سره اشاره ده قرآن ته چه نازل كړې شو په منزله د بعد مكانى باندې نو خكه ورته اشاره په ( تلك ) سره اوشوه . مقصود پدې قسم عبارت سرا الحاق د جزء وى په كل پورې په كمال كښ يعنى چه څرنګه كل كامل او اعلى مرتبې والا معجز كلام دې نو دغه شان

جزء هم اعلی مرتبې او معجز دې او ﴿ٱلْمُبِينِ﴾ متعدی او لازمی دوا ړه استعمالیږی نو کچرې لازمی شی نو معنیٰ به ئې شی " المظهر لنفسه" یعنی د دې قرآن او کتاب حالت واضح او ظاهر دې په اعجاز او تبکیت کښې او یا ئې معنیٰ دا ده چه واضح او ظاهر دی مضامین او مقاصد د دې ، مبهم او مشتبه ندی او کچرې متعدی شی نو معنی ئې دا ده " الظاهر لغیره " یعنی ظاهر وو نکې او واضحه کوو نکې دې حق لره د باطل نه ، او په ﴿ٱلْمُبِينِ﴾ کښې اشاره ده چه پدې سورت کښې زیات طور دلائل نقلیه ذکر کیږی .

﴿لَعَلَّكَ بَـٰخِعٌ نَّفْسَكَ﴾ دا تسلی ده نبی پاک ﷺ ته چه د دومره واضح دلائلو باوجود که بیا هم دوئی ایمان نه راوړی نو ته خپل ځان په دوئی باندې افسوس او غم د وجې نه هلاکت کښې مه اچوه او ﴿لعل﴾ دلته د اشفاق دپاره دې ، یعنی په خپل ځان باندې شفقت او کړه چه ته خپل ځان اوژنې د وجې د حسرت نه ، په ایمان نه راوړلو د دوئی باندې (کشاف) او مقصود په دې عبارت سره نهی وی ، نو ﴿لَعَلَّكَ بَـٰخِعٌ﴾ په معنیٰ د (لا تبخع نفسك) سره دې ﴿أَلَّا يَكُونُوا مُؤْمِنِينَ﴾ دا تعليل د ﴿بَـٰخِع﴾ د پاره دې یعنی د هلاکت دپاره علت د دوئی ایمان نه راوړل دی . دلته سوال واردیږی چه قانون دا دې چه د علت او معلول په مینځ کښې مقارنت فی الزمان ضروری دې او دلته د علت او معلول په مینځ کښې مقارنت نیشته دې . ځکه چه ﴿أَلَّا يَكُونُوا مُؤْمِنِينَ﴾ نه مراد زمانه استقبال ده . یعنی نفی د ایمان د دوئی نه په زمانه مستقبله کښې دې . او د ﴿بَـٰخِع﴾ نه مراد فی الحال هلاکت دې . نو د آیت مقصد دا دې ظاهراً چه دوئی په زمانه راتلونکښې کښې ایمان نه راوړی نو ته خپله ځان فی الحال هلاکت کښې مه اچوه؟ نو عدم ایمان د دوئی په زمانه مستقبله کښې علت د فی الحال هلاکت د پاره ندې صحیح ؟

نو بعضو (۱) جواب کړیدې پدیشان چه (کون) دلته په معنیٰ د (یصح) سره دې . نو د ﴿أَلَّا يَكُونُوا﴾ معنیٰ ده (لایصح) او نفی د صحت مستلزم دې (امتناع) لره ، نو د ﴿أَلَّا يَكُونُوا مُؤْمِنِينَ﴾ معنیٰ ده (لامتناع ایمانهم) نو امتناع د ایمان علت ګرځیدل صحیح دی د ﴿بَـٰخِع﴾ د پاره .

(۲) او بعضو دا جواب کړيدي چه دلته لفظ د (خيفة) مقدر دي . يعنى (خيفة ان لايكونوا مؤمنين) او چونکه (خوف على عدم ايمانهم) في الحال موجود دي نو د معلول او علت په مينځ کښې مقارنت شته دي .

(۳) او بعضو دا جواب کړيدي چه دلته (لام اجليه) مقدر دي . او ﴿ أَلَّا يَكُونُواْ مُؤْمِنِينَ ﴾ په معنى د (لئلا يؤمنوا) سره دي . يعنى استمرار پکښې مقصود دي نو د آيت مقصد دا دي چه (د دوئى استمرار په عدم ايمان باندې د وجې نه خپل ځان هلاکت کښې مه اچوه) ﴿ إِن نَّشَأْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِم ﴾ دا علت د نهى د ﴿بَٰخِعٌ﴾ د پاره دي . خلاصه ئې دا ده چه ته خپل ځان د دوئى د ايمان نه راوړلو د وجې نه ځکه مه وژنه چه ستا د بعثت نه مقصد دعوت او تبليغ دي او دا فريضه ته په احسن طريقې سره ادا کوې . او مقصود د دوئى زبردستى سره مؤمنان جوړول ندى کچرې مقصود د دوئى ايمان جبراً وې نو مونږ به د اسمان د طرف نه يو داسې نښه راليږلې وې چه دوئى به مجبوره شوى وې او ايمان به ئې راوړې وې . ليکن مقصود امتحان اغستل دى . نو د ﴿ءَايَةً﴾ نه مراد داسې نښه ده چه مجبوره کول کوى په ايمان باندې لکه رفع د جبل شوه څرنګه چه په بنى اسرائيلو باندې اوچت کړې شوې وو وغيره ﴿ فَظَلَّتۡ أَعۡنَٰقُهُمۡ ﴾ اعناق جمع د عنق ده ستۍ نه وئيلې کيږى دا اسم دې د (ظل) فعل ناقص د پاره . او ﴿خَٰضِعِينَ﴾ ورله خبر دې . اعتراض وارديږى چه (اعناق) غير ذوى العقول دى او د جمع غير ذوى العقول د پاره صفت يا خبر په صيغې د جمعې مذکر سالم سره نه راځى بلکه واحد مؤنث ، يا جمع مؤنث راځى . او دلته خو خبر ﴿خَٰضِعِينَ﴾ جمع مذکر سالم راغليدې ؟ . (۱) نو بعضو جواب کړيدې چه اصل کلام داسې دې چه (فظلوا لها خاضعين) نو اسم د (ظل) د پاره ضمير د جمعې مذکر دې چه راجع دې کفارو ته او ﴿خَٰضِعِينَ﴾ ورته خبر دې . او زيادت د (اعناق) د پاره د بيان د موضع د خضوع دې . ځکه چه کمال خضوع اظهار په هغه وخت کښې کيږى چه کله ستۍ ښکته کړې شى . نو اسناد د (ظل) اعناق ته مجازاً دې ، او حقيقه اسم د ظل د پاره ضمير د جمعې دې نو ﴿خَٰضِعِينَ﴾ خبر د مسند اليه حقيقةً د پاره دې . نه ده مسند اليه ظاهراً مجازاً د پاره . (۲) دويم جواب دا کړې

شويدي چه (اعناق) نه مراد رؤساء او مشران دي. او په مشر باندې د عنق اطلاق كول په كلام د عربو كښې معروف او مشهور دى لكه وئيلې شي چه جآء نى عنق من الناس اى رؤساء منهم (قرطبي)

(۳) دريم جواب دا كړې شويدې چه د (عنق) اطلاق په جماعت او ډلې باندې هم كيږى نو داعناق معنى ده ډيرې ډلې او هر كله چه د دې دواړو جواباتو په اعتبار سره لفظ د (عنق) ظاهر غير ذوى العقول وو ليكن معنى او حقيقةً د ذوى العقولو نه. دې نو د دې وجې نه اسناد ورته د صيغې واحدې مؤنث اوكړې شو چه پديكښې رعايت د ظاهر اوكړې شو. او خبر ورله جمع مذكر سالم راوړې شو په هغه كښې رعايت د معنى كړې شويدې. والله اعلم بالصواب.

| |
|---|
| وَمَا يَأْتِيهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ مِّنَ الرَّحْمٰنِ مُحْدَثٍ إِلَّا كَانُوا عَنْهُ مُعْرِضِيْنَ ﴿۵﴾ فَقَدْ كَذَّبُوْا |
| اونه راځى دوئ ته يو نصيحت دَطرفه دَالله نه، نوې مكروى دوئ دَهغى نه اعراض كونكى. يقيناً دوئ تكذيب اوكړو |
| فَسَيَأْتِيهِمْ أَنْبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۶﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الْأَرْضِ |
| نوزرده چه ورته رابه شى انجامونه دَهغه څه چه دوئ په هغى پورى توقى كولې. آيا نه گورى دوئ زمكى ته |
| كَمْ أَنْبَتْنَا فِيهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ﴿۷﴾ إِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً |
| چه څومره رازرغون كړيدى مونږ پدى كښې دَهرقسمه بوټى فائده مندنه. بې شكه پدى كښې خامخادليل دَتوحيد دې، |
| وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۸﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿۹﴾ |
| خوندى زيات پدوئ كښې ايمان راوړونكى. اوبې شكه رب ستاصرف هغه غالب دې رحم كونكې دې |

﴿وَمَا يَأْتِيهِم مِّن ذِكْرٍ﴾ دا زجر دې په مسلسل انكار د دوئى باندې د توحيد نه، او ﴿مِّن ذِكْرٍ﴾ كښې (من) زائده ده او ﴿مِّنَ الرَّحْمٰنِ﴾ كښې ابتدائيه ده. او ﴿ذِكْرٍ﴾ نه مراد وحى ده چه مشتمله وى په وعظ او نصيحت باندې. او ذكر د ﴿مِّنَ الرَّحْمٰنِ﴾ د پاره د كمال قباحت او شناعت د دوئى دې يعنى داسې ذات چه بيحده مهربان او انتهائى كريم دې نو هغه د مقتضى د خپل رحم د وجهې نه دوئى ته

د دوئی د فائدې دپاره وعظ او نصيحت را اوليږی نو دوئی د هغې اعراض کوی او﴿ مُّحْدَثٍ ﴾ صفت کاشفه دې د﴿ذِكْرٍ ﴾ او قرآن باندې د محدث اطلاق شويدې د دينه حدوث اصطلاحی ندې مراد بلکه لغوی مراد دې چه محدث په اعتبار د نزول سره دې يعنی په نزول کښې نوې دې او يا د ذکر نه مراد کلام لفظی دې او کلام لفظی متصف کيدې شی په حدوث سره . او يا حدوث په زعم د کفارو کښې مراد دې، تفصيل ئی په سورة الانبياء آيت نمبر (۲) کښې تير شويدې ﴿فَقَدْ كَذَّبُوا﴾ پديکښې زجر سره د تخويف د نيوی نه ، دې . او (فاء) دپاره د تفريع ده په ماقبل باندې او هر کله چه عمومی طور باندې تکذيب ورستو د اعراض نه ، وی . ځکه چه (اعراض) عدم قبول ته وئيلې کيږی . او عدم قبول دپاره وجه او اعتذار تکذيب وی صراحتاً نو د دې وجې نه تکذيب ورستو د اعراض نه ، ذکر کړې شو او په هغه باندې متفرع کړې شو . امام رازی رحمه الله فرمائی چه پديکښې ترقی ده ادنی نه ، اعلی ته . او هر اعلی پس د ادنی نه حاصليږی نو د دې وجې نه ادنی په اعلی باندې متفرع کړې شويدې . نو د کفارو حالت به دا وو چه ابتداء کښې به صرف اعراض وو .بيا به ئې د هغې نه انتقال اوکړو نور قبيح حالت ته چه هغه تکذيب دې . ځکه چه اعراض کښې تصريح د چا په تکذيب باندې نوی. او په تکذيب کښې تصريح وې . او بيا به ئې د هغې نه مزيد قبيح حالت ته انتقال اوکړو چه هغه استهزاء ده . او چه کله استهزاء راشی چه دا اخری اقبح حالت دې نو بيا د الله ﷻ قهر او غضب نازليږی نو ځکه اوئيلې شو چه﴿ فَقَدْ كَذَّبُوا فَسَيَأْتِيهِمْ أَنبَٰؤُا۟ مَا كَانُوا۟ ﴾ او زمخشری فرمائی چه غرض او مقصد د دې درې ځيزونو ، اعراض ، تکذيب او استهزاء يو دې . يعنی سبب د نزول عذاب ، او دا درې يو بل لره مستلزم دی . ترقی پکښې نشته دې ځکه چه اعراض مستلزم دې ، تکذيب لره ځکه چه کله هم د يوې خبرې نه ، اعراض اوکړې شی نو دا داسې ده لکه چه د هغې د قائل تکذيب اوکړې شو .او چه تکذيب اوکړې شی نو دا داسې ده لکه چه په هغه پورې توقې او د هغه استهزاء اوکړې شوه . نو غرض د ټولو يو دې اګر چه الفاظ مختلف دی . نو د آيت مقصد دا دې چه څرنګه کفار لکه ستا دعوت نه اعراض کوی او ستا تکذيب کوی او په تا پورې توقې کوی نو مونږ به دوئی ته د هغه خلکو حالات او واقعات بيان کړو چه هغوئ د خپلو پيغمبرانو نه اعراض . د هغوئ تکذيب او په هغوئ پورې ئې توقې کړې وې چه بيا مونږ هلاك کړل .

﴿أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الْأَرْضِ﴾ دا دليل عقلي دي په توحيد باندې . يعنی كچرې دوئ زمكې ته ، د هغې عجائباتو ته او په هغی كښې و نو ، بوټو ته د عبرت په نظر اوګوری نو د وئ عقلونه به دا فيصله اوكړی چه د عبادت لائق صرف يو د الله ﷻ ذات دې . ﴿كَمْ أَنْبَتْنَا فِيهَا﴾ (كَمْ) خبری دې او دا جمله په محل د نصب كښې مفعول به د (يَرَوْا) دپاره واقع شويده، او (كَمْ) خبری افادې د كثرت اصناف لره مستلزم دې او ﴿مِن﴾ د غوره قول مطابق بيانی دې. او ﴿كُلِّ زَوْجٍ﴾ كښې ﴿كُل﴾ د احاطې د افرادو دپاره دې .دا هم مستلزم دې كثرت د افرادو لره. نو د آيت مقصد دا دې چه الله ﷻ انواع د ونو او بوټو ډير پيدا كړيدی او بيا د هرې نوعې دپاره الله ﷻ ډير افراد هم پيدا كړيدی . دا د الله ﷻ د قدرت زبردست دليل دې . چه د يوې زمكې نه مختلف الاضاف اونې بوټی پيدا كړيدی او بيا د هر صنف نه مختلف قسم افراد ئې پيدا كړيدی، او ﴿كَرِيمٍ﴾ وئيلې كيږی په خپل باب كښې هر كثير المنفعت او غوره او مفيد خيز ته ، لكه وئيلې كيږی وجه كريم چه كله مخ حسين او جميل وی. رجل كريم چه كله د يو كس اخلاق بهترين وی كتاب كريم چه كله د كتاب معانی او مقاصد بهترين وی . او دلته نباتات به وصف د كريم سره متصف كولو كښې اشاره ده چه په هر بوټی كښې د الله ﷻ د طرف نه فائده شته دې. اګر چه خنې بوټی داسې دی چه په هغې كښې صرف ظاهراً ضرر وی.

﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً ﴾ يعنی دلائل خو نور هم ډير دی خو كچرې دوئ صرف دې يو دليل ته هم د عبرت په نظر اوګوری نو د ايما ن راوړلو دپاره دا يو هم كافی دې . او هر كله چه هر بوټی او هر وونه مستقل دليل او نشانی وه نو ځكه (اية) مفرد ذكر شو او ﴿ لَآيَةً ﴾ كښې لام زائد دې او قانون دې چه كله اسم د ﴿ إِنَّ ﴾ موخر وی په خبر باندې نو په اسم باندې بيا لام زائده داخليږی.

﴿ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم ﴾ دا اشاره ده سبب عذاب ته .يعنی د دلائلو باوجود دوئ ايمان نه راوړی ځكه چه دعناد د وجې نه دوئ په زړونو باندې مهر جباريت ثبت شويدې ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ ﴾ يعنی

غالب دې په انتقام اغستلو د دښمنانو نه ﴿الرَّحِيمُ﴾ يعنى رحم کوونکې دې په مؤمنانو باندې چه د عذاب نه ئې بچ کوی او دغه شان د رحم د وجې نه کافر ته مهلت ورکوی دا جمله پدې سورت کښې اته (۸) ځلې ذکر شويده . او هر واقعه نه ورستو الله ﷻ پدې جملې سره سبب عذاب او هلاکت طرف ته اشاره کوی.

| |
|---|
| وَإِذْ نَادَىٰ رَبُّكَ مُوسَىٰ أَنِ ائْتِ الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿١٠﴾ قَوْمَ فِرْعَوْنَ ۚ أَلَا يَتَّقُونَ ﴿١١﴾ |
| اوکله چه اواز اوکړو رب ستا موسیٰ ﷺ ته چه ورشه قوم ظالمانو ته يعنى قوم دفرعون ته آيا دوئ نه يريږی (دالله دعذاب نه) |
| قَالَ رَبِّ إِنِّي أَخَافُ أَن يُكَذِّبُونِ ﴿١٢﴾ وَيَضِيقُ صَدْرِي وَلَا يَنطَلِقُ لِسَانِي |
| اووئيل موسیٰ اې ربه څه يريږم ددينه چه ځما تکذيب به اوکړی، اوبله داچه تنګيږی سينه ځما اوبله داچه سمه نه چليږی ژبه ځما |
| فَأَرْسِلْ إِلَىٰ هَارُونَ ﴿١٣﴾ وَلَهُمْ عَلَيَّ ذَنبٌ فَأَخَافُ أَن يَقْتُلُونِ ﴿١٤﴾ |
| نو اوليږه وحى هارون ته (رسالت ورکړه) اوبله داچه ددوئ په ما باندې دعوه دګناه (دقتل) ده نو څه يريږم چه ما به قتل کړی |
| قَالَ كَلَّا ۖ فَاذْهَبَا بِآيَاتِنَا ۖ إِنَّا مَعَكُم مُّسْتَمِعُونَ ﴿١٥﴾ |
| الله ﷻ ورته اووئيل هرګز تا نشی قتل کولې، نو دواړه لاړشئ په معجزو زمونږ سره بې شکه مونږ تاسو سره يو اوريدونکی يو. |

﴿وَإِذْ نَادَىٰ رَبُّكَ﴾ دا دسورت دويمه حصه ده چې پديکښې دتمهيد او ترغيب نه پس دلائل نقليه تفصيلاً ذکر کيږی . دا اول دليل نقلی دې په واقعې د حضرت موسیٰ ﷺ سره دا واقعه مشتمله ده په ډيرو فوائدو باندې. منجمله د هغې نه دا دی چه د دينه ثابتيږی چه برکات ورکوونکې ذات صرف او صرف الله ﷻ دې . چه دا دعوه د سورة الفرقان وه . دغه شان دا فائده هم پکښې ده چه د دې خبر نه منوونکی الله ﷻ دنيا کښې هلاك کړيدی . دغه شان پديکښې تسلی ده نبی پاك ﷺ ته او مؤمنانو ته چه د کفارو آخری انجام هلاکت دې . او مؤمنانو ته الله ﷻ د هلاکت او عذاب نه نجات ورکوی .

دا واقعه مشتمله ده په څلورو مقاماتو باندې نو دې ځائې نه تر آیت نمبر (۱۷) پورې اول مقام دې چه پدیکښې حضرت موسی علیه السلام ته رسالت، فرعون او د هغه قوم ته دعوت ورکولو حکم د موسی علیه السلام اظهار خوف او د هغې ازله. د حضرت هارون ﷺ په باره کښې دعا قبلیدل او مقصد د رسالت ذکر کیږی.

﴿ وَإِذْ نَادَىٰ رَبُّكَ ﴾ د ینه مخکښې (اُذْكُرْ) یا (اُتْلُ) مقدر دې. او (وَإِذْ) معمول د هغې محذوف فعل دپاره دې. او (نداء) وئیلې کیږی هغه بلنې ته چه په حرف (یا) وغیره سره وی. او دا نداء د جانبه د الله ﷻ نه موسی ﷺ ته په هغه وخت کښې شوې وه کله چه موسی ﷺ د خپلې بی بی سره د مدین نه مصر ته روان وو. سخته د تیارې او باران والا شپه وه یخنی هم ډیره وه. بی بی ئې د اولاد په امید بیماره هم وه. لاره ورنه هم ګډه وډه شوې وه نو دلرې نه ئې د اور په شان یوه شعله اوکتله نو چه هلته ولاړو نو د الله ﷻ د طرف نه ورته نداء اوشوه. او دا نداء څرنګه وه. مرکبه وه د حروفو او اصولو نه او که نوه؟ تفصیل ئې په سورة طٰه کښې تیر شویدې ﴿ أَنِ ٱئْتِ ٱلْقَوْمَ ﴾ (ان) یا مصدریه دې او حرف جر ورسره مقدر دې یعنی ﴿أَنِ ٱئْتِ ﴾ او یا تفسیریه دې په معنی د (ای) سره باقی په حیز د نداء کښې څه وئیلې شوی وو؟ د هغې تفصیل په سورة طه کښې ذکر وو. او چونکه پدې سورت کښې زیات طور تخویف دې دعوی توحید نه منونکو دپاره نو د دې وجې نه دلته اختصار اوکړې شو او اوئیلې شو چه ﴿ أَنِ ٱئْتِ ٱلْقَوْمَ ﴾

﴿ قَوْمَ فِرْعَوْنَ ﴾ دا بدل دې د ﴿ ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ نه، او یا ورله عطف بیان دې ﴿ أَلَا يَتَّقُونَ ﴾ دا جمله یا په تقدیر د قول سره حال دې د ضمیر د ﴿أَنِ ٱئْتِ﴾ نه ای ائتهم قائلاً لهم الا یتقون او استفهام انکاری، تو بیخی دې، یعنی د الله ﷻ د عذاب نه ځانونه ولې نه بچ کوئ، د هغه دعذاب نه، او کفر او شرك نه، ځان بچ کول پکار دی. او یا استفهام دپاره د تعجب دې. او مقصود پدې سره موسی ﷺ ته تعجب ورکول دی. یعنی دا خلك د الله ﷻ د عذاب نه څرنګه په امن کښې دی چه دشرك او کفر نه ځان نه بچ کوی. او بعض فرمائی چه دا کلام د قبیلې د (الایسجدون) نه، دې. یعنی دلته په اصل کښې منا دی محذوفه ده، او حروف نداء د فعل سره متصل کړې شویده نو تقدیر د کلام داسې دې الا یقوم اتقون ﴿ قَالَ رَبِّ إِنِّيٓ أَخَافُ ﴾ پدې کښې اظهار د خوف دې د جانبه د موسی ﷺ

نه موسیٰ ﷺ ته د فرعون ظلم ، جبر او تکبر معلوم وو . نو د دې وجه نه موسى عليه السلام خوف اظهار اوکړو او مقصود پدې سره طلب دَ نبوت وؤ. دپاره د هارون ﷺ ، چه هارون ﷺ د ده سره ملګرې شی نو د نبوت ذمه داری ، دعوت او تبليغ به په ښې طريقې سره سر انجام کړی . او مقصود پدې اظهار سره د الله ﷻ حکم پوره کولو کښې توقف اوورستوالې نوو. ﴿ وَيَضِيقُ صَدْرِي﴾ د جمهورو په نيز ﴿وَيَضِيقُ ﴾ او ﴿ وَلَا يَنطَلِقُ ﴾ دواړه په رفع سره دی او دا عطف دی په خبر د﴿أن﴾باندې نو ګويا چه دا دواړه مستقل علل دی او موسیٰ ﷺ درې علل ذکر کړو . اول دا چه د ظلم او تکبر د وجې نه به ځما تکذيب اوکړی ، دويم دا چه ځما سينه تنګه ده او دريم دا چه دا ځما ژبه صحيح نه چليږی . او بعض علمآء فرمائی چه دا په نصب سره عطف دی په صلې د ﴿أن﴾باندې چه ﴿يُكَذِّبُونِ ﴾دې ، نود دې مقصد دا دې چه (خوف) يو دې او متعلق دې په امورو ثلاثو پورې او (ضيق صدر ) او عدم انطلاق لسان هر يو عطف په بل باندې د قبيلې د عطف د سبب نه په مسبب باندې ځکه چه تکذيب سبب د تنګوالی د زړه دې او تنګوالې د زړه سبب دې د بنديدلو د ژبې دپاره . يعنی په تکذيب سره زړه ته خفګان اورسی او چونکه د موسیٰ ﷺ په ژبه کښې د ورکوالې نه لکنت وو اګر چه په عامو خبرو کښې د هغې اثر به نه ظاهريدلو . د موسی ﷺ په دعا سره د هغې اثر زائله شوې وو .خو الله ﷻ د خپل حکمت د وجې نه بالکه د هغې اثر نوو زائله کړې ، نو موسیٰ ﷺ ته خطره اوشوه چه د زړه تنګوالی او خفګان په وخت کښې کيدې شی چه دا اثر ظاهر شی نو ځکه ئې او فرمائيلو چی﴿ وَلَا يَنطَلِقُ لِسَانِي ﴾ او دا هم ممکنه ده چه د موسیٰ ﷺ دا کلام په هغه وخت کښې کړې وی چه د ژبې د لکنت ختميدلو دپاره ئې دعا نوه غوختلې ﴿ فَأَرْسِلْ إِلَىٰ هَارُونَ ﴾ مرسل يعنی مفعول به د وجې د ظهور نه محذوف دې چه جبرئيل ﷺ دې.نو مقصد دا دې چه جبرئيل ﷺ په وحی سره هارون ﷺ ته اوليږه ، چه ځما مددګار او معين شی.﴿ وَلَهُمْ عَلَيَّ ذَنبٌ ﴾په آيت کښې ذکر د بل خوف دې ، يعنی د فرعون قوم او حکومت په ما باندې د قبطی د قتل والا جرم هم دې داسې نه چه هغونی ما د تبليغ فريضې اداء کولو نه مخکښې مخکښې قتل کړی . نو مراد په ( ذنب ) سره قتل د

قبطي دې. او قبطي اګر چه معصوم او محقون الدم نه وو او د غه شان قتل د هغه قصداً هم نوو نو دې وجې نه د ‹ ذنب › نه مراد ذنب حقيقي ندې بلکه صوري دې. او دې وجه نه په سورة القصص کښې د قبطي قتل کولو نه ورستو حضرت موسیٰ ﷺ طلب مغفرت اوکړو. او يا د ذنب نه مراد د فرعون د قوم په زعم او قانون کښې ذنب او جرم دې. او مقصد دا دې چه د هغوئی په زعم او د هغوئ په قانون کښې ما ګناه او جرم کړيدې. يعنی څه د هغوئ قانونی مجرم يمه. او د دې واقعې تفصيل به په سورة القصص کښې انشاء الله راشي.

﴿ فَأَخَافُ أَن يَقْتُلُونِ ﴾ يعنی څه ويريږم چه دوئی څرنګه ما اوګوری نو قتل به مې کړی او پديکښې اشاره ده چه د ظاهری اسبابو تحت يره کول عيب ندې، او نه ده د انبياء کرامو د اعلی مرتبې خلاف ده. او بعض فرمائی چه د موسیٰ ﷺ خوف په خپل ذات باندې نوو. بلکه په فوات د مقصد د رسالت باندې وو، چه هغه تبليغ دې. يعنی څما په قتل سره په مقصد د رسالت يعنی تبليغ به فوت شي. نو لهذا هارون ﷺ څما سره ملګرې کړې چه دا عظيم مقصد فوت نشي کچرې هغوئ ما قتل کړی نو هارون ﷺ به ورته تبليغ اوکړی﴿ قَالَ كَلَّا ۖ فَاذْهَبَا ﴾پدې آيت کښې ذکر د ازالې د خوف دې د موسیٰ ﷺ په تسلئ سره. او اشاره ده چه د موسیٰ ﷺ دعاګانې قبولې کړې شوې. د تائيد دپاره هارون ﷺ ورسره کړې شو او هغه ته نبوت ورکړې شو او د فرعون د شر نه د حفاظت وعده ورسره هم الله ﷻ اوکړه﴿ كَلَّا ﴾ردعيه دې يعنی فرعون هر ګز تاته څه نشي وئيلې، پدې کښې د موسیٰ ﷺ سره د حفاظت وعده ده.

﴿ فَاذْهَبَا بِآيَاتِنَا﴾ پديکښې اشاره ده استجابت د دعا ته په باره د هارون ﷺ کښې يعنی فرعون تا قتل کولې هم نشي او خپل ورور حضرت هارون ﷺ د ځان سر کړه او زمونږ معجزاتو سره فرعون ته لاړشه ، او په﴿ فَاذْهَبَا ﴾کښې تغليب د مخاطب دې په غائب باندې ځکه چه هارون ﷺ د دې خطاب په وخت کښې موجود نوو. او ‹ آيات › نه مراد معجزات دی چه تفصيل ئې په سورة اعراف او طه کښې تير شويدې. ﴿ إِنَّا مَعَكُم ﴾دا علت دې د عدم ورع دپاره. يعنی تاسو د فرعون نه مه ويريږئی ځکه چه ستاسو حامی او ناصر يمه په ‹ إِنَّا › کښې ضمير د جمعې متکلم ‹ اسم › د ‹ ان ›

دپاره دي او ﴿ مُّسْتَمِعُوْنَ ﴾ورله خبر دي او﴿ مَعَكُم ﴾زائد دي نو مقصد دا دي چه مونږ د دوئی د خبرو اوریدونکی یو ستاسو امداد به کوو . او بعض فرمائی چه﴿ مَعَكُم ﴾زائد ندي بلکه خبر اول دي او﴿ مُسْتَمِعُوْنَ ﴾خبر ثاني دي . او﴿ مُسْتَمِعُوْنَ ﴾مجازاً په معنی د ( سامعون ) سره دي ځکه چه ( استماع ) خپله معنی ( اصغاء ) یعنی غوږ ایښودل دی، اودا معنی په الله ﷻ کښې محاله ده نو د دي وجې نه﴿ مُسْتَمِعُوْنَ ﴾په معنی د ( سامعون ) سره دي . او بیا ( سماع ) کنایه ده د غالب کولو د دوئی نه په فرعون باندې . او په ﴿ مَعَكُم ﴾کښې خطاب موسیٰ ؑ او هارون ؑ ته دي او هغوئی اگر چه دوه کسان وو خو نازل کړې شوی وو په منزله د جماعت نو ځکه خطاب ورته په جمعي سره اوکړې شو .

فَأْتِيَا فِرْعَوْنَ فَقُوْلَآ إِنَّا رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٦﴾ أَنْ أَرْسِلْ مَعَنَا بَنِيْٓ إِسْرَآءِيْلَ ﴿١٧﴾

پس دواړه ورشئ فرعون ته بیا ورته اووایئ چه مونږ هریو رسول د رب العالمین یو ،چه راپریده مونږ سره بنی اسرائیل.

قَالَ أَلَمْ نُرَبِّكَ فِيْنَا وَلِيْدًا وَّلَبِثْتَ فِيْنَا

اوویل فرعون موسیٰ ته آیا مونږ ستا تربیت نه وو کړې پخپلو کورونو کښې پدې حال کښې چه ورکې وې او تیر کړې وو تا مونږ سره

مِنْ عُمُرِكَ سِنِيْنَ ﴿١٨﴾ وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِيْ فَعَلْتَ وَأَنْتَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿١٩﴾ قَالَ

د خپل عمرنه څو کاله او کړې وو تا خپل هغه کار چه تا کړې وو (قتل) او ته وې د ناشکری کونکو نه موسیٰ ورته اوویل

فَعَلْتُهَآ إِذًا وَّأَنَا مِنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿٢٠﴾ فَفَرَرْتُ مِنْكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ

کړې مې وو هغه کار په هغه وخت کښې چه وم څه د ناپوهو نه، نو څه او تختیدلم ستاسو نه کله چه اوویریدم ستاسو نه

فَوَهَبَ لِيْ رَبِّيْ حُكْمًا وَّجَعَلَنِيْ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٢١﴾

نو راکړه ماته رب ځما پوهه اواوئ گرځولم د رسولانو نه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَتِلْكَ | نِعْمَةٌ | تَمُنُّهَا | عَلَيَّ | اَنْ | عَبَّدْتَّ | بَنِيْٓ | اِسْرَآءِيْلَ ﴿۲۲﴾ | |
| اودغه تربیت | يو احسان وؤچه ته ئې زباتوې | | | په ماچه تا غلامان | | كړي وؤبني اسرائيل | | |

﴿ فَأْتِيَا فِرْعَوْنَ ﴾ فاء د تفريع او د ترتب دپاره ده په ما قبل باندې . او پديکښې دوه مقاصد د نبوت او رسالت ذکر کيږي چه يو ﴿ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴾ طرف ته دعوت ورکول دی . او دويم مظلوم او محکوم قوم ته د الله ﷻ د بندګۍ دپاره ازادي ورکول دی . د آيت مقصد دا دې چه کله تاسو ته رسالت ميلاؤ شو نو اوس تاسو دواړه فوراً د رسالت په مقاصدو باندې عمل اوکړئ . او فرعون ته لاړ شئ اول ورته د الله ﷻ د ربوبيت او د توحيد دعوت ورکړئ . اوبيا ورته د خپل قوم د ازادئ مطالبه اوکړئ . او دا مقاصد د امت محمديه ﷺ هم دی ځکه چه دروازه دنبوت په نبی پاك ﷺ باندې بنده شويده او د مخکنو انبياء کرامو ذمه داری دې امت ورکړې شوه او د دې وجې نه حضرت عقبه بن عامر ﷜ د ايران بادشاه ته د خپلې زندګۍ مقصد پدې الفاظو کښې بيان کړو چه:

كنا بعثنا ان نخرج العباد من عبادة العباد الى عبادة رب العباد.

او لفظ د (رسول) پدې ځائې کښې مفرد ذکر شو او په سورة طه کښې په تثنيې سره ذکر شويدې . وجه دا ده چه "رسول" کله په معنی د رسالت سره وی او کله په معنی د مُرسَل سره وي ،نو په سورة طه کښې چونکه د موسیٰ ﷺ او هارون ﷺ د دواړو رسالت مستقلاً بيانول مقصود وو نو هلته په معنی د مرسل سره وو ،نو ځکه هلته تثنيه ذکر شوه او دلته ورنه مراد نفس رسالت دې . او رسالت اسم جنس دې واحد تثنيه ټول پکښې برابر دی نو د دې وجې نه دلته مفرد ذکر شو . او هر کله چه "رسول" دلته په معنی د رسالت سره شو نو دې وجې نه د "رسول" نه مخکښې به لفظ د (ذو) مقدر وی . يعنی (ذو رسالة رب العلمين) ، صاحب د قاموس او امام ابوعبيده وغيره فرمائي چه دوه اوزان فعول ، او فعيل داسې اوزان دی چه پديکښې مذکر او مؤنث ، واحد او جمع ټول برابر دی،نو دوه کسانو دپاره مفرد صيغه هم استعمالولې شی او د تثنيې هم . لکه عرب وائی هذان رسولان، هذان رسولی . او د دې وجې نه په سورة الکهف آيت نمبر (۵۰) کښې وئيلې شويدی (وهم لكم عدو) يعنی په صيغې د واحد سره ذکر شويدا ځکه چه (عدو) په وزن د فعول سره دې .

او بعض فرمائي چه موسى ﷺ او هارون ﷺ په اخوت . رسالت . او شريعت كښې متحد وو نو دوئي په منزله د رسول واحد او شخص واحد او كنړلې شو نو ځكه پدې ځائ كښې صيغه د مفرد ذكر شوه نو د﴿ إِنَّا رَسُولُ ﴾مقصد به دا شي چه " انا كل واحد منا رسول رب العلمين" او په سورة طه كښې د دواړو رسالت اصالة ذكر كول مقصود وو نو د دې وجې نه هلته تثنيې سره ذكر شو . ﴿ أَنْ أَرْسِلْ ﴾ ( ان ) تفسيريه دې دا مطالبه د ازادئ د خپل قوم ده او مفسرين فرمائي چه فرعون بنى اسرائيل د څلور سوه كالو نه ، غلامان جوړ كړي وو ، او په دې وخت كښې د بنى اسرائيلو تعداد شپږ لكه اتيازره ( ۶۸۰۰۰۰ ) كم وبيش وو .

﴿ قَالَ أَلَمْ نُرَبِّكَ فِينَا ﴾ د دې ځائ نه دويم مقام شروع كيږي د آيت نمبر (۳۳) پورې ، پديكښې د فرعون د موسىٰ ﷺ سره بحث مباحثه ، او د فرعون اشكالات په موسىٰ ﷺ باندې ذكر كيږي نو پدې آيت كښې دوه اشكالاتو او اعتراضاتو ذكر دې.داول اعتراض بنياداحسان دې په ژوندندى پريخودلودَموسى عليه السلام سره.اودويم اعتراض بنياد احسان دې.په نعمتونو او تحقير د موسىٰ ﷺ داول اعتراض خلاصه دا ده چه مونږ ستا تربيت كړى دې مونږ ته په خپل لاسونو كښې لوئى كړې ئې . حالانكه ته ما د نورو ماشومانو پشان قتل كولې شوې ،نو پكار دا ده چه تا ځما صفت بيانولې، او ځما احسان دې منلې، نو﴿فِينَا ﴾په تقدير د مضاف سره دې يعنى ( في منازلنا )

﴿ وَلَبِثْتَ فِينَا مِنْ عُمُرِكَ ﴾دا دويم اعتراض دې يعنى ته ما په نازو نعمتونو كښې لوئى كړې ئې . مختلف نعمتونه مې درباندې كړيدې د دينه مخكښې خو تا دا خبرې نه كولې ؟ لكه نن صبا هم ځنې سركشه ، متكبره خلك د دين طالبانو ته پيغور وركوى چه زمونږ په ټكړو غټ شوې يئ او اوس زمونږ سره مقابله كوئ﴿ مِنْ عُمُرِكَ سِنِينَ ﴾ مراد ورنه هغه عمر دې چه موسىٰ ﷺ د مدين ته تللو نه مخكښې د فرعون په كور كښې تير كړې وو چه هغه ديرش كاله ، يا اتلس كاله او يا دولس كاله عمر وو﴿ وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِي﴾دا دريم اعتراض دې ، بنياد د دې اعتراض قتل نا حق او احسان فراموشى ده . يعنى ته خو ډير احسان فراموشه ئې ځكه چه تربيت دې مونږه كولو ، احسانات مې درباندې

کولو ، د هغې باوجود تا زمونږ یو ملازم ناحقه قتل کړو ، نو مجرم او احسان فراموش انسان څرنګه پیغمبر جوړیدې شی ؟

نو د ﴿وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِي﴾ نه مراد قتل د قطبی دې چه خباز ( باورچی ) د فرعون وو ، نوم د هغه ( فاتور ) وو ، او د قتل نه تعبیر په اسم موصول سره کول چه پدیکښ ابهام دې دپاره د تعظیم د جرم دې چه ته خو د ډیر لوئی جرم مرتکب شوې ئې ﴿ وَأَنتَ مِنَ ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴾غوره قول دا دې چه د کفر نه مراد کفران نعت دې، یعنی ته څما د نعمتونو ناشکری کوونکې ئې ،او یا د کفر نه مراد کفر حقیقی دې خو د دوئی د زعم او ګمان مطابق، یعنی زمونږ د قانون او زمونږ د خیال مطابق ته خو ( العیاذبالله ) کافر ئې ، او یا دمقصد دا دې چه ته خو هم تر اوسه پورې زمونږ په مذهب باندې وې او ( نعوذ بالله ) زمونږ سره ته هم کافر وې .

﴿ قَالَ فَعَلْتُهَآ إِذًا ﴾دا د موسٰی ﷺ د طرف نه جوابات ذکر کیږی بطور لف ، نشر غیر مرتب سره نو دا دریم اعتراض جواب دې چه قتل د قبطی سره متعلق وو. او دا جواب ئې په نورو باندې مقدم کړو څکه چه قتل نفس ناحق یوه ډیره لویه دینی بدنامی ده نو دې صفائی ډیره ضروری ده نو د دې وجې نه دا جواب ئې په نورو جوابونو باندې مقدم کړو ( بحر ) او حضرت مولانا مفتی محمد شفیع رحمہ اللہ فرمائی چی دا جواب ئې څکه مقدم کړوچه پدې کښ اعتراف دَ خپلی کمزورئ دې، او دا شان پیغمبری دې چه د خپلې کمزورئ دپاره حجتونه نه تالاش کوی بلکه د هغې اعتراف او اقرار کوی . نو دجواب خلاصه دا ده چه موسٰی ﷺ د قبطی د قتل اقرار اوکړو چه هاؤ ؛ قبطی ما قتل کړې وو . خو دا قتل عمداً نوو بلکه خطاءًوو او ما اراده د ده د قتل نوه کړې بلکه د ظلم دفع کولو او ادب خودلو دپاره ما ده ته یو سوك ( موکه ) ورکړې وه او څه نووم پوهه چه دې به په یوې موکې سره مړکیږی ،نو﴿وَأَنَا۠ مِنَ ٱلضَّآلِّينَ ﴾په معنی د ( خاطئین ) سره دې یعنی څه د خطاءً قتل کوونکو نه، یم .او یا﴿ٱلضَّآلِّينَ﴾په معنی د ( جاهلین ) سره دې، او عرب ( ضلال ) په موضوع د جهل او ( جهل ) په موضوع د ضلال استعماله وی . لکه ووجدك ضآلا فهدی ( الضحی ) شو ( طبری ) نو مطلب دا دې چه ما اګر چه دې قتل کړیدې ، خو څه نا واقفه او ناخبره وم چه حربی کافر په دارالحرب کښ ظلم کوی د هغه قتل ناجائز دې ،په دې باندې ماته څه وحی د.الله ﷻ د طرف نه ، نوه راغلې ، او

بعض فرمائی چه ﴿ ضالین ﴾ په معنٰی د ﴿ ناسین ﴾ سره دي، ځکه چه کله کله ضلالت په معنٰی د نسیان سره راځی لکه سورة البقره کښ ﴿ ان تضل احد هما ﴾ نو ﴿ تضل ﴾ په معنٰی د ﴿ تنسی ﴾ سره دي نو معنٰی ئې دا شوه چه دا حرکت ځما نه په هیره سره صادر شویدې. او قصداً ندې. بهر تقدیرکه ﴿ ضالین ﴾ په معنٰی د "خاطئین" سره شی او یا ئی معنٰی د عدم واقفیت او یا نسیان شی دا د نبوت سره منافی ندی. او ګناه نده البته لګ غوندې بې احتیاطی د حضرت موسٰی ﷺ نه اوشوه چه دا خلاف اولی کار وو او د مقربین په حق کښ صورتاً او مجازاً ګناه غوندې متصوره کیږی ځکه چه د هغوئی د عالی مرتبې سره بې احتیاطی کول نوو پکار. نو ځکه حضرت موسی ﷺ په خپل دې عمل باندې مغفرت د الله ﷻ نه طلب کړو او الله ﷻ ورته مغفرت اوکړو لکه سورة القصص کښ دی.

﴿ فَفَرَرْتُ مِنكُمْ لَمَّا ﴾ یعنی د دغې ارادی قتل د وجې نه تاسو ځما خلاف د قتل مشوره اوکړه نو د خپل ځان د حفاظت دپاره مامدین ته هجرت اوکړو او هرکله د موسٰی ﷺ د قتل مشوره صرف د فرعون نوه بلکه پوره کابینه او مشرانو د طرف نه، وه نو ځکه موسٰی ﷺ په﴿مِنكُم ﴾او﴿خِفْتُكُم ﴾ کښ خطاب د جمع استعمال کړو﴿فَوَهَبَ لِي رَبِّي ﴾دا جواب د دویمې شبهې دې یعنی ﴿ لبثت فیمن من عمرك سنین ﴾ یعنی تاته دعوت درکول او ستا په مخامخ خبرې کول وجه دا ده چه ځه الله ﷻ نبی ګرځولې یمه،د هجرت نه ورستو الله ﷻ ماته پوهه او نبوت راکړو،نو ځما ذمه داری ده چه ځه به تاته دعوت درکوم او حضرت شیخ ﷫ فرمائی چه﴿فَوَهَبَ لِي رَبِّي حُكْمًا ﴾ کښ اشاره ده دلائلو عقلیو ته، او په﴿وَجَعَلَنِي مِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴾کښ اشاره ده دلائلو نقلیو ته نو مقصد دا دې چه ځه دعوه د نبوت کومه او په دې دعوٰی باندې الله ﷻ ماته دلائل عقلیه او نقلیه دواړه راکړیدی.

﴿وَتِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ أَنْ عَبَّدتَّ ﴾دا جواب د اول اعتراض دې او﴿وَتِلْكَ﴾اشاره ده تربیت د فرعون ته. او د دې آیت مختلف توجیهات کړې شویدی. (۱)اوله توجیه دا ده چه دا موسٰی ﷺ دا کلام علی سبیل الاعتراف دې، یعنی موسٰی ﷺ د فرعون د احساناتو اقرار کوی چه دا خبره بالکل صحیح ده چه ستا په ما باندې احسانات دی چه نور بنی اسرائیل دې غلامان جوړ کړی وو د هغوئ ماشومان دې قتل کولو او ځه دې ازاد او ژوندې پریخودم او ځما تربیت دې اوکړو لیکن

ستا دا احسانات ځما د نبوت دپاره څه مانع او رکاوټ نه ګرځي (۲) دويمه توجيه دا ده چې دا کلام د موسی ﷺ د طرف نه علی سبيل الانکار دې او ﴿تَمُنُّهَا﴾ نه مخکښې حرف استفهام مقدر دې او استفهام انکاري دې، او پدې صورت کښې څلور توجيهات دی (۱) اوله توجيه دا ده چه موسی ﷺ فرعون ته اوئيلو چه ( دا ځما تربيت کول ستا څه احسان ندې چه ته ئې په ما باندې زباته وی، ځکه چه ځما تربيت ستا په کور کښې ستا د ظلم نتيجه ده چه تا بنی اسرائيل غلامان جوړ کړی وو او د هغوئ ماشومان دې قتل کولو د هغې د خوف او د ويرې نه ځما مور څه په درياب کښې اوغورځولم، او ستا بی بی اوکتلم نو څه ئې خپل ولد جوړ کړم، کچرې تا په بنی اسرائيلو باندې ظلم نه کولې نو څه به خپلې مور درياب ته نه غورځولم او نه به ځما تربيت ستا په کور کښې کيدلو

(۲) دويمه توجيه دا ده چه دا ستا څه احسان ندې چه ځما تربيت دې کړيدې، ځکه چه تا ځما قوم بنی اسرائيل غلامان جوړ کړيدی او ځما د قوم تذليل دا ځما تذليل دې، لکه مشهور متل دې (من اهين قومه فقد ذل) (۳) دريمه توجيه دا ده چه څه نه منم چه تا په ما باندې احسان کړيدې بلکه کوم اموال او خوراکونه چه تا په ما باندې کړيدی دا هغه اموال او څيزونه وو چه ځما قوم بنی اسرائيلو ګټلې وو، تا د هغوئ نه خدمتونه اغستل، زمينداری وغيره به د ې پرې کولې نو دهغوئ اموال وو تا به هم خوړلو او ما به هم خوړلو پدې کښې ستا څه احسان نيشته دې (۴) څلورمه توجيه دا ده چه څه ستا احسان نه منم ځکه چه ته خپل احسان زباته وې ليکن خپل ظلمونو ته نه ګورې چه ازاد قوم دې محکوم او غلامان جوړ کړيدی ستا احسانات صرف په ما باندې دی او د هغه په بدله کښې تا ځما په قوم باندې لوئ لوئ ظلمونه کړيدی. نو څرنګه به څه ستا احسان اومنم.

| |
|---|
| قَالَ فِرْعَوْنُ وَمَا رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۳﴾ قَالَ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ |
| اووئيل فرعون څه نو څوک دې رب دټولو خلقو. اووئيل موسی (رب هغه دې) چه رب دې دآسمانونو او زمکې |
| وَمَا بَيْنَهُمَا ؕ اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِيْنَ ﴿۲۴﴾ قَالَ لِمَنْ حَوْلَهٗ |
| او دهغه څه چه په مينځ ددې دواړو کښې دی، که يقين کونکې يئ، او وئيل فرعون هغه چاته چه چاپيره وو دده نه |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَا | تَسْتَمِعُونَ ﴿٢٥﴾ | قَالَ | رَبُّكُمْ | وَرَبُّ | آبَائِكُمُ | الْأَوَّلِينَ ﴿٢٦﴾ | |

آیا نه آورئ تاسو (دا جواب نا موافق بیا او وئیل موسیٰ چه) رب هغه دی چه ستاسو رب دې او رب دې د پلار انو ستاسو پخوانو

قَالَ إِنَّ رَسُولَكُمُ الَّذِي أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ لَمَجْنُونٌ ﴿٢٧﴾

او وئیل فرعون چه بې شکه رسول ستاسو دغه چه رالیږلې شویدې تاسو ته خامخا لیونې دې.

﴿قَالَ فِرْعَوْنُ وَمَا ﴾ هر کله چه موسیٰ ﷺ فرعون ته دعوت ورکړو او دعویٰ د رسالت ئې اوکړه نو په دعوی د موسیٰ ﷺ کښې دوه امرین وو، یوا دا چه څه ، رسول یم او دویم دا چه د ﴿رَبُّ الْعٰلَمِیْنَ ﴾ د طرف نه یم، نو فرعون په دې دواړو امرینو باندې اشکالات اوکړو، اول قسم اشکالات ئې د رسالت په باره کښې وو چه د هغې ذکر تیر شو، دویم قسم اشکالات ئې علی سبیل المعارضة د رب العلمین په باره کښې اوکړو، نو پدې آیت کښې دویم قسم اشکالاتو ذکر دې. چه رب العلمین څوک دې ؟ د هغه ماهیت او حقیقت څه دې ؟ (ما) دپاره د طلب د ماهیت او حقیقت دې نو فرعون لعین د موسیٰ ﷺ نه د رب العلمین ماهیت او حقیقت طلب کړو. حالانکه الله ﷻ دپاره اجزاء راتلل مطلقاً محال دی، نو د دې وجې نه د الله ﷻ تعریف په جنس او فصل سره نشی کیدلې. د الله ﷻ د معرفت صرف او صرف په آثارو او صفاتو سره ممکن دې نو د دې وجې نه حضرت موسیٰ ﷺ په جواب کښې مختلف اثار د قدرت او افعال د الله ﷻ ذکر کړل.

**فائده**: دا سې مباحثه په سورة طه کښې هم ذکر ده فرق دا دې چه هلته د فرعون سوال وو (من ربکما) سره او دلته ئې پوښتنه اوکړه چه ﴿وَمَا رَبُّ الْعٰلَمِیْنَ ﴾ او هلته د موسیٰ ﷺ د طرف نه په جواب کښې ذکر وو چه (ربنا الذی اعطی) او دلته په جواب کښې ذکر دی چه ﴿رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ نو پدې تطبیق کښې د علماؤ مختلف اقوال راغلیدی. زیات غوره قول پکښې دا دې چه فرعون دواړه قسمه پوښتنې کړیدی او موسیٰ ﷺ دواړه قسمه جوابونه ورکړیدی. سورة طه کښې په یو قسم سوال ، جواب باندې اقتصار کړې شویدې او پدې سورت کښې په بل قسم سوال جواب

باندې اقتصار کړې شويدې ، موسىٰ ﷺ اولاً دې لعين ته دعوت ورکړو چه ( انا رسول رب العلمين ) نو فرعون اوئيل چه ( عالمين ) خو د مصر خلك دی او د مصر مدبر ، متصرف او رب خه يمه ما خو تاسو پيغمبران نه يئ جوړ کړې . نو موسىٰ ﷺ ورته ، اوفرمائيلو چه ( انا رسولا ربك ) ( طٰه ) يعنى مونږ د هغه ذات د طرف نه رسولان يو چه هغه ستا هم رب دې . نو فرعون بيا د ﴿رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ د ماهيت پوښتنه اوکړه نو موسىٰ ﷺ په جواب کښې ورته صفات او افعال د الله ﷻ ذکر کړل چه د ده کنه ادراك نشي کيدلې،د هغه معرفت صرف او صرف په اوصافو سره کيږی . نو فرعون بيا پوښتنه اوکړه چه (من ربکما ) نو موسىٰ ﷺ مزيد دلائل بيان کړو . او صاحب د روح المعانى يو قول دا هم نقل کيدې چه فرعون اول ځلې پوښتنه په ( من ربکما ) سره اوکړه، او دا پوښتنه د طلب د وصف مشخص وو چه ستا د رب تشخص څه دې ؟ بشر دې ، خلك دې يا جن دې نو موسىٰ ﷺ جواب على اسلوب الحکيم ورکړو چه د رب معرفت په اوصافو سره کيږی او تشخص راتلل د هغه دپاره محال دی . بيا په دويم ځلې فرعون پوښتنه په﴿وَمَا رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ سره اوکړه او دا سوال د حقيقت او ماهيت مطلقه په باره کښې وو چه ماهيت او حقيقت د﴿رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ څه دې نو موسىٰ ﷺ بيا جواب على اسلوب الحکيم ورکړو چه معرفت د﴿رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ په ماهيت سره نشى کيدلې ځکه چه د هغه دپاره ماهيت نيشته دې،معرفت د هغه صرف او صرف په اوصافو سره کيږی .﴿قَالَ رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾هر کله فرعون ځان ته ﴿رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ وئيلو نو موسىٰ ﷺ په استدلال کښې هغه امور ذکر کړو چه مختص دی صرف په الله ﷻ پورې يو مخلوق هم د الله ﷻ سره په هغې کښې شريك ندې،چه هغه استدلال دې په علوياتو سفلياتو او جوياتو سره. نو﴿ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ استدلال دې په علوياتو سره،﴿وَٱلْأَرْضِ﴾استدلال دې په سفلياتو سره او﴿وَمَا بَيْنَهُمَآ﴾ استدلال دې په جوياتو سره. نو خلاصه دا ده چه موسىٰ ﷺ فرعون ته اوئيلو چه ته اګر چه ځان ته د مصر مدبر او بادشاه وائی خو الله ﷻ د دې ټول کائنات مدبر دې او پيدا کوونکې دې که هغه علويات دی ، سفليات دی او يا جويات دی او بيا په هغې کښې اعراض دی او که جواهر دی د ټولو خالق او مدبر صرف الله ﷻ دې،﴿إِن كُنتُم مُّوقِنِينَ﴾د دې دوه توجيهات دی ، يوه توجيه دا ده

چه دا د قبیلې د تعلیق المتیقن بالمتیقن نه دې ،مطلب دا دې کچرته تاسو په اشیاؤ کښې په څه څیز باندې یقین لرونکی ئی نو پدې باندې هم یقین اولرئ چه خالق او مدبر د دې ټول کائنات صرف تن تنها د الله ﷻ ذات دې ځکه چه دا خبره اولی بالیقین ده د وجې د کمال ظهور نه، دویمه توجیه دا ده چه کچرته تاسو یقین د دې مشاهد اشیاؤ په حقیقت باندې او د دې په وجود باندې وی نو پدې سره استدلال اوکړئ په وجود د صانع او په وحدانیت د هغه باندې ځکه چه دا عالم مشاهد مرکب دې او هر مرکب ممکن وي او هر ممکن لره لابدی وی د علت نه نو ممکن علت د ممکن دپاره نشی ګرځیدلې والاّ لازم به شی دور یا تسلسل، نو ضروری ده چه علت به د سلسلې د ممکناتو نه علاوه وی . او د سلسلې د ممکناتو نه بهر یو ممتنع دې نو هغه علت قطعاً نشی کیدې . او دویم واجب دې ، نو معلومه شوه چه د دې ممکناتو دپاره علت ، جاعل او خالق صرف د الله ﷻ ذات دې﴿قَالَ لِمَنۡ حَوۡلَهُۥٓ ﴾موسٰی ﷺ یو زبردست دلیل ذکر کړو په وجود د الله ﷻ باندې نو فرعون ته خطره محسوسه شوه چه د موسٰی ﷺ دا دلیل د قوم د مشرانو په زړونو باندې اثر اونکړی . نو د دغې دلیل دپاره ئې خپلو درباریانو ته تعجب ورکړو چه تاسو د ده خبرې نه اورئی دا دې څه عجیبه خبرې کوی چه زما نه علاوه بل رب ثابتوی . نو د ﴿حَوۡلَهُۥٓ﴾نه مراد د فرعون خواص، د هغه د کابینې ارکان او د قوم مشران دی . د حضرت ابن عباس ﷺ نه د دوئی تعداد پنځه سوه (۵۰۰) مروی دې ﴿قَالَ رَبُّكُمۡ وَرَبُّ ﴾د فرعون د دې تعجب او تعجیب په بدله کښې موسٰی ﷺ عدول اوکړو زیات واضح دلیل ته چه دلیل انفسی دې او ما قبل دلیل افاقی وو . نو دلیل انفسی په نسبت سره افاقی ته زیات واضح وی .اودا عدول ئې دې دپاره وو چه د دوئی زړونه زر متاثر شی ، نو د﴿رَبُّكُمۡ﴾ نه مخکښې مبتداء یعنی (هو) مقدر دې . خلاصه د دلیل دا ده چه موسٰی ﷺ فرعون او د هغه دربایانو ته اوئیل چه تاسو پخپله په خپل ذات کښې حادث او ممکن ئی . ستاسو دپاره یو پیدا کونکې ضروری دې هغه څوك دې ؟ دغه شان ستاسو آباؤ و اجداد چه وفات شویدی حادث او ممکن دی نو د هغوئی رب او فناء کونکې څوك دې ؟ تاسو او ستاسو مشران په خپل وجود کښې محتاجه وو بل چاته ، او محتاج خو رب نشی جوړیدلې ، نو اې فرعونه ته یا ستاسو مشران به څرنګه رب العلمین شی چه ته په خپل وجود کښې محتاجه ئې بل چاته او مشران دې فناء شویدی نو

معلومه شوه چه ﴿رَبُّ الْعٰلَمِينَ﴾ داسې ذات دې چه هغه په خپل ذات کښې قديم او واجب دې او هغه صرف د الله ﷻ ذات دې ، چه هغه ستاسو هم رب دې او ستاسو د مشرانو هم رب دې.

﴿قَالَ إِنَّ رَسُولَكُمُ الَّذِي﴾ فرعون د موسىٰ ؑ پدې واضحه دليل باندې نور زيات په غصه شو او د موسىٰ ؑ خبرې بې اثره کولو دپاره ئې د موسىٰ ؑ استخفاف او استهزاء شروع کړه اووئيل ئې چه ستاسو رسول (العياذ بالله) ليونې دې او د دې لعين د طرف نه موسىٰ ؑ ته رسول وئيل استهزاء وو او د ليونتوب نسبت ئې موسىٰ ؑ ته دوه وجو نه کړې وو يو د دې وجې نه چه فرعون خپلو درباريانو ته اووئيل چه مونږ د موسىٰ ؑ نه پوښتنه ماهيت او حقيقت د رب اوکړه او دې جواب د هغه په اوصافو سره راکوى . نو د ده جواب ځما د سوال سره موافق ندې . نو دې ځما په سوال باندې نه پوهيږى او ځان ته رسول وائى . او دويم د دې وجې نه چه فرعون صرف ځان ته (اله) وئيلو د خپل ځان نه علاوه بل چاته ئې (اله) نه وئيلو ، نو موسىٰ ؑ چه کله د الله ﷻ په وجود باندې دلائيل بيان کړو او د اله حقيقى اثبات ئې اوکړو نو فرعون ورته د ليونتوب نسبت اوکړو چه دې ليونې دې چه ځما نه علاوه د بل (اله) قائله دې.

| |
|---|
| قَالَ رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۭ إِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُونَ ﴿۲۸﴾ |
| اووئيل موسىٰ (رب هغه دې) چه رب د مشرق او مغرب دې او د هغه څه چه په مينځ د دې دواړو کښې دى، که تاسو پوهيږئ. |
| قَالَ لَئِنِ اتَّخَذْتَ إِلٰهًا غَيْرِيْ لَأَجْعَلَنَّكَ مِنَ الْمَسْجُوْنِيْنَ ﴿۲۹﴾ قَالَ |
| اووئيل فرعون قسم دې که چرته اونيولو تا خدائ بل ځما نه نو خامخا اوبه ګرځوم تا د قيديانو نه .اووئيل موسىٰ ته به ما قيد کوې |
| أَوَلَوْ جِئْتُكَ بِشَيْءٍ مُّبِيْنٍ ﴿۳۰﴾ قَالَ فَأْتِ بِهٖٓ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۳۱﴾ فَأَلْقٰى |
| اګرکه څه راوړم تاته دليل ښکاره.فرعون اووئيل نو پيش کړه هغه که ئې ته د رښتنونه.نو وغورځوله موسى |

عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِينٌ ﴿٣٢﴾ وَنَزَعَ يَدَهُ فَإِذَا هِيَ بَيْضَاءُ لِلنَّظِرِينَ ﴿٣٣﴾

همـاخپله نوناګهانه هغه ښامارووښکاره، اوراوي ويستلولاس خپل دَترخ نه نوناګهانه هغه لاس تک سپين وؤلپاره دکتونکو

﴿قَالَ رَبُّ ٱلْمَشْرِقِ﴾موسیٰ ﷺ اول عام دليل بيان کړو چه د ټول کائنات رب الله ﷻ دې بيا ئې په هغې عام کښې تخصيص اوکړو دپاره د کمال وضاحت او دپاره د تنبيه ورکولو په بې عقلئ د فرعون باندې. خلاصه ئې دا ده چه د مصر نه بهر نوره دنيا هم شته چه اطراف د دې دنيا مشرق او مغرب دی. مشرق هغه دې چه طلوع دشمس ورنه کيږی (نمر د هغې طرف نه راخيږی) او مغرب هغه دې چه غروب يعنی نمر پکښې دوبيږی نو موسی ﷺ ده ته اوفرمائيلو چه الله ﷻ رب د مشرق او د مغرب دې. الله ﷻ د ورځې ته طلوع دپاره مشرق پيدا کړيدې او د غروب دپاره ئې مغرب پيدا کړيدې روزانه بلاناغه په خپل وخت باندې غروب اوشی او شپه شروع شی. نو د طلوع او د غروب دا عجيب نظام په خپل مقرره اوقاتو باندې جاری دې، نو کچرې ته رب ئې نو ته پکښې تبديلی راوله، مشرق په مغرب او مغرب په مشرق باندې بدل کړه، او دا هم هغه شان معارضه ده چه ابراهيم ﷺ د نمرود سره کړې وه (فان کان هذالذی يزعم انه ربکم والهکم صادقاً فليعکس الامر وليجعل المشرق مغرباً والمغرب مشرقا) (ابن کثير).

﴿قَالَ لَئِنِ ٱتَّخَذْتَ إِلَـٰهًا﴾فرعون د موسیٰ ﷺ د دې واضح دليل باندې نور زيات په غصه شو او موسیٰ ﷺ ته ئې د قيد کولو دهمکی ورکړه چه کچرې،دَ دې خپلې خبرې نه منع نه شوې نو څه به تا جيل ته اوغورځوم﴿لَأَجْعَلَنَّكَ مِنَ ٱلْمَسْجُونِينَ﴾ صاحب د کشاف فرمائی چه فرعون مختصر عبارت او نه وئيلو چه (لَاَسجننک) دې، بلکه اوګد عبارت ئې اوئيلو ځکه چه پدې سره اشاره مقصود ده سختئ د هغې جيل ته. او دا مقصود پدې اوګد عبارت سره حاصليدلو او په مختصر عبارت سره نه حاصليدلو. ځکه چه﴿ٱلْمَسْجُونِينَ﴾کښی الف لام د عهد دپاره دې. نو مقصد ئې دا دې چه تا به څه د هغه قيديانو نه، اوګرځوم چه د هغوئی حالت څما په قيد کښی تاته معلوم دې،او په تاريخی رواياتو کښی دی چه فرعون پنځه سوه ګزه کنده کنستې وه په هغې کښی ئې لړمان او ماران پريخی وو،نو چه څوک به دده سخت مجرم وو نو هغه به ئې دغې جيل ته

اوغورځولو، نو هغه به نه څه کتلو او نه به ئي اوريدلو او دغه لړمان او ماران به پرې شروع وو چه پدغې حالت کښې به مړ شو﴿قَالَ أَوَلَوْ جِئْتُكَ بِشَيْءٍ ﴾موسی ﷺ د فرعون د دهمکی هيڅ پروا اونکړه او ډير په جرأت سره ئي فرعون په مخامخ د معجزاتو ښکاره کولو اظهار اوکړو. د دې دپاره چه شايد دا لعين معجزات اوګوري او زړه ئې نرم شی، ايمان راوړی نو په﴿أَوَلَوْ جِئْتُكَ ﴾کښې همزه استفهاميه ده جمله استفهاميه مقدره ده .او (واو) حاليه دې. نو تقدير د عبارت داسې دې. (اتفعل ذلک ولوجئتک بشيء مبين ) يعنی آيا ته به بيا هم دا کار کوې يعنی ما به جيل ته اچوې اګر چه څه تاته په خپل نبوت باندې واضح دليل او حجت پيش کړم﴿قَالَ فَأْتِ بِهِۦٓ ﴾فرعون موسی ﷺ نه معجزه طلب کړه او د فرعون معجزه طلب کول دپاره د طلب د حق نوو ،بلکه د هغه خيال داوو چه شايد پدې معجزاتو کښې به څه څه نکته دا اعتراض اووينم،نو ځکه ئي موسی ﷺ ته اووئيلو چه ته په خپل نبوت باندې څه دليل او معجزه پيش کړه کچرې ته رښتونې ئې﴿فَأَلْقَىٰ عَصَاهُ ﴾نو موسی ﷺ فرعون ته دوه معزات ظاهر کړل يوه معجزه د عصا والا چه اوغورځوله ئې نو اژدها به ورنه جوړ شوه .او بله معجزه د يد بيضآء والا چه لاس به ئې د ترخ نه رابهر کړو نو پړق به ئي کولو.

| |
|---|
| قَالَ لِلْمَلَاِ حَوْلَهٗٓ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ ﴿۳۴﴾ يُّرِيْدُ اَنْ يُّخْرِجَكُمْ |
| اووئيل فرعون غټانوته چه چاپيره ناست وؤ دده نه چه بی شکه دې خوخامخاساحردې ډيرپوهه.غواړی چه اوباسی تاسو |
| مِّنْ اَرْضِكُمْ بِسِحْرِهٖ ۖ فَمَاذَا تَاْمُرُوْنَ ﴿۳۵﴾ قَالُوْٓا اَرْجِهْ وَاَخَاهُ |
| دملک ستانه په سحرخپل سره،نوڅه حکم(مشوره)کوئ تاسو ،هغوئ ورته اووئيل مهلت ورکړه ده لره او وروردده لره |
| وَابْعَثْ فِي الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ ﴿۳۶﴾ يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ عَلِيْمٍ ﴿۳۷﴾ فَجُمِعَ السَّحَرَةُ لِمِيْقَاتِ |
| اوليږه په ښارونوکښې راجمع کونکی چه راولی تاته هرماهرساحرښه پوهه،پس جمع کړې شول ساحران ځائې دوعدی |

| |
|---|
| يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿٣٨﴾ وَقِيلَ لِلنَّاسِ هَلْ أَنتُم مُّجْتَمِعُونَ ﴿٣٩﴾ لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ |
| دورځې معلومې ته‌اوويلې شوخلقوته آيايئ تاسوجمع کيدونکي‌دغه ورځې ته‌کيديشي مونږاتباع اوکړو |
| السَّحَرَةَ إِن كَانُوا هُمُ الْغَالِبِينَ ﴿٤٠﴾ فَلَمَّا جَاءَ السَّحَرَةُ قَالُوا لِفِرْعَوْنَ أَئِنَّ لَنَا لَأَجْرًا |
| دساحرانوکه شي هم دوئ غالب‌نوچه کله راغلل ساحران نووئ وئيل فرعون ته آياوی به مونږلره څه انعام |
| إِن كُنَّا نَحْنُ الْغَالِبِينَ ﴿٤١﴾ قَالَ نَعَمْ وَإِنَّكُمْ إِذًا لَّمِنَ الْمُقَرَّبِينَ ﴿٤٢﴾ |
| کچرته شومونږغالب،اووئيل فرعون،آو،اوبيشکه تاسوبه بيا‌څمادمقربينو،«خواصونه» يئ. |

﴿قَالَ لِلْمَلَإِ حَوْلَهُۥٓ إِنَّ هَٰذَا﴾ دې آيت نه تر آيت نمبر (۵۱) پورې دريم مقام د واقعې ذکر کيږي، پديکښې د ساحرانو مقابله د موسی ﷺ سره ، د هغوئی مغلوبيت او بيا د هغوئی ايمان راوړل او په خپل ايمان باندې ثابت قدم پاتې کيدلو ذکر کيږي،نو هر کله چه فرعون د موسی ﷺ د واضحو دلائلو او د معجزاتو په مقابله کښې بې بسه او ناکامه شو. نو د موسی ﷺ بد نام کولو کوشش ئې شروع کړو ، او د هغه د بد نام کولو دپاره ئې دوه تهمتونه اولګولو،يو تهمت ئې دا اولګولو چه ( العياذ بالله ) موسی ﷺ ډير لوئی او پوهه ساحر دې،دا امور يعنی يد بيضآء او عصا د ده د نبوت دليل ندې بلکه دده سحر دې. او چونکه په هغې دور کښې سحر ډير په عروج باندې وو نو څکه فرعون د موسی ﷺ بدنام کولو دپاره تهمت د سحر اولګولو ، او دا خبره او تهمت د ټولو نه اول فرعون په موسی ﷺ باندې د خپلا کابينې او د شورى اراکينو په مخامخ اولګولو لکه چه پدې سورت کښې دی . او بيا د هغې نه ورستو دغه مشرانو نورو خلکو ته اوئيلو او دا پروپيګنډه ئې عامه کړه لکه په سورة الاعراف آيت نمبر (۱۰۹) کښې دی.

﴿يُرِيدُ أَن يُخْرِجَكُم﴾ دا دويم تهمت دې چه فرعون د خپل قوم په زړونو کښې د موسی ﷺ خلاف نفرت پيدا کولو دپاره او د هغه خبرو بې اثره کولو دپاره او قوم د هغه خلاف متحد کولو دپاره ئې اوئيل چه د موسی ﷺ پروګرام دا دې چه د خپل جادو په زور سره ستاسو په حکومت

باندي قبضه اوكړي او تاسو د خپل وطن نه بهر كړي ﴿فَمَاذَا تَأْمُرُونَ﴾ دا يا د «مؤامرة» نه دې په معنى د مشورې وركولو سره. يعني تاسو ماته مشوره راكړئ چه څه څه اوكړم. او يا د امر نه دې چه ضد د نهى دې، يعني تاسو ماته امر اوكړئ چه څه څه اوكړم. علامه زمخشرى فرمائى چه فرعون د موسى عليه السلام د دلائلو او د معجزاتو په اظهار سره دومره سخت حواس باخته شوې وو چه دده نه دا هم هير شوى وو. چه ما خو د رب دعوى كړيده او اهل مصر مې خپل بندګان جوړ كړيدى نو بندګان به څرنګه رب ته امر اوكړى او يا به مشوره وركړى

﴿قَالُوٓاْ أَرۡجِهۡ﴾ شورىٰ اراكينو فرعون ته مشوره وركړه چه د موسى عليه السلام او هارون عليه السلام په باره كښې هر قسم فيصله فى الحال مؤخره كړه او دوئ ته مهلت وركړه ﴿وَٱبۡعَثۡ فِي ٱلۡمَدَآئِنِ﴾ يعنى د خپل سلطنت شهرونو ته كار ندې اوليږه چه ساحران راجمع كړى چه هغوئ د موسى عليه السلام سره په سحر كښې مقابله اوكړى ﴿يَأۡتُوكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ﴾ «كل» دپاره د استغراق حقيقى دې او ﴿سَحَّارٍ﴾ او ﴿عَلِيمٍ﴾ دواړه د مبالغې صيغې دى. نو مقصد ئې دا دې چه ټول ساحران دې راجمع كړى خو عام ساحران نه بلكه هغه كسان دې راجمع كړى چه په فن د سحر كښى فائق او ښه پوهه وى. او په هغه دور كښى د سحر دومره زياته چرچه وه چه په شهر كښى به د سحر زده كړې دپاره سكولونه اوكالجونه وغيره جوړ كړې شوى وو. ﴿فَجُمِعَ ٱلسَّحَرَةُ لِمِيقَٰتِ﴾ نو د مقابلې تيارې شروع كړې شوه. د هغې دپاره ځائې او وخت مقرر كړې شو. نو د «ميقات» نه مراد وخت د چاشت دې او ﴿يَوۡمٍ مَّعۡلُومٍ﴾ نه مراد د هغوئ د مذهبى تهوار والا ورځ ده چه په سورة طه كښى ورنه تعبير په «يوم الزينة» سره شويدې ﴿وَقِيلَ لِلنَّاسِ هَلۡ أَنتُم﴾ استفهام دپاره امر ترغيبى دې. او مقصود پدې قسم امرسره استعجال دى. لكه يو سړې خپل غلام ته اوائى چه «هل انت منطلق» نو مقصود ئې دا وى چه تيزى اوكړه او په صيغې د مجهول يعنى «قيل» سره تعبير د وجې د تعدد د قائلينونه، دې. نو د آيت مقصد دا دې چه ګير چاپيره اعلانات اوكړې شو او خلكو ته ترغيب وركړې شو چه تاسو مقرره وخت او مقرره ځاې ته خامخا ځان را اورسوئ. ﴿لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ ٱلسَّحَرَةَ﴾ ساحرانو نه مراد د

فرعون راجمع کړی ساحران دی . او د هغوئ د اتباع نه مراد په خپل دین باندې قائم پاتې کېدل دی او د دوئ دا یقین وو چه دا ساحران به غالب کېږی او ځکه ئې داسې اوئیلو چه﴿ نَتَّبِعُ ٱلسَّحَرَةَ ﴾چه مونږ د ساحرانو اتباع اوکړو او په خپل دین باندې قائم پاتې شو . او داسې ئې او نه وئیلو چه مونږ به د حق اتباع اوکړو ، او ترجی په اعتبار د دوئ د اعتقادی غلبې سره ده چه هغه متقضی د اتباع دپاره ده ، او کلام په صورت د شرط کښې ذکر کول دپاره د مزید اهتمام دې ،چه خلک ډېر به اهتمام سره مقابلې ته حاضر شی نو د آیت مقصد دا دې چه دا مقابله به ډېره اهمه وی ځکه چه ساحران به خامخا غالب کېږی نو مونږ به په اطمینان سره په خپل دین باندې قائم پاتې شو .

﴿ فَلَمَّا جَآءَ ٱلسَّحَرَةُ ﴾ ساحران د مقابلې دپاره فرعون دربار ته را اورسیدلو او دا رارسیدلو سره ئې د اجرت او د انعام مطالبه اوکړه . چه مونږ ته به څه اجر او انعام میلاؤ شی کچرې مونږ په مقابله کښې غالب شو . اوداد باطل پرستو خلکو شعار دې چه په خپل هر عمل کښې دنیوی فائده ګوری دینی او اخروی فائده د هغوئ پیش نظر نه وی کچرې په یو کار کښې د دنیا فائده ئې وه نو هغه کار کوی کنې نه ئې کوی ،او د انبیاء کرامو او د مخلص مؤمنانو په هر عمل کښې دینی او اخروی فائده پیش نظر وی په خپل عمل سره ئې د الله ﷻ رضا حاصلول مقصود وی . او د دې وجې نه د هر نبی اعلان به دا وو .چه ما اسئلکم علیه من اجر اودې وجې نه علماء فرمائی چه د کوم کار بنیاد چه صرف دنیوی منفعت اوګرځی او د الله ﷻ رضا پکښې مقصود اصلی نوی اګر چه په ظاهر کښې ډېر لوئ دینی کار وی خو هغې ته دیندار نه وئیلې کېږی او نه د الله ﷻ د طرف نه په هغې باندې څه اجر او بدله میلاؤیږی ،لکه حدیث د انما الاعمال بالنیات پدې باندې واضح دلیل دې﴿ قَالَ نَعَمْ ﴾ فرعون دوئ ته دوه قسمه لالچ ورکړو ،یو د مال او بل د عهدې لالچ ،یعنی مال به هم درکړم او عهده به هم درکړم، او پدې دوه څیزونو باندې حرص ساتل د انسان د ایمان دپاره ډېر خطرناک دی، او په هر دور کښې باطل پرستو حکمرانانو پدې دوه قسمه څیزونو سره د قوم مشران او خواهش پرست ملایان د ځان سره ملګری کړی دی.

قَالَ لَهُمْ مُّوسَىٰٓ أَلْقُوا۟ مَآ أَنتُم مُّلْقُونَ ﴿٤٣﴾ فَأَلْقَوْا۟ حِبَالَهُمْ وَعِصِيَّهُمْ

وئیل ساحرانوته موسی،اوغورځوئ هغه چه تاسوغورځونکی یئ،نواوغورځولوهغوئ رسئ خپلی اوهمساګانی خپلی

وَقَالُوْا بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ اِنَّا لَنَحْنُ الْغٰلِبُوْنَ ﴿۴۴﴾ فَاَلْقٰى مُوْسٰى عَصَاهُ فَاِذَا هِيَ تَلْقَفُ

اواوئ وئیل چه قسم دي په لويئ دفرعون چه مونږبه غالب يو .بيااوغورځوله موسى خپله همسانونا گهانه ئی تيرکړل

مَا يَاْفِكُوْنَ ﴿۴۵﴾ فَاُلْقِيَ السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ ﴿۴۶﴾ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۷﴾

هغه چه دوئ جوړول نواوغورځولي شوساحران سجده كونكى اوئى وئيل مونږايمان راوړيدي په رب العالمين.

رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿۴۸﴾ قَالَ اٰمَنْتُمْ لَهٗ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۚ اِنَّهٗ

چه رب دي دموسى اوهارون.فرعون اووئيل آياتاسوايمان راوړپده باندې مخكښ داجازت ځمانه.بى شكه دي

لَكَبِيْرُكُمُ الَّذِيْ عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ ۚ فَلَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۬ لَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ

غټاستاذدې ستاسوهغه چه تاسوته ئى ښودلې ئى دې سحر،بس زربه تاسوپوهه شئ، خامخاخه به پريکړم لاسونه ستاسو

وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ وَّلَاُوصَلِّبَنَّكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۴۹﴾ قَالُوْا لَا ضَيْرَ ۫ اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا

اوخپې ستاسوادل بدل اوخامخابه پانسى كرم تاسوټول،دوئ ورته اووئيل نشته هيڅ نقصان مونږته بى شكه مونږخپل رب ته

مُنْقَلِبُوْنَ ﴿۵۰﴾ اِنَّا نَطْمَعُ اَنْ يَّغْفِرَ لَنَا رَبُّنَا خَطٰيٰنَآ اَنْ كُنَّآ اَوَّلَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۵۱﴾

تلونكى يو.بى شكه مونږاميدلرودى چه اوبه بخى مونږته رب ځمونږ گناهونه زمونږ،ځكه چه يومونږاول ايمان راوړونكى.

﴿ قَالَ لَهُمْ مُوْسٰٓى ﴾دا تفصيل د مقابلې دې چه كله فرعون هم مطمئن شو چه دير لوئ لوئ ساحران راجمع شو او ساحران هم مطمئن شو چه مونږته به مال او عهدې ميلاوې شى نو مقابلې ته را اوتلو ، او په سورة اعراف او طه كښى تفصيل تير شويدې چه ساحرانو په خپل منځ كښى د مشورې نه ورستو موسى ﷺ ته اختيار وركړو چه يا خو اول ته د خپلې معجزې اظهار اوكړه او يا به مونږ خپل سحر ظاهر كړو نو موسى ﷺ دوئ ته اوئيلو چه تاسو اول د خپل سحر اظهار اوكړئ او سورة اعراف او طه كښى تفصيل تير شويدې چه دا د موسى ﷺ د طرف نه حكم په اظهار د

سحر باندې نوو ځکه چه سحر معصیت دې او بیا خاص طور باندې پیغمبرپه مقابلی کښې وی نوبیاخوډیرلوئی معصیت دې، اوپیغمبر حکم دَ معصیت نه کوی. نو د دې وجې نه دا حکم په اظهار د سحر باندې ندې بلکه اختیار د یو شق د مقابلې دې . چه ساحرانو موسی ﷺ ته په دوه شقونو کښې د یو شق غوره کولو اختیار ورکړو چه یا ته خپله عصا اوغورځوه او یا مونږ خپلې عصاګانې او رسیانې غورځوو،نو موسی ﷺ دا شق اختیار کړو چه اول تاسو خپل سحر ظاهر کړئ، بیا به څه خپله معجزه ظاهره کړم، او که څوک اشکال اوکړی چه اختیار د یو شق دا هم رضا علی المعصیت ده او رضا علی المعصیت ، معصیت وی . نو موسی ﷺ ته نسبت د معصیت راغې ؟ نو جواب ورنه دا دې چه رضا په معصیت باندې هغه وخت کښې معصیت دې چه کله معصیت متحسن اوګنړلې شی.او که رضا په معصیت وسیله او ذریعه اوګرځولې شی دپاره د ابطال د دغې معصیت نو دا بیا معصیت ندې،نو موسی ﷺ د دوئ د سحر ابطال او اظهار د حق دپاره دوئ ته ئې اوئیلو چه تاسو خپل سحر اوغورځوئ﴿ فَأَلْقَوْا حِبَالَهُمْ ﴾ساحرانو د ځان سره عصاګانې او رسیانې راوړې وې .اودې ساحرانو په تعداد کښې تاریخی روایات مختلف دی. دولس زره ، اتلس زره ، دیرش زره او اتیا زره پورې اقوال راغلیدی . بهر حال دوئ چه کله خپلې عصاګانې او رسیانې میدان ته اوغورځولې نو کتوونکو ته ټوله کښې علاقه ماران ،ماران ښکاریدلو﴿ وَقَالُوا بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ ﴾ ( باء ) یا د تبرک او توسل دپاره ده چه دوئ اوئیلو چه د فرعون د عزت په برکت او وسیلې سره یقیناً مونږ غالب یو. او یا ( باء ) قسمیه ده چه دوئ د فرعون په عزت باندې قسم اوخوړلو ،چه دا د هغې دور جاهلیت لوئی قسم وو . او شریعت کښې قسم صرف د الله ﷻ په ذات او صفاتو باندې کولې کیږی . د دینه علاوه په بل څیز باندې قسم قسم شرعی ندې،او بیا په قسم کښې قانون دا دې چه غیر الله باندی قسم کله کله محض د کلام د تاکید دپاره دی. او کله کله دپاره د تعظیم د مستحلف علیه وی نو قسم اول شائع او کثیر دې ګناه ئې نیشته،او واردې په احادیثو او اثارو کښې. او قسم ثانی ګناه بلکه شرک دې. نو په حدیث د ترمذی کښې چه دی ( من حلف بغير الله فقد اشرک ) نو د هغې نه مراد قسم ثانی د قسم دې ﴿ فَأَلْقَىٰ مُوسَىٰ عَصَاهُ ﴾ ساحرانو د طرف نه دومره سخت سحر پیش کړې شو چه ابتداءً موسی ﷺ ته هم خوف لاحق شو لکه چه په سورة الاعراف او طه کښې دی . بیا روته د الله ﷻ د طرف نه حکم اوشو چه ته مطمئن اوسیږه . کامیابی

به ستا وی او خپله عصا اوغورځوه نو موسی ﷺ چه خپله عصا اوغورځوله نو لویه اژدها ورنه جوړه شوه او په میدان کښې چه څه ووهغه ټول ئې یوه نوړئ کړلو او اونې خوړلو ﴿ فَأُلْقِيَ ٱلسَّحَرَةُ ﴾ دا ساحران په فن د سحر کښې انتهاء ته رسیدلی وو د دوئ مقابله یو ساحر نشوه کولې او دوئ یقین وو چه په دوئ باندې غلبه موندونکې کس ساحر نشی کیدلې. نو هر کله چه موسی ﷺ په دوئ باندې غالب شو نو دوئ پوهه شو چه دې ساحر ندې او نه دا سحر وو بلکه دې پیغمبر دې او د اعصا نه مار جوړیدل دا دَه معجزه ده نو دوئ فوراً سجدې کښې اوغورځیدلو او د دوئ سجدې ته تلل ،بلا تامل، بلاتوقف او دومره په جلتئ سره وو چه ګویا چه بل څوک ئې اوغورځوی نو ګویا چه د دې معجزې ظاهریدلو په وخت کښې دوئ د خپلو نفسونو مالکان او اختیار مند نه وو ﴿ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ دا بدل اشتمال دې د ما قبل نه او په ماقبل آیت کښې عملی طور د فرعون بغاوت او د الله ﷻ د توحید اقرار وو او پدې آیت کښ د هغوئ لسانی اقرار ذکر دې چه په ژبه باندې ئې هم د فرعون نه بغاوت او د الله ﷻ د توحید او ربوبیت اقرار اوکړو. چه مونږ په رب العلمین باندې ایمان راوړې دې ﴿ رَبِّ مُوسَىٰ وَهَٰرُونَ ﴾ دا عطف بیان دې دپاره د دفعې د تو هم څکه چه فرعون به هم ځان ته رب العلمین وئیلو نو دوئ وضاحت اوکړو چه کوم ذات د موسی ﷺ او هارون ﷺ رب دې مونږ په هغه باندې ایمان دې ﴿ قَالَ ءَامَنتُمْ لَهُۥ ﴾ فرعون چه کله خپله ناکامی اوکتله نو ډیر سخت شرمنده او بې عزته شو نو د خلکو دهوکه کولو او دموسی ﷺ اثر زائله کولو د پاره ئې د خلکو په مخامخ ساحرانو ته اوئیلو چه تاسو ځما د اجازت نه بغیر په ده باندې ایمان راوړو. ځما نه مو اجازت ندې اغستې. نه مو ځما سره څه مشوره اوکړه حالانکه راوستلی هم ما وئ نو د ې مقصد دا دې چه موسی ﷺ ستاسو مشر ساحر او استاذ دې، او تاسو ټولو ځما په سلطنت باندې د قبضه کولو دپاره منصوبه جوړه کړې ده او فرعون دا خبره خلکو ته اوروله او په هغوئ باندې تلبیس مقصد وو،چه قوم دا خیال اونکړی چه د ساحرانو ایمان علی وجه البصیرة وو، او د ظهور د معجزې و دجې نه وو، بلکه ده قوم ته دا سوچ ورکړو چه دا د دوئ یو مشترکه سازش او منصوبه وه. نو تاسو د خپل کم عقلئ په بنیاد دا اونوایئ چه د موسی ﷺ غالب کیدل د معجزې د وجې نه دی ﴿ فَلَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾ فرعون دوئ ته د خلکو په مخامخ سخته دهمکی ورکړه دپاره د دې چه نور خلک مسلمانان نشی او دا ساحران د خپل ایمان نه واپس شی.

﴿ لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ﴾فرعون لعین دوئ ته د سزا تفصیل واورولو چه څه به درنه خپې. لاسونه ادل بدل کټ کرم او بیا به مو پهانسی کرم﴿ قَالُواْ لَا ضَيْرَ ﴾هر کله چه فرعون دوئ ته په سخته لهجه اوپه سختو الفاظو سره دهمکی ورکړه چه﴿ فَلَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾نو دوئ هم ورته په ډیر تاکید سره جواب ورکړو چه ﴿ لَا ضَيْرَ ﴾یعنی مونږ ستا د دې دهمکینی او د سزا هیڅ پرواه نه کوو .﴿ إِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا مُنقَلِبُونَ ﴾دا تعلیل د نفی د ( ضیر ) دې یعنی ستا د دې سزاګانو سره چه پدې سره جسمانی تکلیف میلاویږی څه پرواه ځکه نیشته چه پدې سره به مونږ ته د شهادت لویه مرتبه ، اجر عظیم او دیدار الهی حاصلیږی ،نو د مرګ نه خو خلاصې نیشته دې نو داسې عظیم مرګ خو اصل مقصود او مطلوب د مؤمن وی﴿ إِنَّا نَطْمَعُ أَن يَغْفِرَ لَنَا ﴾یعنی مونږ امید ساتو چه الله ﷻ به زمونږ ګناهونه معاف کړی ځکه چه مونږ اول ایمان راوړونکی یو او﴿ أَوَّلَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ یا دوئ د خپل قوم قبطیانو په اعتبار سره وو، چه قبطیانو کښی اجتماعی طور باندې د تولو نه اول ساحرانو ایمان راوړې وو. او یا اولیت په اعتبار د هغې موجود کافرانو سره وو چه هلته د مقابلې په میدان کښی موجود وو او یا ( اولیت ) پس د اظهار د معجزی نه ، دې یعنی د معجزې ظاهریدلو نه پس متصل او د ټولو نه اول ایمان مونږ راوړو، لیکن زیات غوره توجیه دا ده چه ( اولیت ) په اعتبار د مرتبې سره مراد شی ځکه چه دوئ متبوعین وو . او نور خلک د دوئ تابع او مقلدین وو . نو متبوع ته ( اول )په اعتبار د مرتبی سره ونیلې کیږی. او یا ( اول ) په معنی د ( اشد ) او ( اتقن ) سره دې ، یعنی مونږ په ټولو کښی مضبوط درجې والا مؤمنان یو .

| |
|---|
| وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِيٓ إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ ﴿٥٢﴾ فَأَرْسَلَ فِرْعَوْنُ |
| اووحی اوکړه مونږموسی ته چه د شپې روان کړه بندګان ځما،بیشکه تاسوپسی به درشی(فرعونیان)نواولیږل فرعون |
| فِي ٱلْمَدَآئِنِ حَٰشِرِينَ ﴿٥٣﴾ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِيلُونَ ﴿٥٤﴾ وَإِنَّهُمْ لَنَا لَغَآئِظُونَ ﴿٥٥﴾ |
| په ښارونوکښ راجمع کونکی دلښکر،بی شکه چه دابنی اسرائیل یوه ډله ده لږه،اوبیشکه دوئ مونږته غصه راوستونکی دی، |

| |
|---|
| وَاِنَّا لَجَمِيْعٌ حٰذِرُوْنَ ﴿۵۶﴾ فَاَخْرَجْنٰهُمْ مِّنْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿۵۷﴾ وَّ كُنُوْزٍ وَّمَقَامٍ كَرِيْمٍ ﴿۵۸﴾ |
| او بیشکه مونږه یوه ډله اسلحه لرونکی یو، پس اوباسل مونږ دوئ د باغونو نه او د چینو نه. او د خزانو نه او د ځایونو ښائسته عمده ؤنه. |
| كَذٰلِكَ ؕ وَاَوْرَثْنٰهَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۵۹﴾ فَاَتْبَعُوْهُمْ |
| همداسی مواوکړل. او په میراث موورکړل دغه ځایونه بنی اسرائیلوته. پس روان شول دوئ بنی اسرائیلوپسی |
| مُّشْرِقِيْنَ ﴿۶۰﴾ فَلَمَّا تَرَآءَ الْجَمْعٰنِ قَالَ اَصْحٰبُ مُوْسٰٓى اِنَّا لَمُدْرَكُوْنَ ﴿۶۱﴾ |
| د نور ښاته په وخت کښ. کله چه یوبل اولیدل دواړو ډلونو اوئیل ملګرو د موسی چه بیشکه مونږ او نیولې شو. |
| قَالَ كَلَّا ۚ اِنَّ مَعِيَ رَبِّيْ سَيَهْدِيْنِ ﴿۶۲﴾ |
| اووئیل موسی هرګز مونږ نشی نیولې. بیشکه ماسره رب دې ضما خامخا به ماته لاره ښائی. |

﴿ وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ ﴾ دې ځاې نه د واقعې ځلورم مقام شروع کیږی په دیکښ د بنی اسرائیلو د نجات او د فرعون غرق کیدلو ذکر دې، نو چه کله فرعون په مقابله کښی مغلوب شو، تر دوه یا درې کالونو پورې موسی ﷺ دوئ ته دعوت ورکولو او مختلف نشانیانې ورته د نبوت والا ظاهرې کړې، چه تفصیل ئې په سورة اعراف آیت نمبر (۱۳۰) نه تر (۱۳۵) پورې ذکر دې د فرعون سر کشی نوره هم زیاته شوه نو الله ﷻ اراده اوکړه چه فرعون غرق کړی او بنی اسرائیلو ته نجات ورکړی. نو موسی ﷺ ته ئې حکم اوکړو چه د شپې شپې بنی اسرائیل د مصر نه شام ته روان کړه ﴿ إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ ﴾ یعنی د فرعون لښکر به ستاسو نیولو دپاره په تاسو پسې را اوځي نو لهذا تاسو په تللو کښی سستی مه کوئ ﴿ فَأَرْسَلَ فِرْعَوْنُ ﴾ (فاء) فصیحیه ده یعنی بنی اسرائیلو د قبطانو نه ، په عاریت باندې کالی راواغستلو. او موسی ﷺ دوئ د شپې ، شپې روان کړل نو فرعون ته د سحر په وخت کښی اطلاع اوشوه نو هغه خپلې کار ندې شهرونو ته اولیږلې، او د بنی اسرائیلو د ګرفتار کولو دپاره ئې لښکر راجمع کړو ﴿ فِى ٱلْمَدَآئِنِ حَـٰشِرِينَ ﴾ په دیکښ اشاره ده چه

مصر په دغه وخت کښې لوئ مملکت وو او په ډيرو ښارونو باندې مشتمل وو ،څومره شهرونه وو ؟ نو ددې په تعين باندې څه قطعی او يقينی روايت ندې موجود البته ځينی تاريخی رواياتونو کښې دی چه په دغه وخت کښې مصر کښې زر (۱۰۰۰) شهرونه ، او لس زره (۱۰۰۰۰) قريې وې (خازن) ﴿ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ لَشِرۡذِمَةٌ ﴾ (شرذمه) په اصل کښې حقير او سپکې ټکړې ته وئيلې کيږی . نو هرکله چه د قبطيانو لښکر راجمع شو نو فرعون به ډير تکبر سره د هغوئ حوصلې زياتولو او هغوئ د بنی اسرائيلو خلاف راپاره ولو او د بنی اسرائيلو خلاف د هغوئ د غصې زياتولو دپاره ئې يو څو خبرې اوکړې،اول ئې دا اوئيلو چه دا بنی اسرائيل حقير او سپک جماعت دې دويم دا چه﴿ قَلِيلُونَ ﴾ چه زمونږ په مقابله کښې د دوئ تعداد کم دې،د بنی اسرائيلو تعداد پدې وخت کښې څومره وو ؟ نو پدې باندې هم څه قطعی او يقينی روايت نيشته دې روايات پکښې متعدد دی . زيات تاريخی روايات د شپږلاکه راغليدی ، ليکن صحيح قول دا دې چه قرآن او احاديث د دينه ساکت دی صرف دومره ده چه د فرعون د لښکر په مقابله کښې د دوئ تعداد ډير کم وو او کمزوری وو﴿ وَإِنَّهُمۡ لَنَا لَغَآئِظُونَ ﴾ دريمه خبره دا اوکړه چه باوجود ددې چه دوئ په تعداد کښې هم کم دی او کمزوری هم دی بيا ئې هم داسې کارونه اوکړل چه مونږ ته ئې غصه راويستله، چه زمونږ د دين مخالفت کوی . د سلطنت بغاوت ئې اوکړو ، زمونږ مالونه ئې په دهوکې سره واغستلو او زمونږ د اجازت نه بغير اووتلو﴿ وَإِنَّا لَجَمِيعٌ حَٰذِرُونَ ﴾ (جميع) په معنی د جماعت سره دې، او (حاذر) هغه چاته وئيلې کيږی چه د اسلحې نه ليس (ډک) وی او بيدار وی. او په بعضې قراتو کښې﴿ حَذِرُونَ ﴾ دی نو بعضې اهل لغت فرمائی چه (حاذر) او (حذر) کښې فرق نشته دې ، ليکن فراء وغيره فرمائی چه (حاذر) تجدد او حدوث دپاره دې او (حذر) د ثبوت دپاره دې . نو (حاذر) هغه چاته وئيلې کيږی چه فی الحال يره ول کوی .او (حذر) هغه څوک دې چه عادت ئې يره ول وی . نو فرعون د خپل قوم حوصلې مزيد زياتولو دپاره اوئيل چه مونږ خو يو باقاعده منظم مسلح فوج يو . نو دوئ بيا هم زمونږ خلاف جرأت اوکړو .او دا عادت د دې زمانې د فراعنو (امريکه ، برطانيه او د هغوئ د اتحاديانو) هم دې .

﴿ فَأَخْرَجْنَٰهُم مِّن جَنَّٰتٍ ﴾ فاء فصيحيه ده يعنى د فرعون لښكر ټول جمع شو او د بنى اسرائيلو د گرفتارئ دپاره متفق شو نو مونږ د دوئ په زړونو کښې دباغاتو او د چشمو ـ د خزانو او د بنګلونه د وتلو داعيه او شوق پيدا کړو ـ نو د اخراج نسبت الله ﷻ ځان ته کول تخليقاً دى چه الله ﷻ د دوئ به زړونو کښې به بنى اسرائيلو پسې وتلو شوق پيدا کړو ﴿ وَكُنُوزٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴾ بعض مفسرين فرمائى چه د (كنوز) نه مراد اموال باطنيه دى چه يا دوئ دفن کړى وو او يا په زمکه کښې هسې پټى وى ـ او بعض فرمائى چه د (كنوز) نه مراد اموال ظاهريه دى ـ لکه سره زر، سپين زر وغيره شو ليکن زياته غوره خبره دا ده چه د دينه مراد مطلق اموال دى ـ ظاهرى وى او که باطنى وى ـ او د ﴿ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴾ نه مراد خائسته، خائسته بنګلې، دفترونه، د کيناستلو والا ځائ او کرسئ دى چه عام سړې ئې نشى استعمالولې، بادشاه يا وزير او يا يو افسر ئې استعمالوى او په سورة الدخان آيت نمبر (۲۵، ۲۶، ۲۷) کښې هم داسې ذکر دې خو هلته ورسره اضافه د (زروع) يعنى د فصلونو هم ده او پدې آيت کښې اختصار کړې شويدې او د (زروع) ذکر ورسره ندې شوې ـ وجه دا ده چه هلته عذاب د قحط والاذکر دې، يعنى د مکې خلکو باندې الله ﷻ د بنى پاک ﷺ د مخالفت د وجې نه سخت قحط راوستې وو، نو بطور نمونه د فرعون د قوم د عذاب تذکره اوکړې شوه او په هغې کښې د (زروع) ذکر اوشو، چه د هغې اثر په فصلونو باندې ظاهرېږى، او پديکښې اشاره ده چه د فرعون دا لښکر د هرې طبقې خلکو باندې مشتمل وو ـ وزرآء او افسران پکښې هم وو سرمايه دار طبقه پکښې هم ده او جاګيرداره طبقه پکښې هم موجوده ده ﴿ كَذَٰلِكَ وَأَوْرَثْنَٰهَا ﴾ بعضى مفسرين فرمائى چه (کاف) اسمى په معنى د (مثل) سره دې او دا په موضع د نصب کښې صفت دې د مفعول مطلق مقدر دپاره چه (الاخراج) دې چه دا مفعول مطلق د (اخرجنهم) دپاره دې، نو تقدير د عبارت دا رنګې دې اخرجنا هم مثل ذلک الاخراج يعنى مونږ دوئ په دغې طريقې سره اويستلو د خپلو ځايونو نه کومه طريقه چه ذکر شوه، او بعض فرمائى چه دا خبر دې د مبتداء محذوف دپاره، نو اصل عبارت داسې دې (الامر کذلک) يعنى امر او کار همدغه شان اوشو، او حضرت شيخ رحمه الله په نيز کاف دپاره د بيان کمال دې، يعنى داخالص زمونږ قدرت وو چه فرعونيان مو د سلطنت، د بنګلو او د مالونو او د هر څه نه محروم کړل ـ او دا ټول څيزونه مو بنى

اسرائيلو ته ورکړل ا وځني رواياتو کښې دي چه د فرعون د هلاکت نه ورستو بني اسرائيل مصر ته راغلل د هغوئ ټول مالونه ، ئې قبضه کړل هغوئ زمکې ئې پخپل استعمال کښې راويستلې،ځني بني اسرائيل تر څه وخته پورې بيا مصر کښې پاتې شول او ځني شام ته لاړلو ليکن ابن جرير طبري رحمه الله پدې جزم کړې دې چه نبي اسرائيلو ته اګر چه الله تعالى د فرعون او قبطيانو زمکې ، بنګلې ، او مالونه په ملک کښې ورکړل خو دوئ مصر ته رانغللو ،بلکه دوئ د ځان دپاره مسکن شام اوګرځولو "طبري".

﴿ فَأَتْبَعُوهُم مُّشْرِقِينَ ﴾فاء د تفريح دپاره ده نو مقصد دا دې چه مونږ د فرعون او د هغه د قوم په زړه کښې په بني اسرائيلو پسې د وتلو شوق او جذبه پيدا کړه نو دوئ په هغوئ پسې اووتلو او د نمر خاته وخت کښې د فرعون لښکر بني اسرائيلو ته اورسيدلو﴿ فَلَمَّا تَرَٰٓءَا ٱلْجَمْعَانِ ﴾چه کله دواړو لښکرونو يو بل اوکتل نو بني اسرائيل سخت ګهبراؤ شو چه مخې نه دريائې قلزم دې او شاته د فرعون لښکر دې نو موسى عليه السلام ته ئې اوئيلو چه﴿ إِنَّا لَمُدْرَكُونَ ﴾چه مونږ خو راګير شو﴿قَالَ كَلَّآ ۖ إِنَّ مَعِىَ ﴾حضرت موسى عليه السلام په پوره استقامت سره د دوئ خبره رد کړه او ورته ئې اوفرمائيلو چه قبطيان هر ګز تاسو نشي نيولې،ځما د رب امداد او نصرت ما سره دې هغه به د دې سختئ نه د وتلو لاره ماته اوښائي

**فائده** : د سفر هجرت کښې چه کله نبي ﷺ او حضرت ابوبکر رضي الله عنه په غار ثور کښې پټ وو او کفارغارثور ته را اورسيدلو نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه ډير پريشانه شو او عرض ئې اوکړو چه يا رسول الله ! که دوئ خپل قدمونه ته هم اوګوري نو مونږ به اويني، نو نبي کريم ﷺ ورله تسلي ورکړه چه ( ما ظنک باثنين ثالثهما الله ) او بيا ئې ورته اوفرمائيلو چه ( لاتحزن ان الله معنا ) نو نبي کريم ﷺ حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته تسلي ورکولو کښې صيغه د جمع متکلم استعمال کړه او د الله تعالى په معيت او نصرت کښې ئې حضرت ابوبکر رضي الله عنه هم ځان سره شريک کړو ، او موسى عليه السلام خپل قوم ته د تسلي په وخت کښې صيغه د واحد متکلم استعمال کړه چه د الله تعالى معيت او نصرت ځما سره دې ، وجه دا ده چه د حضرت سيدنا ابوبکر رضي الله عنه د الله تعالى په امداد او نصرت باندې کامل او مکمل يقين وو ، خو يو طبعي پريشاني د نبي پاک ﷺ په باره کښې ورته راغله ،او د خپل ځان

فکر ورسره نوو لکه چه پدې دلالت کوی روایت د بخاری او مسلم چه ( اشفق ابوبکر علی رسول الله ﷺ وقال ان تصب اليوم ذهب دين الله ) او بنی اسرائیلو سره د خپل ځان فکر وو . لکه چه په ځنې روایاتو کښې دی چه کله بنی اسرائیلو مخامخ سمندر ته اوکتلو او ورستو نه ئې د فرعون لښکر اوکتلو نو موسی ﷺ ئې ملامت کولو ، او دا ئې ورته اوئیل چه ( امن عدم القبور بمصر اخرجتنا لنموت في البحر اما قلنا لک دعنانخدم المصريين فهو خير من موتنا في البحر ) یعنی ایا زمونږ دپاره د مصر په ښار به کښې د قبرونو ځائې نوو چه تا مونږ د مرګ دپاره سمندر ته را اویستلو . آیا تاته مونږ نه وو وئیلی چه مونږ پریږده مونږ به د مصر د خلکو خدمت کوو ، دا زمونږ دپاره په سمندر کښې د مرګ نه ، ډیر غوره دي.

او دویمه وجه دا ده چه د دې امت خصوصیت دا دې چه الله ﷻ د انبیاء کرامو والا ذمه داری دوئ ته ورکړیده . نو دغه شان الله ﷻ دوئ ته دا خصوصیت هم ورکړیدې چه د دې امت هر هر فرد ئې د خپل پیغمبر سره معیت الهی او نصرت الهی کښې شریک کړیدې.

فَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنِ اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْبَحْرَ ؕ فَانْفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ

نووحی اوکړه موسی ته چه اووهه ته په همساخپله باندې دریاب پس وچاؤدلودریاب نوشوه هره حصه

كَالطَّوْدِ الْعَظِيْمِ ۞ ٦٣ وَاَزْلَفْنَا ثَمَّ الْاٰخَرِيْنَ ۞ ٦٤ وَاَنْجَيْنَا مُوْسٰى وَمَنْ مَّعَهٗۤ اَجْمَعِيْنَ ۞ ٦٥

لکه غرلوئ اوبیارانیږدی کړل مونږدغه ځائ ته نورقوم فرعون اونجات ورکړومونږموسی ته اوهغه چاته چه ده سره وؤټولوته

ثُمَّ اَغْرَقْنَا الْاٰخَرِيْنَ ۞ ٦٦ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ؕ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۞ ٦٧

بیاموغرق کړل نورقوم فرعون بیشکه پدی واقعه کښ دلیل دعبرت دې،خوندی اکثرخلق ایمان راوړونکی.

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۞ ٦٨

اوبیشکه رب ستاخامخاهغه غالب دې رحم کونکې دې

﴿ فَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ ﴾ دا طريقه او كيفيت د انجاء د بنی اسرائيلو او غرق كولو د فرعون ذكر كيږي د حضرت عبدالله بن سلام ﷺ نه مروی دی چه كله موسى ﷺ سمندر ته را اورسيدلو او قوم ئې شكايت شروع كړو نو موسى ﷺ پدې وخت كښې دا دعا اوكړه ( يامن كان قبل كل شيء والمكون لكل شيء والكائن بعد كل شيء اجعل لنا مخرجاً ) نو الله ﷻ ورته وحی اوكړه چه پدې خپلې عصا سره دا درياب اووهه ، او چونكه غيب دان نوو ، نو دا پته ورته نه لګيدله چه ددې نجات طريقه به څه وي ؟ نو څكه الله ﷻ ورته په دغه ځائې كښې وحی اوكړه . چه خپلې عصا سره سمندر اووهه او ددې بحر او سمندر نه مراد دريائې قلزم دې ﴿ فَٱنفَلَقَ ﴾ فاء فصيحيه ده تقدير د عبارت داسې دې ( فضر به فانفلق ) يعنی موسى ﷺ په عصاء سره ، سمندر او وهلو نو درياب اوچودو ، او دولس لارې پكښې جوړې شوې ﴿ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ ﴾ نو موسى ﷺ چه څرنګه عصا اوبو باندې اووهله نو اوبه د الله ﷻ په حكم سره فوراً اودريدلې ، موجو نه چه په كوم حالت وو بس په هغې حالت باندې پاتې شو . نو په سمندر كښې جوړې شوې لارې داسې ښكاريدلی لكه لويه غونډئ .

﴿ وَأَزْلَفْنَا ثَمَّ ﴾ پدې كښې د فرعون غرق كيدل ذكر كيږي . بنی اسرائيل چه كله دهغه لارو باندې سمندر عبور كړو ، د بنی اسرائيلو اخری كس د سمندر نه اووتلو نو د فرعون د لښكر اخری سمندر ته داخل شو ، نو الله ﷻ سمندر ته د بهيدلو حكم اوكړو . نو د موسى ﷺ لښكر او بنی اسرائيلو ته الله ﷻ نجات وركړو او فرعون ئې سره د خپل لښكر نه غرق كړو ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً ﴾ يعنی پدې واقعې كښې د الله ﷻ د قدرت او د عبرت دپاره لويه نشانی ده . او صرف دا يوه واقعه هم د عبرت دپاره كافی ده . ﴿ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم ﴾ يعنی د دې باوجود بيا هم اكثر خلك ايمان نه راوړی ( اكثرهم ) كښې ضمير د غوره قول مطابق عامو خلكو ته راجع دې ، او بعضی فرمائی چه ضمير فرعونيانو ته راجع دې يعنی اكثر د فرعونيانو نه مؤمنان نوو . او اكثر څكه اوئيلې شو چه د فرعون د قوم څنې كسانو ايمان راوړې وو . لكه حضرت حزقيل چه دا د فرعون سخر وو د حضرت آسيه ﷺ پلار وو او آسيه ﷺ مؤمنه وه . او دغه شان مريم بنت ذا موسى ايمان راوړې وو . او دا هغه بوډئ وه چه موسى ﷺ نه ئې په جنت كښې د معيت وعده اغستلې وه او بيا ئې ورته د حضرت يوسف ﷺ قبر خودلې وو او ددې عمر په دغه وخت كښې تقريباً اوه سوه ( ۷۰۰ ) كاله وو ، تفصيلی واقعه ئې

قرطبي وغيره كنبى ذكر ده او دغه شان څه نور كسانو هم ايمان راوړي وو ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ ﴾
يعنى الله جَلَّ جَلَالُهُ زبردست غالب ذات دې هر معاند او سركش ته فوراً سزا وركولې شى خو د خپل
رحمت د مقتضى د وجې نه مهلت وركوى.

| |
|---|
| وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ إِبْرٰهِيمَ ﴿۶۹﴾ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهٖ مَا تَعْبُدُونَ ﴿۷۰﴾ قَالُوا |
| اولوله ته پدوئ قصه د ابراهيم .كله چه اووئيل ئى خپل پلارته اوقوم ته تاسو د څه شى عبادت كوئ.هغوئ ورته اووئيل |
| نَعْبُدُ أَصْنَامًا فَنَظَلُّ لَهَا عٰكِفِينَ ﴿۷۱﴾ قَالَ هَلْ يَسْمَعُونَكُمْ |
| مونږعبادت كوؤد بتانوپس هميشه به يومونږ د هغوئ عبادت كونكى.اووئيل ابراهيم آياأورى دوئ ستاسوخبرې |
| إِذْ تَدْعُونَ ﴿۷۲﴾ أَوْ يَنْفَعُونَكُمْ أَوْ يَضُرُّونَ ﴿۷۳﴾ قَالُوا بَلْ وَجَدْنَا آبَاءَنَا |
| كله چه تاسوئى راغواړئ يانفع رسولې شى تاسوته ياضررسولې شى.هغوئ اووئيل نه بلكه موندلى دى مونږپلاران خپل |
| كَذٰلِكَ يَفْعَلُونَ ﴿۷۴﴾ قَالَ أَفَرَءَيْتُمْ مَّا كُنْتُمْ تَعْبُدُونَ ﴿۷۵﴾ أَنْتُمْ |
| چه همدارنګه به ئى كول.ابراهيم ورته اووئيل خبرشئ هغه څه چه تاسوئى عبادت كوئ،تاسو |
| وَآبَاؤُكُمُ الْأَقْدَمُونَ ﴿۷۶﴾ فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّي إِلَّا رَبَّ الْعٰلَمِينَ ﴿۷۷﴾ |
| اوپلاران ستاسومخكنى.بيشكه چه دوئ دشمنان دى خما.ليكن رب العالمين چه دې |

﴿ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ إِبْرٰهِيمَ ﴾ دا دويم دليل نقلى دې په ذكر د واقعې د حضرت ابراهيم عليه السلام
سره . هر كله چه زمانه د موسى عليه السلام نزدې وه زمانه د نبى كريم ﷺ ته او واقعه د هلاكت د فرعون او
د نجات د بنى اسرائيلو زياته اعرفه او مشهوره وه او يهوديان په كثرت سره په ملك د عربو كښ
موجود وو نو د دې وجې نه واقعه د موسى عليه السلام اول ذكر شوه.او بيا هر كله چه يهوديانو ،

عیسایانو او مشرکین مکه ټولو به د خپل دین نسبت حضرت ابراهیم ﷺ ته کولو . او هر یوې فرقې به د هغه د اتباع دعوه کوله او حضرت ابراهیم ﷺ ټولو ته قابل قدر او مسلم شخصیت وو ، نو ددې وجې نه اوس واقعه د حضرت ابراهیم ﷺ ذکر کیږی دپاره د وضاحت د دې خبرې، چه حضرت ابراهیم ﷺ د شرک نفی او د توحید اثبات په یو زبردست اندازه سره کړیدې،نو د حضرت ابراهیم ﷺ واقعه ذکر کولو کښې مقصود تخویف ندې ځکه چه د هغه په قوم باندې اجتماعی عذاب نوو راغلې، بلکه مقصود د دې واقعې نه صرف حجت الزامی دې په مشرکینو باندې چه هغوئ به د ټولو نه زیاته دعوی د حضرت ابراهیم ﷺ د اتباع کوله . او خپل جدا مجد ئې ګڼړلو ،او هر کله چه دا واقعه مشتمله ده په عظیم امورو باندې . او بذاته عظمت شان والا ده نو ځکه دې واقعې ته ( نبأ ) اوئیلې شو .

﴿ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِۦ ﴾د ابراهیم ﷺ پلار آزر مشرک وو. نو ابراهیم ﷺ په خپل دعوت سره هغه مقدم کړو ، اول دعوت ئې پلار ته ورکړو ځکه چه دا حق شرعی دې او دغه شان پلار د ابراهیم ﷺ داعی د شرک وو،او قوم د هغه تابع او مدعو وو نو ځکه پلار ئې مقدم کړو﴿ مَا تَعْبُدُونَ ﴾ دا سوال د حضرت ابراهیم ﷺ د استعلام دپاره نوو چه ابراهیم ﷺ نه پوهیدلو چه دوئ د څه شی عبادت کوی، نو تپوس ئې ورنه اوکړو، ځکه چه ابراهیم ﷺ په سترګو کتلو چه دوئ د بتانو عبادت کوی. بلکه مقصود پدې سره تحقیر د دوئ د معبودانو دې دپاره د تنبیه پدې چه تاسو چه د کوم څیزونو عبادت کوئ دا مستحق د الوهیت ندی .﴿ قَالُوا نَعْبُدُ أَصْنَامًا ﴾دوئ ابراهیم ﷺ ته جوب ورکړو چه مونږ د بتانو عبادت کوو او صرف عبادت نه ، بلکه هر وخت مونږ د دوئ په تعظیم او عبادت باندې قائم یو د دوئ جواب پدې جملې سره هم کیدلو چه دوئ وئیلې وې چه﴿نَعْبُدُ أَصْنَامًا ﴾ لیکن هر کله چه ابراهیم ﷺ په سوال کښې تحقیر اوکړو نو دوئ په جواب کښ﴿ فَنَظَلُّ لَهَا عَٰكِفِينَ ﴾ زیات کړو دپاره د فخر په عبادت د بتانو باندې ، او ( نظل ) یا د افعال تامؤنه ، دې نو معنی به ئې ( دوام ) وی، لکه وئیلې شی چه ( لوظل الظلم هلک الناس) نو د﴿ فَنَظَلُّ لَهَا ﴾معنی به شی چه مونږ همیشه دپاره د دوئ په عبادت باندې قائم ، دائم یو( ای فنقیم علی عبادتها ) · قرطبی· او یا (

نظل ، د افعال ناقصونه دي چه دادَه اصل هم دي،نو پدې صورت کښې به ثبوت د خبر چه ( عبادت ) دي اسم د ظل لره چه ( نحن ) ضمير دي په ساعت د ورځې کښې به وی . نو معنی به ئې راشی چه " مونږ د ورځې عبادت د دې بتانو کوو " او دا د دوئ عادت وو چه د ورځې به ئې عبادت د بتانو کولو او چه د شپې به ستوری را اوختلو نو بيا به ئې د ستورو عبادت شروع کړو . اول احتمال د مقام سره ، زيات مناسب دې، او دويم احتمال د اصل معنى سره او فق دې

﴿ قَالَ هَلْ يَسْمَعُونَكُمْ ﴾ ابراهيم ﷺ د دوئ د مذهب د فساد او د دوئ د عقيدې د ابطال دپاره د دوئ نه بله پوښتنه اوکړه نو د دې پوښتنې او د سوال نه هم مقصود د استعلام ندې . بلکه الزام حجت او تقرير حجت دپاره دې يعنى هغوئ ته د الوهيت صفات وربنودل وو ،دپاره د دې چه هغوئ خپله سوچ او فکر اوکړی او پخپله د خپلې عقيدې دبطلان اعتراف اوکړی، نودابراهيم ﷺ مقصددادې چه دالوهيت اود معبود صفات دا دی چه هغه د مخلوقاتو بلنې اوری، د هغوئ دعاګانې قبلوی ، هغوئ ته نفعې ورکولو او د هغوئ نه د ضرر لرې کولو باندې قادر وی . ايا ستاسو دا معبودان هم داسې دی ؟آيا په دوئ کښې هم دا صفات موجود دی ؟

﴿ قَالُواْ بَلْ وَجَدْنَآ ﴾دا جواب د مشرکينو دې . ﴿بَلْ﴾ دپاره دا ضراب دې، يعنى دوئ د دې خبرې اعتراف اوکړو چه دا بتان نه څه اوری ، نه نفع ورکولو باندې قادر دی او نه د ضرر دفع کولو باندې قدرت لری، بلکه د دوئ عبادت زمونږ د خپل اباؤ اجداد تقليد د وجې نه دې،چه مونږ هغوئ کتلی ووچه د دې بتانو عبادت به ئې کولو نو دوئ سره د تقليد فاسد نه علاوه بل دليل نوو او په خلاف شرعه اوناجائز امورو کښې دچا تقليد کولوته تقليد فاسد وئيلې کيږی شريعت کښې داسې تقليد سخت مذموم دې،او هر چه دې په امورو د شريعت کښې تقليد هغه تقليد ممدوح دې،جائز بلکه په عوامو باندې واجب دې﴿ قَالَ أَفَرَءَيْتُم ﴾دا جواب دې د جانبه د حضرت ابراهيم ﷺ خلاصه د دې جواب دا ده چه ابراهيم ﷺ ،دوئ ته اوفرمائيلو چه تاسو خپله فکر او سوچ کړئ د څومره بيکاره معبودانو عبادت تاسو کوئ چه نه څه اوری ، نه څه فائده درکوی او نه څه ضرر دفع کولې شی نو رؤيت دلته بصری ندې مراد بلکه په معنى د تأمل سره دې يعنى رؤيت نه قلبى مراد دې﴿ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُمُ ﴾يعنى يو باطل پدې سره حق نه ګرځی چه پخوانو خلکو د هغه عبادت کړې وی او يا

في الحال د هغه عبادت كوونكي زيات وي نو ستاسو د پخوانو مشرانو د دې بتانو بندګي کول او يا ستاسو بندګي کول دليل د حقانيت د دې بتانو نه دې. ﴿ فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّيٓ ﴾ حضرت ابراهيم ﷺ د بتانو د عبادت نه برأت اعلان اوکړو چه ددې بتانو عبادت ځما دپاره سخت د ضرر ذريعه ده، او مقصود پدې برأت سره دوئ باندې تعريض کول، او دوئ ته وعظ او نصيحت کول وو، چه د دوئ عبادت کول ستاسو دپاره سخت ضرراونقصان ذريعه ده. او سبب د دشمنئ او د عداوت دې، او دا د وعظ او نصيحت مؤثره طريقه ده چه مخاطب خپل ځان کرې شي او مقصد ئې بل ته نصيحت کول وي. نو ګويا چه ابراهيم ﷺ دوئ ته اوفرمائيلو چه ما ښه سوچ اوفکر اوکړو نو د دوئ عبادت راته داسې ښکاره شو لکه د يو دشمن عبادت کول، او دغه شان په باب د نصيحت کښې تعريض کله کله دومره مؤثر وي چه تصريح هومره مؤثر نوي،نو ځکه ابراهيم ﷺ د دوئ عداوت ځان ته منسوب کړو او په وعظ او نصيحت کولو کښې ئې تعريض اختيار اوفرمائيلو او حضرت ابراهيم ﷺ د عدوات نسبت بتانو ته اوکړو چه هغه جمادات دی نو دا د قبيلې د تشبيه بليغې نه دې. نو تقدير د عبارت داسې دی چه (ان عبادهم عبادة العدوّ) يعنی د دوئ عبادت کول د دشمن د عبادت کولو پشان دی ځکه چه د تاوان او نقصان نه ، علاوه د دوئ په عبادت کښې څه فائده نيشته دې. دنيا کښې هم خساره ده خپل ځان سترې کول او خپل مال او وخت ضائع کول دی او د اخرت خساره د ټولو نه لويه خساره او نقصان دې. او يا دا نسبت مجازی دې او د قبيلې د مجاز عقلی نه ، دې او اطلاق د دوصف د سبب په مسبب باندې دې. يعنی د غير الله عبادت کول سبب د دشمنئ په قيامت کښې دې. قيامت په ورځې چه کله دا معبودان د خپلو عابدانو د عبادت نه ، انکار اوکړی نو د دوئ به پخپل مينځ کښې سخته دشمني پيدا شی لکه چه سورة مريم آيت نمبر (۸۲) کښې ذکر دی. ﴿ إِلَّا رَبَّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ غوره قول دا دې چه دا استثناء منفصله ده ، نو مقصد دادې چه د هر معبود باطل عبادت کول ذريعه د ، عداوت او د نقصان ده. ليکن صرف﴿رَبَّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾چه معبود حقيقی دې د هغه عبادت کول سراسر نفع او فائده ده.

| |
|---|
| ٱلَّذِى خَلَقَنِى فَهُوَ يَهْدِينِ ﴿٧٨﴾ وَٱلَّذِى هُوَ يُطْعِمُنِى وَيَسْقِينِ ﴿٧٩﴾ |
| هغه ذات دې چه څه نی پيداکړې يم پس هغه لاره ښائی ماته،اوهغه ذات دې چه هغه ماته خوراک راکوی اواوبه راکوی |

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِيْنِ ۝۸۰ وَالَّذِيْ يُمِيْتُنِيْ ثُمَّ يُحْيِيْنِ ۝۸۱ وَالَّذِيْٓ | | | | | | | | | | | |
| اوچه کله څه مریض شم نو هغه ماته شفاء راکوی. او هغه ذات دې چه ما مړکوی بیا به می ژوندې کوی. او هغه ذات دې | | | | | | | | | | | |
| اَطْمَعُ | اَنْ | يَّغْفِرَ | لِيْ | خَطِيْٓـَٔتِيْ | يَوْمَ | الدِّيْنِ ۝۸۲ | | | | | |
| چه | طمع | لرم | څه | داچه | اوبه | بخی | ماته | گناه | خمایه | ورځ | دقیامت. |

﴿ اَلَّذِي خَلَقَنِي ﴾هر کله چه ابراهيم ﷺ دوئ ته د بتانو د عبادت نقصان بيان کړو او د ﴿رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ د عبادت فائده ئې بيان کړه . نو اوس پدې اياتونو کښې صفات د ﴿رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ ذکر کوی دپاره د معرفت د هغه ، نو پدې آيت کښې دوه صفاته د ﴿رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ ذکر کيږی ، اول صفت ئې دا دې چه هغه خالق دې، دويم صفت ئې دا دې چه هدايت ورکونکې دې، يعنَی دا ، نه چه صرف مخلوقات ئې پيدا کړل او بس ،بلکه د پيدا کولو سره ئې مخلوقاتو ته د دين او دنيا د مصالحو او منافعو حاصلولو هدايت هم اوکړو، او هدايت ابتداءً دوه قسمه دې طبعي ، او کسبی ، طبعی هدايت الله ﷻ ټولو مخلوقاتو ته د پيدائش سره متصل کړيدې . د چرګې بچې پيدا شی ، نو هغه دانې خوری.د مهی بچې د پيدا کيدلو سره په اوبو کښې لامبو وهی . د انسان بچې پيدا کيدو سره د مور پئ څکی. نو دا فطری اوطبعی هدايت دې، او دا مراد دې په سورة الاعلی آيت نمبر (۳) کښې،او دويم کسبی هدايت دې چه حاصليږی په کتب سماو يه، او په تعليمات د انبياء کرامو سره چه اهل سنة والجماعت ورنه تعبير په ( الدلالة علی ما يوصل الی المطلوب ) سره او يا په ( اراءة الطريق ) سره کوی، نو الله ﷻ انسان ته او مخلوقاتو ته هر قسم هدايت کړيدې . هم فطری او هم کسبی يعنی د قبول حق صلاحيت او استعداد پکښې پيدا کړيدې عقل ئې ورته ورکړيدې کتب سماو يه ئې د ده دپاره نازل کړيدی. او انبياء ﷺ ئې مبعوث کړيدې . د باقی د هدايت مکمل اقسام او مراتب د سورة الفاتحه په تفسير کښې حضرت والد صاحب نور الله مرقده وبرد مضجعه، تفصيل سره ذکر کړيدې. او هر کله چه هدايت متصل دې د ( خلق ) سره نو څکه ( فاء )

ورسره راوړې شوه او دا هدايت متجدد کيږي په . استمرار سره نو ځکه په صيغې د مضارع سره ذکر شو چه دا دلالت په تجدد کوي

﴿ وَٱلَّذِي هُوَ يُطۡعِمُنِي ﴾ پدې کښې دريم او څلورم صفت ذکر دې چه خوراک هم الله ﷻ راکوي او څښکاک هم هغه راکوي . يعنې روزي رسان هغه دې . او « هو » دپاره د حصر او اختصاص دې نو مطلب دا دې چه روزي رسان بل څوک نشته دې سيوا د هغه نه او مراد په اطعام او اسقاء سره د هغې اسباب پيدا کول دي مثلاً باران اورول په هغه سره فصلونه ، ميوې وغيره راويستل ، نو دا صرف د الله ﷻ قدرت کامله دې، او د هغه په اختيار کښې دی . او هر کله چه په خوراک او څښاک سره قوام د بدن راځي نو ددې وجې نه دا د « خلق » نه ورستو ذکر کړې شو ﴿ وَإِذَا مَرِضۡتُ ﴾ پديکښې پنځم صفت د ، الله ﷻ ذکر کيږي چه د مرض نه شفاء ورکوونکې ذات هم هغه دې او الله ﷻ چه لکه څرنګه شفاء ورکوونکې دې نو دغه شان بيماري او مرض راوستونکې هم هغه دې خو حضرت ابراهيم ﷺ نسبت د بيمار کيدلو ځان ته اوکړو او نسبت د صحت ورکولو ئې الله ﷻ ته اوکړو دپاره د رعايت د کمال ادب، ځکه چه بيماري او مرض په ظاهر کښې نعمت ندې، بلکه ابتلاء ده .او حضرت ابراهيم ﷺ په معرض د بيان د صفاتو د الله ﷻ کښې دې نو په صفاتو کښې بيماري راويستلو صفت ذکر کول مناسب نوو. نو ځکه حضرت ابراهيم ﷺ د بيمارئ نسبت ځان ته اوکړو.

او که څوک اشکال اوکړي چه په ابتلاء کښې د ټولو نه لويه ابتلاء خو مرګ دې،نو بيا خو پکار وه چه حضرت ابراهيم ﷺ د مرګ ورکولو نسبت هم الله ﷻ ته نوې کړې او حالانکه ابراهيم ﷺ ورستو آيت کښې د مرګ ورکولو ، نسبت الله ﷻ ته کړيدې، نو يو دا جواب ورنه بعضو دا کړيدې چه مرګ محض قضاء د الله ﷻ ده ،او حکم ئې عام دې، هر انسان او هر مخلوق ته.که هغه تندرست او صحت مند وي او يا مريض وي . يعنې مرګ په استناد کښې اسباب ظاهر يو ته ندې محتاج ډير وخت يو کس داسې هم وي چه روغ او تندرست وي او مرګ پرې راشي . په خلاف د مرض نه چه دهغه دپاره اسباب خارجي خامخا وي . چه « اخلاط اربعو » کښې د څه څيز د وجې نه خلل راشي او مرض عام هم ندې، ډير وخت يو کس داسې هم وي چه پوره ژوند کښې په هغه باندې مرض رانشي نو د ې وجې نه چه مرګ محض قضاء د الله ﷻ ده او عموم پکښې هم دې، نو نسبت

ني الله ﷻ ته زيات مناسب وو او په مرض كښې د څه اسباب ظاهر يو دخل خامخا وى او حكم ئې هم عام ندې نو جهت د ابتلاء محض او نعمت پكښې زيات وو نو نسبت ئې ځان ته كول اولى وو نو ځكه ابراهيم ﷺ په مرض كښې نسبت ځان ته او په مرګ وركولو كښې ئې الله ﷻ ته اوكړو

او بعضو ورنه دا جواب كړيدې چه هر كله مرګ ذريعه د حصول حيات ابدى دپاره ده. او خاص طور باندې د نيكانو بندګانو دپاره ذريعه د سعادت ابدى ده او هم ددې وجې نه حضرت ابراهيم ﷺ ذكر د مرګ مقدم كړو په ذكر د حيات باندې. نو په مرګ كښې جهت د ابتلاء كمزورې دې نو ددې وجې نه نسبت د مرګ وركولو ئې الله ﷻ ته اوكړو.

امام رازى ﷫ جواب كړيدې چه مرګ بذاته ابتلاء نده او په هغه كښې څه تكليف مخلوق ته نه محسوسيږى، بلكه حصول د حالت د مرګ غير محسوسى وى،تكليف او ضرر په مقدماتو د مرګ كښ دې چه هغه عين مرض دى،تو ددوجى نه نسبت د مرګ وركو لو الله ﷻ ته اوكړې شو او هر كله چه مرض او صحت د متفرعاتو د اكل،او شرب نه ، دى يعنى د صحت او مرض دارو مدار غالبا په خوراک او څكاک باندې دې نو ددې وجې نه ذكر د مرض او د صحت ورستو د ذكر د خوراک او څكاک نه ، اوشو،والله اعلم.

﴿ وَالَّذِي يُمِيتُنِي ﴾ دا د شپږم او اووم صفت ذكر دې ، چه مرګ او ژوند وركوونكې ذات الله ﷻ دې ،او پديكښ رد دې په هغه چا چه نسبت د مرګ صرف اسباب ظاهريو ته او اختلاف د مزاج ته كوى او مراد په ﴿ ثُمَّ يُحْيِينِ ﴾ سره بعث دې، او هر كله چه ( بعث ) يعنى دوباره ژوندى كيدل څه زمانه ورستو راځى د مرګ نه نو ځكه ورسره ( ثم ) ذكر شو چه دلالت كوى په تراخى د زمانې باندې، او هر كله چه مرګ دپاره سبب ظاهرى عموماً مرض وى نو ددې وجې نه دا صفات د مرض او صحت نه ئې ورستو ذكر كړو. ﴿ وَالَّذِيَ أَطْمَعُ ﴾ پديكښې ذكر د اتم صفت دې چه څه د هغه نه اميد لرم كچرې ځما نه څه لغزش شوې وى نو د قيامت په ورځ به ماته هغه لغزش معاف كړى .او مراد په ( خطيئة ) سره ( خطيئه ) حقيقى نده چه هغه ګناه ته وئيلې كيږى. بلكه مراد ورنه خطيئه صورى ده چه خلاف اولى كار ته وئيلې كيږى او چونكه خلاف اولى كار انبياء كرام د خپل عالى مراتبو د وجې نه د خپل ځان په حق كښې په منزله د ګناه ګڼړى نو ځكه ئې تعبير ورنه په ( خطيئه ) سره اوكړو. ورنه انبياء

کرام علیهم الصلوة والتسلیمات د ګناهونو اوخطاګانو نه معصوم دي او مغفرت د په ‹ طمع › سره متعلق کول یعنی ﴿أَطۡمَعُ﴾ وئیل دپاره د اظهار د کمال بندګئ او کمال عجز دپاره دي چه حضرت ابراهیم ﷺ د خپلې کمال بندګئ اظهار کوی چه اې الله ځما اعمال د دې قابل ندی چه ځما مغفرت ورسره اوکړې شي خو بیا هم څه امید او طمع لرم چه ته به ځما مغفرت اوکړې او دغه شان پدیکښې اشاره ده چه په الله ﷻ باندې وجوب نیشته دې . که د چا مغفرت کوی نو احسان ئې دې او که نه ئې کوی عین عدل ئې دې ځوک ورنه تپوس والا نیشته . او بیا د خطایاؤ متعلق کول په ‹ یوم الدین › پورې د دې وجې نه ، دی چه اثر د مغفرت ظاهریږی په ورځې د جزاء کښې اګر چه مغفرت په دنیا کښې هم کیږی . اودغه شان پدیکښې اشاره ده تهویل د ورځې د جزاء ته یعنی کچرې پدغه ورځ مغفرت اوکړې شو نو ښه ده ،ګنې ډیر لوئی هلاکت سره مخاخ کیدل دی ‹ اللهم اجرنا من خزی یوم الدین آمین ›.

| |
|---|
| رَبِّ هَبۡ لِي حُكۡمٗا وَأَلۡحِقۡنِي بِٱلصَّٰلِحِينَ ۝ وَٱجۡعَل لِّي لِسَانَ صِدۡقٖ فِي ٱلۡأٓخِرِينَ ۝ |
| اې ربه راکړه ماته حکمت اویوځای می کړی نیکانوسره اواوګرځوه ځماذکرخیرپه ورستنوخلقوکښې |
| وَٱجۡعَلۡنِي مِن وَرَثَةِ جَنَّةِ ٱلنَّعِيمِ ۝ وَٱغۡفِرۡ لِأَبِيٓ إِنَّهُۥ كَانَ مِنَ ٱلضَّآلِّينَ ۝ وَلَا تُخۡزِنِي |
| اواګرځوه ماد وارثانودجنت دنعمتونونه اوبخنه اوکړه ځماپلارته بیشکه هغه دې دګمراهانونه اومامه رسواکوه |
| يَوۡمَ يُبۡعَثُونَ ۝ يَوۡمَ لَا يَنفَعُ مَالٞ وَلَا بَنُونَ ۝ إِلَّا مَنۡ أَتَى ٱللَّهَ بِقَلۡبٖ سَلِيمٖ ۝ |
| په ورځ دقیامت په هغه ورځ نفع به نه رسوی مال اونه اولاد،مګرهغه چاته چه راغلې وی د الله ﷻ دربارته په زړه روغ سره |

﴿رَبِّ هَبۡ لِي حُكۡمٗا﴾ هر کله چه حضرت ابراهیم ﷺ د مبدأ نه تر معاد پورې او د ابتداء د خلق نه تر دوباره ژوندی کول او حشر پورې صفات د الله ﷻ بیان کړل نو اوس په هغې باندې تفریع کوی په دعاګانو سره ‹ ابومسعود › نو حضرت ابراهیم ﷺ شپږ دعاګانې غوختلی دی نو دا اوله دعا ده. چه ربه ماته حکمت یعنی کمال علم نصیب کړې او د کمال عمل توفیق راته راکړې

یعنی ما دخپلو نیکانو بندګانو سره یوځائ کړې. نو مراد په ﴿حُكْمًا﴾ سره کمال علمی دې.
اوپه﴿وَأَلْحِقْنِي بِالصَّٰلِحِينَ﴾سره کمال عملی دې، او امام رازی رحمه الله فرمائی چه ﴿حُكْمًا﴾ نه مراد کمال قوت نظری دې، اود﴿وَأَلْحِقْنِي بِالصَّٰلِحِينَ﴾ نه مراد کمال د قوت عملی دې. او هر کله چه قوت نظری مقدم دې په قوت عملی باندې ذاتاً او شرفاً، نو ددې وجې نه حضرت ابراهیم علیه السلام په دعا کښې هم د قوت نظری سوال مقدم کړو. هر چه دې د قوت نظری (کمال) ذاتا تقدیم نو هغه بدیهی دې ځکه چه عمل فرعه د علم ده تر څو پورې علم نوی نو عمل نشی راتللې او هر چه دې شرفاً تقدیم نو وجې ئې داده چه علم صفت د روح دې، او عمل صفت د بدن دې. او روح افضل دې په نسبت سره بدن ته ،نو ځکه علم هم افضل دی په نسبت سره عمل ته ،او علامه آلوسی رحمه الله فرمائی چه حکم نه مراد کمال فی العلم والعمل دواړه دی او﴿وَأَلْحِقْنِي بِالصَّٰلِحِينَ﴾نه مراد قبولیت د علم او د عمل دې یعنی کمال علم او عمل ، را نصیب کړی او بیا ئې په خپل دربار کښې قبول کړی ځکه چه علم او عمل کله پورې چه قبول شوې نوی نو لحوق او یو ځائ کیدل د صالحینو سره نه راځی. نو﴿وَأَلْحِقْنِي بِالصَّٰلِحِينَ﴾مطلب دا دې چه پس د مرګ نه په عالم برزخ او بیا په عالم اخرت کښې ما د صالحینو سره یوځائې کړې .﴿وَٱجْعَل لِّي لِسَانَ﴾دا دویمه دعا ده.چه راتلونکی نسلونو کښې څما ذکر خیر همیشه دپاره باقی او جاری اوساتی﴿لِسَانَ صِدْقٍ﴾کښې اضافت دَموصوف دې صفت ته،په اصل کښې لسانٌ صدقٌ(یعنی په تنوین سره) وو او ( لسان ) نه مراد ذکر او قول دې او چونکه ( لسان ) آله د قول ده نو ددې وجې نه په طریقې د مجاز مرسل سره ذکر د " لسان "او مراد ورنه " ذکر " او " قول " دې. او" صدق "په معنی د صادق سره دې او مراد تنه خیر دې او په﴿ٱجْعَل لِّي﴾کښې ( لام ) دپاره د انتفاع دې .نو مقصد دا شو چه : اې الله ! څما د نفعې دپاره څما ذکر خیر په راتلونکی امتونو کښې، باقی اوساتې ، او د نفعې والا ذکر خیر هغه د ینی او شرعی طریقی او ښه اخلاق دی چه خلک ئې په هغې کښې دده اتباع کوی. او د مرګ نه پس ئې اجر دده ته رسیږی او( الف لام ) په ( الاخرین ) کښې داستغراق دپاره دې . مراد ورنه ټول روستونکې ، راتلونکی خلک او امتونه دی. نو د حضرت ابراهیم علیه السلام ددې دعا خلاصه داده چه ما ته د داسی

نیک عمل کولو توفیق راکړه چه راتلونکی خلک په هغې کښې ځما اتباع کوی او ماته پس د مرګ نه اجر رارسیږی .او د حضرت ابراهیم ﷺ دا دعا الله ﷻ قبوله کړه هرامت خپل ځان حضرت ابراهیم ﷺ ته منسوب کوی اودهر امت خلکو ته حضرت ابراهیم ﷺ معززه هستی ده .او حضرت شیخ ﷫ فرمائی چه د (لسان صدق) نه مراد کلمه صادقه ده.او کلمه صادقه . کلمه توحیدده لکه په سورة الزخرف آیت نمبر (۳۵) کښې دی . او په (الاخرین) کښې الف لام د عهد دپاره دې،مراد ورنه امت محمدیه ﷺ دې، نو د دعا مطلب دا شو چه : اې الله ! په اخرې زمانه کښې پیغمبر مبعوث او فرمایه چه هغه ځما ددین د اصولو تجدید اوکړی او ځما پشان خلکو ته ددین او توحید دعوت ورکړی او ځما طریقه را ژوندئ کړی .

﴿ وَٱجۡعَلۡنِي مِن وَرَثَةِ ﴾دا دریمه دعا ده .چه د سعادت دنیوی نه ورستو د سعادت اخروی سوال اوکړو چه : اې الله ! ما د جنت د نعمتونو حقدار اوګرځوې . او د جنت د نعمتونو حصول نه تعبیر په (وراثت) سره اوکړو پدیکښې اشاره ده چه دخول جنت دچا استحقاق ندې بلکه محض په فضل د الله ﷻ سره دې﴿ وَٱغۡفِرۡ لِأَبِيٓ ﴾دا څلورمه دعا ده باره دَ مغفرت دَپلارکښې،اوپلاردَحضرت ابراهیم علیه السلام مشرک وؤ .نوپه هغه لپاره دعادَمغفرت دَهغی وعدی دَ وجی نه وه کومه چه حضرت ابراهیم علیه السلام وِسره کړې وه لکه په سورة مریم کښې د هغې ذکر دې چې (سَأَسۡتَغۡفِرُ لَكَ رَبِّيٓۖ) او تردغې وخته پورې حضرت ابراهیم ﷺ ته علم نوو چه ځما پلار په تقدیر کښې ایمان راوړل نیشته دې ، اوکله چه ورته علم اوشو نو بیا ئې دعا پریخودله ، لکه سورة التوبة آیت نمبر (۱۱۴) کښې دی. او بعض فرمائی چه د مغفرت نه مراد دلته طلب د هدایت دې – (ای واغفر لابی بالهدایة والتوفیق للایمان) . ابی سعود . ﴿ وَلَا تُخۡزِنِي يَوۡمَ ﴾دا پنځمه دعا ده چه : اې الله ﷻ !د قیامت د رسوائی نه مې بچ وساتې، او مراد په (خزی) او شرمندګئ سره عامه ده که هغه د میدان حشر رسوائی وی او یا د جهنم د عذاب والا رسوائی وی، او انبیاء کرام اګر چه معصوم دی د هغوئ به په قیامت کښې لوئ اعزاز وی خو بیا هم د حضرت ابراهیم ﷺ د اخرت د شرمندګی نه بچ کیدلو سوال کوی دا د وجې د کمال خوف او کمال تواضع نه . او دغه شان پدیکښې تعلیم ورکول مقصود دی عام مخلوقاتو ته چه کله یو معصوم انسان چه د هغه اعزاز او اکرام متیقن دې هغه د اخرت د شرمندګئ نه د بچ کیدلو سوال کوی نو عامو انسانانو ته په طریقی اولی دا سوال کول پکار دی .

امام رازی رحمه الله فرمائی چه لکه څرنگه حسنات الابرار سیئات المقربین وی نو دغه شان درجات د ابرار ، درکات د مقربین وی نود هرڅا" خزی" د هغه د شان مطابق وی نو د انبیاء کرام "خزی" دهغوئ په مرتبه کښې کموالي راتلل دی او دغه شان په روایت د بخاری وغیره کښې دی چه ( یلقی ابراهیم اباه آزر یوم القیامة وعلی وجه آزر قتر وغبرة ) یعنی نبی پاک ﷺ او فرمائیلو چه د قیامت په ورځ به د ابراهیم علیه السلام د خپل پلار سره پدې حالت کښې ملاقات اوشي چه په هغه باندې به گردوغبار او ذلت وی نو ابراهیم علیه السلام به عرض اوکړی چه اې ربه ! تا خو ځما سره وعده کړې وه چه ځه به تا په قیامت کښې نه رسوا کومه . نو ددې نه بله لویه رسوائی څه ده چه ځما پلار ځما په وړاندې په داسې بد حالت کښې جهنم ته ځی . نو الله جل جلاله به د ابراهیم علیه السلام د پلار شکل او صورت به د یو بد ځناور په سورت سره بدل کړی چه د ابراهیم علیه السلام به ورنه هم نفرت پیدا شی . او جهنم ته به اوغورځولې شی . نو ابراهیم علیه السلام به د رسوائی نه پدې طریقې سره بچ کړې شی .

﴿يَوْمَ لَا يَنفَعُ مَالٌ﴾عام مفسرین فرمائی چه دا هم دحضرت ابراهیم علیه السلام کلام دې، او هغه د تهویل شان د دغې ورځې د ظاهرولو دپاره دا کلام اوئیلو، لیکن صاحب د جلالین او دغه شان حضرت شیخ رحمه الله فرمائی چه دا ادخال الهی دې، او کلام د حضرت ابراهیم علیه السلام ندې او د آیت مقصد دا دې چه د قیامت په ورځ به چاته د هغه مال او اولاد څه فائده نشی ورکولې. او پدیکښې اشاره ده چه آزار چه پلار د ابراهیم علیه السلام وو ، مالونه ئې هم ډیر وو او اولاد ئې هم ډیر وو . او ابراهیم علیه السلام جلیل القدر هستی او پیغمبر هم وو خو د هغې باوجود هغه د کفر او د شرک د وجې نه هغه ته ئې نفع ورنکړه .او مراد په ﴿ بَنُونَ ﴾ سره نفی د مطلق اعوان او مدد کوونکو ده .خو هرکله چه نارینه اولاد نفع نشی ورکولې نو زنانه اولاد یا نور خلک په طریق اولی سره نفع نشی ورکولې .

﴿إِلَّا مَنْ أَتَى اللَّهَ بِقَلْبٍ﴾استثناء منقطعه ده ځکه چه ﴿بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ﴾د جنس د مال او اولاد نه ، ندې .او د آیت مقصد دا دې چه په دغه ورځ مال او اولاد د څه فائده نشی ورکولې فائده به چه ورکوی هغه صرف " قلب سلیم " دې، او " قلب سلیم " هغه زړه ته وئیلې کیږی چه خالی وی د کفر ، شرک ، نفاق او بدعت نه، او ددې مثال داسې دې لکه یو سړې پوښتنه اوکړی چه: هل لزید مال وبنون: یعنی آیا زید دپاره د مال او اولاد شته دې ؟ نو جواب کښې اوئیلې شی چه ( ماله وبنوه سلامة

قلبه ) یعنی د زید مال او اولاد د هغه قلب سلیم دي. نو مقصد ددې عبارت نه نفی د مال او د اولاد د هغه ده او اثبات د سلامة قلب دي د هغه دپاره نو دغه شان دلته هم مقصد دا دې چه نفع ورکوونکې به د قیامت په ورځ بغیر د ( قلب سلیم ) نه بل څیز به نوی او دا هم ممکنه ده چه استثناء متصله شی ، او مستثنی منه محذوف شی چه لفظ د ( احد ) دې. نو کلام به داسې شی چه ( لاینفع مال وّلابنون احدٌ الاّمن اتی الله) د آیت مقصد دا دې چه مال او اولاد به د قیامت په ورځ چاته هم فائده نه ورکوی سیوا د هغه چا نه چه د " قلب سلیم " مالک وی. نو هغه ته به خپل مال او اولاد فائده ورکوی ځکه چه " قلب سلیم " والا کس خپل مال د الله ﷻ په لار کښې په شرعی طریقه سره خرچ کوی خپل اولاد ته د سمې لارې تعلیم ورکوی. نو د هغه اولاد د استغفار د هغه دپاره او دهغوئ شفاعت دده دپاره نفع مند وی

| |
|---|
| وَاُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿٩٠﴾ وَبُرِّزَتِ الْجَحِيْمُ لِلْغٰوِيْنَ ﴿٩١﴾ وَقِيْلَ لَهُمْ |
| اونیږدې به کړې شی جنت پرهیزګارانو ته او ظاهر به کړې شی جهنم دګمراهانو لپاره، او اوبه وئیلې شی ورته |
| اَيْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ ﴿٩٢﴾ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ هَلْ يَنْصُرُوْنَكُمْ اَوْ يَنْتَصِرُوْنَ ﴿٩٣﴾ |
| چرته دی هغه بتان چه تاسوئی عبادت کولو. ماسوی د الله ﷻ نه آیا امداد به اوکړی ستاسو یا د خپل ځان مدد کولې شی |
| فَكُبْكِبُوْا فِيْهَا هُمْ وَالْغَاوٗنَ ﴿٩٤﴾ وَجُنُوْدُ اِبْلِيْسَ اَجْمَعُوْنَ ﴿٩٥﴾ قَالُوْا وَهُمْ فِيْهَا |
| پس پرمخې به اوغورځولې شی په جهنم کښې بتان او ګمراهان. او لښکرې د ابلیس ټول، او به وائ دوئ حال دا چه دوئ په جهنم کښې |
| يَخْتَصِمُوْنَ ﴿٩٦﴾ تَاللّٰهِ اِنْ كُنَّا لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿٩٧﴾ اِذْ نُسَوِّيْكُمْ |
| جګړه کوی، چه قسم دې په الله ﷻ یقیناً وو مونږ په ګمراهي ښکاره کښې، کله (چې) برابرکړی وئ مونږ تاسو |
| بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٩٨﴾ وَمَآ اَضَلَّنَآ اِلَّا الْمُجْرِمُوْنَ ﴿٩٩﴾ فَمَا لَنَا مِنْ شَافِعِيْنَ ﴿١٠٠﴾ |
| د رب العالمین سره ( په الوهیت کښې ) او نه وو ګمراه کړی مونږ مګر غټو مجرمانو. پس نیشته زمونږ څوک سفارش کونکی، |

وَلَا صَدِيْقٍ حَمِيْمٍ ﴿۱۰۱﴾ فَلَوْ اَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۲﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

اونه ملګرې غم خوار نوکاش چه مونږله واپسی وې دنياته نوشوبه مونږدايمان راوړونکونه بې شکه پدې قصی کښې

لَاٰيَةً ۭ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۳﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۰۴﴾

دليل دعبرت دې،خوليکن ندی اکثرخلق ايمان راوړونکي اوبې شکه رب ستاخامخاهغه غالب دې رحم کونکې دې

﴿ وَأُزْلِفَتِ ٱلْجَنَّةُ ﴾ما قبل کښې ذکر دقيامت د ورځې وو ، اوس د هغې ورځې بعضې تفصيلات ذکر کيږي، نو پديکښې آيت کښې بشارت اخروی دې، چه متقيانو دپاره به جنت .ميدان حشر او موقف ته رانزدې کړې شی، او دا نزديکت به د دوئ د شرف او عزت او اکرام دپاره وی چه ددوئ به ميدان حشر کښې ولاړ وی او اوګوری نو خوشحاليږی به ، او دغه شان دوئ به د مزل کولو د تکليف نه هم بچ کړې شی چه دوئ جنت ته د مزل کولو تکليف اونکړی بلکه جنت به ورته رانزدې کړې شی. بعض فرمائی ددينه مراد د جنت نزدې کول ندی ځکه چه جنتونو کښې انتقالات نه راځی د خپل مکان نه بلکه د دينه مراد د جنتيانو نزديکت دې لکه يو مسافر چه خپل منزل ته نزدې شي نواوئی چه کلي را نزدی شو ليکن اوله توجيه زياته غوره ده ځکه چه موافق د نص سره او ازلاف دپاره انتقال ضروری ندې بلکه بغير د انتقال نه هم ازلاف راتلې شی لکه نبی ﷺ ته بيت المقدس نزدې کړې شوې وو﴿ وَبُرِّزَتِ ٱلْجَحِيمُ ﴾دا تخويف اخروی دې کافرانو ته ،چه دوزخ به دوئ ته ښکاره کړې شی، او دا ښکاره کول د جهنم به ددوئ د پريشانی او دتکليف زياتولو دپاره وی چه دوئ به ميدان حشر کښې ولاړ وی او جهنم ورته راښکاره کړې شی او دوئ د جهنم عذابونه او د هغې سختئ اوګوری نو د دوئ غم او پريشانی به نوره سيوا شی هره لحظه به ددوئ دپاره د مرګ وی خو مره کيږی به نه.

**فائده**: د جنت حالت دپاره لفظ د (ازلاف) استعمال شو او د جهنم دپاره ابراز ، ازلاف وئيلې کيږی نزديکت او نزدې کولو ته . او (ابراز) ځرګندولو او ښکاره کولو ته وئيلې کيږی ، نو بعضې علمآء وجه دا بيانوی چه چونکه جهنم ميدان حشر ته نزدې دې او جنت ورنه لرې دې ، ځکه چه جنت

ته رسيدلو دپاره پل صراط عبور کول به راځي او جهنم د پل صراط د لاندې دې نو معلومه شوه چه جنت د ميدان حشر نه لرې او جهنم ورته نزدې دې نو ددې وجې نه د جنت دپاره ( ازلفت ) استعمال کړې شو او د جهنم دپاره ( برزت ) استعمال کړې شو .او بعض فرمائي چې پديکښې اشاره مقصود ده کمال رحمت او شفقت د الله ﷻ ته . ځکه چه ( ازلاف ) نزدې کولو ته وئيلې کيږي او د چا دپاره چه کوم څيز رانزدې کړې شي نو هغه ورته داخليږي او ( ابراز ) وئيلې کيږي . ښکاره کولو ته او کوم څيز چا ته ښکاره کړې شي نو ضروري نده چه هغه به ورته خامخا داخليږي نو الله ﷻ د کمال رحمت د اظهار دپاره اسلوب قرآني پدې انداز باندې ذکر کړو ( والله اعلم ).

﴿ وَقِيلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا ﴾دا به ورته توبيخاً او تبکيتاً اوئيلې شي چه ستاسو هغه معبودان او بتان نن ورځ څه شو چه تاسو به په دنيا کښې د هغوئ عبادت کولو او هغوئ ته به مو سفارشان وئيلو ﴿ هَلْ يَنصُرُونَكُمْ ﴾ يعنې چه ستاسو امداد اوکړي او دالله ﷻ عذاب ستاسو نه دفع کړي.﴿ أَوْ يَنتَصِرُونَ ﴾ يعنې که ستاسو امداد نشي کولې نو د خپل ځان نه عذاب دفع کولې شي ؟ او پدې سره مقصود عجز د بتانو ظاهرول دي چه دومره عاجز مخلوق عبادت تاسو کولو چه نه ستاسو امداد کولې شي او نه د خپل ځان نه عذاب دفع کولې شي﴿ فَكُبْكِبُوا فِيهَا ﴾مجاهد رحمه الله نه د ( کبکبوا ) ترجمه ( پرمخې غورځولو ) سره منقول ده .او بعضې فرمائي ( کبکب ) په اصل کښې يو د بل دپاسه ډيرې کولو ته وئيلې کيږي ، يعنې دوئ به جهنم ته داسې اوغورځولې شي چه د يو دبل دپاسه به ډيرې وي . او بيضاوي رحمه الله فرمائي چه ( کبکبوا ) په اصل کښې ( کب ) نه مشتق دې چه پرمخې غورځولو ته وئيلې شي او بيا پکښې تکرار د ( کاف ) راغې د پاره د تکرار د معنې ، نو د ( کبکبوا ) معنې شوه ( پرمخ ارغړول ) چه په ټکرو ټکرو سره به د جهنم ويخ ته اورسيږي . او ( هم ) ضمير مرفوع منفصل دپاره د تاکيد د متصل راغليدې ځکه چه ورسته پرې عطف د ﴿ الْغَاوُونَ ﴾بيا نه صحيح کيږي او مراد د دينه د مشرکينو بتان دي . چه دا بتان او معبودان د دوئ به اول جهنم ته اوغورځولې شي او بيا به ورپسې دوئ واچولې شي . نو د ﴿ الْغَاوُونَ ﴾نه مراد عابدان دي .﴿ وَجُنُودُ

إِبْلِيسَ ﴾ ( جنود ) نه مراد عام دی که هغه جنی لښکر وی یا انسی لښکروی. جنی لښکرد ابلیس خپل ذریت دي او انسی لښکر ئې هغه دې چه د ابلیس په وسوسو سره کفر او شرک کښې اخته شوی وی او نورو خلکو ته د دې دعوت ورکوی . نو دوئ ټول به الله ﷻ د ابلیس سره په جهنم کښې اوغورځوی . ﴿ قَالُواْ وَهُمْ فِيهَا ﴾نو هر کله چه معبودان او عابدان ټول جهنم ته اوغورځولې شی نو عابدان به د معبودانو نه امداد طلب کړی نو هغوئ به انکار اوکړی چه مونږ د خپل ځان نه عذاب نشو دفع کولې نو ستاسو به څه امداد اوکړو . نو دا عابدان به ورسره په جهګړه شی. او ډير په افسوس سره به د غلطی اعتراف او اقرار اوکړی چه﴿ تَٱللَّهِ إِن كُنَّا لَفِى ضَلَـٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ يعنی زمونږ دې په الله ﷻ قسم وی چه مونږ ډير سخت په ګمراهی کښې وو﴿إِذْ نُسَوِّيكُم ﴾ اذ ظرفيه تعليليه دې او دا بيان د ګمراهی دې چه مونږ تاسو د رب العلمين سره په استحقاق د عبادت کښې شريک کړی وئی

﴿ وَمَآ أَضَلَّنَآ إِلَّا ٱلْمُجْرِمُونَ ﴾يعنی زمونږ د ګمراهئ سبب زمونږ مقتداګان ، پيشواګان او غلط مشران ګرځيدلی دی . نو د﴿ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴾ نه مراد شياطين ، او ابليس هم دې او دغه شان په انسانانو کښې ګمراه مشران هم دی چه خلک ئې اتباع کوی .﴿ فَمَا لَنَا مِن شَـٰفِعِينَ ﴾ او هر کله چه مشرکان او کافران اوګوری چه ملائک ، انبياء کرام ، علماء کرام ، او حفاظ وغيره د اهل ايمان دپاره سفارش کوی او د هغوئ سفارش د اهل ايمان په حق کښې نافع هم دې نو دوئ به ډير افسوس اوکړی چه کاش نن ورځ زمونږ دپاره هم سفارش کوونکې وې،د کومو څيزونو چه مونږ په دنيا کښې عبادت کړې دې اوزمونږ خيال وؤ چه دوئ به زمونږ شفارس کوې نن په هغوئ کښې څوک هم زمونږ سفارشی نيشته دې. ﴿ وَلَا صَدِيقٍ حَمِيمٍ ﴾ اهل ايمان ته به هغه دوستی فائده ورکوی کومه چه د ايمان په بنياد وی .او يو مؤمن دوست به د بل مؤمن دوست سفارش کوی . نوکفار به نور هم افسوس اوکړی چه د کومو خلکو سره زمونږ په دنيا کښې دوستانه وه نن د هغوئ ملګرتيا او دوستی هم پکار رانغله نو زمونږ دوست هم نيشته دې چه سفارش مو اوکړی او ددې تکليف نه مو خلاص کړی ، او د بې دينه خلکو ملګرتيا ګانې به د قيامت په ورځې په دوشمنئ باندې بدلې شی

او شافعین په جمع سره او صدیق مفرد ذکر کړې شو، دې دپاره وجوهات متعدد دی (۱) عادة او عموماً سفارشیان ډېر وی او مخلص ملګری کم وی (۲) څومره کوششونه چه متعدد سفارشیان کوی نو دهغې نه زیات کوشش د یو مخلص ملګری وی. نو یو مخلص ملګرې د ډېر سفارشیانو نه ښه وی

(۳) (صدیق) په وزن د فعیل سره د دې اطلاق په واحد باندې هم کیږی او په جمع باندې هم کیږی.

﴿ فَلَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً ﴾هر کله چه دوئ د سفارشیانو او د ملګرو نه نااميده شی نو دریمه تمنا به اوکړی چه کاش! مونږ دنیا ته واپس کړې شو نو مونږ به په صدق زړه سره ایمان راوړو، او توحید به اومنو، خو دا تمنا به دوئ ته هیڅ فائده نه ورکوی. نو (لو) دلته په معنی د (لیت) تمنی سره دې ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً ﴾یعنی د ابراهیم علیه السلام پدې واقعه، کښې ډېره لویه نشانی ده چه څوک ورته د عبرت او د بصیرت په نظر اوګوری، پدیکښې په توحید باندې دلائل په یو زبردست انداز ذکر دی. مخالفین ته د دعوت ورکولو طریقې عملی تعلیم دې، مخالف دلیل او د هغه د خبرې رد کولو د حسین انداز اختیارولو تعلیم دې او دغه شان اصولو د دین ته پکښې اشارات دی. ﴿ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم ﴾ دینه مراد عام خلک دی که هغه د حضرت ابراهیم علیه السلام په دور کښې موجود وو او که یا د اورستونی خلک دی.

كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوحٍ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٠٥﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ نُوحٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٠٦﴾

تکذیب کړې وو قوم د نوح د رسولانو. کله چه اوونیل دوئ ته وروردوئ نوح علیه السلام آیا نه یریږئ تاسو (د عذاب الهی نه)

إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٠٧﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٠٨﴾ وَمَا أَسْأَلُكُمْ

بې شکه زه ستاسو لپاره رسول یم امانتګر یم پس اویریږئ د الله جل جلاله نه او زما اطاعت اوکړئ او زه نه غواړم ستاسو نه

عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٠٩﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١١٠﴾

په تبليغ باندې هيڅ اجر نه غواړم زما اجر خو صرف په رب العالمين دی پس اويريږئ د الله ﷻ نه او زما اطاعت اوکړئ

قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ قَالَ وَمَا عِلْمِىْ

هغوئ ورته اووئيل آيا مونږ په تا ايمان راوړو حال دا چه تابعداری کړيده ستا حقيرو خلقو. اووئيل نوح او نيشته علم زما

بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۱۲﴾ اِنْ حِسَابُهُمْ اِلَّا عَلٰى رَبِّىْ لَوْ تَشْعُرُوْنَ ﴿۱۱۳﴾ وَمَآ اَنَا بِطَارِدِ

په هغه څه چې دوئ ئې کوی نه دی حساب (د باطن) د دوئ مګر په رب زما دی که تاسو پوهيږئ. او نه يم زه شړونکي

الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۱۴﴾ اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۱۵﴾ قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهِ يٰنُوْحُ لَتَكُوْنَنَّ

مؤمنانو لره. نه يم زه مګر يرونکي ښکاره يم دوئ اووئيل قسم دی که چرته نه شوې منع ته اې نوحه نو شې به خامخا ته

مِنَ الْمَرْجُوْمِيْنَ ﴿۱۱۶﴾ قَالَ رَبِّ اِنَّ قَوْمِىْ كَذَّبُوْنِ ﴿۱۱۷﴾ فَافْتَحْ بَيْنِىْ وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا

د ويشتل شوؤ نه او وئيل نوح اې ربه بې شکه قوم زما تکذيب اوکړو زما. پس فيصله اوکړه زما او د دوئ مينځ کښې فيصله

وَّنَجِّنِىْ وَمَنْ مَّعِىَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۱۸﴾ فَاَنْجَيْنٰهُ وَمَنْ مَّعَهٗ فِى الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ﴿۱۱۹﴾

او نجات راکړه ماته او هغه چاته چه ماسره دی د مؤمنانو نه. پس نجات ورکړو مونږ هغه ته او د هغه ملګروته په کشتئ ډکه کښې

ثُمَّ اَغْرَقْنَا بَعْدُ الْبٰقِيْنَ ﴿۱۲۰﴾ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۭ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۲۱﴾

بيا غرق کړل مونږ ورستو د دوئ نه نور باقي. بيشکه په دی قصی کښې دليل د عبرت دی خو ندی اکثر خلق ايمان راوړونکي

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۲۲﴾

او بيشکه رب ستا خامخا هغه غالب دی رحم کونکې دی.

﴿ كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوحٍ ﴾دا دریم دلیل نقلی دې په ذکر د واقعې د نوح ﷺ سره او پدیکښې تخویف دنیوی هم دې .او هر کله چه لفظ د قوم مونث معنوی دې. ځکه چه د تصغیر په صورت کښې ورسره تا ذکرکولې شی او داسې وئیلې شې "قویمة".نو دَدې وجې نه فعل ورسره هم مؤنث ذکر کړې شواو بعضې فرمائی چه ( قوم ) مذکر دې او تانیث د فعل پدې وجې سره دې چه دا په معنی دجماعة سره دې او﴿ آلْمُرْسَلِينَ ﴾صیغه دجمع راوړې شوه،یادداوجې نه چه تکذیب دیو رسول مستلزم دې تکذیب د ټولو رسولانو لره،ځکه چه هررسول دټولورسولانودتصدیق کوی. ځکه چه مقاصد د ټولو انبیاء کرامو یو دی. نو د یو رسول او پیغمبر تکذیب داسې دې لکه چه د ټولو رسولانو تکذیب اوکړې شی او یا ( مرسلین ) اګر چه جمع ده خو مراد ورنه فرد واحد یعنی نوح ﷺ دې،اوعرب داسې کوی چه ذکر دجمعې اوکړې اومرادورنه یو فردواخلی لکه وئیلې شی فلان یرکب اللواب نو د دې مطلب دا نوی چه هغه په ډیرو دوابو باندې سورلی کوی بلکه مراد ورنه یوه رسولی وی .او زمونږ په عرف کښې هم وئیلې کیږی چه فلانې نن صبا په موټرو کښې ګرځی نو دا مطلب نوی چه په ډیرو موټرو کښې ګرځی. بلکه موټر یو وی خو د تعظیم او د اهتمام شان دپاره صیغه د جمعې استعمال کړې شی.

﴿ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ ﴾مراد اخوت نه نسبی اخوت دې،ځکه چه حضرت نوح ﷺ ددې مشرکینو د قوم نه وو. او اخوت نه دینی اخوت ندې مراد . او یا ( اخ ) په معنی د ( ناصح ) سره دې او عرف کښې په ناصح باندې اطلاق د ( اخ ) شائع او کثیر دې، او بعضې فرمائی چه د اخوت نه مراد ، اخوت مجا نست دې، یعنی ټول انسانان او اولاد ادم ﷺ په خپل منځ کښې رونړه دی ځکه چه د اصل په اعتبار سره د ټولو مور او پلار یو دی . چه حضرت ادم ﷺ او بی بی حوا ﷺ ده ، لیکن غوره توجیه اوله ده﴿ أَلَا تَتَّقُونَ ﴾دا مقوله د قول دپاره ده ، حضرت نوح ﷺ او دغه شان حضرت هود ﷺ ، صالح ﷺ وغیره ټولو انبیاء کرامو خپل امتونو ته پنځه قسمه خطابات کړیدی ، نو دا اول خطاب دې،او مراد په ( تقوی ) سره اوله مرتبه د تقوی ده چه د کفر او شرک نه ځان بچ کول دی . یعنی تاسو ځانونه د شرک او کفر نه ولې نه بچ کوئ ، او یا مطلب دا دې چه تاسو الله ﷻ د عذاب نه ولې ځان نه بچ کوئ په منلو د توحید سره .﴿ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ ﴾دا دویم خطاب دې چه پدیکښې

اعلان د خپل رسالت او بیان د خپل کردار دي ، او الله ﷻ هر پیغمبر فطری طور د اخلاق او صفات رذیله نه معصوم پیدا کړي وی ،چاته هم د پیغمبر په اخلاقو کښې او صفات مرضیه کښې شک موقعه نوی نو ددې وجې نه هر پیغمبر اول خپل قوم ته خپل کردار مخې ته کوی او دا یو ډیر ضروری امر دې د داعی دپاره . نو حضرت نوح ﷺ خپل قوم ته اوفرمائیلو چه ځه د الله ﷻ د طرف نه رسول یم او ځما امانت او دیانت په تاسو کښې مشهور دې نو ځه دعوی د رسالت د خپل ځان نه نه کووم . او (لکم) تقدیم د وجې د اختصاص نه دې، چه ارسال د رسول پدیکښې خصوصی مصلحت د امتونو وی او د الله ﷻ د طرف نه په مخلوقاتو باندې لوئ او خصوصی انعام وی او په وصف د ﴿أَمِينٌ﴾ کښې اشاره ده چه په تبلیغ د احکاماتو کښې به هیڅ قسم نقصان نه کوم

﴿ فَاتَّقُوا اللَّهَ ﴾ دا دریم خطاب دې دلته د تقوی نه مراد ځان بچ کول دی د شرک نه ، او توحید اختیاره ول دی . ﴿ وَأَطِيعُونِ ﴾ دا څلورم خطاب دې ، او هر کله چه تقوی د الله ﷻ نه سبب د اطاعت د پیغمبر وی نو ځکه تقوی ذکر مقدم کړې شو. او پدیکښې اشاره ده چه هر نیک عمل هغه وخت د الله ﷻ په دربار کښې قابل قبول وی چه کله د پیغمبر د اتباع او د هغه د سنتو مطابق وی﴿ وَمَآ أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ ﴾یعنی ستاسو نه په تبلیغ د دین باندې څه د معاوضې مطالبه هم نه کووم .چه تاسو په ما باندې د لالچ الزام اولګوئ ، بلکه ځه د بدلې امید د الله ﷻ نه کووم،

ظاهر د آیت نه دا معلومیږی چه (اجرت علی الطاعات) جائز ندې او تبلیغ د دین او دغه شان تعلیم او تعلم هم دینی فریضه او اطاعت دې، نو ددې وجې نه د آیت د ظاهر نه معلومیږی چه په تبلیغ او په تعلیم باندې هم اجرت اغستل جائز ندی . او دا اصل مذهب د احنافو دې، چه متقدمینو احناف د (اجرت علی الطاعات) د جواز قائله ندی ، اګر چه نور ائمه ددې د جواز قائله دی. او بیا متاخرینو احنافو هم ددې د جواز فتوی ورکړیده په شرائطو سره په تفصیل ئې حضرت والد صاحب نور الله مرقده وبرد مضجعه په جامع انداز کښې په سورة البقره آیت نمبر (۴۱) کښې ذکر کړیدې .﴿ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴾دا جمله مکرر ذکر شوه دپاره د تاکید خو اول ځلې ذکر ئې مرتب وو په امانت باندې او دا دویم ځلې ذکر ئې مرتب دې په عدم اجرت او په نفی د لالچ باندې، نو مقصد ئې دادا چه

خما د اطاعت دپاره خو صرف دا هم کافي وه چه ځه (امین) یم،او بیا صرف دا هم کافي وه چه ځما ستاسو نه څه د دنیوی غرض او د فائدې لالچ هم نیشته دې ، خو هرکله چه په ما کښې دا دواړه صفات موجود دی چه (امین) یم،څه لالچ مې هم ستاسو نه نیشته نو بیاخو په طریقې اولی سره ځما اطاعت کول ضروری دی﴿ قَالُوٓاْ أَنُؤۡمِنُ لَكَ ﴾دې جواب دَ د جانبه د مشرکینو نه .او د ایمان نه راړولو دپاره عذر فاسد ذکر دې، او استفهام د انکار او تعجب دپاره دې ، یعنی زمونږ دپاره ستا اتباع کول ډیر قابل تعجب ده یعنی مونږ ستا اتباع نه کوو﴿ وَٱتَّبَعَكَ ٱلۡأَرۡذَلُونَ ﴾او حالیه دې او دا جمله حال واقع شویده په تقدیر د(قد)سره او علت دې د عدم د اتباع دپاره ، چه مونږ ستا اتباع ځکه نه کوو چه ستا متبعین (ارذل) خلک دې او دغه شان مقصود ئې پدې سره تنقیص د نوح ﷺ دې او ددې جملې څلور مقصدونه کیدی شی:(۱) دا چه دوئ د دنیا په اعتبار سره ضعفاء دی ، مالی حیثیت ئې کمزورې دې،نو کچرې ته پیغمبر وې نو پکار ده چه ستا متبعین دې غټان وې،خانانو او سرمایه دارو خلکو دې ستا اتباع کړې وې،یعنی دې مشرکانو نوح ﷺ ته د ضعفاؤ اتباع سره پیغور ورکړو او حالانکه دهر پیغمبر اولنی متبعین ضعفاؤ لکه په حدیث د هر قل کښې دی چه مذکور دې په اکثر کتب د احادیثو کښې .(۲) دویم مقصد دا کیدې شی چه دوئ یعنی مشرکانو مؤمنانو ته ارذل د نسب په اعتبار سره وئیلو چه مونږ خاندانی طور باندې معززین یو اودا ستا متبعین خو کمزوری خلک دی نو کچرې مونږ ایمان راوړو نو بیا به دوئ سره کینو نو مونږ به څرنګه دې ارتاؤ خلکو سره کینو ،ځکه چه بیا خو زمونږ او د دوئ په مینځ کښې مساوات راځی، او داسې خبرې به مشرکینو د حضرت بلال ﷺ او صهیب ﷺ وغیره په باره کښې هم کولې (۳) دریم مقصد دا دې چه ممکنه ده چه د نوح ﷺ متبعینو پیشې او روزګار کمزورې وو ،﴿ قیل کانوا من اهل الصناعات الدنیة﴾ (مدارک) نو دوئ د نوح ﷺ تنقیص کولو چه ستا متبعین خلک خو سپک کارونه کوی نو کچرې ته پیغمبر وې نو دا سپک خلک به ستا متبعین نوې .(۴)او څلورم مقصد دا دې چه ستا اتباع کوونکی خلک صرف سر سری ایمان او ظاهری ایمان په تا لری صرف ښکاره اتباع کوی او د دوئ په زړونو کښې ایمان نیشته دې.

﴿ قَالَ وَمَا عِلْمِى ﴾دا د نوح ﷺ د طرف نه دوئ ته جواب دې او دا جواب مشتمل دې په درې جملو باندې، د اولې جملې خلاصه دا ده چه څه ددې مکلف نه يم چه د دوئ اعمال او کسبونو باندې ځان خبر کړم بلکه څه ددې ملکف يم چه دوئ ته د ايمان دعوت ورکړم او اعتبار صرف ايمان لره دې او صنعت لره ندې ( قرطبی ) زمخشری وغيره فرمائی چه ( ما ) استفهاميه ده په معنی د "ای شیء" سره دې او استفهام انکاری دې، او مراد ورنه انتفاء د علم ده په اخلاص د ايمان د دوئ باندې يعنی ماته څه پته ده چه د دوئ په باطن عملونه څه دی، يعنی څه د دوئ د باطن تفتيش او تجسس نه کوم بلکه څه د دوئ په ظاهر باندې اکتفاء کووم، او دغه شان خبره نبی پاک ﷺ هم کړيده لکه په روايت د بخاری وغيره کښې دی چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه ( امرت ان اقاتل الناس حتی يشهدوا ان لا اله الله و ان محمدا رسول الله – ويقيمو الصلوة ويؤتواالزکاة فاذا فعلوا ذلک عصموا منی دمآء هم واموالهم الابحق الاسلام و حسابهم علی الله ).

﴿ إِنْ حِسَابُهُمْ إِلَّا عَلَىٰ ﴾ دا دويمه جمله ده .ددې خلاصه دا ده چه ( باطنی معامله الله ﷻ ته حواله ده د باطن حساب ئې د الله ﷻ سره دې . په شريعت کښې اعتبار صرف د ظاهر دې. احکاماتو اجراء په ظاهر حالت باندی کيږي . ﴿ وَمَآ أَنَاْ بِطَارِدِ ﴾دا دريمه جمله ده . ددې خلاصه دا ده چه دا غريبان او مساکين خلک د غربت د وجې نه او يا دکمزوری کسب د وجې نه د ځان نه شړم ،د عزت او ذلت دارو مدار په اعمالو او اخلاقو باندې دې ﴿ إِنْ أَنَاْ إِلَّا نَذِيرٌ ﴾دا په منزله د علت دې د ماقبل دپاره ، يعنی ځما د بعثت مقصد خلکو ته انذار او د الله ﷻ د عذاب نه ويره ورکول دی. او پدی دعوت کښې غريبانان ، مالداران ، لوې طبقې او کمې طبقې والا ټول خلک برابر دی، دغه شان ځما د دعوت مقصد الله دين او دعوت ته خلک رابلل او د هغه د عذاب نه خلک ويرول دی غريبانان د ځان نه شړل، دچا په باطن باندې اطلاع حاصلول او يا دچا پيشه او کسب ته په کم نظر باندې کتل ندی . ﴿ قَالُواْ لَئِن لَّمْ تَنتَهِ ﴾هر کله چه قوم پدې پوهه شو چه نوح ﷺ خپل وعظ اونصيحت نه پريدی، او خپل ملګری د ځان نه ، نه شړی ، نو دوئ نوح ﷺ ته دهمکی ورکړه چه کچرې ته د خپل کارنه منع نشوې نو مونږ به تا رجم ( سنګسار ) کړو.

﴿ قَالَ رَبِّ إِنَّ قَوْمِي ﴾حضرت نوح ﷺ د قوم د دهمکیانو او دا ذیتونو په بدله کښې الله ﷻ ته فریاد اوکړو. چه اې الله ﷻ ما دوئ ته مسلسل دعوت ورکړو خو دوئ خما دعوت قبول نکړو، بلکه دوئ مسلسل خما تکذیب کوی. او دا اخبار ندې د جانبه د نوح ﷺ نه ځکه چه الله ﷻ عالم الغیب والشهادة دې. بلکه دا عرض او فریاد دې الله ﷻ ته. او د خپل قوم خلاف ګواهی ورکول دی. او دا په منزله د سبب دې ورستوبد دعا دپاره یعنی بد دعا دپاره سبب تکذیب د نبوت دی او جسمانی اذیت یا بل څیزندې﴿ فَافْتَحْ بَيْنِي ﴾دا دعاء شر (خیرې) دی خپل قوم ته، او دعا د نجات ده دپاره د خپل ځان او د مؤمنانو، او دا بد دعا حضرت نوح ﷺ هغه وخت کښې اوکړه چه کله حضرت نوح ﷺ ته په ذریعه د وحی اطلاع اوشوه چه نور افراد د قوم ایمان نه راوړی. او نوح ﷺ د هغوئ د ایمان نه مایوسه شو لکه سورة هود آیت نمبر (۳۶) کښې دی، او مراد په (فتح) سره فیصله ده په عذاب سره ای اقض بینی و بینهم قضاء یعنی بالعذاب (زادالمسیر).

﴿فَأَنجَيْنَهُ وَمَن مَّعَهُ ﴾پدې کښې د دویمې دعا د قبولیت ذکر دې،او تقدیم د دېد وجې د اهتمام نه دې او (مشحون) نه مراد ډکه کړې شوې ده په خلکو، په ځاروو او په نورو ضروری څیزونو سره، او (فلک) چونکه دلته مفرد مستعمل دې نو ځکه صَفت ورله مذکر ذکر کړې شو او مؤنث ذکر نکړې شو،او په کوم ځائې کښې چه (فلک) جمع مستعملی وی نو هلته ورله صفت بیا مؤنث راځی﴿ ثُمَّ أَغْرَقْنَا ﴾پدیکښې داولې دعا د قبولیت ذکر دې،او(ثم) دلته د تراخی رتبی دپاره ده، او (بعد) مبنی برضمه دې مضاف الیه محذوفه ده چه (انجاء المؤمنین) دې او (الباقین) نه مراد هغه خلک دی چه په کشتئ کښې نوو سواره شوی. او دوئ دپاره (الباقین) لفظ ځکه استعمال شو چه پدغه، وخت کښې مخ په زمکه باندې د دوئ نه علاوه نور انسانان نوو موجود، نو په کشتئ کښې سوار خلک بچ پاتی شو او باقی ټول خلک غرق کړې شو.

| |
|---|
| كَذَّبَتْ عَادٌ الْمُرْسَلِينَ ۞ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ هُودٌ أَلَا تَتَّقُونَ ۞ إِنِّي |
| تکذیب کړې وؤعادیانو دَرسولانو.کله چه اووئیل دوئ ته ورور دَدوئ هود علیه السلام آیانه یریږئ تاسو،بی شکه ځه |

لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ﴿١٢٥﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿١٢٦﴾ وَمَآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ

ستاسو لپاره رسول يم امانتګر يم پس اويريږئ د الله نه او خما اطاعت کوئ او خه نه غوارم ستاسو نه په تبليغ باندې

مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٢٧﴾ اَتَبْنُوْنَ بِكُلِّ رِيْعٍ اٰيَةً تَعْبَثُوْنَ ﴿١٢٨﴾

څه اجر نه دې اجر خما ګر په رب العالمين دې آيا تاسو جوړه وئ په هر اوچت ځائ باندې نشانه استهزاء کوئ په تيريدونکو.

وَتَتَّخِذُوْنَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُوْنَ ﴿١٢٩﴾ وَاِذَا بَطَشْتُمْ بَطَشْتُمْ جَبَّارِيْنَ ﴿١٣٠﴾

او جوړه وئ مضبوطې بنګلې لکه چه تاسو هميشه پاتې کيږئ په دنيا کښ او کله چه حمله کوئ تاسو نو حمله کوئ ظلم کونکې

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿١٣١﴾ وَاتَّقُوا الَّذِيْٓ اَمَدَّكُمْ بِمَا تَعْلَمُوْنَ ﴿١٣٢﴾

پس اويريږئ د الله ﷻ نه او خما اطاعت کوئ او اويريږئ د هغه الله نه چه مددئ کړيدي تاسو سره په هغه څه چه تاسو ته پته ده

اَمَدَّكُمْ بِاَنْعَامٍ وَّبَنِيْنَ ﴿١٣٣﴾ وَجَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿١٣٤﴾ اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ

مددئ کړيدي تاسو سره په چارپايانو او خامنو سره او په باغونو او چينو سره بې شکه زه يريږم په تاسو د عذاب

يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿١٣٥﴾ قَالُوْا سَوَآءٌ عَلَيْنَآ اَوَعَظْتَ اَمْ لَمْ تَكُنْ مِّنَ الْوٰعِظِيْنَ ﴿١٣٦﴾ اِنْ هٰذَآ

د ورځې لوئ نه اووئيل دوئ برابره ده په مونږ که ته وعظ کوې يا که نه ئې ته د وعظ کونکو نه ندې دا (مذکور قبائح زمونږ)

اِلَّا خُلُقُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿١٣٧﴾ وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿١٣٨﴾ فَكَذَّبُوْهُ فَاَهْلَكْنٰهُمْ

مګر عادت د مخکنو خلقو دې او نه يو مونږ چه عذاب به راکړې شي، نو دوئ د هغه تکذيب او کړو نو مونږ هلاک کړل هغوئ

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۖ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٣٩﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿١٤٠﴾

بې شکه په دې کښ لوئ دليل دې، خو ندې اکثر خلق ايمان راوړونکې او بې شکه رب ستا خامخا هغه غالب دې رحم کونکې دې

﴿ كَذَّبَتۡ عَادٌ ٱلۡمُرۡسَلِينَ﴾ دا څلورم دلیل نقلی دې په ذکر د واقعې د هود ﷺ سره ،او پدیکښې هم تخویف دنیوی دې چه " عادیانو " د حضرت هود ﷺ تکذیب اوکړو نو عذاب پرې نازل شو ،اوهر کله چه د "عاد" نه مراد دلته قبیله وه نو ځکه فعل ورسره مؤنث راړوې شو. اوقوم عاد د حضرموت نه تر بلاد یمن پورې په احقاف کښې پاتې کیدلو. او زمانه د دوئ قریبه ده زمانې د قوم نوح ﷺ ته. د نوح ﷺ د قوم د هلاکت نه بعد الله ﷻ دوئ ته د زمکې خلافت ورکړې وو دوئ د نوح ﷺ په نسل کښې په پنځویشتم(۲۵) پشت کښې وو. د سام په اولاد کښې وو، دوئ ته الله ﷻ ډیر دنیوی نعمتونه ورکړی وو، جسمانی لحاظ سره هم ډیر مضبوط وو. چه د﴿ من اشد مناقوة﴾ نعره ئې لګولې وه ، او مالی لحاظ سره هم ډیر مضبوط وو،باغات چشمې او نهرونه د دوئ په علاقه کښې کثرت سره موجود وو، رهائش دپاره ئې په غرونو کښې لوئ لوئ بنګلې جوړې کړې وې،ددې ټولو انعاماتو باوجود دوئ د الله ﷻ ناشکری کوله ،او شرک ئې کولو، الله دوئ ته حضرت هود ﷺ مبعوث کړو

﴿ إِذۡ قَالَ لَهُمۡ أَخُوهُمۡ ﴾دا د هود ﷺ دعوت دې،خلاصه ئې هغه پنځه خبرې دی تشریح ئې ماقبل کښې تیره شویده .

﴿ أَتَبۡنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ ﴾د ایمان او توحید د دعوت نه ورستو نوح ﷺ دوئ ته زجر، او زورنه ورکړه په عبث کارونو باندې.

امام رازی رحمه الله فرمائی چه د شرک او کفر نه علاوه په دوئ کښې درې قسمه بد خصلتونه او غلط کارونه موجود وو.(۱) محبت د علو سره (۲) محبت د بقاء د علو (لویئ)سره .

(۳) محبت په تفردد علوکښې. او دا درې واړه څیزونه شرعاً ممنوع او مذموم وی ځکه چه پدې سره بنده د حد عبودیت نه اوځی او سرکشی اختیاره وی . او دا امور ذریعه د هر معصیت او کفر ګرځی ، او دیته اشاره شویده په روایت کښې هم چه (حب الدنیا رأس کل خطیئة ) نو پدې درې ایاتونو کښې ددوئ په دې درې خصلتونو باندې رد او زجر دې. نو " اتخاذد بناء عالیه " دلالت کوی په " حب الدنیا " باندې، او " اتخاذ د مصالح " دلالت کوی په ( حب البقاء ) باندې،او"جباریت "

" دلالت کوی په تفرد باندې، نو پدې آیت کښې زجر دې په اول خصلت باندې او ( ريع ) وئيلې کيږی بلند او اوچت ځائې ته . او بعض فرمائی چه د دوو درو په مينځ کښې لارې ته وئيلې کيږی ، او ﴿ءَايَةً﴾ په اصل کښې نښې او علامت ته وئيلې کيږی، دلته تنه مراد هغه تعمير او عمارت دې چه بطور يادګار وی .او ( کل ) نه دپاره د استغراق حقيقی دې . او نه دپاره د استغراق اضافی ، بلکه ( فی نفسه ) کثرت دپاره دې . نو دا دوئ يو بد عادت وو چه د خپلو کلو او علاقو په داخلی لارو کښې به ئې بطور نشانی دپاره د فخر او غرور ( مينار ) پشان تعمير کړې وو ،چه دا به د هغوئ د قوميت او فخر او غرور نښه وه . او بعض فرمائی چه پدې داخلی لارو کښې به دوئ لوئې ، لوئې بنګلې ( ريسټ هاؤس ) جوړې کړې وې چه د فخر او تکبر سره به دوئ به په هغې کښې فضول او فحش کارونه هم کولو ﴿ تَعۡبَثُونَ ﴾ دې دوه مقصدونه دی.يو دا چه دا مينار او عمارت جوړول عبث دی ځکه چه د فخر او ريا دپاره دی . او کوم څيز چه بلا ضرورت وی نو هغه مذموم دې شرعاً او همدغه مراد دې د هغه حديث نه چه امام ترمذی نقل کړيدې چه ( النفقة کلها فی سبيل الله الا البناء فلا خير فيه ) نو مراد د بناء نه بلا ضرورته تعمير اوکور جوړول دی.

او دويم مقصد ئې دا دې چه پديکښې تاسو عبث او ناجائز کارونه کوئ . او ( عبث ) وئيلې کيږی هر هغه کار او څيز ته چه په هغې کښې نه حقيقةً څه فائده وی او نه حکماً نو پدې معنی په اعتبار سره عبث شامل دې غير شرعی امر ته هم﴿ وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ ﴾پدې آيت کښې زجر دې په دويم خصلت باندې ﴿مَصَانِعَ﴾اطلاق په مضبوطې او اوچتو بنګلو باندې هم کيږی ليکن زيات غوره قول دا دې چه دلته تنه مراد حوضونه دی . ای حيضاناً وبرکاً تجمعون فيها الماء ( جمل ) او غالباً دا به داسې حوضونه وو لکه چه نن صبا ( سوئمنګ پول ) ورته وئيلې شی . چه دنيا پرست خلک ئې د خپل عيش و عشرت دپاره جوړه وی . نو بنګلې او يا حوضونه ( سوئمنګ پول ) فی نفسه قبيح او مذموم ندی خو چه کله دا څيزونه د فضولياتو ، د فخر او ګمراهئ دپاره شی نو بيا مذموم او قبيح دی . ﴿ لَعَلَّكُمۡ تَخۡلُدُونَ ﴾دا په منزله د علت دې د ما قبل دپاره او ( لعل ) يا په معنی د ( کی ) سره دې يعنی ( کی تخلدون ) يعنی تاسو لوئې ، لوئې بنګلې او حوضونه جوړوئ نو ستاسو خيال دا دې چه

تاسو به همیشه دپاره په دنیا کښې اوسیږئ او په تاسو باندې به فنا نه راځی. او یا (لعل) په معنی د استفهام توبیخی سره دی. یعنی تاسو دا مذکوره کارونه کوئ نو آیا تاسو به همیشه دپاره په دنیا کښې اوسیږئ ؟ او امام بخاری رحمه الله وغیره حضرات فرمائی چه (لعل) دلته دپاره د تشبیه دی. نو (لعل) په معنی د (کانکم) سره دی ﴿ وَإِذَا بَطَشْتُم ﴾ دا زجر دې هغوئ ته په دریم خصلت، باندې چه تمرد دې په (علو) کښې، او (بطش) وئیلې کیږی په سختئ سره نیولو یا وهلو ته. او (جبار) هغه متکبر او ظالم انسان ته وئیلې کیږی چه د چا حق او د چا قانون په ځان باندې نه منی، او دا خصلت د متکبرینو خلکو دې چه همیشه دپاره کوشش ئې دا وی چه غریب، دنیا په اعتبار سره خوار او ذلیل وی. او په غریب باندې ظلم کوی او سر اوچتولو ته ئې نه پریدی. او پدیکښې اشاره ده چه د هغوئ په ملک او علاقه کښې څه قانون نوو. بلکه چه د چا به زور وو نو د هغه به ځان ته یو خپل قانون او مرضی وه.

﴿ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴾ دا جمله په دې واقعې کښې درې ځلې ذکر شویده. اول ځل ورنه مراد ځان بچ کول دی د شرک نه او اطاعت دې په اعتقادیاتو کښې. او دلته یعنی په دویم ځلې ورنه مراد امر د تقوی دپاره د اطاعت دې په احکاماتو کښې، یعنی د الله تعالی نه اویریږئ او څما خبره اومنئ او دا غلط کارونه پریدئ ﴿ وَاتَّقُوا الَّذِي ﴾ دا دریم ځلې امر دې په تقوی سره په تذکیر د انعاماتو او احساناتو د الله تعالی باندې ﴿ أَمَدَّكُم بِمَا تَعْلَمُونَ ﴾ پدیکښې اجمال دې دپاره د تنبیه په کثرت د انعاماتو باندې. او د هغه شان اول اجمال پدې آیت کښې ذکر کیږی او ورستو آیت کښې بیا تفصیل بیانیږی. او تفصیل بعد الاجمال اوقع فی الذهن وی، نو ددې وجې نه اولا اجمال ذکر شو. او (ما) موصوله ده او (تعلمون) جمله ورله صله ده او داپه معنی د (تعرفون) سره دې او عائد ورله محذوف دې، یعنی دومره ډیر نعمتونه ئې په تاسو باندې کړیدې چه تاسو ئې ښه پیژنئ او تاسو ته د هغې ښه پته ده ﴿ أَمَدَّكُم بِأَنْعَامٍ ﴾ دا بدل دې د ما قبل ﴿ أَمَدَّكُم ﴾ نه او تفصیل دې د ماقبل اجمال والا. یعنی الله تعالی تاسو ته څاروی درکړیدی چه د هغې نه تاسو مختلف فوائد حاصلوئ. د نسل د بقاء دپاره ئې تاسو ته ئې اولاد درکړیدې، او د زندګئ د بقاء دپاره ئې تاسو ته باغونه او چشمې درکړیدې او هرکله چه د "بنین" او "انعام" په خپل منځ کښې مناسبت وو، ځکه چه په څاروو سره

رياست او قوت حاصليږي . او اولاد محافظ د هغې وی نو ددې وجې نه دواړه په يو ځائې ذکر شو او د باغاتو او چشمو په خپل مينځ کښې زيات مناسبت دې نو هغوئ په يو ځائ کښې ذکر کړې شو﴿ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ ﴾دا تخويف دې په منزله د تعليل دې د ما قبل دپاره،او دلته عبارت مقدر دې، نو اصل کلام داسې دې ( انی اخاف عليکم عذاب يوم عظيم ان کفرتم واصررتم علی ذلک، قرطبی ) يعنی ماته دا خطره کېږي تاسو دغه شان په خپل کفر باندې اصرار کوئ نو يوه ورځ به په سخت عذاب کښې مبتلا شئ.

﴿ قَالُواْ سَوَآءٌ عَلَيۡنَآ ﴾دا ددغې سرکش قوم د طرف نه هود ﷺ ته جواب دې. او په دېکښې هغوئ د خپلې انتهائی سرکشئ اظهار کړېدې، چه ستا دا وعظ او نصيحت په مونږ باندې بالکل اثر نه کوی .که ته وعظ کوې او يا بالکل وعظ نه کوې، دواړه حالته ستا برابر دی. او قوم مختصره جمله استعمال نکړه چه داسې ئې وئيلې وې چه ( او عظمت ام لم توعظ ) بلکه داسې اوئيلو چه﴿ أَمۡ لَمۡ تَكُن ﴾يو ددې وجې نه چه پدې اوږدې جملې سره د اياتو په رأس کښې موافقت راځی ، او بل د دې وجې نه چه پدېکښې مبالغه ده په نسبت سره﴿ ام لم توعظ ﴾ ته ځکه چه مقصود پدې جملې سره تسويه د وعظ او د عدم وعظ ده په عدم قبول د تاثيرکښې يعنی که وعظ وی يا نوی مونږ اثر نه قبلوو. او دا مقصد په دې اوږدې جملې سره زيات ښه حاصليږی ځکه چه پدې اوږدې جملې کښې نفی د مباشرت د جنس د واعظينو نه راغليده، او په مختصرې جملې سره نفی د نفس وعظ راغليده نو نفی د جنس د واعظينو نه پدېکښې مبالغه ده په نسبت سره نفی د نفس وعظ ته . او تفصيل ددې دا دې چه کله کله يو انسان داسې وی چه هغه د جنس د واعظينو نه وی . خو خاموشی وی نو د هغه بيا هم څه نا څه اثروی او يو انسان داسې وی چه د جنس د واعظينو نه نوی او خاموش وی او وعظ نه کوی نو د هغه بالکل اثر نه وی . نو دوئ هود ﷺ ته دا اوئيل چه ستا خبره په مونږ باندې بالکل اثر نه کوی لکه څرنګه چه هغه حالت کښې ستا خبره په مونږ باندې اثر نه کوی چه ته خاموش ئې او د جنس د واعظينو نه هم نه وې.

﴿ إِنْ هَـٰذَآ إِلَّا خُلُقُ ﴾ ' هذا ' سره یا اشاره ده عذاب ته یعنی قحط راتلل ، مړه کیدل ، ژوندی کیدل وغیره زوړ عادت دی د زمانې گردش دی،عذابونه نیشته او نه حساب کتاب وغیره شته، او یا اشاره ده خپل دین او عادت ته یعنی دا بنگلي جوړول ، شرک و کفر کول او د پیغمبرانو خبرې نه منل زمونږ زوړ عادت دی او په قرأت د ابوجعفر وغیره کښې ( خلق ) په سکون دلام سره دی ، او ( خلق ) هغو خبرو ته وئیلي کیږي چه ( دروغ ) او ( من گهړت ) وی نو پدې قرأت په بنیاد ( هذا ) سره اشاره ده د حضرت هود ﷺ وعظ او نصیحت ته ، اومقصد دا دې چه دا کومې خبرې چه ته کوې نو دا د زړو خلکو د دروغو قصې دی او د ځان نه جوړې کړې شوې کهانیانې دی .

﴿وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ﴾یعنی مونږ باندې عذابونه نشی راتللې.﴿ فَكَذَّبُوهُ ﴾د تکذیب نه مراد اصرار دې په تکذیب او کفر او شرک باندې ، او پدیکښې اشاره ده سبب د عذاب ته چه هغه اصرار دې په تکذیب باندې .

كَذَّبَتْ ثَمُودُ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٤١﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ صَالِحٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٤٢﴾ إِنِّي لَكُمْ

تکذیب کړې وثمودیانو دَرسولانو.کله چه اووئیل دوئ ته وروردَدوئ صالح آیاتاسونه یریږئ بې شکه څه ستاسولپاره

رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٤٣﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٤٤﴾ وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ

رسول یم امانتگریم.پس اویریږئ دَالله نه اوځمااطاعت کوئ، اونه غواړم څه ستاسو نه په تبلیغ باندی څه اجر،

إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٤٥﴾ أَتُتْرَكُونَ فِي مَا هَاهُنَا آمِنِينَ ﴿١٤٦﴾

ندې اجرځمامگرپه رب العالمین دې.آیاتاسوبه پریخودلې شئ په هغه نعمتونوکښې چه دلته په دنیاکښې دی په امن کښې.

فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿١٤٧﴾ وَزُرُوعٍ وَنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيمٌ ﴿١٤٨﴾ وَتَنْحِتُونَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا

په باغونواوچینوکښې.اوپه فصلونوکښې اوپه کجوروکښې چه میوی دَهغې تازه دې.اوتراش کوئ دَغرونونه کورونه

فُرِهِيْنَ ﴿۱۴۹﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿۱۵۰﴾ وَلَا تُطِيْعُوْٓا اَمْرَ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿۱۵۱﴾ الَّذِيْنَ

تکبرکونکی.پس اویریږئ د الله ﷻ نه او ما اطاعت وکړئ.او اطاعت مکوئ د امر د اسراف کونکو.هغه چه

يُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ وَلَا يُصْلِحُوْنَ ﴿۱۵۲﴾

فسادکوی په زمکه کښ او اصلاح نکوی.

﴿ كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ ﴾ دا پنځم دليل عقلی دې په ذکر د واقعې د حضرت صالح ﷺ سره او پديکښ هم تخويف دنيوی دې. حضرت صالح ﷺ قوم ثمود ته ليږلې شوې وو، او ثمود په اصل کښ ددې قوم جد اعلی وو چه د سام بن نوح په اولاد کښ وو. و دوئ د حجاز د شمالی مغربی طرف کښی د شام او د تبوک په لاره کښ آباد وو، د دوئ مرکز شهر نوم "حجر" وو، او دوئ هم الله ﷻ د مختلف دنيوی نعمتونو نه مالامال کړی وو،د لويو لويو عمرونو سره سره الله ﷻ دوئ ته په صنعت او حرفت کښی هم ترقی ورکړې وه خو دوئ د الله ﷻ ناشکری کوله او شرک ئې کولو. الله ﷻ دوئ ته حضرت صالح ﷺ مبعوث کړو .هغه دوئ ته د ټولو نه اول هغه پنځه خبرې اوکړې کومې چه نورو انبياء کرامو کړې وې.

امام رازی ﷫ فرمائی چه په قوم ( عاد ) باندې غالب طلب د لذات معنويه وو، چه طلب د علوې بقاء د علوې او تفرد په علوې سره وو او په قوم ثمود باندې غالب طلب د لذات حسيه وو يعنی ښه خوراکونه کول، ميوې خوړول ښه، ښه کورونه جوړول وغيره شو. نو ځکه حضرت صالح ﷺ دوئ ته زجر ورکړو به طلب د لذات حسيو باندې، او ورته ئې اوفرمائيلو چه ﴿ اَتُتْرَكُوْنَ فِيْ مَا هٰهُنَآ ﴾ نو استفهام دپاره دزجر دې، او ( ما ) موصوله ده ﴿هٰهُنَا ﴾ ورله صله ده او مراد پدې سره د دوئ علاقه ده، او يا ورنه مراد دنيا ده. او ﴿ءَامِنِيْنَ ﴾ حال دې د نائب فاعل د ﴿اَتُتْرَكُوْنَ﴾ نه، نو مقصد د آيت دا دې چه آيا ستاسو دا خيال دې چه تاسو به هميشه دپاره په دې دنيا کښ په امن سره پريخودلې شئ،د دنيا ددې نعمتونو يعنی چشمو، باغاتو، فصلونو او د کهجورو د ډکو غنچو

نه به تاسو همیشه دپاره فائدې اخلئ. تاسو ته به مرګ یا عذاب نه راځی ﴿ فِي جَنَّٰتٍ ﴾دا بدل دې د﴿فِي مَا هَٰهُنَآ ﴾نه،او تفصیل بعد الاجمال دې ،﴿ وَنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيمٌ ﴾دا تعمیم بعد التخصیص دې دپاره د کمال اظهار د فضیلت د کهجورې او ﴿ طلع ﴾ اطلاق په دوه معانیو باندې کیږی ،یو د کهجورې د ونې په څانګو په ویخونو کښ د کسورې په شان څیز را ښکاره شی چه په هغې کښ دننه نرو نرو دانو والاو ګې وی هغې کسورې ته ﴿ طلع ﴾ وئیلې کیږی. او دویم اطلاق چه شائع او کثیردې او مراد هم دې په نفس وګی او اولې میوې باندې کیږی. او اهل لغت فرمائی چه ، کهجورې میوه کله اول راښکاره شی هغې ته ﴿ طلع ﴾ وئیلې کیږی. بیا چه لږې غټې شی نو ﴿ خلال ﴾ ورته وئیلې کیږی. بیا ﴿ بلح ﴾ شی بیا ﴿ بسر ﴾ شی بیا ﴿ رطب ﴾ شی او بیا ﴿ تمر ﴾ شی او ﴿ هضیم ﴾ هغې نرمو کهجورو ته وئیلې کیږی چه نرمې وی او یو ل بل سره پیوستې وی،ده دینه علاوه دولس اقوال ددې په مصداق کښ دی. ﴿ وَتَنْحِتُونَ مِنَ ٱلْجِبَالِ ﴾دا عطف دې په ﴿ تترکون ﴾ باندې او په حیز د استفهام توبیخی کښی دې. او دویم زجر دې په فضول صنعتکارئ او په فضول کورونو جوړولو باندې، قوم ثمود به غرونو کنستل او لوې لوې بنګلې به ئې جوړولې﴿فَٰرِهِينَ ﴾دا مقصود بالزجر دې، او﴿فَٰرِهِينَ﴾دوه معنی دی.یوه معنی ئې ده تکبر کوونکی. یعنی غرونه کنستل او بنګلې ورنه جوړول بطور فخر او تکبر دی، او دویمه دا ده چه﴿فَٰرِهِينَ﴾په معنی د ﴿ حاذقین ﴾ سره دې،یعنی مهارت ښکاره کوونکی. نو د آیت مقصد دا دې چه تاسو خپل مهارت ښکاره کوونکی یئ. او پدیکښ اشاره ده چه پیشه او صنعت د انعاماتو د الله ﷻ نه ، دی ددینه نفع اغستل جائز دی ، بشرط ددې چه د ګناه ارتکاب ورسره نوی او بلا ضرورته نوی.

﴿ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴾ دویم ځلې امر په تقوی او اطاعت سره دې او د دینه مراد اطاعت دې په اعمالو کښی ﴿ وَلَا تُطِيعُوٓا۟ أَمْرَ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴾د﴿ٱلْمُسْرِفِينَ ﴾نه مراد هغه نهه کسان مشرکان دی چه د ثمودیانو مشران وو او سخت بد معاشان وو، او دوئ به خلک منع کولو د حضرت صالح ﷺ د اطاعت نه ، او په خپل اطاعت باندې به ئې خلک مجبوره کولو، نو مراد په ﴿ اسراف ﴾ سره د هغوئ

خپل کفر او شرک دې او په ﴿ ٱلَّذِينَ يُفۡسِدُونَ فِي ٱلۡأَرۡضِ ﴾سره بدمعاشی کول دی د هغوئ په نورو خلکو باندې او نور خلک کفر او شرک ته رابلل دی او﴿ وَلَا يُصۡلِحُونَ ﴾تاکید دې دپاره د بیان د کمال فساد د دوئ،چه د دوئ فساد بالکل خالص وو د اصلاح نوم او نشان هم پکښې نه وو .نو د آیت مقصد دا دې چه حضرت صالح ﷺ خپل قوم ته اوفرمائیلو چه کوم خلک شرک او کفر کوی په ملک او علاقه کښې فساد خوره وی او بدمعاشی کوی نو تاسو د هغوئ اطاعت مه کوئ.

| |
|---|
| قَالُوٓا اِنَّمَآ اَنۡتَ مِنَ الۡمُسَحَّرِيۡنَ ۝ مَآ اَنۡتَ اِلَّا بَشَرٌ مِّثۡلُنَا ۚ فَاۡتِ بِاٰيَةٍ اِنۡ كُنۡتَ |
| اووئیل هغوئ چه بیشکه ته ئی دسحرکړې شوؤنه ته خونه ئی مګرانسان ئی زمونږپه شان،نوراوړه څه معجزه کچرته ئی ته |
| مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ ۝قَالَ هٰذِهٖ نَاقَةٌ لَّهَا شِرۡبٌ وَّلَكُمۡ شِرۡبُ يَوۡمٍ مَّعۡلُوۡمٍ ۝ |
| دَرِشتنونه اووئیل صالح علیہ السلام دااوښه معجزه ده،دی لره برخه داوبوده اوتاسی لره برخه داوبودورځی معلومی ده. |
| وَلَا تَمَسُّوۡهَا بِسُوۡٓءٍ فَيَاۡخُذَكُمۡ عَذَابُ يَوۡمٍ عَظِيۡمٍ ۝فَعَقَرُوۡهَا فَاَصۡبَحُوۡا نٰدِمِيۡنَ ۝ |
| اومه رسوئ دیته تکلیف ورنه اوبه نیسی تاسوعذاب دورځی لوئ،نو زخمی ئی کړه هغه نوبیاشول نادمه پخپل عمل |
| فَاَخَذَهُمُ الۡعَذَابُ ؕ اِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ؕ وَمَا كَانَ اَكۡثَرُهُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ۝ |
| پس اونیولودوئ لره عذاب،بی شکه پدی کښی خامخادلیل دعبرت دې خوندی اکثرخلق ایمان راوړونکی |
| وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الۡعَزِيۡزُ الرَّحِيۡمُ ۝ |
| اوبی شکه رب ستاخامخاهغه غالب دې رحم کونکې دې. |

﴿قَالُوٓاْ إِنَّمَآ أَنتَ﴾دا د قوم د طرف نه حضرت صالح ﷺ ته جواب دې او د﴿ٱلۡمُسَحَّرِينَ﴾دوه معنی دی . یوه دا چه دا ماخوذ دې د ( سحر ) نه نو مطلب ئې دا دې چه په تا باندې ډیر سخت سحر

کړې شویدې حتی چه عقل دې مغلوب شویدې ،او یا د (سَحَرَ ) نه دې . او ( سحر ) وئیلې کیږی تریخی یا ( پهپړو ) ته ،او دا کنایه ده د انسان او د بشر نه نو مقصد ئی دا دې چه ته انسان او بشر ئې، خوراک او څکاک ته محتاجه یئ نو څرنګه ته نبی او پیغمبر شوې .﴿ مَآ أَنتَ إِلَّا بَشَرٌ﴾به ما قبل آیت کښې د اولې توجیه مطابق دا علت دې د هغې دپاره، چه دوئ صالح ﷺ ته اوئیلو چه په تا باندې سحر څکه شویدې چه زمونږ پشان بشر ئې او دعوه د نبوت کوی، او د دویمې توجیه مطابق دا تاکید دې دماقبل دپاره،بهر تقدیردې بیوقوفانو خیال دا وو چه پیغمبر به بشر نوی﴿ فَأْتِ بِـَٔايَةٍ ﴾ نو دوئ د حضرت صالح ﷺ نه معجزه طلب کړه . چه کچرې ته په دې خپلې دعوې کښې رېښتونې ئې نو مونږ ته څه نشانی اوښایه او روایاتو کښې دی چه ثمودیانو په خپل مینځ کښې مشوره اوکړه چه مونږ به د صالح ﷺ نه د داسې معجزې طلب اوکړو چه د هغې پیش کول به د دده په وس او طاقت کښې نوی،نو د مشورې مطابق دوئ حضرت صالح ﷺ ته یو کاڼې او د خود لو چه د دینه د لسو میاشتو بلا ربه او ښه پیدا کړه چه زمونږ په مخامخ د هغې نه بچې پیدا شی . حضرت صالح ﷺ دوه رکعته مونځ اوکړو او د الله ﷻ نه ئې سوال اوکړو نو الله ﷻ د هغوئ د فرمائش مطابق د هغه کاڼی نه بلاربه اوښه پیدا کړه چه څه وخت ورستو بیا د هغوئ په مخامخ لنګه شوه نو قوم چه اوکتلو چه حضرت صالح ﷺ دا مطالبه هم پوره کړه نو ځنې کسانو ایمان راوړو او اکثرو ایمان رانوړو، بلکه ځنې کسانو اراده اوکړه چه دا اوښه هلاکه کړی،نو حضرت صالح ﷺ دوئ ته څو خبرې اوکړې، یو ئی ورته دا اوفرمائیلو چه﴿ هَـٰذِهِۦ نَاقَةٌ ﴾ چه ستاسو د فرمائش مطابق دا ناقه او اوښه ده . دویم دا چه دې اوښې به ډیر زیات خوراک او څکاک کولو، او د دوئ یوه چینه وه چه د هغې نه به ئې ځاروی اوبه کولو ،حضرت صالح ﷺ د الله ﷻ په حکم سره تقسیم اوکړو چه﴿ لَّهَا شِرْبٌ وَلَكُمْ ﴾چه یوه ورځ به ددې چینې نه دا اوښه اوبه څکی او یوه ورځ به د قوم ځاروی اوبه څکی،او دریم ئې ورته دااوفرمائیلو چه﴿ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ﴾یعنی دې اوښې ته تکلیف اونه رسوئ، اوپدې قوم کښې ځنې بدمعاشان وو چه هغوئ اراده اوکړه چه مونږ دا هلاکه کړو،نو صالح ﷺ ورته اوفرمائیلو چه دیته تکلیف ورنکړئ کچرې تاسو دیته تکلیف اورسولو نو سخت عذاب به درباندې راشی .﴿ فَعَقَرُوهَا ﴾ عقر وئیلې کیږی د (خپو پریکولو ) ته ، نو دوئ د حضرت

صالح ﷺ خبره او نه منله او اول ئې د هغې اوښې خپې پرېکړې او بیا ئې ذبحه کړه. او دا کار په دوئ کښې صرف یو کس کړې وو چه د هغه نوم قدار بن سالف وو. او په حدیث کښې دی چه دې د دغې قوم د ټولو نه لوئ شقی، او بدبخته کس وو. خو هر کله چه ټول قوم دده پدې عمل باندې راضی وو، نو ددې وجې نه نسبت د عقر ټولو ته اوشولو، او دوئ دا اوښه د منګل (سه شنبې) په ورځ مړه کړې وه او د بده (چهارشنبې) په ورځ په دوئ باندې د عذاب شروع اوشوه نو په اول ورځ یعنی د بده په ورځ د دوئ مخونه، زیړ شو د جمعرات په ورځ د دوئ مخونه سره شو او د جمعې په ورځ تور شو. او د هفتې (خالی) په ورځ عذاب راغې او ټول ئې هلاک کړل ﴿ فَأَصْبَحُوا نَـٰدِمِينَ ﴾ یعنی د عذاب د نزول په وخت کښې دوئ په خپل عمل باندې سخت پښیمانه شو ﴿ فَأَخَذَهُمُ ٱلْعَذَابُ ﴾ دوئ ته د دوئ ندامت څه فائده ورنکړه او په عذاب کښې ګرفتار شول. او که څوک اشکال اوکړې چه ندامت خو په حقیقت کښې توبه ده. نو د ندامت باوجود بیا ولې په دوئ باندې عذاب راغې؟ نو جواب ورنه دا دې چه ندامت په دوه قسمه دې. یو ندامت د تائب دې او بل ندامت د خائف دې، نو د دوئ ندامت د خوف وو د عذاب عاجل نه، او ندامت د توبې نوو. او دویم جواب دا دې کچرې تسلیم کړې شی چه د دوئ ندامت د توبې وو خو دا ندامت په داسې وخت کښې وو، چه هغه وخت د توبې د قبلیدلو نوو بلکه د دوئ ندامت په وخت د معاینې د عذاب کښې وو. اوباقی د نازل شوی عذاب تفصیل په سورة عراف او هود کښې تیر شویدې.

| |
|---|
| كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٦٠﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ لُوطٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٦١﴾ إِنِّي |
| تکذیب کړې وو قوم لوط د رسولانو. کله چه اووئیل دوئ ته ورور د دوئ لوط علیه السلام آیا تاسو نه یریږئ (د الله نه) بې شکه زه |
| لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٦٢﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٦٣﴾ وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ |
| ستاسو لپاره رسول یم امانتګر یم. نو اویریږئ د الله ﷻ نه او زما اطاعت اوکړئ. او زه نه غوارم ستاسو نه په تبلیغ باندې څه اجر. |
| إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٦٤﴾ أَتَأْتُونَ الذُّكْرَانَ مِنَ الْعَالَمِينَ ﴿١٦٥﴾ وَتَذَرُونَ مَا خَلَقَ |
| ندې اجر زما ګر په رب العالمین دې. آیا راځې تاسو نارینه وُته د خلقو نه او پریدئ هغه چه پیدا کړیدی |

لَكُمْ رَبُّكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ ۭ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ عٰدُوْنَ ﴿١٦٦﴾ قَالُوْا لَىِٕنْ لَّمْ تَنْتَهِ

تاسو لپاره رب ستاسو د ښځو نه بلکه تاسو قوم تجاوز کونکي يئ دوی ورته اووئيل قسم دي کچرته منع نه شې ته

يٰلُوْطُ لَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُخْرَجِيْنَ ﴿١٦٧﴾ قَالَ اِنِّيْ لِعَمَلِكُمْ مِّنَ الْقَالِيْنَ ﴿١٦٨﴾ رَبِّ

اې لوطه نو شې به خامخا د وباسلو شوؤنه .لوط عليه السلام اووئيل بيشکه څه عمل ستاسو لره د نفرت کونکو نه يم اې ربه

نَجِّنِيْ وَاَهْلِيْ مِمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٦٩﴾ فَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ ﴿١٧٠﴾ اِلَّا عَجُوْزًا

نجات را کړه ماته او اهل ځماته د هغې نه چه دوی ئې کوي نو نجات ورکړو مونږ هغه ته او اهل د هغه ته ټولو ته مګر بوډئ ښځه

فِي الْغٰبِرِيْنَ ﴿١٧١﴾ ثُمَّ دَمَّرْنَا الْاٰخَرِيْنَ ﴿١٧٢﴾ وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ فَسَاۤءَ مَطَرُ

په باقي پاتې کيدونکو کښې وه، بيا هلاک کړل مونږ باقي نور، او راؤ مورولو په دوی باران «د کاڼو» پس بد وو باران

الْمُنْذَرِيْنَ ﴿١٧٣﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۭ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٧٤﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ

د يرولو شوؤ بې شکه په دې کښې دليل د عبرت دې، خو نه دی اکثر خلق ايمان راؤړونکي. او بې شکه رب ستا خامخا

لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿١٧٥﴾

هغه غالب دې رحم کونکې دې

﴿ كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوْطِ ﴾ دا شپږم دليل عقلي دې په ذکر د واقعې د لوط عليه السلام سره حضرت لوط عليه السلام د حضرت ابراهيم عليه السلام وراره وو، د هاران بن آزر ځوې وو، اصل وطن ئې ‹ بابل › مغربي عراق مصر ته قريب علاقه وه، د حضرت ابراهيم عليه السلام سره ئې هجرت کړې وو شام ته، حضرت ابراهيم عليه السلام د مشورې مطابق په کنعان کښې پاتې شو، او لوط عليه السلام ئې سدوم ته اوليږلو، اوبيا الله تعالى ده

ته نبوت هم ورکړو او اهل سدوم دپاره ئې نبي مقرر کړو. پدې خلکو کښې د شرک نه علاوه، خلاف فطرت بد کاری (اغلام بازی) پکښې هم عامه وه، نو لوط ﷺ دوئ ته دعوت ورکړو او په دعوت کښې ئې هغه پنځه اصولی خبرې اول ذکر کړې کومې چه نورو انبياؤ ذکر کړې وې﴿ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ ﴾د (اخ) نه مراد، نه نسبی ورور دې او نه دينی. ځکه چه لوط ﷺ د سدوم د خلکو د قوم نه هم نوو، او د هغوئ سره ئې نسبی رشته نوه، ځکه چه لوط ﷺ د عراق وو، او دغه شان په دين کښې هم ورسره شريک نوو، بلکه د (اخ) نه مراد يا وطنی ورور دې. ځکه چه لوط ﷺ د دوئ سره په علاقه کښې پاتې کيدلو، او يا ورته (اخ) پدې اعتبار سره وئيلې شويدی چه لوط ﷺ د دې قوم نه واده کړې وو، او دا قوم ئې سخرګنئ وه. او د سخرګنئ اولاد په منزله د ورونړو وی. او هم دا وجه ده چه په سورة اعراف کښې د لوط ﷺ سره (اخوهم) ندې ذکر شوې، نو هلته د اصل اعتبار کړې شويدې، او دلته ورسره (اخوهم) ذکر شو نو دلته اعتبار يا د سخرګنئ شويدې –او يا د مجاورت فی الوطن شويدې﴿ أَتَأْتُونَ الذُّكْرَانَ ﴾د ازجر دې هغوئ ته د نارينو سره په بد کارئ باندې يعنې تاسو څومره، بدکار کوئ په ټول عالم کښې چه د نارينو نه او د هلکانو نه خپل جنسی خواهش پوره کوئ نو﴿ مِنَ الْعَالَمِينَ ﴾نه مراد يا انسانان دی. يعنی په انسانانو کښې دا کار بل چا نوو کړې بلکه ابتداء ئې د لوط ﷺ قوم کړيده او يا ورنه مراد ټول مخلوقات دی که هغه انسانان دی يا نور حيوانات دی.

**فائده**: بعضو اهل علمو ليکلی دی چه خنزير په ټولو مخلوقاتو او حيواناتو کښې بدترين او ذليل ترين دې، وجه دا ده چه هغه (ديوث) دې د هغه په مخامخ د هغه مؤنث سره که بل ځناور جماع کوی نو دې پرې نه خفه کيږی البته که دده سره څوک بد کاری کوی نو دې پرې خفه کيږی، او ځان ته ئې نژدې کيدلو ته نه پريږدی. نو هغه انسان د خنزير نه هم زيات بې غيرته او ذليل دې چه د هغه سره بدکاری کيږی او دې نه خفه کيږی ﴿ وَتَذَرُونَ مَا خَلَقَ لَكُمْ ﴾يعنی ستاسو بيبيانې چه الله ستاسو د خواهش پوره کولو دپاره پيدا کړيدی هغه تاسو پريخی دی. ﴿ مِّنْ أَزْوَاجِكُم ﴾ من بيانيه دې، او دا بيان دې د ﴿مَا خَلَقَ﴾دپاره، او يا (من) تبعيضيه دې، او د ﴿ أَزْوَاجِكُم ﴾ نه مراد بعضې حصه د جسم

د ښيښانو ده چه هغه د (قبل) حصه ده. نو د آيت مطلب دا دې چه ستاسو د ښيښانو د جسم بعضې هغه حصه چه ستاسو د خواهش پوره کولو دپاره الله پيدا کړيده نو تاسو هغه پريخې ده اود دبر طرف نه تاسو خپل خواهش پوره کوئ. او دا آيت دليل دې پدې چه خپلې ښی ښی سره لواطت کول حرام دی، او کوم نسبت چه حضرت ابن عمر ﷺ ته د جواز شويدې نو هغه نسبت غلط دې.

﴿ بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ ﴾ "بل" د ترقی دپاره دا. او﴿عَادُونَ﴾ نه مراد يا په شهوت پوره کولو کښې تجاوز مراد دې يعنی په شهوت پوره کولو کښې تاسو په ټولو مخلوقاتو کښې زيات تجاوز کونکی ئی چه حلال او حرام محل نه ګورئ. او يا ورنه په مطلق ګناه کښې تعد ی او تجاوز مراد دې . يعنی ستاسو صرف دا يو ګناه ندې، بلکه د دينه علاوه نور هم تاسو په ډيرو ګناهونو کښې د حد نه تجاوز کړيدې،او قوم لوط کښې د اغلام بازئ نه علاوه نور هم ډير ګناهونه موجود وو،لکه کفر او شرک شو. مارغانو ساتل، د هغې جنګونه کول، شپيلئ وهل، کانړی ويشتل، د ميلمنو بې عزتی کول او ږيری خرئيل وغيره شو، او د بعضی اهل علمونه مروی دی چه د ږيری خرئيلو ابتداء د لوط ﷺ قوم نه شويده. او وجه ئې دا وه چه کله به يو هلک وروکې وو نو خلکو به ورسره بدکاری کوله خو چه کله به غټ شو او به مخ به ئې ږيره راغله نو بيا ورته خلکو توجه نه ورکوله. او دې به عادی وو نو شيطان دوئ ته مشوره ورکړه چه تاسو ږيری خرې ئې نو داسې به ښکاری لکه هلکان،نو خلک به درته توجه درکوی چنانچه دوئ دا قبيح عمل شروع کړو. نو په﴿بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ عَادُونَ ﴾ کښې اشاره ده ددوئ دې بدعملونو ته ﴿ قَالُواْ لَئِن لَّمْ ﴾دوئ داده‌مکی ورکړه چه کچرې ته د خپلو خبرو نه منع نشوی نو ملک بدر به کړې شی او د علاقې نه به اويستلې شی. او په﴿مِنَ ٱلْمُخْرَجِينَ ﴾ کښې اشاره ده چه دې بد کرداره قوم نورانبياء کرام او يا (سليم الفطرت) نيکان خلک د وعظ او نصيحت د وجې نه ويستلی وو﴿ قَالَ إِنِّي لِعَمَلِكُم ﴾دا د لوط ﷺ جواب دې د دوئ دهمکئ او دباؤ په مقابلې کښې؛چه څه ستاسو د دې عمل نه سخت نفرت کونکې يم. ستاسو پدې علاقه کښې پاتې کيدلو څه خواهش نه لرم ،او﴿مِّنَ ٱلْقَالِينَ ﴾ د (قلی يقلو) نه دې په معنی د بغض لرونکې او دښمنی لرونکې او دلته (القالی) او نوئيلې شو بلکه (من القالين) او وئيلې شو څکه چه پديکښې

مبالغه زیاته ده او بیا هرکله چه د لوط ﷺ یقین پیدا شو چه دا قوم ایما ن نه راوړی او خپل بدعملونه نه پریږدی . نو د خپل ځان او د خپل اهل د پاره ئې د عاد نجات اوکړه چه دا په حقیقت کښې بد دعا وه د قوم دپاره نو او ئی فرمائیلو چه﴿ رَبِّ نَجِّنِي وَأَهْلِي ﴾یعنی اې ربه ما او خما کورنئ د دوئ د دې بد عملونو او د هغې دسزا نه محفوظ کړې

﴿ فَنَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ ﴾دا ذکر د قبولیت د دعا د لوط ﷺ دې .یعنی مونږ دده دعا قبوله کړه په قوم باندې د عذاب فیصله اوشوه او د هغې عذاب نه مونږ ده ته او دده اهل ته چه کوم مؤمنان وو. نجات ورکړو ، او د اهل اطلاق اګر چه په عام معنی باندې هم کیږی لیکن دلته ورنه مراد خاص اهل دې،یعنی د خپلې کورنئ خلک وجه دا ده چه په لوط ﷺ باندې د خپلې کورنئ د خلکو نه علاوه بل چا ایمان نوو راوړې او په هغوئ کښې هم د لوط ﷺ بی بی ایمان نه راوړې، بلکه هغه کافره او د قوم جاسوسه وه . نوځکه اوئیلې شو چه﴿ إِلَّا عَجُوزًا ﴾ د﴿إِلَّا عَجُوزًا ﴾ نه مراد د حضرت لوط ﷺ بی بی ده ،او تعبیر ورنه په ( عجوز ) سره دې دپاره اوشو چه تنبیه راشی پدې چه دا تر اخیر وخته پورې په کفر باندې قائمه وه . او په معاصیو کښې مبتلا وه . اود ﴿ فِي الْغَابِرِينَ ﴾ دوه معانی دی .یوه معنی ئې ده تیر شوی او دویمه معنی ئې ده باقی پاتې شوی، دلته ورنه دویمه معنی مراد ده . یعنی د لوط ﷺ بی بی په عذاب کښې باقی پاتې کیدونکو خلکو نه وه چه هغې ته نجات میلاؤ نشو

﴿ثُمَّ دَمَّرْنَا ﴾ ( تدمیر ) وئیلې کیږی سخت قسم هلاکت ته . ﴿ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم ﴾دا تفصیل د ( تدمیر) دې،او د( مطر ) نه مراد د کاڼړو باران دې،او د لوط ﷺ په قوم باندې د درې قسمه عذابونو تذکره په قرآن مجید کښې راغلیده (۱) صیحة (۲) د کاڼړو باران (۳) د علاقې الټه کیدل، نو دا درې قسمه عذابونه الله ﷻ په دوئ باندې جمع کړی وو، فرشتې د دوئ علاقه د وزر په یو څوکه کښې اوچته کړه حتی چه اسمان ته ئې قریب کړه او بیا پرې.هلته د کاڼړو باران اوشو اوفرشتې پرې چیغه ( صیحه ) هم اوکړه او بیا ئې الټه طرف را اوغورځوله او بعض مفسرین فرمائی چه د کاڼړو باران په هغه خلکو شوې وو چه د علاقې نه بهر وو،او کوم خلک چه په علاقه کښې داخل وو نو په هغوئ باندې صیحه او علاقه الټه کړې شویده.

كَذَّبَ اَصْحٰبُ لْـَٔيْكَةِ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٧٦﴾ اِذْ قَالَ لَهُمْ شُعَيْبٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿١٧٧﴾ اِنِّيْ

تکذیب کړي وو یارانو د ځنګل والؤ د رسولانو .کله چه اوونیل دوئ ته شعیب علیه السلام چه آیا تاسو نه یریږئ.بې شکه ځه

لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ﴿١٧٨﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿١٧٩﴾ وَمَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ

ستاسو لپاره رسول یم امانتګر یم.پس او یریږئ د الله ﷻ نه او ځما اطاعت او کړئ.او ځه نه غواړم ستاسو نه په تبلیغ باندې ځه اجر.

اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٨٠﴾ اَوْفُوا الْكَيْلَ وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُخْسِرِيْنَ ﴿١٨١﴾ وَزِنُوْا

ندي اجر ځما مګر په رب العالمین دي پوره ورکوئ پیمانه او مه کیږئ دکم ورکونکو نه او تول کوئ

بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيْمِ ﴿١٨٢﴾ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ اَشْيَآءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ

په تله برابره باندې او کم مه ورکوئ خلقو ته څیزونه ددوئ او مه ګرځئ په زمکه کښې

مُفْسِدِيْنَ ﴿١٨٣﴾ وَاتَّقُوا الَّذِيْ خَلَقَكُمْ وَالْجِبِلَّةَ الْاَوَّلِيْنَ ﴿١٨٤﴾ قَالُوْٓا اِنَّمَآ اَنْتَ

فسادکونکي. او و یریږئ د هغه الله ﷻ نه چه تاسوئ پیدا کړي يئ او مخلوق مخکني دوئ او وئیل بیشکه ته

مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ ﴿١٨٥﴾ وَمَآ اَنْتَ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا وَاِنْ نَّظُنُّكَ لَمِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿١٨٦﴾

دسحر کړي شوؤنه ئې سحر در باند شوید ي اونه ئې ته مګر انسان ئې زمونږ په شان او بیشکه مونږ ګمان کوو په تا چه ته د دروغژنو نه ئې

فَاَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا مِّنَ السَّمَآءِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿١٨٧﴾ قَالَ رَبِّيْٓ اَعْلَمُ

پس راواغورځوه په مونږ باندې ټکړه د آسمان نه که چرته ئې ته د رښتنونه.او وئیل شعیب علیه السلام چه رب ځما ښه عالم دي

بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿١٨٨﴾ فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ ۚ اِنَّهٗ كَانَ

به هغه عملونو چه تاسو ئې کوئ.نو دوئ ئې تکذیب او کړو ،پس او نیولو دوئ عذاب د ورځې د سائبان بې شکه دغه وو

| |
|---|
| عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ۝۱۸۹ إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۭ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝۱۹۰ وَاِنَّ رَبَّكَ |
| عذاب دورځی لوئي.بې شکه پدی کښ دلیل دې (دعبرت)،خوندی اکثرخلق ایمان راوړونکی.اوبې شکه رب ستا |
| لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۝۱۹۱ |
| خامخاهغه غالب دې رحم کونکې دې |

﴿كَذَّبَ أَصْحَٰبُ لَـْٔيْكَةِ﴾ دا اووم دلیل نقلی دې په ذکر د واقعې د حضرت شعیب ﷺ سره .
شعیب ﷺ ته خطیب الانبیآء وئیلې کیږی . د پلار نوم ئی میکیل بن یشجر وو د مدین علاقې سره
ئې تعلق وو ،او " مدین " جدا مجد د دوئ وو. او (مدین) د حضرت ابراهیم ﷺ بچې وو ، حضرت
شعیب ﷺ چه کوم قوم ته لیګلې شوې وو د هغوئ تعارف په قرآن مجید کښ په دوه نومونو سره
شویدې (۱) اهل مدین (۲) اصحاب الایکه، او پدیکښ اختلاف دې، چه دا دواړه جدا جدا قومونه
دی اوکه یا د یو قوم دپاره دوه نومونه دی بعض مفسرین لکه حضرت قتادة رحمه الله وغیره فرمائی چه
دا دوه جدا جدا قومونه وو،حضرت شعیب ﷺ اول مدین ته مبعوث وو ، چه کله اهل مدین په
عذاب د صیحې سره هلاک کړې شو نو بیا ﴿أَصْحَٰبُ لَـْٔيْكَةِ﴾ ته مبعوث کړې شو او هرکله چه
﴿أَصْحَٰبُ لَـْٔيْكَةِ﴾ انکار اوکړو نو الله ﷻ دوئ ته عذاب د ﴿يَوْمِ ٱلظُّلَّةِ﴾ ورکړو ،نو د مدین خلک د
حضرت شعیب ﷺ نسبی رونړه وو ، حضرت شعیب ﷺ دوئ سره په نسب کښې شریک وو ، او
اصحاب الایکه نسب جدا وو،نو د دې وجې نه قرآن مجید کښې چه کله هم د اهل مدین واقعه ذکر
کیږی نو هلته د حضرت شعیب ﷺ سره لفظ د ﴿أَخُوهُمْ﴾ ذکر کیږی . لیکن ځنې مفسرین فرمائي
چه اهل مدین او اصحاب الایکه دواړه یو قوم وو ، او اصحاب الایکه ئې مذهبی نوم وو ، او دوئ
ته اصحاب الایکه ځکه وئیلې کیدلو چه (ایکه) ځنګل او بنړ ته وئیلې کیږی، نو دوئ په علاقې سره
نزدې ځنګل وو او ونې وې دوئ به د هغې ونو عبادت کولو نو د دې وجې نه ( اصحاب الایکه ) د دوئ
مذهبی نوم اوګرځیدلو نو کله چه هم د دوئ تعارف په ( اصحاب الایکه ) سره یعنی مذهبی نوم سره

کیږي نو هلته د حضرت شعیب ﷺ سره لفظ د ﴿أَخُوهُمْ﴾نه ذکرکیږي.ځکه چه شعیب ﷺ د دوئ سره په مذهب کښې شریک نوو . البته چه کوم ځائ کښې د دوئ تعارف به (اهل مدین) یعنې د دوئ د نسب په نوم سره اوشي نو هلته د حضرت شعیب ﷺ سره لفظ د ﴿أَخُوهُمْ﴾ذکر کیږي ځکه چه شعیب ﷺ د دوئ سره په نسب کښې شریک وو ، او باقي عذابونه متعدد ذکر کیدل یعنې د اصحاب الایکه دپاره عذاب ﴿يَوْمِ الظُّلَّةِ﴾او د اهل مدین سره عذاب د (صیحې) ذکر کیدل دلالت نه کوي په تعدد ،او په تغایر د قومینو باندې، ځکه چه یو قوم ته متعدد عذابونه راتلل بعیده خبره نده مزید تفصیل په سورة اعراف کښې تیر شویدې.

﴿إِنِّي لَكُمْ﴾حضرت شعیب ﷺ هم خپل قوم ته اول هغه پنځه اصولي خبرې اوکړې کومې چه نورو انبیاء کرامو کړې وې﴿أَوْفُوا الْكَيْلَ﴾د حضرت شعیب ﷺ په قوم کښې د شرک سره بل بدترین جرم حقوق العباد یا مال کول وو ،چه ناپ تول کښې به ئې کمی کوله . نو حضرت شعیب ﷺ دوئ ته نصیحت اوکړو چه﴿الْكَيْلَ﴾یعنې ناپ پوره کوئ. اوکمې پکښې مه کوئ. ﴿وَزِنُوا بِالْقِسْطَاسِ﴾ (قسطاس) یا د عربي لفظ دې ماخوذ دې د (قسط) نه وئیلې کیږي عدل او انصاف نه ، او یا د رومي نه معرب دې او په لغت د روم کښې (قسطاس) انصاف ته وئیلې کیږي ، نو حضرت شعیب ﷺ دوئ ته اوئیلو چه (تله) او دغه شان نور الات د تول صحیح استعمالوئ او د انصاف نه کار اخلئ ﴿وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ﴾ "بخس" وئیلې کیږي نقصان ته په حق کښې،برابره خبره ده که هغه ناپ تول کښې کمی کول وی یا په نورو حقوقو کښې او دغه شان که په حقوق مالیه کښې نقصان کول وی اویا په نورو حقوقو کښې لکه د بل چا عزت ، آبرو ته نقصان رسول شو ، او دا دلیل دې پدې چه هر ذی حق ته حق ورکول ، او هر انسان ته د هغه د شان عزت ورکول ضروري دی او کمی پکښې کول جائز ندی. او دغه شان ملازم لپاره خپل د ملازمت متعین او مقرره وخت کښې کمې کول جائز ندی.﴿وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ﴾مرادورنه کفر،شرک،قتل وغارت او ډاکې کول دی.﴿وَاتَّقُوا الَّذِي﴾ دا په دویم خلې امر په تقوی سره دې، او مراد ورنه ځان بچ کول دی دخیانت وغیره نه او ﴿الَّذِي

خَلَقَكُمْ ﴾ يعنى موصول سره د صلې نه په منزله د علت دې د تقوى د پاره يعنى د هغه نه او ويريږئ چه تاسو ئې پيدا كړى يئ او ستاسو نه مخكښ خلك ئې پيدا كړى وو او ﴿وَٱلْجِبِلَّةَ﴾په اصل كښى فطرت او طبيعت ته وئيلې كيږى ليكن بيا ئې اطلاق په افرادو د مخلوقاتو باندې شويدې. او د ابن عباس ﷺ نه مروى دى چه د دينه مراد هغه جماعت دې چه كم از كم په لس زرو ( ۱۰۰۰۰ ) افرادو باندې مشتمل وى. او هر كله چه ﴿وَٱلْجِبِلَّةَ﴾معنى جمع ده نو ﴿ٱلْأَوَّلِينَ﴾صفت ورله هم جمع راوړې شو او په دېكښ اشاره تخويف دنيوى ته هم ده، چه حضرت شعيب ﷺ دوئ ته تنبيه وركړه چه كوم ذات چه تاسو ئې پيدا كړى يئ.او ستاسو نه مخكښى نور ډير مضبوط قومونه ئې پيدا كړى وو لكه قوم عاد وغيره شو چه د ( من اشد منا قوة ) نعره ئې لګولې وه.خو الله ﷻ نيست و نابود كړو نو دغه شان الله ﷻ به تاسو هم هلاک كړى. ﴿ قَالُوٓاْ إِنَّمَآ أَنتَ ﴾په قوم باندې د حضرت شعيب ﷺ نصيحت هيڅ اثر اونكړو بلكه هغوئ الټه په حضرت شعيب ﷺ باندې اعتراض اوكړو چه ته چه د نبوت دعوى كوې نو د دې مطلب دا دې چه په تا باندې جادو كړې شويدې ته ( مسحور ) او ( مجنون ) ئې ﴿وَمَآ أَنتَ إِلَّا بَشَرٌ﴾دا دويم اعتراض دې چه ته زمونږ پشان انسان ئې په مونږ باندې دې څه فوقيت نيشته دې نو څرنګه ته پيغمبر شوې ؟او داسې خبرې قوم ثمود هم خپل پيغمبر حضرت صالح ﷺ ته كړې وې. چه آيت نمبر (۱۵۳ ، ۱۵۴ ) كښ تير شويدى.خو فرق دا دې چه هلته د دواړو جملو او اياتونو په مينځ كښى ( واو )نو واو دلته ( واو ) شته دې. وجه دا ده چه ( واو ) دلالت په مغايرت باندې كوى نو كوم ځائې كښى چه د دوه جملو او د دوو څيزونو وحدت مقصود وى نو هلته واو نشى ذكر كولې او په كوم ځائ كښى دوه مستقل امرين ذكر كول مقصود وى نو هلته بيا ( واو ) راوړې شى نو چونكه د حضرت صالح ﷺ په واقعه كښ د ثموديانو مقصود وحدت وو. او دوه امور په منزله د يو امر وو نو ځكه هلته ( واو ) ذكر نكړې شو. او د حضرت شعيب ﷺ په واقعه كښى اصحاب الايكه مقصود دوه متنافين صفتونه ذكر كول مقصود وو چه تسحير او بشريت دواړه منافى صفتونه دى د نبوت سره نو څرنګه ته دنبوت دعوى كوې﴿وَإِن نَّظُنُّكَ ﴾ يعنى مونږ په تا باندې ګمان د ريښتونى نشو كولې بلكه ته دروغژن ئې، په مذهب د بصريانو باندې ( ان ) مخففه

عن المثقله دي اسم ئې مخذوف دې چه (ه)ضمير دې او ﴿ لَمِنَ ٱلۡكَٰذِبِينَ ﴾کښې لام فارقه دې او په مذهب د کوفیانو باندې (ان) نافیه دې او (لام) په ﴿ لَمِنَ ٱلۡكَٰذِبِينَ ﴾کښې په معنی د (الا) سره دې بهر تقدیر دوئ حضرت شعیب ﷺ ته نسبت د درواغو اوکړو،نو ګویا چه دوئ حضرت شعیب ﷺ باندې درې اعتراضات اوکړل . (بشر) کیدل، مهجور کیدل او دروغ وئیل (العیاذبالله).

﴿ فَأَسۡقِطۡ عَلَيۡنَا﴾قوم د حضرت شعیب ﷺ په تکذیب کښې نوره مبالغه اوکړه او حضرت شعیب ﷺ ته ئې چیلنج ورکړو چه کچرې ته په خپلې دعوې د نبوت کښې رینښتونې ئې نو مونږ باندې د عذاب په طور اسمان ټکړې ، ټکړې را اوغورځوه او مونږ هلاک کړه

﴿ قَالَ رَبِّيٓ أَعۡلَمُ ﴾ حضرت شعیب ﷺ دوئ ته جواب ورکړو چه عذاب راویستل ځما په قدرت او اختیار کښې ندی ستاسو بد عملونو نه . ځما رب ښه خبر دې هغه تاسو ته کله سزا درکوی اوکله په تاسو باندې عذاب راولی ،دا دهغه خپل اختیاراوواک دې،او ځماپه ذمې باندې صرف تاسو ته تبلیغ کول وو﴿ فَكَذَّبُوهُ﴾دا په معنی د﴿استمروا علی تکذیبهم﴾سره دې ځکه چه په نفس تکذیب باندې چاته هم عذاب ندې راغلې، بلکه په استمرار د تکذیب سره عذاب راغلیدې

﴿ فَأَخَذَهُمۡ عَذَابُ يَوۡمِ ٱلظُّلَّةِ ﴾د حضرت ابن عباس ﷺ د ﴿يَوۡمِ ٱلظُّلَّةِ ﴾ عذاب تفصیل داسې مروی دې چه الله ﷻ په دوئ باندې د جهنم د دروازو نه یوه دروازه پرانستله، نو دوئ باندې سخته ګرمی مسلطه شوه دوئ ته نه په سورې کښې آرام میلاویدلو . او نه په اوبو کښې، نو دوئ تهه خانو ته ننوتلو ، هلته نوره زیاته ګرمی وه . حتی چه قریب ځنګل طرف ته وریځ را اوچته شوه او یخه سیلئ راغله نو ټولو یو بل ته اوازونه اوکړل او ټول هلته راجمع شول نو د وریځې نه پرې اور راغې او ټول مجرمان هلاک شول .

**فائده** : کوم علماء چه فرمائی چه (اصحاب الایکه) او (اهل مدین) دواړه جدا جدا قومونه دی نو هغوئ استدلال کړیدې پدې جدِا نوعیت د عذابونو سره چه اصحاب الایکه ته عذاب د﴿يَوۡمِ

ٱلظُّلَّةِ ﴾ ورکړې شوې وو. او اهل مدين باندې عذاب د (صيحې) او د (رجفې) راغلې وو. ليکن کوم اهل علم چه فرمائي چه دواړه جدا قومونه ندي بلکه د يو قوم دپاره دوه نومونه دی. يو نوم ئې نسبي دې او بل ئې مذهبي نوم دې، او په دوئ باندې درې قسمه عذابونه راغلي وو. رجفه يعنې زلزله پرې راغله او بيا پرې صيحه راغله او بيا ور باندې د اسمان نه اور راغلې او اوئې سوزولو او په يو قوم باندې د متعدد نوعيت والا عذابونه راتلل مستبعده خبره نده (والله اعلم).

| |
|---|
| وَإِنَّهُ لَتَنْزِيلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۞ نَزَلَ بِهِ الرُّوْحُ الْاَمِيْنُ ۞ عَلٰى قَلْبِكَ |
| او بې شکه دا قرآن نازل کړې شويدې د رب العالمين د طرفه خکنه راوړيدې دا قرآن روح جبرئيل چه امانتګر دې په زړه ستا |
| لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُنْذِرِيْنَ ۞ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِيْنٍ ۞ وَإِنَّهُ لَفِيْ زُبُرِ الْاَوَّلِيْنَ ۞ |
| لپاره د دې چه شې ته د يره ونکونه پيغمبرانو نه په ژبه عربۍ فصيحه کښې او بې شکه دا قرآن په کتابونو پخوانو کښې دې. |
| اَوَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ اٰيَةً اَنْ يَّعْلَمَهُ عُلَمٰٓؤُا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۞ |
| آيا نده دوی لره معجزه دا چه پوهيږی پدې باندې علماء د بنی اسرائيلو. |

﴿ وَإِنَّهُ لَتَنْزِيلُ ﴾ دا د سورت آخرت حصه ده. پدې حصې کښې دليل وحی، دلائل نقليه په دعوى د سورت باندې ذکر کيږي. او صدق د قرآن او صدق د رسول ﷺ په مختلفو وجوهاتو سره ذکر کيږي. او څه زجرونه، تخويفونه، او بشارتونه هم ذکر کيږي. دا اول دليل وحی دې. او متعلق دې ابتداء د سورت سره چه ﴿ وماياتيهم من ذكر ﴾ دې او ﴿ وَإِنَّهُ ﴾ ضمير راجع دې (ذکر) ته چه هغه کنايه ده د توحيد او يا د قرآن نه (طبري) نو د آيت مقصد دا دې چه مشرکين د توحيد نه يا د قرآن اعراض او انکار کوی حالانکه دا مسئله توحيد او يا دا قرآن د رب العلمين د طرف نه پواسطه د جبرئيل عليه السلام سره ستا په زړه مبارک باندې نازله کړې شويدې. د دې دپاره چه ته ددې دعوت خلکو ته ورکړې او منکرين د الله تعالى د عذاب نه اويره وې. او يا ﴿ وَإِنَّهُ ﴾ کښې ضمير راجع دې صرف قرآن

ته او مقصد دا دي چه دا قرآن د الله ﷻ د طرف نه نازل شويدي سحر يا شعر او يا كهانت ندي او ﴿لَتَنزِيلُ﴾ په معنى د "منزل" اسم مفعول سره دي يعني (انه منزل من رب العلمين).

﴿ نَزَلَ بِهِ ٱلرُّوحُ ٱلْأَمِينُ ﴾ (الروح) نه مراد حضرت جبرئيل دي، يعنى دا مسئله توحيد او يا دا قرآن په واسطه د جبرئيل ﷺ تاته نازل كړې شويدې. او هر كله چه تو هم پيدا كيدې شو چه ممكنه ده چه د حضرت جبرئيل ﷺ نه په وحى راوړلو كښى كمى بيشى شوى وى. نو الله ﷻ د دې توهم د دفعې دپاره د حضرت جبرئيل ﷺ صفت ﴿ٱلْأَمِينُ﴾ ذكر كړو. چه حضرت جبرئيل ﷺ متصف دې په وصف د امانت سره، په وحى كښى كمى يا بيشى كيدل د حضرت جبرئيل ﷺ د طرف نه ممكنه هم نده ﴿ عَلَىٰ قَلْبِكَ ﴾ دا متعلق دې په نَزَلَ پورې مراد ورنه (عليك) دې. ليكن ذكر د قلب اوشو ځكه چه (قلب) محل د وعى يعنى حفاظت او د تثبت دې او دغه شان (قلب) رئيس د اعضاؤ دې. او ټول بدن مسخر او تابع د قلب دې لكه چه ديته اشاره شويده په صحيح حديث كښى چه نبى پاک ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه (الاوان في الجسد مضغة اذا صلحت صلح الجسد كله و اذا فسدت فسد الجسد كله ، الاوهى القلب) يعنى د انسان په بدن كښى د غوښې يوه ټكړا ده چه كله هغه صحيح شى نو ټول بدن په صحيح وى او چه هغه خرابه شى نو ټول بدن خراب وى. خبر دار هغه زړه دې. او دغه شان (قلب) محل د اعتقاد هم دې او دا آيت دليل دې پدې چه قرآن مجيد الله ﷻ د نبى پاک ﷺ په زړه كښى ثابت كړې او محفوظ كړې وو. پدې شان چه د نبى پاک ﷺ نه د يو حرف هيريدلو امكان نوؤ، سيوا د هغې نه چه الله ﷻ ورنه هيرول غوختلو. او باقى كيفيت د نزول د وحى څرنګه وو نو د هغې تفصيل په احاديثو كښى موجود دې ﴿ لِتَكُونَ مِنَ ٱلْمُنذِرِينَ ﴾ دا هم متعلق دې په (نزول) پورې، او دا مقصد د بعثت او مقصد د نزول د قرآن ذكر كيږى.

﴿ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ ﴾ دا يا متعلق دې په (نزل) پورې او د آيت مقصد دا دې چه چونكه ستا قوم اولين مخاطب د دې قرآن دى او دهغوئ ژبه عربى ده نو ځكه قرآن هم تاته د عربئ په ژبه كښ نازل شو دې دپاره چه هغوئ پرې پوهه شى او كچرې دا په لغت عجمى كښ وې نو بيا به دوئ عذر كولو چه مونږ پرې نه پوهيږو. نو اندار به كامل نوو او دوئ دپاره به عذر وو. او يا دا متعلق دې په

﴿مِنَ ٱلْمُنذِرِينَ﴾ پورې او د آیت مقصد دا دې چه ته د هغه منذرین یعنی انبیاء کرامو نه ، شې چه هغوئ د عربئ په ژبه کښې خپل قومونو ته انذار ورکړیدې، چه هغه هود ، صالح ، شعیب او اسماعیل دی. لیکن او له توجیه ډیره غوره ده. او په لفظ د ﴿مُّبِينٍ﴾ کښې اشاره ده چه په عربئ ژبه کښې فصاحت او بلاغت ډیر دې او بیا قرآن مجید په فصاحت او بلاغت کښې. انتهاء.

ته رسیدلې دې﴿ وَإِنَّهُۥ لَفِى زُبُرِ ﴾ظاهره دا ده چه ﴿وَإِنَّهُۥ﴾کښې ضمیر راجع دې قرآن ته . او دلته مضاف محذوف دې چه لفظ "ذکر"دې یعنی (وان ذکر القران ) یعنی ددې قرآن ذکر او ددې تصدیق په مخکنو کتابونو کښې شته دې.دویم احتمال دا دې چه ضمیر راجع دې نبی پاک ته او د آیت مقصد دا دې چه ددې پیغمبر تعریف او توصیف په مخکنو کتابونو کښې موجود دې ، نو دا دلیل بیانیږی د صدق د نبی پاک دپاره او ډیر سلیم الفطرت یهودیانو چه کله نبی پاک اوکتلو نو کتلوسره به ئې ایمان راوړلو ځکه چه هغوئ د نبی پاک تعریف او توصیف په خپلو کتابونو کښې لیدلې وو. لکه حضرت عبدالله بن سلام او د هغه ملګری چه د ضد او تعصب نه پاک وو نو د ایمان په دولت سره مالا مال شو ، او ډیرو به د ضد او عناد د دوجې نه حق خبره پټه وله نو ایمان نه ، محروم کړې شولو ، او دریم احتمال دا دې چه ضمیر راجع دې معانی او مضامینو د قرآن ته . نو د آیت مقصد دا دې چه معانی مضامین د قران په مخکنو ټولو کتابونو کښې موجود دی . یعنی پدې قرآن کښې څه نوې مسئلې ندی بلکه دا مسئلې او مضامین په مخکنو ټولو کتابونوکښې موجود دی ، نو پدې باندې اعتراض واردیږی چه د قرآن مجید مضامین او معانی په مخکنو کتابونو کښې موجود کیدل ممکن ندی ځکه چه مثلاً بعض د معانیو د قرآن نه ، واقعه د افک ده او واقعه د افک په ادوار سابقو کښې نوه شوې نو څرنګه به معانی او مضامین د قرآن په کتب سابقو کښې موجود شی؟ نو جواب ورنه دا دې چه مضامین د قرآن په کتب سابقو کښې موجود کیدل په اعتبار د مضامینو اغلب او اکثرو لره دی یعنی ډیر مضامین او معانی د قرآن په کتب سابقو کښې موجود وو .او اکثر لره حکم د کل وی . او د قرآن مجید اکثر مضامین توحید ، او صفات د الله د رسالت قیامت او وعد وعید دی او دا مضامین په کتب سابقو کښې هم موجود وو .

**فائده** د حضرت شيخ ﷫ رائې دا ده چه ضمير راجع دې دعوى د «تبارک» ته يعنى دا دعوى د «تبارک» چه برکاتو ورکوونکې ذات صرف الله ﷻ دې بل څوک ندې دا دعوه په مخکنو کتابونو کښې هم موجوده وه. دا څه نوې مسئله نده او د حضرت شيخ ﷫ رائې بالکل بې غباره او د سباق د کلام سره ډيره اليقه ده.

﴿أَوَلَمْ يَكُن لَّهُمْ﴾ دا اشاره ده دليل نقلى ته د علماؤ سابقينو ته او استفهام دپاره د تقرير دې

او ﴿ءَايَةً﴾ په نصب سره خبر د ﴿يَكُن﴾ دې، او ﴿أَن يَعْلَمَهُ﴾ کښې ﴿أَن﴾ مصدريه ده چه مدخول ئې

خپل په تاويل د مصدر مفرد سره ګرځوليدې، اسم د ﴿يَكُن﴾ دې او ضمير په ﴿يَعْلَمَهُ﴾ کښې يا راجع

دې د عوى د «تبارک» ته يعنى د دوئ دپاره دا دليل هم کافى دې چه د دې دعوې اعتراف او تصديق د بنى اسرائيلو علماء هم کوى. او يا ضمير راجع دې نبى پاک ﷺ او يا قرآن ته. او د آيت مقصد دا دې چه دوئ دپاره علم د علماؤ د بنى اسرائيلو بطور دليل کافى دې چه هغوئ د دې پيغمبر او د دې کتاب د حقانيت تصديق او اعتراف کوى. ځکه چه هغوئ په کتب سابقو کښې د دې پيغمبر او يا د دې کتاب ذکر موجود موندلې دې. او علماؤ د بنى اسرائيلو نه مراد يا ټول علماء دى. برابره خبره ده که هغه علمآء خير وو. او يا علمآء سوء او علماء شر. ځکه چه د دوئ علمآء سوء هم پدې باندې پوهه وو. چه دا پيغمبر بالکل برحق دې او قرآن د الله ﷻ برحق کلام دې لکه سورة البقره آيت نمبر «۱۴۶» کښې دى بلکه دوئ به خپلو کسانو ته د ايمان راوړلو ترغيب هم ورکولو لکه سورة البقرة آيت نمبر «۴۴» ﴿اتامرون الناس بالبر﴾ کښې تير شويدى. او بعضى فرمائى چه علماء د بنى اسرائيل نه مراد پنځه لوئ لوئ مسلمان علماء د دوئ دى. حضرت عبدالله بن سلام، حضرت ثعلبه، ابن ياسين، اسد، او حضرت اسيد رضوان الله تعالى عليهم اجمعين چه دوئ ايمان راوړې وو. او تخصيص د علماء د بنى اسرائيلو ځکه اوشو چه قريش به په ډيرو مسائلو او په امور نقليه کښې رجوع به د بنى اسرائيلو علماؤ ته کوله. او د هغوئ خبره به ئې په امور نقليه کښې حجت ګڼړلو.

وَلَوْ نَزَّلْنَٰهُ عَلَىٰ بَعْضِ الْأَعْجَمِينَ ۝ فَقَرَأَهُۥ عَلَيْهِم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ مُؤْمِنِينَ ۝

او که چرته نازل کړې وې مونږ دا قرآن په بعض عجميانو باندى. پس هغه لوستلې وې دا په دوئ. نو نه به وو دوئ په هغې ايمان راوړونکى.

كَذٰلِكَ سَلَكْنٰهُ فِيْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِيْنَ ۝ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ

همدغه شان داخل کړیدې مونږ دغه تکذیب په زړونو دمجرمانو کښ. نه راوړی ایمان پدی قرآن تردی چه اووینی عذاب

الْاَلِيْمَ ۝ فَيَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝ فَيَقُوْلُوْا هَلْ نَحْنُ مُنْظَرُوْنَ ۝

درناک پس راځی به عذاب دوئ ته ناڅاپه اودوئ به خبرهم نه وی نوبیابه وائی آیامونږ ته مهلت میلاویدې شی

اَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُوْنَ ۝

آیادعذاب زمونږ دوئ تلوار کوی.

﴿وَلَوْ نَزَّلْنٰهُ﴾ پدې دوه ایاتونو کښ زجر دې مشرکینو ته په فرط عناد او سخت عناد باندې او ددې آیت څو تفسیرونه کړې شویدی (۱) ﴿نَزَّلْنٰه﴾ کښی ضمیر راجع دې دې مخصوص قرآن ته چه عربئ ژبه کښی دې او متصف دې په وصف د اعجاز سره. او د آیت مقصد دا دې چه کچرې مونږ دا قرآن سره د کمال فصاحت او بلاغت او سره د اعجاز نه په یو عجمی کس باندې نازل کړې وې چه هغه د عربئ ژبې نه بالکل نابلد وې .او هغه معجزانه طور باندې دوئ ته قرآن تلاوت کړې وې (چه دا د هغه د حقانیت واضح او کامل دلیل دې) نو بیا به هم دوئ ایمان نه راوړلو بلکه کفر به ئې کولو. (مدارک) دویم تفسیر دا دې چه ضمیر راجع دې قرآن ته بغیر د اعتبار د عربیت او دکمال فصاحت نه. او د آیت مقصد دا دې کچرې مونږ دا قرآن په یو عجمی کس باندې د عجمو په ژبه کښی نازل کړې وې او هغه په دوئ باندې لوستلې نو دوئ به دتکبر د وجې نه ایمان نه راوړلو او عذر به ئې کولو چه ددې ایاتونه خلط ملط دی او مونږ په دې نه پوهیږو. او داسې ذکر په سورة حم السجدة آیت نمبر (۴۴) کښی هم دې. او دریم تفسیر دا دې چه ضمیر راجع دې مطلق قرآن ته قطع نظر د عربیت او د عجمیت نه. او د آیت مقصد دا دې چه کچرې مونږ نازل کړې وې دا قران په یو عجمی کس باندې. او هغه په دوئ باندې لوستلې نو دوئ به د غرور او د تکبر د وجې نه ایمان نه راوړو (قیل معناه ولو نزلنه علی رجل لیس من العرب لما امنوا به انفة وکبرًا (قرطبی)

﴿ كَذَٰلِكَ سَلَكْنَٰهُ ﴾دا هم زجرونه ذکر کیږي او ( کاف ) د حضرت الشيخ رحمه الله په نيز دپاره د بيان کمال دي. او ضمير راجع دي تکذيب او کفرته نو د آيت مقصد دا دي چه همدارنګه ( په خپل قدرت سره ) مونږ د دوئ په زړونو کښې تکذيب او کفر ، ورننه کړو . چه تر څو پورې دوئ مشاهده د عذاب نوی کړی نو دوئ ايمان نه راوړی او د عام مفسرينو په نيز ( کاف ) اسمی دي په معنی د ( مثل ) سره دي. او دا په موضع د نصب کښې مفعول به دي د نسلکه فعل مقدر د پاره . او ممثل له تکذيب د قرآن نه ، د دوئ دي په اوريدلو د دي قرآن سره د ژبې د عجمی نه سره د کمال فصاحت . او ممثل مهر جباريت لګيدل دی د وجې د تکذيب د دي قرآن نه ، چه دوئ ئې اوری د ژبې د بنی پاک ﷺ نه او علت مشترکه ضد او عناد دي نو د آيت مقصد دا دي چه دوئ په ضد او عناد کښې دومره حد ته رسيدليدی چه دا معجز کتاب کچرې دوئ د يو عجمی د ژبې نه اوريدلې وې چه هغه په عربی وئيولو باندې قادرهم نوې (چه پدې وخت کښې د دي قرآن اعجاز او نبوت د نبی ﷺ نور هم واضح وې ) نو بيا به هم دوئ د ضد او عناد د وجې نه ايمان نوې راوړې. نو د هغې ضد او عناد د وجې نه دوئ د دې پيغمبر تکذيب هم اوکړو نو مونږ په دوئ باندې مهر د جباريت اولګولو . او کفر په مو نور هم په شدت سره د دوئ په زړونو کښې داخل کړو. او اوس دوئ ته د کفر او تکذيب د خلاصی دپاره هيڅ لاره نيشته دي ، لکه په سورة البقر آيت ( ختم الله على قلوبهم ) کښې تير شويدی نو ددې تشريح مطابق ( نسلکه ) مقدر کښې ضمير راجع دي تکذيب د قرآن ته . او بعض فرمائی چه ضمير راجع دي نفس قرآن ته . او د آيت مقصد دا دي چه لکه څرنګه مونږ دا قرآن په يو عجيب او غريب نمط او فصيح ، بليغ انداز سره راليږلې دې نو همدغه رنګې مونږ دا قرآن د دوئ په زړونو کښې ننه باسلې دي. او ددې حقانيت مو د دوئ په زړونو کښې ثابت کړيدې. او دوئ پدې باندې ښه پوهه دی چه دومره فصيح کلام د قوت بشری نه خارج دې او صرف د الله ﷻ کلام دې خو بيا هم دوئ تر هغې وخته پورې ايما ن نه راوړی چه تر څو ئې﴿ ٱلْعَذَابَ ٱلْأَلِيمَ ﴾ نوی مشاهده کړې . او ﴿ ٱلْعَذَابَ ٱلْأَلِيمَ ﴾مشاهده په دنيا کښې د مرګ په وخت کښې وی او په قبر کښې به وی او بيا په اخرت کښې دجهنم عذاب په صورت کښې وی .

﴿ فَيَأْتِيَهُم بَغْتَةً ﴾يعني دوئ خو انتظار کوي چه کوم وخت دوئ ته مرګ او عذاب راځي نو دوئ به ايمان راوړي حالانکه مرګ او د الله ﷻ عذاب بالکل اچانک وي چا ته هم وينا نه کوي چه څه به پدې وخت راځم بلکه دوئ به په غفلت کښې پراته وي چه د الله ﷻ عذاب به پرې راشي

﴿ فَيَقُولُواْ هَلْ نَحْنُ ﴾نو هر کله چه دوئ د ﴿ٱلْعَذَابَ ٱلْأَلِيمَ ﴾مشاهده اوکړي نو په ډير افسوس او حسرت سره به تمنا او درخواست اوکړي چه مونږ ته دې لږ مهلت راکړې شي . او دا تمنا به د هر امت معذّ به وي که د نبي ﷺ امت وي او يا نور امتونه وي.

**فائده** : پدې دوه آياتونو کښې عطف په ( فاء ) سره راغليدې. او عطف په ( فاء ) سره تقاضه د ترتيب زماني بلا تراخي کوي. يعني تعقيب مع الوصل باندې دلالت کوي . نو ظاهر د آيت نه دا معلوميږي چه د ( رؤيت د عذاب ) نه به ورستو ( مفاجات د عذاب ) وي . او د ( مفاجات دعذاب ) نه به ورستو بيا سوال د ( انظار ) او مهلت وي. او حالانکه ترتيب داسې ندی. بلکه اولاً به عذاب مفاجاتي راشي بيا به رؤيت د عذاب دوئ ته حاصل شي او بيا به دوئ سوال د انظار او مهلت اوکړي . نو صاحب د کشاف ورنه جواب کړيدې چه دلته ( فاء ) د ترتيب زماني دپاره نده . بلکه د ترتيب رتبي دپاره ده. يعني لحوق د ثاني به په شدت کښې د اول نه زيات وي . نو مقصد دا دې چه دوئ ايمان نه راوړي تر هغه پورې چه ﴿ٱلْعَذَابَ ٱلْأَلِيمَ ﴾ئې نوی کتلې. نو ددې رؤيت د عذاب نه به زيات سخت شي عذاب مفاجاة وي . او د هغې نه ، به زيات سخت سوال د انظار او د مهلت وي ځکه چه د دوئ يقين به وي په امتناع د سوال باندې چه زمونږ سوال پوره کيدل محال دي .

﴿ أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ ﴾ دا زجر دې سره د تخويف نه . او استفهام دپاره د توبيخ او تبکيت دې . يعني يو طرف ته ستاسو حالت دا دې چه اوس مهلتونه غواړئ او بل طرف ته ستاسو حالت داوو چه کله به پيغمبر د عذاب نه يره درکړه نو تاسو به عذاب په جلدي سره غوختلو .

| |
|---|
| أَفَرَءَيْتَ إِن مَّتَّعْنَٰهُمْ سِنِينَ ۝ ثُمَّ جَآءَهُم مَّا كَانُواْ يُوعَدُونَ ۝ |
| خبر اکړه ما ته کچرته نفع ورکړو مونږ دوئ ته څو کاله، بيا راشي دوئ ته هغه عذاب چه دوئ سره ئې وعده کولې شي. |

| |
|---|
| مَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يُمَتَّعُوْنَ ﴿٢٠٧﴾ وَمَآ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ اِلَّا لَهَا |
| نو دفعه به ئې نکړې دوئ نه هغه مال متاع چه دوئ ته فائده ورکولې کیدله . اوندي هلاک کړي مونږ هیڅ یو ښار مګر «راغلي وو» هغې ته |
| مُنْذِرُوْنَ ﴿٢٠٨﴾ ذِكْرٰى ۛ وَمَا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿٢٠٩﴾ وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيٰطِيْنُ ﴿٢١٠﴾ |
| یرونکي رسولان لپاره دنصیحت اونه وو مونږ ظلم کونکي. اوندي نازل کړیدي دا قرآن شیطانانو. |
| وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهُمْ وَمَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿٢١١﴾ اِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ لَمَعْزُوْلُوْنَ ﴿٢١٢﴾ فَلَا تَدْعُ |
| اوندي مناسب هغوئ سره او نه ئې طاقت لري. بیشکه شیطانان داوریدلو د کلام «دفرشتو» نه منع کړې شویدي. پس مه بله |
| مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتَكُوْنَ مِنَ الْمُعَذَّبِيْنَ ﴿٢١٣﴾ |
| دالله جل جلاله سره اله بل ورنه شي به دعذاب ورکړي شوؤنه |

﴿أَفَرَءَيْتَ إِن مَّتَّعْنَـٰهُمْ﴾ دا د مشرکینو د عناد او مکابرې وضاحت دې او جواب دې د طلب د انظار او د آیت مقصد دا دې چه کله په دوئ باندې اچانک عذاب راشي نو دوئ به مهلت طلب کوي لیکن دوئ ته به مهلت نه ورکولې کیږي ځکه چه مهلت ورکولو کښ فائده نیشته دې . ځکه چه دوئ هغه ازلي بد بخته دي کچرې مونږ دوئ ته اوګده عمرونه ورکړو او د دنیا عیش و عشرت ورته ورکړو نو بیا به هم دوئ د دنیا په عیش و عشرتونو کښ به مبتلا شي او صرف د دنیا مزې به اخلي . او د الله جل جلاله د یاد او د اخرت د فکر نه به غافله وي . او بعض فرمائي چه دا مرتب دې په استعجال د عذاب باندې . او د آیت مقصد دا دې چه دوئ خو په جلتئ سره عذاب طلب کوي خو د دوئ دا کوم عمرونه او مال و متاع چه اوس موجود دی کچرې مونږ ورته دا زیات کړو اوګده عمرونه، ډیر مال متاع او د دنیا عیش وعشرتونه ورکړو او بیا په دوئ باندې عذاب راشي نو دا اوګد عمر او د دنیا دا اسباب به دوئ ته د عذاب نه څه فائده ورنکړي . افسوس او حسرت به ئې نور هم زیات شي او په دیکښې اشاره ده چه اوګد عمر ، مال و متاع وغیره د الله جل جلاله نعمتونه دي خو هر

کله چه بغیر د عمل صالح نه ، وی نو بیا به ذریعه د حسرت او افسوس وی . او انسان ته به هیڅ فائده ورنکړی .

د حضرت عمر بن عبدالعزیز ﷫ په باره کښې مروی دی چه کله به سهار شو نو خپله ږیره به ئې اونیوله او دا آیاتونه ﴿أَفَرَءَيْتَ﴾تا﴿يُمَتَّعُونَ﴾به ئې تلاوت کړو او بیا به په ژړا شو او دا اشعار به ئې وئیلو :

| | |
|---|---|
| نهارک یا مغرور سهو وغفلة | ولیلک نوم و الردی لک لازم |
| فلا انت فی الایقاظ یقظان حازم | ولا انت فی النوم ناج سالم |
| تسر بما یفنٰی وتفرج بالمنیٰ | کی سرباللذات فی النوم حالم |
| وتسعی الی ما سوف تکره غبة | کذلک فی الدنیا تعیش البها ئم |

**ترجمه** : اې په دنیا باندې دهوکه کړې شوی یه ستاورځ په غفلت کښې او شپه په خوب کښې تیره شی،حالانکه مرګ ستا دپاره لازمی دې، پس نه خو ته په ویخو خلکو کښې هوښیار بیدار ئې. او نه خو ته په اوده خلکو کښې خلاصې موندونکې مطمئن ئې . فانی څیزونو ته ، ته خوشحالیږې، او په خواهش پوره کیدلو سره دې طبیعت ښه کیږی . (دا خو داسې دی) لکه بالغ کس ته په خوب کښې خواهش پوره کیدلو سره سر ور میلاویږی . او ته کوشش کوی په داسې څیزونو پسې چه د هغې انجام به ته ډیر بد ګڼړې،او په دنیا کښې څاروی دغه شان ژوند تیره وی .

﴿وَمَآ أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ﴾ دا تخویف دنیوی دې او دا هم مرتب دې په استعجال د عذاب د دوئ باندې او جواب دې د هغوئ د مطالبې چه د الله ﷻ سنت عادیه دا دې چه د قومونو په فرمائش باندې عذاب نه لیږی بلکه الله ﷻ انبیآء کرام اولیږی او هغوئ انذار اوکړی نو د پوره انذار او اتمام حجت نه ورستو بیا چه کله قومونه تکذیب اوکړی نو الله ﷻ په هغوئ باندې عذاب رالیږی .

﴿ذِكْرَىٰ﴾ دا په معنی د (مذکرین) سره حال واقع شویدې د (منذرون) نه او یا (ذکری) حال دې په حذف د (ذوی) سره یعنی منذرون حال کوئم ذوی ذکری او یا مفعول مطلق دې د فعل محذوف

دپاره یعنی ( یذکرون ذکری ) او یا مفعول له دې د ( منذرون ) دپاره . نو کلام په اصل کښې داسې دې چه ( ینذرون لاجل التذکرة والموعظة ) او یا مفعول له دې د ( اهلکنا ) دپاره، او د آیت مقصد دا دې چه هیڅ څوک هم د انبیاء کرامو د بعثت نه بغیر ندی هلاک شوی هر کلی او قوم ته الله ﷻ انبیاء کرام لیږلی وو او هغوئ دې قومونو ته د الله ﷻ د عذاب نه یره هم ورکړه خو د هغې باوجود د سرکش او عاندینو خبره اونه منله نو الله ﷻ هلاک کړل، دپاره ددې چه ددوئ هلاکت عبرت او نصیحت اوګرځی د نورو خلکو دپاره چه هغوئ د کفر او د معاصیتو نه منع شی ( لیکون اهلاکهم تذکرة و عبرة لغیرهم فلا یعصوا مثل عصیانهم ( مدارک )

﴿ وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ ﴾ دا متعلق دې ابتداء د رکوع﴿وَإِنَّهُۥ لَتَنزِيلُ ﴾ سره او د مشرکینو د اولې شبهې جواب دې په باره د قرآن کښې مشرکینو به دا شبه کوله چه ( نعوذبالله ) دا قرآن کهانت دې او نبی پاک ﷺ کاهن دې ځکه چه جنات دده تابع دی او هغه جنات ده ته د غیب خبرونه راوړی. نو پدې آیت کښې ددې شبهې نه جواب اوشو ،خلاصه د جواب دا ده چه دا قرآن د رب العلمین د طرف نه ، نازل کړې شویدې او شیاطینو ندې نازل کړې د شیاطینو دپاره دوه موانع موجود دی او هغه دواړه موانع بدیهی دی. یو مانع صفت انضمامی دې چه هغه وصف" شیطنیت"دې،ددې وصف دوجې نه شیاطینو دپاره قرآن نازلول مناسب ندی ځکه قرآن مجید سراسر هدایت دې او شیاطین سراسر ضلالت دې،نو شیاطین هغه مضامین نه راوړی چه د مخلوقاتو دپاره د هدایت ذریعه ګرځی او دویم مانع امر مبائن خارجی دې چه شیاطین د وحی د اوریدلو نه او د قرآن اوریدلو نه لرې ساتلې شوی دی .که بالفرض استماع هم اوکړی نو شهاب ثاقب وریسې راشی . نو هر کله چه هغوئ د وحی د خبرو نه لرې ساتلې شویدی نو قرآن مجید د لوح محفوظ نه اغستلو نه په طریق اولی سره لرې ساتلې شویدی . نو ﴿ وَمَا يَنۢبَغِي لَهُمۡ ﴾ کښې د اول مانع ذکر دې،او ( ما ) نافیه ده . او ﴿يَنۢبَغِي﴾په معنی د ( یجوز ) او ( یصلح ) سره دې، نو معنی ئې دا ده چه: لا یجوز ولا یصلح لهم ان ینزلوا به .﴿ وَمَا يَسۡتَطِيعُونَ ﴾ دا دویم امر مانع ذکر دې اوترقی ده د ماقبل نه.یعنی په شیاطینو کښې د قرآن اوریدلو استعداد او طاقت هم نیشته دې . ﴿ إِنَّهُمۡ عَنِ ٱلسَّمۡعِ لَمَعۡزُولُونَ ﴾دا علت دې دعدم استطاعت دپاره .

**فائده**: سمع اثر مرتبه د استماع دې نو پدې آیت کښې نفی د "سمع" راغلیده نو شیاطین اګر چه استماع په طریقې د استراق سره کولې شی. لیکن "سمع" نشی کولې الله ﷻ د وحی حفاظت کوی نو لهذا د دې آیت تعارض د سورة الحجر آیت نمبر (۸۸) سره او یا دغه شان نورو ایاتونو سره نیشته دې. او بعض فرمائی چه شیاطین د قرآن نه استماع کولې شی او نه سمع. او په سورة الحجر نمبر (۸۸) او یا نورو ایاتونو کښې چه د استماع په طریقې د استراق سره ذکر دې نو د هغې نه مراد نور مغیبات دی. وجه دا ده چه وحی به جبرئیل ﷺ پخپله براه راست راوړله. اګر چه د ملائکو یو لوئ جماعت به ورسره وو، خو بل چاته او بلې فرشتې ته به ئې نه منتقل کوله نو استماع او سماع ممکنه نوه. او په خلاف د نورو مغیباتو نه، چه هغه کښې د یو ټولی د ملائکو نه بل ټولی ته د مغیباتو انتقال کیږی نو استماع او سماع دواړه ممکن دی. والله اعلم.

﴿ فَلَا تَدْعُ مَعَ اللَّهِ ﴾ فاء فصیحیه ده دَدینه مخکښې عبارت مقدر دې. ای اذا علمت ما ذکر فلاتدع. او دا پنځه امور مرتبه ذکر کیږی په ماقبل باندې. او دا په منزله د ثمرې او نتیجې دې د ماقبل دپاره. نو دا امر اول دې. او د آیت مقصد دا دې چه کله دا خبره ثابته شوه چه برکات ورکونکې ذات صرف او صرف الله ﷻ دې نو تاسو د الله ﷻ نه سیوا د بل چا نه د خپلو حاجتونو پوره کولو سوال مه کوئ کنې په سخت عذاب کښې به مبتلا شئ، او دا خطاب اګر چه په ظاهر کښې نبی پاک ﷺ ته دې خو نبی پاک ﷺ نه د منهی عنه صدور یعنی شرک صادریدل نا ممکن وو. نو ددې وجې نه حقیقةً دا خطاب امتیانو ته دې، اوخطاب ظاهراً نبی ﷺ ته کولو کښې مقصود تاکید دې په زجر کښې، یعنی الله ﷻ نبی پاک ﷺ ته اوفرمائیلو چه اې حبیبه ﷺ کچرې بالفرض والمحال ستا نه هم شرک صادر شی نو ته به هم معذب شې. نو باقی خلک په طریق اولی سره معذب دی. او بعض فرمائی چه خطاب نبی پاک ﷺ ته دې. او د منهی عنه صدور اګر چه د نبی ﷺ نه محال دې خو دلته نهی کنایه ده د زیادت اخلاص نه په توحید کښې، یعنی په نفی د غیر الله او اثبات توحید کښې اخلاص نور هم زیات کړه. او هر کله چه مراتب د اخلاص متفاوت او (لاتقف عند حد) دی نو ددې وجې نه خطاب پیغمبر ته کول ممنوع هم ندی.

| |
|---|
| وَاَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ ﴿٢١٤﴾ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٢١٥﴾ |
| اوبره وه ته خپلوان خپل چه تاته نیږدې دی اوښکته کړه وزرخپل نرمی کوه هغه چاته چه اتباع ئی کړیده ستاچه مؤمنان دی. |
| فَاِنْ عَصَوْكَ فَقُلْ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿٢١٦﴾ |
| پس کچرته ستانافرمانی چاوکړه نوته ووایه بیشکه څه بری یم دهغی عملونونه چه تاسوئی کوئ |

﴿ وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ ﴾دا دویم امر مرتب دې. ما قبل آیت کښې خپل ځان د شرک نه بچ کولو او توحید اختیارولو حکم او تعلیم وو، پدې آیت کښې تعلیم ورکولې کیږی چه د خپل ځان سره سره د خپل خپلوانو خبر اغستل هم پکار دی. یعنی خپل قوم قبیله هم اوبره وه چه هغوئ د الله ﷻ نه علاوه د بل چا نه مدد غوختلو سوال نه کوی. او د انذار څلور اقسام دی (۱) انذار عشیره (۲) انذار قوم (۳) انذار عرب (۴) انذار جمیع بنی آدم او چونکه نبوت د نبی پاک ﷺ عام وو نو ددې وجې نه نبی پاک ﷺ څلور واړه انذارونه کړیدی. نو پدې آیت کښې انذار د عشیره ذکر دې. او په صحیح روایت کښې دی چه (لما نزلت) (و انذر عشیرتک الاقربین) خرج رسول الله ﷺ حتی صعد الصفا فجعل ینادی یابنی فهر یا بنی عدی لبطون قریش حتی اجتمعوا فجعل الرجل اذلم یستطع ان یخرج ارسل رسولاً لینظر ماهو؟ فجآء ابولهب و قریش،فقال ارأیتکم لو اخبر تکم ان خیلا با لوادی ترید ان تغیر علیکم. اکنتم مصدقي؟ قالو نعم! ماجربنا علیک الا الصدق قال فانی نذیر لکم بین یدی عذاب شدید. قال ابولهب تباً لک سائر الیوم ماجمعتناالا لهذا فنزلت تبت یدا ابی لهب.

**ترجمه**: یعنی چه کله دا مذکور آیت (انذر الخ) نازل شو نو نبی پاک ﷺ د صفا په غونډئ اوختلو او د قریش مختلفو خاندانونو ته ئ آوازونه اوکړو چه یا بنی فهر او یا بنی عدی وغیره. حتی چه ډیر خلک راجمع شو او کچرې یو کس د راتللو طاقت نه لرلو نو هغه به د خپل طرف نه یو قاصد (استاذې) اولیږلو چه اوګوره چه څه ضروری امر اوخبره ده. نو ابو لهب سره د نورو قریشو هم راغې. نو نبی پاک ﷺ دوئ ټولو ته اوفرمائیلو چه ستاسو څه خیال دې کچرې څه تاسو ته خبر درکړم چه ددې درې نه په تاسو باندې په اسونو باندې سور جماعت حمله کوی نو تاسو به څما تصدیق کوئ او څما خبره به منئ؟ نوټولوورته اووئیل،هاؤ. مونږ په تا بلندې بار بار تجربه کړیده ته صرف رښتیا وائې. نو نبی پاک ﷺ ورته اوفرمائیل چه څه تاسو ته د هغه عذاب ویره درکوم کوم

چه ځما مخامخ را روان دي. نو ابولهب اوئيلو چه (العياذ بالله) ته دې هلاک شې تا مونږ ته صرف ددې خبرې دپاره تکليف راکړو او صرف دې دپاره دې مونږ را جمع کړو او بيا روان شو. نو الله ﷻ (سورة لهب) نازل کړو.

او تخصيص د (الاقربين) اوشو ځکه چه څومره قرابت زيات وى هومره هغه زيات مستحق وى په هدايت او انذار سره. او دغه شان عامو خلکوته دبدګمانى موقعه هم نه ميلاويږى چه عام خلک بدګمانى او طعنى اونکړى چه خپلوانو ته هيڅ نه وائى او مونږ ته تبليغ کوى او دغه شان دا وجه هم کيدې شى چه خلک پوهه شى چه په دين کښې دهيڅ چا لحاظ نشى کيدې. دعوت او تبليغ هر کشر او مشر، خپل او پردى ته کولې شى. او دغه شان پديکښې اشاره ده ديته چه محض د پيغمبر سره د قرابت د وجې نه دالله ﷻ د عذاب نه، بچ کيدل نشى کيدلې ترڅو چه ايمان نوى راوړې. او ددې وجې نه په يو صحيح روايت کښې راغليدى چه نبى پاک ﷺ ددې آيت په نزول سره ارشاد اوفرمائيلو چه: يا معشر قريش (او كلمة نحوها) اشتروا انفسكم لاأغنى عنكم من الله شيئاً يا بنى عبد مناف لا اغنى عنكم من الله شيئاً يا عباس لا اغنى عنک من الله شيئاً يا صفية عمة رسول الله ﷺ لا اغنى عنک من الله شيئاً و يا فاطمة بنت محمد ﷺ سلنى ما شئت من مالى لا اغنى عنک من الله شيئاً (متفق عليه)

﴿ وَٱخۡفِضۡ جَنَاحَكَ ﴾دا دريم امر مرتب دې. او ﴿ واخفض جناحک ﴾ کنايه ده د شفقت، د نرمۍ او د حفاظت او مدافعت نه. يعنى کوم خلک د الله ﷻ د عذاب نه اويريدل او ايمان ئې راوړلو نو د دغه شان خلکو سره د شفقت او نرمۍ والا معامله کوه. او داسې ذکر په سورة الحجر آيت (۸۸) کښې هم دې. اوکه څوک اشکال اوکړى چه د﴿مَنِ ٱتَّبَعَكَ ﴾نه ورستو د ﴿ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ذکر مستدرک دې ځکه چه "متبعين" د نبى پاک ﷺ مؤمنان دى بل څوک ندى. نو بعضو ورنه جواب کړيدې پدې شان چه ﴿مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ کښې "من" بيانيه دې او دا بيان د﴿ من ٱتَّبَعَكَ ﴾ دې. ځکه چه اتباع د نبى ﷺ عامه ده. اتباع دينى ته هم شامله ده او اتباع دنيوى ته هم شامله ده. نو د تعيين د اتباع دينى دپاره ذکر د﴿مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾اوشو چه څوک دا توهم اونکړى

چه دنیوی امورو کښې اتباع کولو په صورت کښې مطلق اتباع موجوده ده نولهذاداحکم
یعنی ﴿وَٱخۡفِضۡ جَنَاحَكَ﴾دابه دنیوی متبعین لره هم شامل وی.نو هر کله چه﴿مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ
﴾اضافه اوکړې شوه نو دا توهم دفعه کړې شو چه د متبعین نه مراد صرف هغه دی چه هغه مؤمنان
وی او بعضو ورنه دا جواب کړیدې چه﴿مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ کښې من تبعیضیه دې ځکه چه،لفظ د (
متبعین ) شامل دې حقیقی متبع ته هم چه هغه مؤمن دې . او ظاهری متبع ته هم چه هغه منافق دې ،
ځکه چه منافقینو به صرف په ظاهر کښې د نبی پاک ﷺ اتباع کوله. نو د﴿مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ اضافه
اوکړې شوه ددې دپاره چه منافق ورنه خارج شی ځکه چه منافق دپاره پکښې حکم د ( واغلظ علیهم )
دې. او یو دریم جواب ورنه بعضو دا کړیدې چه﴿مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ کښې من تبعیضیه دې ځکه چه
متبع په دوه قسمه دې، متبع کامل . او متبع ناقص نودَ من اتبعک نه مراد عام وؤ اود من المومنین نه
مراد بعض متبعین دي چه اتباع کامله کوونکی دی.﴿ فَإِنۡ عَصَوۡكَ﴾دا څلورم امر مرتب دې . یعنی
هر کله چه دوئ ستا دعوت او تبلیغ نه منی او ایمان نه راوړی نو ته ورنه اعلان برأت اوکړه چه
ستاسو د بد اعمالو نه ، څه بیزار یم .

| |
|---|
| وَتَوَكَّلۡ عَلَى ٱلۡعَزِيزِ ٱلرَّحِيمِ ﴿٢١٧﴾ ٱلَّذِي يَرَىٰكَ حِينَ تَقُومُ ﴿٢١٨﴾ |
| اواعتمادکوه په هغه الله ﷻ چه غالب دې رحم کونکې دې هغه الله ﷻ چه وینی تاپه هغه وخت کښې چه پاسی ته مانځه ته، |
| وَتَقَلُّبَكَ فِي ٱلسَّٰجِدِينَ ﴿٢١٩﴾ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ ﴿٢٢٠﴾ |
| اووینی ګرځیدل ستاپه سجده کونکو(صحابؤ)کښې،بې شکه الله ﷻ صرف هغه ښه اوریدونکی ښه پوهه دې، |
| هَلۡ أُنَبِّئُكُمۡ عَلَىٰ مَن تَنَزَّلُ ٱلشَّيَٰطِينُ ﴿٢٢١﴾ تَنَزَّلُ عَلَىٰ كُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ﴿٢٢٢﴾ |
| آیاخبردرکړم تاسوته دَهغه چاچه نازلیږی پری شیطانان.نازلیږی دوئ په هرسخت دروغژن سخت ګناه ګاراندې |

يُلْقُونَ السَّمْعَ وَأَكْثَرُهُمْ كٰذِبُوْنَ ﴿۲۲۳﴾

غوږ اږدي (خبرو د فرشتو ته) او اکثر په دوئ کښې دروغژن دي

﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱلْعَزِيزِ﴾ دا پنځم امر مرتب دې او دا په حقيقت کښې تسلي ده نبی پاک ﷺ ته چه د مخالفينو نه ، برأت اعلان کول اګر چه ګران کار دې او خاص طور باندې چه خپل خپلوان وی نو هغه ډير ګران کار دې ځکه چه په هغې کښې ډير خاندانی مسائل او مشکلات پيدا کيږی ، نو الله ﷻ د هغې علاج او خودلو چه په دغه شان موقعو کښې د الله ﷻ په ذات باندې توکل کوئ او د مخالفينو د مخالفت پروا مه کوئ ﴿ٱلْعَزِيزِ ٱلرَّحِيمِ﴾ يعنی غالب دې په دشمنانو باندې او مهربانه دې په دوستانو باندې او هر کله چه وصف د (عزيز) په منزله د علت مصححه وو د توکل دپاره او وصف د ﴿ٱلرَّحِيمِ﴾ په منزله د علت داعيه وو. او علت مصرحه مقدم وی په علت داعيه باندې نو ددې وجه ﴿ٱلْعَزِيزِ﴾ دلته مقدم کړې شو په ﴿ٱلرَّحِيمِ﴾ باندې.

**فائده** : "توکل" باب تفعل دې مجرد ئې وکل يکل د باب ضرب يضرب نه راځی، لغت کښې وئيلې کيږی خپل کار يا خبره چاته حواله کول په خپلو امورو کښې په چا باندې اعتماد کول. او په عرف کښې وئيلې کيږی اظهار العجز والاعتماد على الغير يعنی د خپل عجز او د کمزورئ اظهار کول او په بل چا باندې اعتماد کول. او په اصطلاح د شرع کښې ئې متعدد تعريفونه شويدی. علامه زمخشری ، امام رازی او علامه آلوسی ﷭ داسې تعريف کړيدې (۱) التوکل عبارة عن تفويض الرجل امره الى من يملک امره ويقدر على نفعه وضرره .يعنی توکل عبارت دې د دينه چه يو سړې خپل امر او کار هغه چاته اوسپاری چه هغه دده د کار مالک وی او ده ته په نفع ورکول او يا ضرر رسولو باندې قادروی . (۲) او بعضو داسې تعريف کړيدې ( الثقة بما عند الله واليأس مما فى ايدى الناس ) يعنی څه چه الله ﷻ سره دی او د هغه خوا ته دی په هغې باندې اعتماد کول او هغه څه چه د مخلوقاتو او د انسانانو په لاس کښې دی د هغې نه نا اميدی کول (۳) او بعضو داسې تعريف

کړیدې چه ( صرف النظر عن الاسباب الی خالق الاسباب ) یعنی د ظاهری اسبابو نه خپل نظر او توجه لرې کول او خالق ددې اسبابو طرف ته متوجه کیدل.

بهر حال ؛ ددې ټولو تعریفونو مقصد تقریباً یو دې چه انسان د مخلوقاتو په ځائ هغه ذات طرف ته متوجه شی چه خالق د دې ټولو مخلوقاتو دې او انسان ته نفع رسولو ، او ضرر رسولو باندې قادر دې او د توکل مراتب متفاوت دی (۱) اعلی (۲) متوسط (۳) ادنی

اعلی مرتبه د توکل د انبیاء کرامو ﷺ او د مقربینو دې. چه د ظاهری اسبابو د نتیجې مخالف د الله ﷻ په ذات باندې توکل کوی. لکه حضرت ابراهیم ﷺ اورته اچولې کیدلو نوحضرت جبرئیل ﷺ د امداد پیشکش اوکړو نوهغه ﷺ ورته اوفرمائیلو ( حسبنا الله ونعم الوکیل ) او د حضرت جبرئیل ﷺ امداد پیشکش ئې قبول نکړو دا اعلی مرتبه د توکل ده او یا دغه شان د نبی پاک ﷺ بغیر د پهرې دار نه ګرځیدل ، چه کله دا آیت نازل شو چه ( والله یعصمک من الناس ) نو ددې آیت د نزول نه ورستو نبی پاک ﷺ د خپل ځان هر قسم پهره لرې کړه . چه حضر او سفر د شپې او د ورځې به بغیر د پهرې دار نه ، وو ، دویم قسم توکل د خواصو دې لکه علمآء کرام ، اولیآء عظام وغیره شو ، چه هغوئ کله کله اسباب بالکل ترک کړی ، اګر چه اسباب موجود وی. او دریم قسم توکل د عامو مؤمنانو دې چه اسباب ظاهری اختیار کړی خو نظر ئې په اسبابو نوی. بلکه مؤثر حقیقی الله ګڼړی ، او اعتماد ئې د الله ﷻ په ذات باندې وی .

﴿ ٱلَّذِى يَرَىٰكَ حِينَ تَقُومُ ﴾ اسم موصول سره د صلې نه صفت ثانی دې د﴿ٱلْعَزِيزِ﴾ دپاره، او مقصود پدې سره مزیده تسلی ورکول دی . نبی پاک ﷺ ته ( چه نه په هغه ذات باندی توکل اوکړه چه هغه ستا د هر هر حرکت نه او د هر حالت نه خبردار دې. او خاص طور باندې چه کله ته هغه ته په عبادت باندې اودریږې نو ته ئې خصوصی په نظر کښې وې . نو د ﴿ حِينَ تَقُومُ ﴾ نه مراد عبادت ته او بیا خاص طور تهجدو مونځ ته پاسیدل دی . او پدیکښې اشاره ده چه د شپې په عبادت سره یعنی په تهجد سره د الله ﷻ خصوصی امداد دانسان سره شامل حال ګرځی

﴿ وَتَقَلُّبَكَ فِى ٱلسَّٰجِدِينَ ﴾ د دې آیت مختلف معانی کړې شویدی . (۱) امام بخاری رحمه الله او اکثر اهل علمو د ( تقلب ) نه په مونځ کښې د یو حالت نه بل حالت ته منتقل کیدل مراد کړیدی . لکه د

قیام نه رکوع ته تلل، د رکوع نه بیا پاسیدل او سجدې ته تلل، او د ﴿ٱلسَّـٰجِدِينَ﴾ نه مراد (المصلين) دی او چونکه سجده رکن اعظم د مونځ دې نو ددې وجې نه تخصیص د سجدې اوکړې شو. نو د آیت مطلب دا دې چه کله ته د صحابه کرامو سره په جمع مونځ کوې او یو حالت نه بل حالت ته منتقل کیږې نو ستاسو ددې ټولو انتقالاتو علم الله ﷻ ته وی. او په دیکښې اشاره ده د فرض مونځ اهتمام کولو ته ورستو د ذکر د نفلی عبادت نه، نو په ﴿ٱلَّذِي يَرَىٰكَ حِينَ تَقُومُ﴾ سره مراد نفلی عبادت او مونځ کول وو، او چونکه نفلی عبادت کښې تفرد اولی دې یعنی چه یواځې اوکړې شی او جماعت پکښې مستحسن ندې او طول القنوت یعنی اوږد قیام کول پکښې اولی دی نو ددې وجې نه هلته ﴿حِينَ تَقُومُ﴾ یعنی صرف د نبی پاک ﷺ د حالت قیام ذکر اوشو. او په دې آیت سره اشاره ده فرضی مونځ ته - اوفرضو کښې جماعت سنت او واجب دې، نو د دې وجې نه ﴿ٱلسَّـٰجِدِينَ﴾ دلته جمع سره اوئیلې شو: حين تقوم الى الصلوة ای منفردًا او قوله تقلبک فی السجدين ای و یری لک مصلیاً فی الجماعة (حاشية الجمل).

(۲) بعض اهل علم فرمائی چه (تقلب) په معنی د (تفقد) سره دې. نبی پاک ﷺ به په جمعې سره مونځ کولو کښې به ئې کله کله د صحابه کرامو د حالت تفقد کولو او هغوئ ته به ئې کتلو او دا د نبی کریم ﷺ معجزه وه چه څرنګه به نبی ﷺ مخې طرف یو څیز کتلې شو نو دغه شان بغیر د مخ ګرځولو نه، شا طرف ته څیز به ئې هم کتلو. لکه چه په حدیث د ابوهریرة ﷺ کښې دی چه نبی پاک ﷺ اوفرمائیلو چه تاسو څما مخ او چهره مخامخ د کتلو خیال کوئ (یعنی ستاسو خیال دا دې چه څه صرف مخامخ ګورم او شا طرف ته بغیر د مخ ګرځولو نه، نشم کتلې) په خدائې قسم ستاسو خشوع او خضوع څما نه، پټه نده څه تاسو ته د خپل شا طرف نه هم کتلې شم (رواه البغوی).

(۳) بعض اهل علمو د (تقلب) نه تصرف یعنی ګرځیدل راګرځیدل مراد کړیدی او د آیت مطلب دا دې چه الله ﷻ ته ستا تګ راتګ په مؤمنانو کښې معلوم دې او د ﴿ٱلسَّـٰجِدِينَ﴾ نه مراد مؤمنين دی. او چونکه نبی ﷺ به د مؤمنانو حالت معلومولو او خاص طور باندې د شپې په وخت کښې دهغوئ د عبادت شوق او جذبه معلومولو دپاره وقتاً، فوقتاً په هغوئ باندې به ئې چکر لګولو چه آیا دوئ خو چرې د الله ﷻ د عبادت او د آخرت د فکر نه غافله خوندی؟ (مدارک) او د

نبی پاک ﷺ احوال خاص نور هم ډیر وو. خو دلته صرف د تقلب فی الصحابه ذکر اوشو ، ځکه چه د نبی پاک ﷺ دا عمل د رحمت سبب وو. نو په دیکښې الله ﷻ اشاره اوکړه دیته چه کله تاسره د خپل امت د اصلاح دومره فکر دې چه د شپې هم د هغوئ حالت معلومه وې. او بیا ئې تربیت کوې نو ځه به هم په تاسو باندې خپل خصوصی رحمت ، اوکړم او د مخالفینو په مقابله کښې به ستاسو امداد اوکړم.

(۴) څلورمه معنی او مقصد بعض اهل علمو دا ذکر کړیدې چه د (تقلب) مراد منتقل کیدل دی او ﴿ٱلسَّـٰجِدِينَ﴾ نه مراد انبیاء کرام او پاک او صالحین خلک دی او د آیت مطلب او معنی ئې دا کړیده چه اې پیغمبره ﷺ ته الله ﷻ د اصلابو طاهرونه ارحامو طاهرو ته مسلسل منتقل کولې تر دې چه د حضرت عبدالله رضی الله عنه صلب او د حضرت امنه رضی الله عنها رحم ته را اورسیدلې. او بیا دې دنیا ته ظهور اوشو. نو د آیت مقصد دا شو د حضرت آدم علیه السلام او د حضرت حوا بی بی علیها السلام نه تر حضرت عبدالله رضی الله عنه او حضرت آمنه رضی الله عنها پورې د نبی پاک ﷺ ټولو اصولو ، که هغه مذکر دی یا مؤنث پاک صالح او مؤمنان دی. نو ددې وجې نه بعض اهل علمو ددې آیت نه استدلال کړیدې چه د نبی پاک ﷺ مور ، پلار دواړه مؤمنان وو. اودهغوئ مرګ په حالت د ایمان باندې شویدې. حافظ شمس الدین د مشقی عجیب اشعار وئیلی دی. فرمائی:

وینقل احد نورًا عظیما　　تلألأ فی وجوه السجدین

تقلب فیهم قرناً فقرناً　　الی ان جآء خیر المرسلین

**فائده**: د نبی پاک ﷺ والدین مؤمنانو اوکه غیرمؤمنان وو، دا یوه اختلافی مسئله ده. او غیر ضروری بحث دې، اهل علمو پدې موضوع باندې مختلف تصانیف کړیدی. علامه سیوطی رحمه الله پدې موضوع باندې رساله لیکلې ده چه په هغه کښې علامه رحمه الله دا ثابته کړیده چه د نبی پاک ﷺ والدین مؤمنان وو. او ملا علی قاری رحمه الله هم یوه رساله لیکلی ده چه په هغې کښې ددې ثابتولو کوشش کړیدې چه د نبی پاک ﷺ والدین غیر مؤمنان وو، لیکن د جمهورو مسلک دا دې چه د نبی پاک ﷺ والدین مؤمنان وو. اګر چه پدې آیت سره استدلال واضح ندې لیکن نور احادیث پدې سلسلې کښې وارد دی چه هغه پدې دلالت کښې ... نبی پاک ﷺ والدین مسلمانان وو، او دغه شان د نبی پاک ﷺ سره د محبت تقاضا ... د والدینو په باره کښې نېه ګمان

اوکړې شي. علامه آلوسی رحمه الله په روح المعانی کښې فرمائي چه (استدل بالأية على ايمان ابويه ﷺ كما ذهب اليه كثير من اجلة اهل السنة، و انا اخشى الكفر على من يقول فيهما رضى الله تعالى عنهما) (روح المعانی)

﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ دا علت دې د ما قبل د پاره چه الله ﷻ باندې توکل ځکه کوئ چه هغه ستاسو په ټولو احوالو باندې پوهه او خبردار دې. ﴿ هَلْ أُنَبِّئُكُمْ ﴾ دا متعلق دې د اولې شبهې جواب سره. او د هغې تتمه ده. خلاصه ئې دا ده چه دا قرآن د الله ﷻ کلام دې او د هغه د طرف نه نازل شویدې او د شیاطینو کلام ندې – او پیغمبر ته شیاطین نه راځی. ځکه چه د معلم (استاذ) او د متعلم (علم حاصلوونکې شاګرد) په مینځ کښې عملی او قولی مناسبت او موافقت ضروری وی – نو ځرنګه چه شیاطین دروغژن، بدعمله او سرکشه دی نو دغه شان شیاطینو راتګ هم هغه چاته کیږی چه هغه دروغژن، بدعمله او ګناه ګاره وی. چه د شیاطینو خبرې بنه په غور سره اوری چه هغه کاهنان دی چه ددې کاهنانو خبرې هم اکثر دروغ او بې اصله وی. او ددې بر عکس نبی ﷺ مجسمه د صدق، نیک سیرت او د پاک کردار والا دې. د هغه ﷺ هره خبره د دلیل په بنیاد وی. نو ځرنګه به نبی پاک ﷺ ته شیاطین خبرې راوړی. او نبی پاک ﷺ (العیاذ بالله) به کاهن شی او قرآن به کهانت شی. ددې بطلان بالکل بدیهی دې ﴿ تَنَزَّلُ عَلَىٰ كُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ﴾ (افاک) او (اثیم) دواړه صیغې د مبالغې دی. (افاک) مبالغه ده په (افک) کښې. نو د (افک) خپله معنی ده (سخت قسم دروغ) نو د (افک) معنی شوه ډیر سخت دروغژن. او اثیم هم مبالغه ده په اثم کښې. یعنی ډیر ګناګار او بدعمله انسان، او دا دواړه صفات د کاهنانو دی

﴿ يُلْقُونَ ٱلسَّمْعَ ﴾ ددې آیت درې معانی کړې شویدی (۱) ﴿يُلْقُونَ﴾ کښې ضمیر راجع دې ﴿أَفَّاكٍ﴾ او ﴿أَثِيمٍ﴾ ته. او چونکه افراد د افاک او اثیم ډیر دی نو ددې وجې نه ضمیر د جمع ورته راجع شو او ﴿ٱلسَّمْعَ﴾ په خپلې معنی سره دې نو د آیت مطلب دا دې چه دا کاهنان ډیر په توجه سره د شیاطینو خبرو ته غوږ کیدی. او ډیر په توجه سره د هغوئ خبرې اوری (۲) دویم احتمال دا دې چه ضمیر راجع دې شیاطینو ته او ﴿ٱلسَّمْعَ﴾ په خپلې معنی سره دې. نو مطلب دا شو چه دا شیاطین د

ملائكو خبرو ته غوږ كيدى او ډير په توجه سره ئې اوري (۳) دريم احتمال دا دې چه ضمير راجع دې شياطينو ته . او ﴿ٱلسَّمْعَ﴾ په معنى د (مسموع) سره دې . نو د آيت مطلب دا دې چه شياطين د كاهن په غوږ كښې هغه خبرې وراچوى كومې چه د ملائكو نه راپټې كړى وى او بيا ورسره كاهن ډير دروغ ګډ كړى . يوه خبره رشتيا وى او يو كم سل (۹۹) پكښې دروغ وى . نو عام خلك د هغې يوې خبرې د وجې نه د كاهن تصديق او كى ليكن د هغه يو كم سل دروغو د وجې نه د هغه تكذيب نه كوى لكه حديث كښې دى چه حضرت ابو هريرة ﷺ د نبى پاك ﷺ نه نقل كړيدى چه فرمائى چه :

اذا قضى الله الامر فى السماء ضربت الملائكة باجنحتها خضعانا لقوله كانه سلسلة على صفوان فاذافرع عن قلوبهم قالوا ماذا قال ربكم قالوا للذى قال الحق وهو العلى الكبير فيسمعها مسترق السمع ومسترق السمع هكذا بعضه فوق بعض ..........

فربما أدرك ا لشهاب قبل أن يلقيها ،وربما ألقاها قبل أن يدركه ،فيكذب معها مائة كذبة،فيقال:أليس قد قال لنا يوم كذا ،كذا وكذا،فيصدق بتلك الكلمة التي سمع من السماء (بخارى كتاب التفسير).

| |
|---|
| وَالشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوٗنَ ﴿۲۲۴﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّهُمْ فِيْ كُلِّ وَادٍ يَّهِيْمُوْنَ ﴿۲۲۵﴾ وَاَنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ |
| اوشاعران چه اتباع كوى دَدوئ ګمراهان،آيانه وينى ته شاعران چه په هرميدان كښې سرګردانه وى،اودوئ وائى |
| مَا لَا يَفْعَلُوْنَ ﴿۲۲۶﴾ |
| هغه څه چه كوى ئې نه |

﴿ وَٱلشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ ﴾دا دويمې شبهې جواب دې، چه كفارو به د نبى پاك ﷺ په باره كښې وئيلو چه (العياذ بالله) دې شاعر دې . او دا قرآن د اشعارو مجموعه ده . يعنى لكه څرنګه ء اشعار په تخيلاتو ، به غلط قسم خيالاتو او د دروغو په واقعاتو او كلام مقفى باندې مشتمل وى نو دغه شان (العياذ بالله) قرآن هم دې او دا قرآن د دې پيغمبر د شعر مجموعه ده، نو جواب اوشو . خلاصه د

جواب دا ده چه اشعار په بیهوده خبرو غیر ضروری مدحو او عاشقۍ په قصو باندې مشتمل وی او د هغې د وجې نه د شاعرانو متبعین او ملګری ګمراهان او بدمعاشان خلک دی، او ددې برعکس قرآن مجید د حکمت د خبرو د دنیا او د آخرت د رسوائی نه د بچاؤ په احکاماتو او د عبرت او نصیحت آموزو واقعاتو نه ډک دې. او ددې وجې نه د نبی پاک ﷺ ملګری انتهائی درجې متقیان، زاهدان، عابدان او الله ﷻ ته ژړاکوونکی دی.

**فائده**: شعر و شاعری کول او اشعار وئیلو شریعت کښې څه حیثیت دې؟ امام قرطبی رحمه الله پدې باندې مفصل بحث کړیدې. د هغې خلاصه ده چه پدې آیت کښې او دغه شان په څنې احادیثو کښې د شعر و شاعری لوئ ذم او بدی بیان شویده. په روایت د بخاری او مسلم کښ د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه منقول دی چه نبی پاک ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه (لان یمتلئ جوف رجل قیحا یریه خیر من ان یمتلی شعرًا. یعنی د یو سړی والا خیټه دپیپونونه ډکه شی چه ددې سړی صحت خراب او برباد کړی دا ددینه بهتر دې چه دې اشعار اوائي، او په یو بل روایت کښ د حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چه یو خلې مونږ د نبی پاک ﷺ سره په یو سفر باندې روان وو چه یو شاعر اشعار وئیلو راغې. نبی پاک ﷺ اوفرمائیلو چه دا شیطان منع کړئی کچرې د یو کس ګیډه د وینو او ځوو نه ډکه شی هغه ددینه بهتره دې چې دده په ګیډه کښ اشعار جمع شی. او څنې نورو روایتونو کښ دشعر او شاعری مدحه او صفت بیان کړې شویدې. لکه په یو روایت کښ راغلیدی (ان من الشعر لحکمة) یعنی څنې د اشعارو نه د حکمت والا وی او دغه شان مسند احمد کښې د حضرت کعب رضی الله عنه نه مروی دی چه کله دا مذکور آیت نازل شو نو حضرت کعب رضی الله عنه د نبی ﷺ پوښتنه اوکړه چه (یا رسول الله ان الله قد انزل فی الشعر ما قد علمت فکیف تری فیه؟ فقال النبی ﷺ ان المؤمن یجاهد بنفسه و سیفه ولسانه، والذی نفسی بیده لکان ما ترمونهم به نضح النبل (مسند احمد) یعنی حضرت کعب رضی الله عنه اوکړو چه یا رسول الله د شاعری متعلق چه الله ﷻ څه نازل کړیدی هغه خو معلوم دی نو زمونږ به څه کیږی (ځکه چه مونږ خو هم اشعار وئیلیدی) نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیلو چه یقیناً مؤمن په خپل نفس سره، په خپلې توری سره او په خپلې ژبې سره جهاد کوی او څما دې قسم وی د الله ﷻ په ذات! (چه کوم اشعار تاسو د دوئ په هجو کښې د خپلو ژبو نه اوباسئ ګویا چه دا د غشی ویشتل دی. او دغه شان نبی ﷺ حضرت حسان رضی الله عنه ته د اشعار وئیلو ترغیب ورکول او په مسجد نبوی کښ د هغه رضی الله عنه دپاره یو اوچت ځائ تیارول، او د هغه په

اشعارو حضور ﷺ خوشحاله کیدل ، او بیا د هغه د پاره دعا کول چه ( اللهم ایده بروح القدس ) چه اې الله ﷻ ! دده امداد په حضرت جبرئیل ﷺ سره اوکړې او ددې نه علاوه نور ډیر روایات داسې دی چه د هغې نه د اشعار وئیلو جواز، بلکه د ځنې روایاتو نه فضلیت معلومیږی . بلکه نبی پاک ﷺ په خپله هم دځنې شاعرانو والا اشعار وئیلی دی لکه د بخاري او مسلم په روایت کښې دی چه حضرت ابوهریرة ﷺ نه مروی دی چه نبی پاک ﷺ اوفرمائیلو چه د ټولو نه ښه کلام چه دجاهلیت شعراووئیلې دې هغه د لبید شاعر دا کلام دې " الا کل شی ء ما خلا الله باطل "او دغه شان په روایت د مسلم شریف کښې دی چه حضرت شدید ﷺ فرمائی چه یوه ورځ نبی پاک ﷺ سره څه په سورلئ باندې ورستو سورو ؤوم نبی پاک ﷺ ماته اوفرمائیلو چه دا امیه بن صلت څه شعر درته یاد دې . ما عرض اوکړو چه هاؤ ! ماته یاد دې نبی ﷺ اوفرمائیلو چه اوایه نو ما د نبی پاک ﷺ په حکم سره سل (۱۰۰) اشعار اوئیلو ، نوبهرحال ! ددې روایاتو نه د اشعارو فضلیت معلومیږی نو ددې وجې نه علماؤ قاعده بیان کړیده چه ( حسنه حسن وقبیحه قبیح ) یعنی کوم اشعار چه د الله ﷻ په ذکر، ترغیب الی الجهاد ، مدح رسول ﷺ او مسلمانانو ته په وعظ او نصیحت باندې مشتمل وی هغه وئیل جائز بلکه یو قسم عبادت دې او کوم اشعار چه په فضول او بهیوده خبرو ، د معاشقې په واقعاتو او د زمانو په صفتونو باندې مشتمل وی د هغې وئیل او اوریدل دواړه ناجائز دی . حضرت عمر ﷺ خپل یو ګورنر ( والی ) د عهدې نه صرف ددې وجې نه برطرف کړې وو چه هغه به فحش اشعار وئیلو ، اوحضرت عمر بن عبدالعزیز دوه مشران کسان عمرو بن ربیعه او ابوالاحوص د فحش اشعار وئیلو په جرم کښې جلا وطن کړی وو، بیا عمرو بن ربیعه توبه اویستله نو د هغه توبه قبوله کړې شوه . او واپس خپلې علاقې ته راغلو( قرطبی )

﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّهُمْ فِي كُلِّ وَادٍ ﴾ دا د شاعرانو د ګمراهئ اول دلیل دې، یعنی شاعران ګمراه ځکه دی چه ، دوئ په خپلو اشعارو کښې ډیر لوئ دروغ وائی ، د مدحو په کندو کښې سرګردان ګرځی . د دنیوی مقصد دپاره کله د یو کس هجوه او کله ئې صفت کوی . د ﴿وَادٍ﴾ نه مراد ، نوع د فنون یعنی مدحه ، ذم وغیره د اظهار دپاره چه کوم الفاظ وغیره استعمالیږی هغه دی . لکه عرب وائي ( انا فی واد وانت فی واد اخر ) یعنی څه د کلام په یوه وادی ( کنده ) کښې یمه او ته ئې بلې وادی کښې ئې ،

يعنى څه يو قسم خبره كوم او ته بل قسم خبره كوي او ﴿يَهِيمُونَ﴾ د (هيام) نه دي، هيام داسې مرض دې چه د هغې د وجې نه اوښ باندې سخته تنده اولګي او په اوبو پسې سرګردانه ګرځي.نو دا تمثيل دي،چه د دوئ حالت ئې مشابه کړيدې د کيفيت د تږی اوښ سره، نو د دوئ خيالی مضامين، اوتصورات،او تخيلات په منزله د کندو دی . او دوئ کيفيت د تږی اوښانو پشان دې . نو خلاصه ددې آيت دا ده چه د شعراؤ کلام غير تحقيقی ، غير ضروری مدحو ، فضول او بيهوده خبرو او په غلط قسم تخيلاتو باندې مبنی وی نو ځکه دوئ ګمراه وی.

﴿ وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ ﴾دا د دوئ ګمراهئ بل دليل دې، يعنی د شاعرانو قول او فعل کښې تضاد دې په خله يو څه وائی اوعمل کښې بل څه. دخلکو د بخل ذم بيانه وی او خپله بخل کوی . د شجاعت ترغيب ورکوی . او پخپله بزدلی کوی . او ددې برعکس نبی پاک ﷺ د هغه په قول او عمل کښې تضاد نيشته دې. قول ئې د عمل او عمل ئې د قول مطابق دې. او دغه شان د نبی پاک ﷺ په ژبه باندې د حق نه علاوه بل څه نه جاری کيږی . د دنيا پرستئ او هوا پرستئ نه خالی دې. او دغه شان قرآن د حق خبرو نه ډک دې،او ټولې پکښې د حکمت او عبرت خبری دی .

﴿ إِلَّا الَّذِينَ ءَامَنُوا ﴾دا استثناء ده د مؤمنانو شاعرانو د ماقبل نه ، ځکه چه په شعرآؤ کښې ځنې مومنان وو چه هغه د ايمان سره سره په خپلو اشعارو کښې د الله ﷻ حمد او د نبی پاک ﷺ مدحه ، جهاد او نيک اعمالو ته ترغيب او د کفارو هجوه بيا نه وله . او په اشعارو کښې به ئې د کفارو نه انتقام اغستلو او هغوئ ته به ئې تکليف رسولو، نو پدې کښې ددغه شان شعرآؤ استثناء اوشوله .

**شان نزول** : ددې آيت شان نزول په روايت کښې داسې ذکر شويدې، چه کله دا ماقبل اياتونه چه مشتمل دی په ذم د شاعرانو باندې نازل شو. نو په صحابه کرامو ﷺ کښې ځنې مخلص صحابه چه هغوئ هم شاعران وو ، لکه کعب بن مالک ، عبدالله بن رواحه او حسان بن ثابت رضوان الله عليهم اجمعين نو دا مذکور صحابه کرام نبی پاک ﷺ ته راغلو او عرض ئې اوکړو چه مونږ خو هلاک شو ځکه چه مونږ خو اشعار وايو، او الله ﷻ د شعراؤ ذم بيان کړيدې،نو الله ﷻ د دوئ په باره کښې دا اياتونه نازل کړو . او هرکله چه اعتبار خصوص د واقعې لره نوی بلکه عموم د الفاظوو

لره وي نو دديې وجې نه ، ددې آيت په حکم کښې هغه ټول شاعران راځي چه پدې مذکوره اوصافو باندې متصف وي، يعنې ايمان لري په خپلو اشعارو کښې نيک اعمالو ته ترغيب ورکوي. دالله ﷻ حمد او ذکر په اشعارو کښې کوي. او د مسلمانانو په انتصار او انتقام اخستلو باندې مشتمل وي. او ددې وجې نه علماء فرمائي چه جهادي ترانا دا هم يو قسم جهاد دې.

| |
|---|
| إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَذَكَرُوا اللَّهَ كَثِيرًا وَانتَصَرُوا |
| مګرداسې ندې هغه شاعران چه مؤمنان دی اونيک عمل کونکي دی اوذکرکوي دالله ﷻ ډيراوصرف بدل اخلي |
| مِنۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا ۗ وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَيَّ مُنقَلَبٍ يَنقَلِبُونَ ﴿٢٢٧﴾ |
| ورسته ددينه چه ظلم ورسره اوشي،اوزرده چه پوهه به شي ظالمان چه خومره سخت ځاي ته به لاړشي. |

﴿ إِلَّا الَّذِينَ ءَامَنُوا ﴾ايمان شرط اول دې ﴿ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ﴾مراد ورنه پخپله نيک عمل کول اونورو خلکو ته د نيک اعمالو ترغيب ورکول دی . ﴿ وَذَكَرُوا اللَّهَ ﴾مراد ورنه حمد د الله ﷻ دې﴿ وَانتَصَرُوا ﴾ مراد ورنه بدله اغستل دی دکفارونه، په هجوې کولو دهغوئ سره ﴿مِنۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا ﴾ پديکښې اشاره ده چه مسلمان شاعر ابتدا په هجوې سره نه کوي بلکه دده (هجوه) جوابي وي يعنې اول کفارد مسلمان سپکاوې او هجوه اوکړي، نو بيا ورنه مسلمان خپله بدله اخلي ﴿ وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ﴾ دا د سورت په آخر کښې تخويف دنيوي ذکر کيږي عامو مشرکينو ته هم. او خاص طور باندې هغه مشرکينو شاعرانو ته چه د نبي ﷺ او د مسلمانانو هجوه کوي﴿ أَيَّ مُنقَلَبٍ ﴾ ايّ کښې ابهام دې دپاره د تهويل او تفخيم شان او ﴿مُنقَلَب ﴾کښې اشاره ده چه د دوئ د دنيا خوشحالي به په سختو غمونو باندې بدله شي د مرګ نه ورستو حالت به ئې ډير سخت او ډير د تکليف وي ځکه چه د دوئ مرجع او ټهکانه جهنم دې، او فرق په مينځ د (منقلب) او (مرجع) کښې دا دې،چه (منقلب) انتقال هغې حالت ته وئيلې کيږي چه د موجوده حالت نه ډير بد وي او رجوع

انتقال د موجوده حالت نه سابقه او حالت ته بدلیدلو ته وئیلې کیږی . که ښه وی او ...
والفرق بين المنقلب و الرجع ان النقلب الانتقال الى ضد ما هو فيه . المرجع العود من حال هو فيه الى حال كان عليها (قرطبى) او په ﴿ يَنقَلِبُون ﴾سره اشاره ده تجدد دانتقالاتو ته چه په جهنم کښې به یو حالت به د دوئ د بل حالت نه بدتری . عذاب کښې به سختی راځی او هیڅ قسم کمی به پکښې نه راځی لکه په بل ځائ کښې فرمائی (كلما نضجت جلودهم بدلنهم جلودًا غيرها ليذقوا العذاب) او په بل ځائ کښې دی (كلما خبت زدنهم سعيرًا) او یا اشاره ده دیته چه د دوئ د ځنکدن حالت به ډیر سخت وی . خو دهغې نه زیات بد تر حالت به د دوئ په قبر او د برزخ کښې وی . او د هغې نه به زیات سخت حالت به د دوئ په میدان حشر کښې وی او بیا به د هغې نه زیات بدترین او سخت ترین حالت به په جهنم کښې وی (اللهم اجرنا بفضلك وبكرمك يا ارحم الراحمين) امين ثم امين

او د آیت دا حصه هغه ده چه اسلافو به پرې وصیت کولو ، حضرت ابوبکر رضی الله عنه د خپل وصیت اختتام پدې آیت سره کړې وو ،د تاریخ او سیرت په کتابونو کښې دی چه کله حضرت ابوبکر رضی الله عنه د وفات وخت قریب شو نوحضرت عثمان رضی الله عنه ته ئې حکم اوکړوچه ، قلم او کاغذ راوړه او څه حضرت عمر رضی الله عنه ته وصیت خبرې کوم ته ئې اولیکه او هغه ته ئې حواله کړه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د وصیت الفاظ داسې وو:

بسم الله الرحمن الرحيم ،هذا ما عهد به ابوبكر بن ابى قحافة رضی الله عنه عند اخر عهده بالدنيا و اول عهده بالاخرة فى الحال التى يؤمن فيها الكافر،ويتقى فيها الفاجر،ويصدق فيها الكاذب . انى قد استخلفت عليكم عمر بن الخطاب فان يعدل فذلك ظنى به ورجائي فيه، وان يجر ويبدل فلا علم بالغيب، والخير اردت،/ولكل امرئ ما اكتسب، وسيعلم الذين ظلموا اى منقلب ينقلبون.

**ترجمه** : بسم الله الرحمن الرحيم ،دا وصیت هغه دې چه ابوبکر بن ابو قحافة رضی الله عنه د دنیا د ژوند د اخری ورځې او د آخرت د ژوند اولې ورځې په وخت کښې لیکلې دې په داسې حالت کښې چه پدې وخت کښې کافر هم ایمان راوړی . گناه گار ، نیکوکار جوړ شی او دروغژن هم رښتیا وئیل شروع کړی . یقیناً ما په تاسو باندې عمر بن خطاب خپل جانشین جوړ کړو، پس کچرې هغه ستاسو سره عدل او انصاف کولو نو ځما د هغه متعلق دا گمان او امید وو ، او کچرې هغه په تاسو باندې

ظلم کوی او احکامات بدل کړی. (تخفیف په ځای سختی او نورو مذهبی احکاماتو کښې ردو بدل وکړی) نو څه عالم غیب نه یم. او څما اراده د خیر وه، او هرکس ته به د هغه عمل بدله میلاویږی کوم چه دې او کړی، وسیعلم الذین ظلموا ای منقلب ینقلبون.

| رکوعاتها (۷) | سورة النمل مكية | آیاتها (۹۳) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۳۱) وحسب النزول (۵۷)**

سورة النمل مکی سورت دې(۹۳)اياتونو،او(۷)رکوعاتوباندې مشتمل دې،ټول کلمات ئې (۱۱۴۹)اوټول حروف ئې (۴۲۹۹)دی،ترتیب قرآنی کښې اویشتم(۲۷)نمبراوترتیب نزولی کښې اته څلویښتم(۴۸) نمبرسورت دې،دَسورت قصص نه مخکښې اودَسورت الشعرآء نه وروستونازل شویدې،زمانه دَنزول ئې دورمتوسط دَمکې معظمې دې.

**ربط اسمی**: دَدې سورت دَماقبل سره ربط نامی دادې چه سورة الفرقان کښې ذکرددې خبرې ووچه قرآن مجیددَحق اوباطل په مینځ کښې فرق کوونکې دې،اوبیاپه سورة الشعرآء کښې اوئیلې شوچه قرآن شاعرانه کلام ندې بلکه دادَالله ﷻ دَطرف نه نازل شویدې اودعوه دَ تبارکَ دَالله ﷻ دطرف نه ده،نواوس پدې سورت کښې داذکرکیږي چه میږې چه دَحشرات الارض نه دې هغه هم داخبره کریده چه برکات ورکونکې ذات اوعالم الغيب ذات اومعبود تن تنهاالله ﷻ دې،انسان اومخلوقات که هرڅومره لوئې مرتبې والاشی خوخدائی قدرت ورته نشی میلاویدلې نودَدې وجې نه میږې نورومیږوته اوئیلوچه﴿لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمَٰنُ وَجُنُودُهُ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ نوپه﴿لَا يَشْعُرُونَ﴾سره ئې دعوئ دَسورة الفرقان اوسورة الشعرآء ذکرکړه.

**ربط معنوی**: ربط په اعتباردَمضمون سره دادې چه په سورة الشعرآء کښې دلائل نقليه په توحیدباندې ذکرشونوپه سورة النمل کښې دَڅلورواقعاتوپه ضمن کښې دَدعوئ مذکورې دَپاره دوه(۲)علتونه بیانیږی(۱)چه غیب دان یعني عالم الغيب صرف الله ﷻ دې(۲)کارساز اومتصرف صرف الله ﷻ دې،نولهذابرکاتوورکوونکې ذات هم صرف اوصرف الله ﷻ دې.

(۲)دغه شان دَسورة الشعرآء په آخرکښې صدق دَقرآن ذکرشوپه مختلفودلائلواوپه دفع کولودَشبهاتوسره نواوس پدې سورت کښې ترغيب ورکولې کیږی قرآن ته چه﴿تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْقُرْءَانِ﴾.

**خلاصه**: دَسورت دَمضامینومختصره خلاصه داده چه پدې سورت کښې تمهید مع ترغیب دې اواصل مقصود پکښې دوه(۲)دعوې دی چه هغه په حقیقت کښې دوه(۲)علتونه دی دَدعوی دَ(تبارك)دَپاره،اودواړوعلتونودَتائیددَپاره څلورواقعات ذکرکیږی(۱)قصه دَموسیٰ(۲)قصه دَسلیمان(۳)قصه دَصالح او(۴)قصه دَلوط اوبیادَهرې دعوې دَپاره بطورلف،نشرغیرمرتب په لفظ دَقل سره دوه(۲)ثمرې بیانیږی اوپه مینځ کښې پنځه دلائل عقلی علی سبیل الاعتراف په توحیدباندې ذکرکیږی څه تخویفات، بشارتونه، تسلی ګانې اوشکوې اوجواب شکوې ذکرکیږی.

**تفصیلی خلاصه**: تفصیلی خلاصه ئې داده چه آیت نمبر(۱، ۲)کښې تمهیدمع الترغیب ذکرکیږي،په آیت نمبر(۳)کښې بشارت دې،په آیت نمبر(۴، ۵)کښې تخویف اخروی دې،په آیت نمبر(۲)کښې ترغیب الی القرآن سره دَتسلی نه ذکرکیږی،دَآیت نمبر(۷)نه ترآیت نمبر(۱۴)پوری اوله واقعه ذکرکیږی چه واقعه دَحضرت موسیٰ ده،اودَدې په ضمن کښې دَدعوی دَتبارك دَپاره اول علت ذکرکیږی چه دَدې واقعې دَموسیٰ نه معلومیږی چه انبیاء کرام غیبدان ندی،ځکه چه حضرت موسیٰ دَالله نورته ناروئیلی وو،نومعلومه شوه چه عالم الغیب صرف الله دې،دَآیت نمبر(۱۵)نه ترآیت نمبر(۴۴)پورې دویمه واقعه ذکرکیږی چه واقعه دَحضرت سلیمان ده اودَدې واقعې په ضمن کښې هم دَاول علت بیان مقصوددې،چه دَهدهدغائب کیدلووجه اودَملکه سبا(بلقیس)اودَهغې دَقوم حالاتوعلم حضرت سلیمان ته نوو،نومعلومه شوه چه غیبدان اوعالم الغیب صرف الله دې، اوهرکله چه داثابته شوه چه عالم الغیب صرف الله دې نودَدې نه داهم معلومه شوه چه برکات ورکوونکې ذات هم صرف الله دې،دَآیت نمبر(۴۵)نه ترآیت نمبر(۵۳)دریمه واقعه ذکرکیږی اودَهغې په ضمن کښې دَدعوې مذکورې دَپاره دَدویم علت بیان مقصوددې،چه حضرت صالح ته نجات ورکول اودَهغه مخالفین هلاکت محض دَالله تصرف وو،نومعلومه شوه چه تصرف کوونکې ذات صرف الله دې نوبرکاتوورکوونکې ذات هم صرف اوصرف هغه دې،دَآیت نمبر(۵۴)نه ترآیت نمبر(۵۸)پورې څلورمه واقعه ذکرکیږی چه هغه واقعه دَحضرت لوط ده اودَهغې په ضمن کښې هم دَدویم علت بیان مقصوددې په آیت نمبر(۵۹)کښې بطورلف نشرغیرمرتب په دویم علت باندې تفریع ده،دَآیت نمبر(۲۰)نه ترآیت نمبر(۲۴)پورې پدې علت

مذکوره باندې پنځه(۵)عقلی دلائل علی سبیل الاعتراف من الخصم ذکرکیږی،په آیت نمبر(۶۵)کښې تفریع ده په اول علت باندې په ایت نمبر(۶۶،۶۷،۶۸، )کښې شکوه ده دَمنکرینو دَبعث بعد الموت نه،په آیت نمبر(۶۹)کښې تخویف دنیوی دې،په آیت نمبر(۷۰)کښې نبی پاکﷺ ته تسلی ده،په آیت نمبر(۷۱،۷۲، ۷۳)کښې شکوی سره دَجواب شکوی نه ذکرکیږی.په آیت نمبر(۷۴،۷۵)کښې دلیل عقلی ذکرکیږی چه متعلق دې دَاول علت سره،په آیت نمبر(۷۶)کښې صداقت دَنبی پاکﷺ ذکرکیږی،دآیت نمبر(۷۸)نه تر(۸۱)پورې تسلی ده نبی پاکﷺ ته،په آیت نمبر(۸۲)کښې تخویف دنیوی دې،دآیت نمبر(۸۳)نه تر(۸۵)پورې تخویف اخروی ذکرکیږی،په آیت نمبر(۸۶)کښې بل دلیل عقلی ذکرکیږی چه متعلق دې دَدویم علت سره،په آیت نمبر(۸۷ ،۸۸)کښې تخویف اخروی دې،په آیت نمبر(۸۹)کښې بشارت اخروی دې اوپه آیت نمبر(۹۰)کښې بیاتخویف اخروی دې،په آیت نمبر(۹۱،۹۲)کښې دلیل وحی ذکرکیږی،اوپه آخیرکښې یعني آیت نمبر(۹۳)کښې بطورثمره په دلائلو او واقعاتو باندې تفریع ذکرکیږی.

| |
|---|
| طٰسٓ تِلْكَ اٰيٰتُ الْقُرْاٰنِ وَكِتَابٍ مُّبِيْنٍ ۙ﴿۱﴾ هُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ۙ﴿۲﴾ |
| طس،[1] داآیاتونه دقرآن اودکتاب بیانونکی دی،چه لاره ښودنکې دې اوزیرې ورکونکې دې مؤمنانوته |
| الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ﴿۳﴾ |
| هغه مؤمنان چه پابندی کوی دمونځ اوورکوی زکوة اودوی په آخرة هم دویٔ یقین کونکی دی |

﴿طسٓ﴾ داتمهید مع الترغیب ذکرکیږی، او﴿طسٓ﴾ دحروفو مقطعاتونه دې اومحل من الاعراب ورله نیشته دې،ځکه چې اعراب فرع دمعرفت دمعنٰی دې اوبعض فرمائی چه دااسم دې داسماؤدالله ﷻ نه،اوبعض فرمائی چه نوم دې دنومونودنبی پاک ﷺ نه اوحرف نداء ورسره محذوفه ده نوپه اصل کښې داسې دې یاطس یعنې ای نبی پاک ﷺ! اوبعض فرمائی چه نوم دې ددې سورت،اوپدې سره اشاره ده لویو واقعاتو ددې سورت ته چه یوه واقعه دحضرت موسیٰ علیه السلام ده اوبله واقعه دحضرت سلیمان علیه السلام ده،نو "طاء" سره اشاره ده حکمتونودطور ته،چه هغه سبب اوګرځیدلو دسقوط دبادشاهی دفرعون دپاره اودهغه دهلاکت دپاره ځکه چه هغه ظلم،جبراوناانصافی کوله،اوپه "سین" سره اشاره ده واقعې دسلیمان علیه السلام ته،چه دهغه حکومت په عدل اوانصاف باندې مبنی وو،نوځکه ورته الله ﷻ ترقی ورکړې وه،اوچونکه پدې سورت کښې احوال دنبی پاک ﷺ تفصیلاً نه ذکرکیږی نوځکه "میم" ورسره ذکرنشو،اوداسې اونوئیلې شوچه "طسم".

﴿تِلْكَ اٰيٰتُ الْقُرْاٰنِ﴾ مشارالیه د "تلك" دپاره آیاتونه ددې سورت دی اواسم اشاره بعیده ذکرکول دپاره ددلالت په بعدرتبی دی.او﴿وَكِتَابٍ مُّبِيْنٍ﴾ په "القرآن" باندې عطف دې اوعام مفسرین فرمائی چه دادقبیلې دعطف الصفة علی الصفة نه دې،ځکه چې القرآن اوکتاب دواړه دیوشیز یعنی "منزل من الله" دپاره دوه (۲) صفتونه دی،ځکه چه مدلول ددواړو یودې، اومقصودداسې ترکیب یعنې عطف الصفة علی الصفة نه کمال مدحه دموصوف وی،لکه وئیلې شی چه: هذاالفعل السخی والجواد،اواضافت دآیت القرآن اوکتاب ته دپاره دتعظیم

---

[1] تمهید اوترغیب

دآياتونودي،ځکه چه عظمت دَمضاف مستفادوی دَعظمت دَمضاف اليه نه اوپه ﴿كِتَابٍ﴾ کښ تنوين دَپاره دَتعظيم اوتفخيم دې اواتصاف دکتاب په مبين سره شويدې ځکه چه قرآن مظهردَحق اووضاحت کوونکي دَاحکاماتودې.

دحضرت شيخ رحمه الله رائي داده چه دَ کتاب نه مراد جنس کتاب دې چه تمام کتب سابقوته شامل دې،نوپدې صورت کښ﴿ءَايَٰتُ ٱلْقُرْءَانِ﴾سره اشاره ده ديته چه پدې قرآن کښ ځنې مضامين داسې دی چه په کتب سابقوکښ نه وو،اوپه﴿كِتَابٍ﴾سره اشاره ده چه داقرآن دکتب سابقوټولومضامينولره جامع دې اوهغه ټول مضامين پديکښ مذکوردی کوم چه په کتب سابقوکښ وو،اوپه﴿مُّبِينٍ﴾سره اشاره ده وضاحت دَمقاصدوته،نودآيت مقصدداشوچه داقرآن داسې عظيم الشان کتاب دې چه دکتب سابقومضامينولره جامع کيدلوسره سره،په ځنواضافی اهم مضامينوباندې هم مشتمل دې اودَمقاصدووضاحت پکښ هم شته دې.

**فائده**: پدې سورت کښ قرآن معرف﴿ٱلْقُرْءَانِ﴾او(کتاب)منکر﴿وَكِتَابٍ﴾ذکرکړې شو. اوپه سورة الحجرکښ برعکس دې،هلته قرآن منکراو کتاب معرف ذکرکړې شويدې،وجه داده چه دادواړه علمين هم ګرځي دمړل من الله دَپاره اووصفين هم ګرځي نوکله چه پديکښ دَمعنی علمی اعتباراوکړې شی نوهلته به بيامعرفه يعنی معرف باللام وي اوکوم ځائ کښ چه دَمعنیٰ وصفی اعتباراوکړې شي نوهلته به بيامنکروی،نودلته دَقرآن نه معنیٰ علمی معتبرکړې شويده نوځکه معرف باللام ذکرکړې شواود کتاب نه معنی وصفی معتبرکړې شويده نوهغه منکرذکرکړې شواوپه سورة الحجرکښ دَدې برعکس مرادکړيدی نوځکه هلته قرآن منکراوکتاب معرف باللام ذکرکړې شو.

﴿هُدًى وَبُشْرَىٰ﴾دادوه صفات دَقرآن ذکرکيږی اوحمل دَ﴿هُدًى﴾اود﴿وَبُشْرَىٰ﴾په قرآن باندې يامبالغتاً دې اويامبنی للفاعل دې نو﴿هُدًى﴾په معنی دَهاديًااو﴿وَبُشْرَىٰ﴾په معنی دَمبشراًسره دې،اودايابه موضع دَنصب کښ حال واقع شويدې دَ﴿ءَايَٰتُ﴾نه اوياخبربعد الخبردې دآيت مقصددادې چه داعظيم الشان قرآن اوپديکښ مذکورمضامين مؤمنانودَپاره عظيم مقاصدوته رهنمائی کوونکی اوبشارت کوونکی دی،اوتخصيص دَمؤمنانواوشو

حالانکه قرآن مجید دَهرچا دَپاره ذریعه دَهدایت ده خو چونکه مؤمنین ورنه نفع اخلی نو ځکه ئې تخصیص اوشولو اوبعض فرمائی چه "مؤمنین" نه مراد بالفعل مؤمنین ندی مراد بلکه بالقوه مؤمنین مراد دی، چه تعبیرترینه په "الصائرین للایمان" سره کیږی، او داهغه کسان دی چه په زړونو کښې ئې انابت الی الله وی، اوبعض فرمائی چه ﴿لِلْمُؤْمِنِينَ﴾ قید صرف دَ ﴿وَبُشْرَىٰ﴾ دَپاره دې اودَ ﴿هُدًى﴾ دپاره ندې، دَهغې دَپاره قید محذوف دې چه "للناس" دې، نو دآیت مطلب دادې، چه داقرآن دَعامو خلکو دَپاره هدایت دې اودَمؤمنانو دپاره بشارت دې اوداهم ممکنه ده چه اونیلې شي چه مراتب دَهدایت متعدد دی، نو قرآن دکافرانو دَپاره په خپل مرتبې کښې هدایت دې اودَمؤمنانو دَپاره په خپل مرتبې کښې. (والله اعلم بالصواب).

﴿الَّذِينَ يُقِيمُونَ﴾ داصفت مادحه دې دمؤمنانو، اوهرکله چه "اقامة الصلوٰة" او "ایتاء الزکوٰة" او "ایمان بالاخرة" دَامورمعظمو دَدین نه وونو دَې وجې نه تخصیص بالذکرئې اوشو، ورنه مراد ترینه مطلق اعمال صالحه دی، اوبعض فرمائی چه په "اقامة الصلوٰة" سره اشاره ده عبادت بدنی ته، او "ایتاء الزکوٰة" سره اشاره ده عبادت مالیه ته او "ایمان بالاخرة" سره اشاره ده اعتقادیاتو ته، نو دآیت مقصد دادې چې عبادت بدنیه اومالیه په پابندئی سره کوی اواعتقادئې هم صحیح وی، اوبعضو دَ"زکوٰة" نه تزکیه نفس مراد کړیده اودلیل ئې دادې چه داسورت مکی دې اوزکوٰة مالی په مدینه کښې فرض شوې وو، نو لهذا زکوٰة دلته په مالی زکوٰة باندې نشی حمل کیدلې، لیکن دَدوئی دااحتمال خلاف ظاهر اومتبادر دې، اواستدلال ئې ضعیف دې ځکه چه اصح قول دادې چه زکوٰة فرضیت په مکې کښې وو، البته تعیین دَمقادیرو ئې په مدینه کښې شوې وو، یعنی اجمالی طورباندې فرضیت دَزکوٰة په مکه کښې شوې وو، اوتفصیلی طور باندې اودمکمل جزئیاتو وضاحت ئې په مدینه کښې شوې وو، اودلیل پرې دادې چه سورة المزمل بالاتفاق مکی سورت دې اوپه هغې کښې ذکر دَزکوٰة راغلیدې.

﴿وَهُم بِالْآخِرَةِ هُمْ﴾ "هم" مبتداء ده ﴿يُوقِنُونَ﴾ جمله ورله خبر دې او ﴿بِالْآخِرَةِ﴾ متعلق دې په خبرپورې، او ﴿هُمْ﴾ ضمیر په مینځ کښې دَتاکید دَمبتداء دپاره دې فصل اوفرق دپاره نه ندې ځکه چه دَمبتداء اوخبر په مینځ کښې فرق په متعلق سره راغلیدې اوپدیکښې اشاره ده کمال

يقين دَدوئ ته، اوهركله چه "اقامة صلوة" او "ايتاء الزكاة" متكرر اومتجدد كيږي په خپلو اوقاتو كښې نودَدې وجې نه ئې ذكرپه فعل مضارع سره اوشوچه هغه هم دلالت په تجدداوحدوث باندې كوي او "ايقان بالاخرة" يعنى په آخرت باندې يقين لرل پديكښې مقصود اومطلوب ثبوت اودوام دې نودَدې وجې نه دَهغې ذكرپه جملې اسميې سره اوشوچه هغه هم دلالت كوى به دوام اواستمرارباندې.

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ زَيَّنَّا لَهُمْ اَعْمَالَهُمْ فَهُمْ يَعْمَهُوْنَ ۝ |
| بيشكه هغه خلق چه ايمان نه راوړى په آخرت ښائسته كړيدى مونږدوئ ته بدعملونه دَدوئ نودوئ سرګردانه دى |
| اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْعَذَابِ وَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ ۝ وَاِنَّكَ |
| دغه خلق هغه دى چه دوئ لره بدعذاب دې اودوئ به په آخرت كښې هم دوئ ډيرتاوانيان وى.اوبيشكه ته(اى پيغمبره) |
| لَتُلَقَّى الْقُرْاٰنَ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ عَلِيْمٍ ۝ |
| خامخاتاته دركولى شى قرآن دَطرف دَهغه ذات نه چه ډيرحكمت والاډيرپوهه دى |

﴿إِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ احوالواوصفاتودَمؤمنانوذكركولونه ورستواحوال اوصفات دكافرانوذكركيږى،اوتخويف اخروى دې منكرينوته،يعنى كوم خلک چه دَآخرت منكردى په الله ﷻ باندې ايمان نه لرى هغوئ ته خپل بداعمال خائسته ښكارى،دوئ دَپاره په آخرت كښې سخت عذاب دې اودوئ به په سخت ترين تاوان كښې وى. ﴿زَيَّنَّا لَهُمْ أَعْمَالَهُمْ﴾ دَ "اعمالهم" نه مراداعمال قبيحه دَدوئ دى،لكه شرک،كفر،زنا،قتل وغيره،اودَافعال قبيحه دَتزئين نسبت كله الله ﷻ خان ته كوى لكه چه دلته دى،اوكله ئې نسبت شيطان ته كوى لكه په سورت النحل آيت نمبر(۶۳)كښې دى،نودَاهل السنة والجماعة په نيزنسبت دَتزئين الله ﷻ ته كيدل حقيقةً دى،يعنى حقيقت عقلى دې،ځكه چه خالق دَتزئين الله ﷻ دې،يعنى الله دَانسان په نفس كښې اوطبعيت كښې معاصيو طرف ته خواهش پيداكيدلو،اودَشهواتوپوره كولومحبت ايخې دې.

نودَدې وجې نه الله ﷻ ته دَدې تزئين نسبت كول حقيقت عقلى دې،اوشيطان ته نسبت كول مجازعقلى دې ځكه چه شيطان خالق دَتزئين ندې،بلكه هغه وسوسې اچوى انسانانوته،نوهغه سبب ظاهرې دَتزئين دَپاره دې،اواسنادونسبت سبب ته كول اسنادمجازى دې.

﴿فَهُمْ يَعْمَهُونَ﴾ "فاء" دپاره دترتب ده په ماقبل باندې،عامومفسرينود"عمه" تفسيردلته په تحيرسره کړيدې اودآيت مقصدئې دابيان کړيدې چه دوئی په بدواعمالوکښ انهماک اودمشغولتيا دوجې نه په تردد،تحيراوپريشانئ کښ مبتلادی لکه څرنګه يوکس په خوشې صحراء کښ لاره خطاء کړی نوکله يوطرف ته اوکله بل طرف ته حيرانه اوسرګردانه ګرځی،ليکن داتفسيرغيرواضح دې،څکه چه دامرتب دې په﴿زَيَّنَّا لَهُمْ أَعْمَـٰلَهُمْ﴾باندې اودتزئين په وجې سره تحير اوترددنه راځی،بلکه ثبات دوام اواستمرارراځی،نودې وجې نه ابوسعوددې تفسيرپه «يستمدون»او«يداومون»سره کړيدې،اوحضرت ابو العاليهﷺ نه دې تفسيرپه "يتمادون"سره منقول دې اوحضرت قتادهﷺ نه په "يلعبون"سره مروی دې.

﴿أُوْلَـٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ﴾ مراددينه هغه کسان دی چه پدې ماقبل صفاتوباندې متصف وی،اوپه﴿سُوٓءُ ٱلْعَذَابِ﴾سره مرادعذاب دجهنم دې،او﴿ٱلْأَخْسَرُونَ﴾صيغه دتفضيل ده اومفضل عليه ورله ددوئ ددنياحالت دې،اومفضل ددوي دآخرت حالت دې،يعنی يوڅيزهم مفضل دې اوهم مفضل عليه اوتغايرپکښ په اعتباردزمان اومکان سره دې،نوکفارپه دنياکښ هم په خساره اوتاوان کښ دی اوپه آخرت کښ هم،ليکن دآخرت تاوان اوخساره ئی ددنيادخسارې نه زياته ده،دنياکښ خساره اونقصان دادې چه خپل وخت،محنت،کوشش اومال عبث کړی،څکه چه بداعمال ورته خائسته کړې شوی وی نودوئ پدغې اعمالوکښ وخت هم لګوی،محنت کوی،خپل مالونه هم خرچ کوی اوپه آخيرکښ دمسلمان دلاسه قتل ياقيدشی،خواراوذليل شی اوآخرت کښ لوئ تاوان دادې چه ددوئ عمل فضول اوعبث شی اوڅه اجرپرې ورته ميلاؤنشی بلکه التادجهنم سزامستحق شی اودې بدواعمالودوجې نه هميشه دپاره جهنم ته لاړشی.بعض فرمائی چه﴿ٱلْأَخْسَرُونَ﴾دلته دتفضيل دپاره نده بلکه مبالغه ترينه مراده ده ليکن اول قول زيات غوره دې.

﴿وَإِنَّكَ لَتُلَقَّى ٱلْقُرْءَانَ﴾دامتعلق دې داول ايت سره اوپديکښ هم ترغيب الی القرآن دې،اوپدې آيت کښ اول خطاب دې نبی پاکﷺ ته،دپاره دتسلی دنبی پاکﷺ،اوپه خلوروتاکيداتوسره نبیﷺ ته تشجيع ورکولې کيږی په بيانولودقرآن سره او«تلقی»په اصل کښ دملاقات دپاره مخامخ کيدلوته وئيلې کيږی،دلته ترينه مراد زده کول اوحاصلول دی،او"لام"پکښ

دتاکید دپاره دي،دآیت مقصد دادي چه داقرآن خامخاتاته ښودلې کیږي اوتاته حاصلیږي اوته ئې ښه په مضبوطتیاسره قبلوې.(قرطبی)

﴿ مِن لَّدُنۡ﴾لدن په معنی دعند سره دي،اودادویم تاکید دي په حذف کولو دواسطې سره په مینځ د مرسل اومرسَل الیهم کښ،چه هغه واسطه حضرت جبرئیل عليه السلام دي.اوهرکله چه کلام دمرسَل اوخبره درسول په حقیقة کښ کلام اوخبره دمرسِل وی،ددې وجې نه واسطه دلته تاکید دپاره حذف کړې شوه.

﴿حَكِيمٍ عَلِيمٍ﴾دا مزید دوه(۲)تاکیدات دی،اوپدیکښ تنوین دپاره دتعظیم دي دي سره اشاره ده تفخیم دقرآن ته اوتمهید دي دپاره دراتلونکو واقعاتو چه دا راتلونکي واقعات په ډیرو حکمتونو باندې مشتملې دی اودالله ﷻ دعلم مظهردی.

| |
|---|
| إِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِأَهۡلِهِۦٓ إِنِّيٓ ءَانَسۡتُ نَارٗا سَـَٔاتِيكُم مِّنۡهَا بِخَبَرٍ |
| [1]کله چه اوویل موسی عليه السلام ښځې خپلې ته چه بیشکه مااولیدلو اور،زر ده چه رابه ورم تاسوته دهغې نه څه خبر |
| أَوۡ ءَاتِيكُم بِشِهَابٖ قَبَسٖ لَّعَلَّكُمۡ تَصۡطَلُونَ ۝٧ فَلَمَّا جَآءَهَا |
| یابه راوړم تاسوته لمبه بله کړې شوی لپاره ددی چه تاسوورته ګرم شئ.پس کله چه راغلوموسی هغه اورته |
| نُودِيَ أَنۢ بُورِكَ مَن فِي ٱلنَّارِ وَمَنۡ حَوۡلَهَا وَسُبۡحَٰنَ ٱللَّهِ |
| اوازورته اوکړې شوچه مبارک دي هغه چه پدې اورکښ دي اوګیرچاپیره دي ددینه اوپاکی ده الله ﷻ لره |
| رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝٨ يَٰمُوسَىٰٓ إِنَّهُۥٓ أَنَا ٱللَّهُ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ۝٩ |
| چه رب العالمین دې.اې موسی عليه السلام بیشکه صرف څه الله ﷻ یم غالب حکمتونو والا. |

﴿إِذۡ قَالَ مُوسَىٰ﴾دتمهید اوترغیب نه ورستو اوله واقعه ذکرکیږي چه دا واقعه دحضرت موسی عليه السلام ده اودا متعلقه ده داولې دعوی سره چه غیبدان صرف الله ﷻ دي.انبیاء کرام چه جلیل القدر هستئ دی خو غیبدان نوو،ځکه چه موسی عليه السلام نورته نارو ئیلی وو.

[1]اوله واقعه متعلقه د اولي دعوی سره

دَموسی علیه السلام تفصیلي واقعه په سورۃ القصص کښې ذکرکیږي،دلته دَهغې واقعې صرف هغه حصه ذکرکیږي چه دَدې سورت ددعوې سره متعلقه ده اودغه شان څه حصه په سورۃ طه کښې هم ذکرشوې ده اوپه سورۃ الشعرآء کښې دَموسی علیه السلام دَنبوت ابتدائی حالات ذکرشوي اوپدې سورت کښې دهجرت نه بعد د سفرابتدائی حالات ذکر کیږي.چه دامشتمل دی په ډیروحکمتونوباندې مختصرتشریح ئې دا دچې کله موسی علیه السلام دقبطي دمرګ نه پس مدین ته راغلو اود شعیب علیه السلام سرئ ملاقات اوشواودَهغه سره ئې مقرره نیټه پوره کړه اومقرروخته پورې ئې دَهغه سره کاراوکړواودَهغه دَبچئ سره ئې نکاح اوکړونوبیاڅه وخت ورستو دَخپلې مورملاقات دَپاره دَمدین نه مصرته راروان شو،موسی علیه السلام دَعام آمدورفت لارې نه علاوه په بلې لارې باندې روان شو،دَشپې سفرئې کولودَحضرت موسی علیه السلام نه لاره خطاء شوه،شعیب علیه السلام ورله څه بیزې ورکړې وې،هغې ترینه مخکښې ورستوشولې،شپه هم ډیره یخه وه ځکه دَژمی شپه وه،اوبی بی ئې هم بیماره وه دَاولاد په بیمارئی سره نوپدې پریشانئ حالت کښې موسی علیه السلام لرې رنړا اولیدله چه موسی علیه السلام پرې ګمان دَاور اوکړوچه هغه په حقیقت کښې نور وو،نوخپلې بی بی ته ئې اوئیلوچه ما اور اوکتلو،نوکیدې شی چه هلته څوک وی نودَهغوئی نه،به دلارې تپوس اوکړم اوتاسوته به اورهم راوړم چه تاسوورته ځان ګرم کړئ.

﴿سَـَٔاتِيكُم﴾ سین یادَتقریب دَپاره دې اوداحضرت موسی علیه السلام دَدفعې دَاستیحاش دَپاره ذکرکړې ووچه چونکه هغه رنړادَهغې ځای نه لرې وه کوم ځائ کښې چه موسی علیه السلام دَخپل بی بی سره ناست وو،نوبعدمسافت دَوجې نه دَموسی علیه السلام واپس راتلوکښې تاخیرکیدې شو،نودَدې وجې نه دَحضرت موسی علیه السلام بی بی ته پریشانی اویره راتلل یوفطری امروو،نوحضرت موسی علیه السلام دې ته تسلی دَپاره اوفرمائیلوچه ﴿سَـَٔاتِيكُم﴾ چه څه به زرواپس راشم اویا سین دَپاره دَتاکیددې اودَعربوعادت دادې چه په وعده کښې تاکیداوقوت پیداکولودَپاره په مضارع باندې سین داخله وی.

کچرې څوک اشکال اوکړی چه په سورۃ طه اوپه سورۃ القصص کښې موسی علیه السلام خپل واپس راتګ په (لعلّي) سره ذکرکړیدی،او لعلّ دَپاره دَترجی دې چه دلالت په ترددباندې کوی اودلته ﴿سَـَٔاتِيكُم﴾ ذکرشوچه دادلالت په قطعیت اوتیقن باندې کوی،نوترجی اوتیقن دواړه متنافیین دی

نوګویاچه په دواړوآیاتونوکښ منافات اوتعارض دې؟ نوجواب ترینه دادې چه کله رجاء اوامید قوی وی نوهغه په منزله دَمتیقن شمارلې کیږی،لکه چه وئیلې شی "سافعل کذا"باوجوددَدې چه امکان بکښ دَناکامئ اودَنه کولوهم وی،خوچونکه دکولوامیداورجاء قوی وی نوځکه دغه شان عبارت وئیلې کیږی،نوپه سورة طه اوسورت القصص کښ"لعلّ"ذکرکول دَنفس رجاء دَوجې نه دی،اودلته"سین"ذکرکول چه دلالت په قطعیت اوتیقن باندې کوی دَاظهارعزم،اوپه امید کښ دَقوت دَپاره دی،﴿ بِخَبَرٍ ﴾دَدینه مراداطلاع اوخبردَصحیح لارې دې.

﴿ بِشِهَابٍ قَبَسٍ ﴾"شهاب"په اصل کښ شعلې اورنړاته وئیلې کیږی او"قبس"په معنی دَمقبوس سره هغې اورته وئیلې کیږی چه دَډیراورنه اغستلې شوې وی چه تعبیرترینه به پښتوکښ په"بل لیتکی"سره کیږی نودَ آیت مقصددادې چه دَبل لیتکی شعله به راوړم،حضرت موسی علیه السلام پدې ځائ کښ دوه(۲)څیزونه علی سبیل مانعة الخلو،ذکرکړل چه اطلاع دَصحیح لارې ده اویااورنه بل لیتکې راوړل دی،وجه داده چه دَموسی علیه السلام دَالله ﷻ په ذات باندې یقین اواعتمادکامل ووچه یوامربه ماته خامخاحاصلیږی،یعنی یاخوبه دواړه امرین حاصل شی اوکه دواړه حاصل نشی نوخلوه به دَدواړونه،نه راځی یوامربه خامخاحاصلیږی،چه دامدلول دَمانعة الخلودې،پدیکښ اشاره ده چه اسباب اختیارول خلاف توکل ندی اودغه شان دَدې آیت نه معلومه شوه چه حضرت موسی علیه السلام غیبدان نووځکه چه لاره ترینه خطاء شوې وه اودَهغې تپوس ئې دَبل چانه کولواودغه شان په نوراوتجلی باندې ګمان دَاوراورکړو.

﴿ فَلَمَّا جَآءَهَا﴾هرکله چه موسی علیه السلام هغې رڼاوالاځائ ته راغلې نوحیران شوچه دارڼادَیوې شنې اونې نه راوتله،نوپدې وخت کښ دَدغې رڼانه موسی علیه السلام ته اواز اوشو،اومفسرین فرمائی چه داوازداسې عجیب اوغریب ووچه یومخصوص جهت ورله نووبلکه دَهرطرف نه اوریدلې شواودَموسی علیه السلام دَبدن هرهرعضوې اوهرهرحصې اوریدلو،یعنی یوغیبی اوازووچه بلاکیف اوبلاجهته ووالبته مبدائې هغه رڼاوه.

﴿ نُودِيَ أَنۢ بُورِكَ مَن فِى ٱلنَّارِ ﴾ دَدې په تفسیرکښ اقوال متعدددی،(۱)یوقول دادې چه﴿ نُودِيَ﴾دَپاره نائب فاعل ضمیردې چه راجع دې موسی علیه السلام ته،او"ان"په﴿أَنۢ بُورِكَ ﴾کښ مصدریه دې،او"ان"مصدریه عموماًداخلیږی په مضارع باندې خوکله کله شاذونادرداخل شی په ماضی

باندې،نودلته هم په ماضی باندې داخل شویدې،اودَ"ان"مخکښې"باء"مقدره ده،او﴿مَن فِي ٱلنَّارِ﴾نه مراد ذات دَالله ﷻ دې،نودا عبارت په اصل کښې داسې دې چه:نودی ببركة من في النارومن حولها،یعنی چه کله موسی علیه السلام هغې رڼرا والاځائې ته راغې نو اوازورته اوکړې شو په برکت دَهغه ذات چه دَهغه دَقدرت ظهورپه اورکښې دې اوګیرچاپیره دَاورنه دې،اومرادپه"برکت"سره خالص کول دَموسی علیه السلام وودَپاره دَنبوت،لکه په سورت طه کښې هم دی چه"وانااخترتک فاستمع لمایوحی"

(۲)دویم قول دادې چه"ان"تفسیریه دې او"بورک"تفسیردَ"نودی"دې نودَایت مقصددادې چه کله موسی علیه السلام هغې ځائې ته راغې نو اوازورته اوکړې شو ،اوهغه اوازداووچه برکت ورکوونکې دې هغه ذات چه هغه پدې اورکښې دې او"من حولها"نه مراددَالله ﷻ تجلیات دی یعنی هغه ذات برکت والادې چه په دې اورکښې دې اویاګیرچاپیره دَهغه تجلیات دی.

(۳)دریم قول دادې چه"ان"مصدریه دې چه مدخول ئې خپل په تاویل دَمفردسره ګرځولې دې اودانائب فاعل دَ﴿نُودِيَ﴾دې او﴿مَن فِي ٱلنَّارِ وَمَنْ حَوْلَهَا ﴾ دواړوکښې مضاف مقدردې چه لفظ دَ"مکان"دیعنی:من في مكان النارومن في مكان حولها،اودَ"من في مكان النار"نه مراد هغه وادی ده کومه کښې چه موسی علیه السلام ولاړوو،په سورت القصص کښې هغې ته"بقعة المباركة"وئیلې شویدی،اودَ﴿وَمَنْ حَوْلَهَا ﴾نه مراد"ارض الشام"دې،اودَدې وجې نه دَحضرت ابی بن کعب رضی الله عنه په قرآءة کښې داسې راغلیدی چه(تبارکت الارض ومن حولها)اوعلامه زمخشری رحمه الله فرمائی چه دغې وادی ته برکت والاځکه اوئیلې شوه چه داذریعه دَحصول دَامردینی اوګرځیدله یعنی په دغه وادی کښې یوامردینی موسی علیه السلام ته ورکړې شواوهرکله چه یومکان چه هغه صرف په ذریعې ګرځیدلوسره دَسعادت اوبرکت والاجوړیږی نوانسان چه اشرف المخلوقات دې نوهغه به په حصول دَدین سره څومره لوئی سعادت اوبرکت والابه جوړشی؟

(۴)څلورمه توجیه داده چه"ان"مخففه عن المثقه دې اسم ئې مقدردې چه ضمیرشان دې او﴿بُورِكَ ﴾ په معنی دَ"تبارک" سره خبردې دَآیت مقصددادې چه برکت والادې هغه ذات چه دَقدرت ظهوراودَهغه دَنورتجلی ده،هرڅه کښې برکت اچوونکې صرف اوصرف هغه دې،برکاتوورکوونکې ذات بل څوک نیشته دې.

ليکن په تولوتوجيهاتوکښې راجحه توجيه(۵)داده چه(ان)مخففه عن المثقله دې اسم ئې ضمير شان محذوف دې اوخبرورله﴿بُورِكَ﴾دې چه داپه حقيقت کښې جمله دعائيه ده يعنې دادعا اوترحب دې دَجانبه دَاللهﷻ نه موسىٰ عليه السلام ته لکه په:والخامسة ان غضب الله عليها(النور:٩)کښې دی. اويالکه داقول دَعربوشولکه:امان يغفرالله لک،چه داپه حقيقت کښې دعادی.او﴿مَن فِي ٱلنَّارِ﴾نه مراد:من في طلب النار:دې،چه هغه موسىٰ عليه السلام دې،او﴿وَمَنْ حَوْلَهَا﴾نه مرادملائک دی،نودَ آيت مقصدداده چه،موسىٰ عليه السلام ته اوازاوکړې شوچه برکت دې ورکړې شي هغه چاته چه په طلب دَاورپسې راغليدې،اوهغه چاته چه گيرچاپيره دَدې اورنه دی،المعنى من في طلب النار وهوموسى عليه السلام ومن حولها هم الملائكة الذين حول النار،وهذه تحية من الله عزوجل لموسى عليه السلام بالبركة(خازن)اودلته:نور: ته:نار:وئيل دَحضرت موسىٰ عليه السلام دگمان مطابق وو،چه هغه پدې نوراوتجلياتوباندې دَ:اور:گمان کړې وو.

﴿وَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ﴾دا ياتعجب دې دَجانبه دَاللهﷻ نه موسىٰ عليه السلام ته،اومقصودپدې سره نفي دَتوهم دَتشبيه ده چه اللهﷻ قادرمطلق ذات دې،دَسماتودَحدوث اودَمشابهت دَمخلوق نه پاک اومنزه دې،اودغه شان تنبيه ده پدې چه دَتولوامورو،خالق،متصرف هغه اللهﷻ دې،په کائنات کښې چه څومره تکوينات دی هغې دَپاره مکون اللهﷻ دې،اوحضرت تهانوی رحمه الله فرمائي کچرې موسىٰ عليه السلام خالي الذهن وونوبياخوداتنبيه دَجانبه دَاللهﷻ نه دَپاره دَتعليم دَموسىٰ عليه السلام ده اوکچرې موسىٰ عليه السلام ته دَخپل فطرت صالحه اودلايلوعقليوپه بنيادداخبره معلومه وه نوبيامقصود پدې سره زيادت تفهيم دې،اوياداکلام دَموسىٰ عليه السلام دې،اودَدينه مخکښې:قال:مقدردې،يعنې وقال سبحن الله ربّ العالمين،نومطلب دادې چه کله موسىٰ عليه السلام داعجيب اوغريب حالات اوکتلواوکلام دَاللهﷻ ئې واوريدلوچه منزه وودَاصواتواودَترکيب دَحروفونه نودَخپل فطرت صالحه په بنياد ئې اوئې اوئيلوچه:سبحن الله رب العالمين.

﴿يَٰمُوسَىٰٓ إِنَّهُۥ﴾دَنداء اوترحب نه وروستودَجانبه دَاللهﷻ نه تعارف دې موسىٰ عليه السلام ته دَخپل ذات،چه اې موسىٰ عليه السلام تاسره خبرې کوونکې ذات مخلوق ندې بلکه خالق،غالب اوحکمتونووالا ذات دې﴿إِنَّهُۥ﴾کښې ضميرشان دې او﴿أَنَا﴾مبتداء او﴿ٱللَّهُ﴾ورله خبردې،او﴿ٱلْعَزِيزُ﴾او﴿ٱلْحَكِيمُ﴾ دواړه صفات دَخبردی اودادواړه صفات په منزله دَتمهيداوعلت دی دَراتلونکو واقعاتو اومعجزاتو

دَپاره، کومې چه دَحضرت موسی علیه السلام په لاس صادرې شوې دی لکه عصانه اژدهاجوړیدل، لاس رڼاکول، فرعون هلاک کیدل وغیره شو، چه دا ټول دَالله ﷻ کمال قدرت او دکمال حکمت نتیجه ده.

**فائده**: سورة طه کښې تعارف دَپاره الفاظ داسې استعمال شوې ووچه "انی انا ربک" دلته دَ﴿ إِنَّهُ أَنَا اللَّهُ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾الفاظ ذکرکړې شو، او په سورة القصص کښې "انی انا الله رب العالمین" الفاظ استعمال شویدی، مفسرین فرمائی چه مفهوم اومقصددَدې ټولوالفاظو(۱)یودې اګرچه الفاظ مختلف دی، او داهم ممکنه ده چه نداء متعدده خلې شوې وی، (۲)دویم خلې نداء﴿ إِنَّهُ أَنَا اللَّهُ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾دی، او(۳)دریم خلې دې په "انا الله رب العالمین" سره شوې وی.

| |
|---|
| وَأَلْقِ عَصَاكَ ۚ فَلَمَّا رَآهَا تَهْتَزُّ كَأَنَّهَا جَانٌّ وَلَّىٰ مُدْبِرًا وَلَمْ يُعَقِّبْ ۚ |
| او او غورځوه همساځپله. پس هر کله چه ئې اولیده خوزید له لکه داورکې ماردې، نوروان شو په شا او واپس را اونه ګرځیدلو |
| يَا مُوسَىٰ لَا تَخَفْ إِنِّي لَا يَخَافُ لَدَيَّ الْمُرْسَلُونَ ﴿١٠﴾ إِلَّا مَنْ ظَلَمَ ثُمَّ |
| هو نږورته اوئیل اې موسی مه یریږه، بې شکه نه یریږی ځماخواکښې رسولان بلکه چه څوک ظلم اوکړی بیا |
| بَدَّلَ حُسْنًا بَعْدَ سُوءٍ فَإِنِّي غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿١١﴾ وَأَدْخِلْ يَدَكَ فِي جَيْبِكَ |
| بدل راوړی نیک عمل ورستو دګناه نوځه هغه لره هم بخونکې رحم کونکې یم. او داخل کړه لاس خپل په خپل ګریوان کښې |
| تَخْرُجْ بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوءٍ ۖ فِي تِسْعِ آيَاتٍ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَقَوْمِهِ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا فَاسِقِينَ ﴿١٢﴾ |
| راواوبه وځی تک سپین بې دَمرض نه، په نهو معجزوسره ورشه فرعون ته او قوم دهغه ته، بیشکه دوئ قوم فاسقان دی، |
| فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ آيَاتُنَا مُبْصِرَةً قَالُوا هَٰذَا سِحْرٌ مُبِينٌ ﴿١٣﴾ وَجَحَدُوا بِهَا |
| پس هر کله چه راغلی فرعونیانوته معجزې زمونږښکاره نو اووئیل دوئ داخوسحردې ښکاره. او انکارئ ورنه اوکړو |
| وَاسْتَيْقَنَتْهَا أَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَعُلُوًّا ۚ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِينَ ﴿١٤﴾ |
| حال داچه یقین پرې کړې وؤزړونودَدوئ، پوجه دَظلم اوتکبر، پس اوګوره څنګه وؤانجام دَفسادکونکو. |

﴿وَأَلْقِ عَصَاكَ﴾ دا عطف دې په ماقبل جملې ﴿ بُورِكَ ﴾ باندې او دَ ﴿نُودِيَ﴾ ماتحت دې، او هغه اګرچه جمله خبريه وه صورتًا ليکن معنًی انشائيه وه ځکه چه معنی دَدعاء وه پکښې، او دا هم انشائيه ده، او په مسلک دَسيبويه باندې تناسب په معطوف او معطوف عليه کښې شرط هم نه دې، نو لهذا که معنیً انشاء نشي نو بيا هم پکښې څه اشکال نيشته دې، او هرکله چه الله ﷻ په ماقبل آيت کښې خپل صفت "العزيز" ذکر کړو، نو ديکښې دهغې عملي نمونې ذکر دې چه الله ﷻ غالب ذات دې او په هرڅه باندې قدرت کامله لرې چه "عصا" دَجماداتو نه ده او مجمع المفيدات څيزدې هغه الله ﷻ په خپل قدرت سره حيواناتو کښې اشرالحيوانات سره بدله کړه، او توضيح ئې داده چه الله ﷻ اولا دَموسی عليه السلام نه تپوس او کړو چه ستا په لاس کښې څه دی؟ موسی عليه السلام ورته عرض او کړو چه دا عصا ده او دَهغې فوائدئې ورته هم ذکر کړو لکه چه سورة طه کښې تفصيل سره تيرشويدی. نو الله ﷻ ورته او فرمائيلو چه دا او غورځوه نو موسی عليه السلام چه هغه او غورځوله نو يوه اژدها جوړه شوه

﴿فَلَمَّا رَءَاهَا تَهْتَزُّ ﴾ "فاء" فصيحيه ده ددينه مخکښې معطوف عليه مقدردې، نو تقديردَعبارت داسې دې "فالقاها فانقلبت حيّة فلمّا رآها الخ" ﴿كَأَنَّهَا جَآنٌّ﴾ دا تشبيه په حرکت کښې ده، نو په اصل کښې دَدې عصا نه به اژدها جوړيده، خو په حرکت کښې به داسې تيزه وه لکه "جان" يعنې چمچمار، او بعض فرمائي چه ابتداء کښې به "جان" وو او بيا به ترينه اژدها جوړه شوه، ليکن اوله توجيه زياته اليقه ده دَمقام سره.

﴿وَلَّىٰ مُدْبِرًا﴾ دا خوف دَوحې نه حضرت موسی عليه السلام په شامنډه کړه، او دا خوف چونکه طبعي وو دَتقاضائې بشريت دَوحې نه وو، نو داسې خوف دَمرتبې دَنبوت سره منافی نه دې، او دا هم ممکنه ده چه خوف عقلي وې او خوف عقلي ماتحت الاسباب هم منافی دَمرتبې دَنبوت سره نه دې.

﴿يَٰمُوسَىٰ لَا تَخَفْ﴾ يعنی دَالله ﷻ دَطرف نه حکم او شوچه دَ "مار" او يا دَبل مخلوق دَضررنه مه يريږه او په ما باندې اعتماد او کړه. ﴿إِنِّي لَا يَخَافُ ﴾ دا علت دَنهی دَپاره دې چه نهی دَخوف نه وه، او دا اګرچه په ظاهر کښې اخباردې، ليکن معنًی انشاء ده، نو ګويا چه حضرت موسی عليه السلام ته تعليم او هدايت ورکړې شوچه ته پيغمبرئې، او دَپيغمبر شان دادې چه په حين دَوحې کښې هغه مستغرق وی په اوريدلو دَوحی کښې نو دکمال استغراق دَوحې نه دَهغه په زړه کښې دَبل چاخوف نوی، او حضرت تهانوی رحمه الله فرمائي چه کچري دَموسی عليه السلام خوف طبعي وونو په "لاتخف" سره ازاله دَخوف او شوه او "انّي لايخاف الخ" بطور عنايت متجدده ذکرشو، دې دَپاره چه سرور طبعي حاصليدلو سره، سره دَخوف

طبعي اثرات مکمل زائل شي،اوکچرې خوف عقلي وونوپه "لاتخف"سره مقصود ازاله دخوف ده،اوپه "انی لایخاف"سره مقصودعدم خوف دپاره علت دې اوتسلي ده چه حوادث خوپه انبياء کرامو باندې راځي خوچه کوم معجزات انبياء کراموته ورکړې شي دهغې نه اويادا عطاء نبوت په وخت کښ ابتلاء اوضررنوي،نولهذادعصانه اژدهاجوړيدل ستادنبوت دپاره معجزه ده نودديته تاته ضرر اوتکليف نه رسي،دآيت نه معلومه شوه چه موسی علیه السلام ته داپته نوه چه دااژدهاماته ضرراوتکليف نه رسوي نومعلومه شوه چه هغه غيبدان نوو،اودغه شان ددې آيت نه معلومه شوه چه معجزه دنبي په اختيارکښ نوي.

﴿إِلَّا مَن ظَلَمَ﴾پدې استثناء کښ دمفسرينو اقوال متعدددي،اکثرمفسرين فرمائي چه استثناء منقطعه ده ځکه چه انبياءکرام معصوم دي،نو﴿مَن ظَلَمَ﴾ دجنس دانبياء کرامونه،ندې نولهذا﴿مَن ظَلَمَ﴾په﴿ٱلْمُرْسَلُونَ ﴾چه مستثنی منه دې په هغې کښ داخل ندې،نودآيت مقصددادې چه انبياء کرام نه ويريږي،ليکن هغه خلک چه دهغوئی نه څه گناه شوې وی نوبياتوبه اوباسی اونيک عمل اختيارکړی نوداسې خلکوته اگرچه الله تعالی معافی اوکړی خوبياهم په دوئ باندې دالله تعالی خوف قائم وی،پدې خيال چه داسې نه،چه الله تعالی زمونږمواخذه اوکړی،اوبعض فرمائي چه استثناء متصله ده اومستثنی منه مقدره ده نواصل عبارت داسې دې "لایخاف لدی المرسلون وانما یخاف غیرهم ممن ظلم الا من ظلم الخ" نودآيت مقصد دادې چه:انبياءکرام نه يريږي،خوف په هغه چاباندې به وی چه په ځان ئې ظلم کړې وی،کفراوشرک ئې کړې وی،خوبياپدوئ کښ هم هغه کسان دخوف نه به محفوظ وی چه دظلم نه توبه اوباسی اودگناهونوپه ځائ نيک اعمال شروع کړی نوهغوئ ته به الله تعالی جنت ورکړی اودخوف نه به ئې په امن اوحفاظت کښ ساتی،اوبعض فرمائي چه استثناء متصله ده اومستثنی منه﴿ ٱلْمُرْسَلُونَ﴾ده اودظلم نه مرادگناه ندې بلکه خلاف اولی کاردې اوپه خلاف اولی کارباندې دظلم اطلاق کيدل صرف دانبياءکراموپه حق کښ دې بناء برقاعده "حسنات الابرارسيات المقربين" اودااطلاق صرف صورتًادې لکه موسی علیه السلام نه قبطی قتل شونوپدې خپل عمل باندې ئې اطلاق دظلم اوکړواواوفرمائيلوچه:ربی انی ظلمت نفسی(القصص:۱۶)نوگوياچه پدې آيت کښ اشاره ده قتل دقبطی ته،نودآيت مطلب دادې چه انبياء کراموپه زړونوکښ خوف نوی مگرصرف هغه پيغمبرپه زړه کښ طبعي خوف اثروی چه دهغه نه خلاف اولی کارشوې وی اگرچه

هغې خلاف اولی کارباندې توبه ویستلوسره الله ﷻ دَطرف نه معافی ورته شوی وی خوبیاهم طبعی طورپه دنیاکښې اوعقلی طورپه آخرت کښې دَهغې اثرات باقی وی اوپدیکښې اشاره ده کچرې دَموسی علیه السلام نه قتل دَقبطی نوې شوې نودَخوف طبعی داوقتی اثربه هم نو و(ویؤیدهذاالقول مارواه ابوهریرة رضی الله عنه حدیث الشفاعة فیه یجمع الله الناس الاولین والاخرین فی صعیدواحدفیسمعهم الداعی وینفذهم البصر وتدنواالشمس منهم فیبلغ الناس من الغم والکرب مالایطیقون ولایحتملون،فیقول الناس بعضهم لبعض الاترون ماقدبلغکم:من یشفع لکم الی ربکم؟فیقول الناس بعضهم لبعض علیکم بآدم الحدیث).

اودَحضرت الشیخ رحمه الله رائ داده چه"الا"دلته دَاستثناء دَپاره ندې بلکه په معنی دَ"بل"سره دې،او"بل"دَپاره دَترقی دې،نودآیت مطلب دادې چه اې موسی څماخواته انبیاء کرام نه ویریږی بلکه هغه کسان چه ظلم ئې کړې وی اوبیائې توبه ویستلی وی اونیک عمل ئې شروع کړې وی نوهغوئ ته هم څه بخښنه کوونکې یم اوهغوئ نه یره لرې کووم چه هغوئ نه یریږی نوتاته خوپه طریق اولی سره خوف ندې پکار.

﴿وَأَدْخِلْ يَدَكَ ﴾دادویمې معجزې ذکردې اوفرق په مینځ دَاولې معجزې اوپدې دویمې کښې دادې چه اوله معجزه دَانقلاب دَماهیت دَقبیلې نه وه،چه یوماهیت په بل ماهیت سره بدل کړې شو،یعنی جمادمحض چه مجمع الفوائدوهغه الله ﷻ په ماهیت حیوانی سره اوپه هغه حیوان سره چه اشرالشردې،بدل کړو،اودویمه معجزه دَقبیلې دَاعراضونه ده،ماهیت هم هغه دې خواعراض پکښې بدلیدلو.﴿فِي جَيْبِكَ ﴾دَ"جیب"نه مرادګریوان دې.﴿مِنْ غَيْرِ سُوءٍ ﴾ مراد دَدینه دَهرقسم نقصان نه خالی والې دې،چه نه به دَڅه مرض دَوجې نه پرق کوی اونه به تاته څه تکلیف دررسوی.

﴿ فِي تِسْعِ ءَايَٰتٍ ﴾"فی"یاپخپلې معنی سره دې اوجارمجرورمتعلق دی په"اذهب"فعل مقدرپورې،یعنی اذهب فی تسع آیت،اویا"فی"په معنی دَ"مع"سره دې نودآیت مقصددادې چه دَنهه معجزاتوسره داوه(۲)مزیدنورمعجزات هم دی نوپدې بنیاد دَحضرت موسی علیه السلام لوئ لوئ معجزات یوولس(۱۱)دوچه څه په سورَ اعراف آیت نمبر(۱۳۰)نه تر(۱۳۲)پورې ذکردی،اودغه شان شکلونه مسخ کیدل،سمندرکښې لارې جوړیدل هم پکښې دی اویا"فی"په معنی دَ"من"سره دې اومتعلق دې په﴿وَأَلْقِ ﴾پورې یعنی الق عصاک من تسع آیت،نومطلب دادې چه داعصاچه

اوغورځوي دَدينه مارجوړيدل،اولاس چه په ترخ کښې ننه کړې اوبيارااوباسې داپرق کوی دادَنهه معجزاتونه دی.

﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا ﴾داعلت دې دَ ارسال اودَ ذهاب دَپاره چه فرعون اودَهغه قوم ته معجزاتوسره

ځکه لاړشه چه دوئ دَالله ﷻ نافرمانی کوونکی دی.﴿ فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ ﴾دَفرعون اودَهغه دَقوم حددرجې عنادذکرکیږی چه هرکله موسی علیه السلام دوئ ته داسې واضح معجزات پيش کړل چه دَهغې دَوقوع اوتسليمولونه انکارممکن نه وُونودوئ بې ځايه تاويلونه،اوباطل توجيهات شروع کړل اودائې اوئيل چه داخوواضح سحردې،﴿مُبْصِرَةً ﴾په معنی مضيئة او واضحة سره حال واقع شويدې دَ

﴿ءَايَٰتُنَا ﴾نه،اوپديکښې اشاره ده کمال وضوح دَمعجزاتوته چه ګويادکمال وضوح دَوجې نه دوئ په

خلې سره اقراراونکړو،﴿وَٱسْتَيْقَنَتْهَآ ﴾يعنی دَدوئ په زړونوکښې پوخ يقين ووچه دادَموسی علیه السلام دَصدق دپاره معجزات دی اوسحرندې،اوکفرجحودی وئيلې کيږی ديته چه په زړه کښې يقين وی خوپه خلې سره اقرارنه کوی،لکه دَابليس وغيره کفرشو.

﴿ظُلْمًا وَعُلُوًّا﴾دامفعول له دی دَ جحود دَپاره يعنی علت بيانيږی دَجحوداوانکاردَپاره،چه دَدوئ انکارمبنی ووپه ظلم اوعلو باندې،اوظلم دَدوئ داووچه معجزات ئې دَخپلومرتبونه کم کړی وواوهغې ته ئې نسبت دَسحرکړې وو،او علو ئې داوه چه خپل ځانونه ئې دَخپل حدنه ئې اوچت حساب کړی وو.﴿فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ ﴾داخطاب دې نبی ﷺ ته اومقصودپدې سره تسلی ورکول دی نبی پاک ﷺ ته چه لکه څرنګه دَهغې منکرينوانجام ډيرخراب وواوپه بدترين هلاکت سره هلاک کړې شونودغه شان ستادشمنان به هم الله ﷻ هلاک کړی.

١

| وَلَقَدْ | ءَاتَيْنَا | دَاوُۥدَ | وَسُلَيْمَٰنَ | عِلْمًا | وَقَالَا | ٱلْحَمْدُ | لِلَّهِ | ٱلَّذِى |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| [1] اويقيناورکړې وُمونږداؤد علیه السلام اوسليمان علیهما السلام ته علم،اودواړو وئيلی وُتول ثناء صفت دې هغه الله ﷻ لره چه | | | | | | | | |

[1] دويمه واقعه متعلق دعوی اولی سره

| |
|---|
| فَضَّلَنَا عَلٰى كَثِيْرٍ مِّنْ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۵﴾ وَوَرِثَ سُلَيْمٰنُ دَاوٗدَ |
| فضيلت يې راکړيدې مونږته په ډېروبندګانوخپلومؤمنانوباندې.او وارث شو سليمان (په نبوت اوبادشاهۍ کښې) د داؤد |
| وَقَالَ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ وَاُوْتِيْنَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ ؕ |
| اوووئيل سليمان عليه السلام اې خلقو!علم راکړې شويدې مونږته په خبرودمارغانواوراکړې شويدې مونږته دهرڅيزنه. |
| اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَضْلُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۶﴾ |
| بې شکه دايقينا چې فضيلت ښکاره دې. |

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ﴾ دادويمه واقعه ده دَدې په ضمن کښې هم دَاول علت بيان مقصود دې چه غيبدان صرف الله ﷻ دې،بل څوک ندې،حضرت سليمان عليه السلام جليل القدرپيغمبر ﷺ وو،الله ﷻ هغه ته عظيم الشانه بادشاهي ورکړې وه،انسانان،جنات،وحوش،طيور اوهواګانې ټول دَهغه تابع وو،ليکن دَدې باوجوددَهدهدغائب کيدلوځائ اودهغې وجه ورته نوه معلومه،دَملکه سبااودَهغې دَقوم دَحالاتونه ناخبره وو،دَهغې دَتخت رارسولونه عاجزه وودَنوروخلکونه ئې امدادغوختلو. اوميږې پرې هم ګواهي ورکړيده چه لايحطمنکم سليمن وجنوده وهم لايشعرون اوتنوين په علمًا کښې يادَتقليل دَپاره دې،څکه چه قائل دَدې کلام،الله ﷻ دې،اودَالله ﷻ دَعلم په نسبت دَهرچاعلم ډيرلږاوقليل دې،لکه حضرت خضر عليه السلام موسى عليه السلام ته فرمائيلې ووچه،والله ماعلمي وماعلمک فى جنب الله الاکمااخذهذا الطائربمنقاره من البحر(بخاري)اوياتنوين دَپاره دَتعظيم دې څکه چه دامقام دَامتنان دې،اوپه مقام دَامتنان کښې زيات مناسب اولائق تعظيم اوتفخيم دَانعام وى،نوپه اول تقديردَايت مطلب داسې دې،چه حضرت داود عليه السلام اوسليمان عليه السلام ته مونږدَعلم يوه حصه چه دَهغوئ سره مناسبه وه ورکړې وه،اوپه دويم تقديردآيت مطلب دادې چه مونږدوئى ته عظيم الشان اوکثيرالمنفعت علم ورکړې وواومراد دَدې علم نه خصوصى طورباندې علم دَشرائعو اواحکامو دې،اودَعموم دَوجې نه شامل دې نورو علوموافنونوته هم،لکه دَزغرويه جوړولوباندې پوهيدل وغيره،اودَدينه معلومه شوه چه دَعلم اطلاق په معنى لغوى سره په فنونواوپه عصرى تعليماتو باندې هم کيږى.

﴿وَقَالَا ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ﴾دا مرتب دي په ماقبل يعني "ايتاء العلم" باندې.اوشكر دې دجانبه دداؤد عليه السلام اوسليمان عليه السلام نه،اودامقام اګرچه مقام دايراد دفاء وويعنى چه داسې وئيلې شوې وې چه "فقالا الحمد" ځکه چه په ترتب باندې دلالت کوی،لکه عرب وائی(اعطيته فشکر،منعته فصبر) ليکن دلته دفاء په ځائې واو راوړې شوی،دې دپاره چه اشاره راشي دې خبرې ته چه دحضرت داؤد عليه السلام اودحضرت سليمان عليه السلام شکرصرف شکرلسانی نه وو،بلکه دهغوئی دطرف نه اداء شکرعلى وجه الکمال وو،اوکمال درجې شکردادې چه(۱)په زړه کښې عزم وی په فعل دطاعاتو اوپه ترک دمعاصيو باندې،چه دیته تعظيم قلبی وئيلې کيږی(۲)عمل وی په جوارحو باندې چه دااشتغال دې په عمل دطاعت کښې او(۳)اقراروی په لسان باندې،اوشان دانبياء کرامو دادې چه دهغوئی شکرصرف لسانی نوی بلکه په زړه کښې دتعظيم سره عمل په جوارحو باندې هم وی،نوګوياچه دلته ددغې دوه(۲)امورو ذکرمحذوف دې،اوپه "ايتاء العلم" باندې مرتب ددرې(۳)امورو مجموعه ده اودامذکور يعنی "قالا الحمدلله" عطف دې په هغې محذوف باندې،نواصل عبارت داسې دې چه: اتيناهما علماً فعملا به قلباً وقالباً وقالا باللسان الحمدلله.

﴿فَضَّلَنَا عَلَىٰ﴾مفضل داؤد عليه السلام اوسليمان عليه السلام دی اومفضل عليه﴿كَثِيرٍ مِّنْ عِبَادِهِ﴾دی، اووجه دتفضيل علم،نبوت اوتسخير دانس وجن وغيره دی،او﴿عَلَىٰ كَثِيرٍ﴾نه مرادکثرت دټولو ازمنوپه اعتبارسره دې اوداهغه خلک دی چه هغوئ ته يابالکل علم ندې ورکړې شوې،اوياعلم اونبوت ورته ورکړې شوې وی خودحضرت داؤد عليه السلام اوسليمان عليه السلام په شان فضيلت ورته نوو ورکړې شوې،لکه تسخيردهوا،تسخيردانس وجن وغيره شو،اودافضيلت جزئی دې،اودنبی ﷺ فضيلت کلی وو،نودادې وجې نه دحضرت سليمان عليه السلام فضيلت په نبی پاک ﷺ باندې نه راځی،اويامراد کثرت دخپلې زمانې په اعتبارسره دې،اودټولو ازمنوپه اعتبارسره ندې،اوحضرت داؤد عليه السلام اوسليمان عليه السلام اګرچه دخپلې زمانې په اعتبارسره دټولوخلکونه افضل وو خوبياهم ﴿كَثِيرٍ﴾ذکرکول تواضعاً دی، اوپدې ايت کښې دليل دې په شرافت اوپه فضيلت دعلم باندې اوديته اشاره ده چه په ټولو نعمتونو کښې لوئی نعمت،علم دې.

﴿وَوَرِثَ سُلَيْمَٰنُ﴾ددې وراثت نه مراد وراثت دعلم اونبوت دې،اومالی وراثت ترينه ندې مراد ددوه(۲)وجوه نه(۱)يوخوداچه ورستوکلام يعنی سياق دکلام نه معلوميږی چه ددينه مراد وراثت

علمی اونبوت دي، ځکه چه بطوردليل حضرت سليمان عليه السلام دخپلي معجزي اظهاراوکړوچه اوفرمائيلو ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ عُلِّمْنَا﴾ اواظهاردمعجزي دپاره دصدق دنبوت وی نه دپاره دمال، (۲) بل ددي وجي نه چه په صحيح روايت دابوداؤد اوترمذی وغيره کښې دحضرت ابودرداء رضي الله عنه نه مروی دی چه نبی پاک ﷺ ارشاداوفرمائيلو: انّ العُلمآء ورثة الانبيآء وانّ الانبيآء لم يُورّثوا ديناراً ولادرهماًولكن ورّثوا العلم، نوپدي حديث کښې دټولو انبياء کرامو شان اوصفت داذکرشويدي چه دهغوئ ميراث نشي تقسيم کيدلې، اودغه شان دعقل اودقياس تقاضاهم داده چه دانبياء کرامو په مال کښې دي وراثت جاری نکړي شی، ځکه چه دانبياء کرامو شفقت اومحبت دټولو امت سره يو شان وی، اوپيغمبردخپل ټول امت دپاره دکمال شفقت دوجي نه په منزله دپلاروی نولهذا دهغه په مال کښې دټول امت حصه پکارده، نوددي وجي نه دعقل تقاضاداده چه دانبياء کرامو مال دي بيت المال کښې جمع کړي شی.

يادوراثت نه مرادنيابت اوقائمقام کيدل، لکه په بل ځائ کښې دی "واورثناهابنی اسرائيل"، اودآيت مطلب دادي چه حضرت سليمان عليه السلام دحضرت داؤد عليه السلام نائب اوقائمقام مقررشوپه نبوت اوبادشاهی کښې نوددي آيت نه دشيعه ګانو استدلال پدي باندي چه دانبياء کرامو په مال کښې وراثت جاری کيږی، اودحضرت فاطمة رضي الله عنها دميراث محرومه کول ظلم وو، نوداستدلال باطل دي اوکه بالفرض والتقديرقطع نظراوکړي شی دهغي نصوصو اودلائلو مذکوره نه، چه مونږذکرکړو اوداتسليم کړي شی چه دوراثت نه مرادمالی وراثت دي نولازم بشی نسبت دظلم حضرت سليمان عليه السلام ته، ځکه چه تاريخی رواياتونه ثابت دی چه په دغه وخت کښې دحضرت داؤد عليه السلام نولس (۱۹) ځامن وو، نوپه نولس (۱۹) ځامنو کښې ميراث دمال صرف حضرت سليمان عليه السلام اغستلو اونوراتلس (۱۸) ځامن محرومه کول يقيناًلوئی ظلم دي، اوداپه شان دانبياء کرامو کښې محاله خبره ده.

﴿وَقَالَ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ﴾ دادال دي په نبوت باندي ځکه چه دسليمان عليه السلام دمارغانو په خبروباندي پوهيدل بطورمعجزه وو، نومقصودپدي سره اظهاردمعجزي دي، اوپيغمبرباندي اعلان دنبوت اواعلان دمعجزي واجب وی نوځکه سليمان عليه السلام دااعلان اوکړو، اوحضرت سليمان عليه السلام ته دنوروډيرومعجزاتوسره سره دامعجزه هم ورکړي شوي وه چه دمارغانوپه خبروباندي به پوهيدلو، اوتخصيص دمنطق الطيرځکه دلته اوشوچه وروستوتفصيلاًواقعه دهدهدراروانه ده.

اودامعجزه يعنی منطق الطيرباندي پوهيدل صرف دسليمان عليه السلام معجزه وه اوکه دداؤد عليه السلام هم وه نوبعض مفسرين فرمائی چه دداوړومعجزه وه، ځکه چه دلته صيغي دجمعي استعمال شويدی

یعنی علّمنا او اُوتینا وئیلې شویدی لیکن بعض حضرات فرمائی چه داصرف معجزه دحضرت سلیمان علیه السلام وه او وصیغې دجمعې راوړل محمول دی په عادت دبادشاهانو باندې چه بادشاهان دخپل رعایاپه موجودګئ کښ صیغې دجمعې سیاسةً استعماله وی چه رعایاباندی رعب برقرار وی،لیکن ممکنه ده چه دواړوته دامعجزه ورکړې شوی وی،لیکن حضرت سلیمان علیه السلام ته علی وجه الکمال وه اوحضرت داؤد علیه السلام ته علی وجه الکمال نه وه،نوحضرت داؤد علیه السلام صرف دمارغانوپه بعضوخبروباندې پوهیدلوچه دهغوئی تسبیح وغیره وه،لکه په سورة الانبیاء کښ دی یسبّحن والطیر اوحضرت سلیمان علیه السلام دهرقسم مارغانواودخناورواودحشراتوپه هرقسم خبروباندې پوهیدلو، نطق عرف عام کښ خاص دې په انسانانوپورې اودلته دمارغانواوازونو او اصواتو باندې اطلاق دنطق شویدې نودااطلاق یاپه اعتباردسلیمان علیه السلام سره شویدې بطور استعاره،چه حضرت سلیمان علیه السلام بطورمعجزه دمارغانودأصواتونه،به ئې دهغوئی دزړه مدعا اومقصدداسې معلومولوکه څرنګه دیوانسان دخبرونه،دهغه مدعا معلومیږی، نو د اصواتو دطیورو دپاره نطق استعمالول استعارةً دی.

﴿وَأُوتِينَا مِن كُلِّ شَيْءٍ﴾ دادال دې په بادشاهئ باندې،او کل دلته داستغراق عرفی دپاره دې،یعنی دضرورت والاتول څیزونه راکړې شویدی،اویاداکنایه ده دکثرت نه،لکه څرنګه چاته دیرمال اواسباب ورکړې شوې وی نوخلک دهغه په باره کښ وائی چه فلانی سره هرڅیز موجود دې ﴿إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْفَضْلُ﴾ دحضرت سلیمان علیه السلام دخپلوکمالاتواودقوت بادشاهئ اظهار بطورتحدیث بالنعمة دې،اوبطورتحدیث بالنعمة دخپل کمالاتو اودفضیلت اظهارکول جائزدی، اوبطورریاء دهغې اظهارکول ناجائزدی لکه حدیث کښ نبی ﷺ اوفرمائیلوچه:انا سیّد وُلد آدمَ ولافخر ، نودحضرت سلیمان علیه السلام هم مطلب داووچه ماته داکمالات اوفضیلت دالله ﷻ دطرف نه راکړې شویدې اوځمااستحقاق ذاتی ندې.

| وَحُشِرَ لِسُلَيْمَانَ جُنُودُهُ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ وَالطَّيْرِ فَهُمْ |
| --- |
| اوراجمع کړې شول لپاره دسلیمان علیه السلام لښکرې دده دجناتونه اوانسانانو اومارغانونه پس دوئ دصف بندئ لپاره» |

يُوزَعُونَ ﴿۱۷﴾ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَتَوْا عَلَىٰ وَادِ ٱلنَّمْلِ قَالَتْ نَمْلَةٌ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّمْلُ ٱدْخُلُوا۟ مَسَٰكِنَكُمْ

رایوځایٔ کیدلې شول تردې چه راغلل په کنده دَ میږوباندې اووئیل یومیږی. اې میږو داخل شئ خپلوسوروته

لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمَٰنُ وَجُنُودُهُۥ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿۱۸﴾

چه اونه چقوی تاسوسلیمان علیه السلام اولښکرې دَهغه. اودوئ به خبرنه وی

﴿ وَحُشِرَ لِسُلَيْمَٰنَ ﴾ دَحضرت سلیمان علیه السلام دَفضیلت اودَهغه دَبادشاهئ عظمت اودَ منطق الطیر باندې دَپوهیدولوذکرکیږی، چه یوځلې حضرت سلیمان علیه السلام په سفرباندې روانې دلو اراده اوکړه نودَمختلفوا اماکنواوعلاقونه انسانان، جنات، مارغان وغیره راټول کړې شواگرچه داټول دَحضرت سلیمان علیه السلام په حکم سره راټول شوی ووخوچونکه دادَهغه یوه معجزه وه چه دَانسانانونه، علاوه سرکش جنات، اوغیرذوی العقول حیوانات هم دهغه دَحکم پابندوونودَې وجې نه صیغه دَمجهولې یعنی ﴿وَحُشِرَ﴾ ذکرشوه.

﴿ مِنَ ٱلْجِنِّ ﴾ بیان دَ جنوده دې، اوتقدیم دَجناتوځکه اوشوچه دَدوئی راجمع کول ډیرمشکل کاردې ځکه چه سرکش دی، ﴿وَٱلْإِنسِ﴾ دویم لښکردَانسانانووالاوو، اودریم لښکردَمارغانوو، اومفسرین فرمائی چه دَحضرت سلیمان علیه السلام سره پدې لښکرکښې، ښاروی، هم وو، خوهغه یاقلیل ووځکه ئې ذکراونشو، اویادَې وجې نه، چه هغه غیرذوی العقول دی او مارغان هم اگرچه غیرذوی العقول دی خوبیاهم دَ طیر ذکرکول دَواقعې دَ هدهد دَوجې نه دې، ﴿فَهُمْ يُوزَعُونَ﴾ دایامشتق دې دَ وزع نه وئیلې کیږی حبس بندولوته، نودَ آیت مطلب دادې چه دَلښکراوله حصه دَاخیرې حصې سره میلاؤولودَپاره به لښکراودرولې شو، اوپدیکښې اشاره ده چه باوجود دَدې چه دَلښکر تعداد ډیرزیات ووخوبیاهم دَلښکرنه به څوک هم لرې نشوتللې، اودَلښکرنه به څوک هم جداکیدلې نشو، اویاماخوذدې دَ توزیع نه چه وئیلې کیږی تقسیم ته، نومقصددادې چه حضرت سلیمان علیه السلام خپل لښکریه مختلفوحصوکښې تقسیم کړې وو، اودَهرې حصې اودَ هردستې دَپاره ئې یومشرمقررکړې وو.

دَحضرت سعیدبن جبیر رحمه الله نه مروی دی چه دَحضرت سلیمان علیه السلام په تخت باندې به دری (۳۰۰۰۰)لاکه کرسئ ایخودلې شوې وې، اودَدې په مینځ کښې به دَسلیمان علیه السلام کرسئ وه

او دا کرسئ به دَهغې نه ګیرچاپیره وې او په هر قطار کښې به علی حسب المرتبه خلک ناست وو، نو په اول کښې به انسانان مؤمنان وو بیا به دَهغوئ نه ورستو جنات وو، بیا به مارغانو ته حکم او کړې شو هغوئ به سورې جوړ کړو، او بیا به هوا ته حکم او کړې شو نو هغې به تخت اوچت کړو، او هغه طرف ته به ئې روان کړو چه سلیمان علیه السلام به غوختلو.

او دَحضرت وهب بن منبه رحمه الله نه مروی دی چه یو ځلې دَحضرت سلیمان علیه السلام دا عظیم تخت په هوا باندې روان وو، چه دَلاندې دَزمکې نه یو زمیندار او کتلو چه په خپل زمکه کښې ئې کارونده کوله، نو او ئیل ئې، سبحن الله! آل داؤد علیه السلام ته څه عجیبه بادشاهی ورکړې شویده، نو هوا دا خبره دَسلیمان علیه السلام غوږ ته راورسوله، نو سلیمان علیه السلام هوا ته چه دا تخت دَدغې زمیندار سره کوزکړه، هوا تخت هلته کښې ښکته کړو، نو سلیمان علیه السلام هغه سړې راوغوختلو او تپوس ئې ترینه او کړو چه تا څه او ئیلو؟ نو هغه ورته خپله خبره او کړه، نو سلیمان علیه السلام ورته او فرمائیلو چه دَدې یو ځلې سبحان الله ، وئیلو اجروثواب به دَقیامت په ورځ به دَدې بادشاهئ نه ډیر زیات وی (روح)

﴿حَتَّىٰٓ إِذَآ أَتَوۡا۟﴾ دا غایه دَمقدر دَپاره ده نو تقدیر دَعبارت دا سې دې: فساروا حتی اذا اتوا الخ یعنی دوئی په خپل سفر باندې روان شو تردې چه دَمیږیانو وادی ته راغلو. او ﴿أَتَوۡا۟﴾ دلته متعدی په علی سره شو (حالانکه دده تعدیه په الی سره کیږی) دَپاره دَاشارې دې خبرې ته چه دَحضرت سلیمان علیه السلام لښکر دومره عظیم لښکر وو چه دغه وادی ئې دَاول نه تر اخیره پورې تو له ډکه کړه، لکه عرب وائی چه اتی علی الشئ نو دا په هغه وخت کښې وائی چه کله یو څیز ختم کړې شی او دَهغه آخری حصې ته رسیدل او شی، او بعض فرمائی چه علی دلته په خپلې معنی سره دې، او هغوئ دَ﴿عَلَىٰ وَادِ ٱلنَّمۡلِ﴾ ترجمه په فوق وادِالنمل سره کړیده، یعنی دَسلیمان علیه السلام دا سفر هوائی وو او دَوادی دَنمل نه پاسه تیریدلو نو یو میږی نورو میږیانو ته او ئیل چه ﴿ٱدۡخُلُوا۟﴾ نو په دوئی باندې اعتراض وارد یږی چه هر کله سلیمان علیه السلام دَوادی دَپاسه په هوا کښې تیریدلو نو بیا دَهغې تحذیر دَنورو میږیانو لره څه ضرورت وو او دَدې قول چه ﴿لَا يَحۡطِمَنَّكُمۡ سُلَيۡمَٰنُ﴾ څه مقصد وو نو دوئی ترینه جواب کړیدې چه (۱) ممکنه ده چه سلیمان علیه السلام په دغه وادی کښې دَارام دَپاره یا دَسیاحت دَپاره کوز شوې وی (۲) دا هم ممکنه ده چه سلیمان علیه السلام کوز شوې نوی خو میږی دې هسې خطره محسوسه کړی وی

چه کیدې شي چه سلیمان علیه السلام سره دَخپل لښکرنه دلته راکوزشي نودَ ﴿لَا يَحْطِمَنَّكُمْ﴾ قول حفظ ماتقدم په اعتبارسره دې وي(۳) اوداهم ممکنه ده چه دَحضرت سلیمان علیه السلام سره بعض فوج پیاده وو،لیکن دااول جوابات په تکلفاتوباندې مبنی دی اوصحیح خبره داده چه دَسلیمان علیه السلام داسفرهوائی نه وؤبلکه زمیني وواوهم دَدې وجې نه میږې نوروميږيانوته تحذیرورکړو.

﴿قَالَتْ نَمْلَةٌ﴾امام شعبی رحمه الله فرمائی چه دَدې میږې دوه(۲) وزرې وې،نودې په طیر کښې داخل وو،نوځکه حضرت سلیمان علیه السلام دَده په خبروباندې پوهه شو ،لیکن دااول ځکه ضعیف دې چه په تقدیردَتسلیم دَجناحان،یعنی دَوزرو،نومحض دَدې وجې نه تبدیلی دَنوعی نه دې جائز،بلکه غوره خبره داده چه حضرت سلیمان علیه السلام ته الله ﷻ دَهرمخلوق دَخبروپوهه ورکړې وه،اودَبعضواهل علمونه،منقول دی چه دانمله به هم دَهغې حیواناتونه ده چه جنت ته به داخلیږی.

غوره خبره داده چه دامیږې،مؤنث ووځکه چه ده ته اسناددَصیغې واحدې مؤنثې شویدې، اوچونکه نملة مؤنث لفظی دې چه مذکراومؤنث پکښې دواړه برابردی نملة مذکرمیږی ته هم وئیلې کیږی اومؤنث ته هم وئیلې کیږی،اوپه داسې اسمآؤکښې یعنی چه دَهغې اطلاق په مذکراومؤنث دواړو باندې کیږی،دَمؤنث اومذکرفرق په اعتباردَمسندسره وی،نوکچرې مسندئې مشتمل ووپه علامې دَتانیث باندې نودَدې اسم نه به هم مرادمؤنث حقیقی وی اوکچرې مسندئې مشتمل ووپه علاقې دَتذکیرباندې نودَدې اسم نه،به مرادمذکروی.

﴿ٱدۡخُلُوا۟ مَسَٰكِنَكُمۡ﴾د"مساكنكم"نه مراددَهغوئی والاسوری یعنی سراخونه دی نودآیت مطلب دادې چه هغې میږې نوروميږيانوته اوئیلوچه خپلوخپلوسوروته داخل شئ داسې نه چه دَسلیمان علیه السلام اودَهغه دَلښکردَخپودلاندې راشئ اواوچقیږئی،ځکه چه هغوئ ته ستاسودلته دَموجودګئ پته نیشته دې،اودې نملې نوروميږيانوته خطاب په هغه صیغې سره اوکړوچه مختصه ده په ذوی العقولوپورې حالانکه دمذکرانسان نه علاوه نوروحیواناتوته خطاب په صیغې دَتانیث سره کیږی نودلته په جمعې مذکرسره خطاب کولووجه داده چه دانمله غیرذوالعقولونه وه اودَدې خطاب هم غیرذوی العقولوته وو،لیکن داحیوانات په نسبت سره انسان،جنات وغیره ته خوغیرذوی العقول دی خوپه نسبت سره یوبل ته په منزله دَذوی

العقول دی، نو الله ﷻ اخبار دهغې کلام نه کړیدې چه دې نملې نورمیږیان په منزله د ذوی العقول شمار کړی وو او خطاب ئې ورته کړې وو.

﴿لَا يَحْطِمَنَّكُمْ﴾ دا جواب امردې یعنی ادخلوا لایحطمنکم او یا نهی بدل واقع شویده د امر نه، ﴿وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ دائې د دفعې د توهم د پاره اوئیلو چه میږیان داتوهم اونکړی چه سلیمان علیه السلام به ظالم وی او د ظلم د وجې نه به مونږ چقوی نو د دې توهم د دفعې د پاره نملې، ورته اوئیلو چه ستاسو چقول به قصداً نوی ځکه چه هغه ظالم ندې بلکه تاسو به په بې خبرئی کښې د هغه د خپو د لاندې به راشئ.

**فائده(۱)**: په دې آیت کښې دلیل دې پدې چه حیوانات هم عقل لری اګرچه عقل ئې ډیرناقص او ضعیف دې، او دغه شان پدې آیت کښې اشاره ده چه انبیاء کرام عالم الغیب ندی بلکه چه الله ﷻ ورته په څه څیزباندې اطلاع نه ورکوی نو بیا ورته د خپو د لاندې څیزپته هم ورته نه لګی.

**فائده(۲)**: اهل معانی لیکلی دی چه د نملې پدې کلام کښې لس (۱۰) وجوه د فصاحت او د بلاغت دی (۱) نداء یعنی یاء ئې ذکر کړیده (۲) کلمه تنبیه یعنی ﴿يٰۤاَيُّهَا﴾ (۳) تسمیه یعنی نوم ئې اغستې دی ﴿النَّمْلُ﴾ (۴) امرئې کړیدې یعنی ﴿ادْخُلُوا﴾ (۵) تنصیص یعنی نص ئې کړیدې چه ﴿مَسٰكِنَكُمْ﴾ (۶) تحذیرئې کړیدې یعنی ﴿لَا يَحْطِمَنَّكُمْ﴾ (۷) تخصیص د محذرمنه ئې کړیدې یعنی ﴿سُلَيْمٰنُ﴾ (۸) تعمیم ئې پکښې کړیدې یعنی ﴿وَجُنُوْدُهٗ﴾ (۹) اشاره ئې کړیده یعنی ﴿وَهُمْ﴾ (۱۰) اعتذار یعنی عذرئې هم پیش کړیدې ﴿لَا يَشْعُرُوْنَ﴾.

| |
|---|
| فَتَبَسَّمَ ضَاحِكًا مِّنْ قَوْلِهَا وَقَالَ رَبِّ اَوْزِعْنِيْٓ اَنْ اَشْكُرَ |
| نو تبسم اوکړو سلیمان علیه السلام خندیدونکې د خبرې د میږی نه، او اوئې وئیل: اې ربه توفیق راکړه ماته چه شکر اداکړم |
| نِعْمَتَكَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلٰى وَالِدَيَّ وَاَنْ اَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضٰىهُ وَاَدْخِلْنِيْ |
| ستا د نعمت هغه چې تا انعام کړیدې په ما او په پلار مور زما او چه عمل او کړمه نیک چه ته پرې راضی کیږې او داخل کړه ما |

بِرَحْمَتِكَ فِي عِبَادِكَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۹﴾

په مهربانئ خپلې سره په پخپلو کاملو نیکانو بندګانو کښې

﴿فَتَبَسَّمَ ضَاحِكًا﴾ داتفریع ده په ماقبل باندې، یعنی هرکله چه سلیمان علیه السلام ته دَنملې داخبرې رااورسیدلې نوهغه تبسم اوکړو (مسکې شو) اودَ نملې پدې خبروسره خوشحاله شودَتبسم نه وروستوضحک ذکرکول یاددې وجې نه دی، چه تبسم دَسلیمان علیه السلام عادة وو، اوبیاداتبسم اضطراراًصورت دَضحک ته اورسیدلو، اویاتبسم په خپلې معنی سره دې اوضحک په معنی دَسروراوخوشحالئ سره دې، نودَآیت مطلب دادې چه "فتبسم لاجل ضحکه" یعنی دَخوشحالئ دَوجې نه ئې تبسم اوکړو.

**فائده**: دَدې آیت نه ثبوت دَضحک دَانبیاء کرام علیهم الصلوات والتسلیمات کیږی، اودغه شان په احادیثوکښې دَځنې احادیثونه ثبوت دَضحک دَنبی ﷺ کیږی، لکه امام بخاری رحمه الله په کتاب الاداب باب الضحک کښې متعدداحادیث نقل کړیدی، لیکن په ځنې احادیثوکښې دَضحک ذم اودَهغې نه منع راغلیده اودغه شان په ځنې روایاتوکښې دَنبی ﷺ نه دَضحک نفی راغلیده، لکه په روایت دَبخاری باب الادب کښې دَحضرت عائشه رضی الله عنها نه مروی دی چه فرمائی: مارأیت رسول الله ﷺ مستجمعًاقط ضاحکاً، یعنی ماچرته هم نبی پاک ﷺ په ډکه خله خنداباندې ندې کتلې، نوپه ظاهرکښې دَدې آیت دَځنې احادیثوسره اودغه شان دَاحادیثو په خپل مینځ کښې تعارض دې، نوتطبیق ئې داسې کړې شویدې، چه پدې آیت کښې ثبوت دَضحک اویاکوموروایاتوکښې چه دَنبی پاک ﷺ دَپاره ثبوت دَضحک شویدې نوهغه احیاناًدې اویااضطراراًدې، اوکوموروایاتوکښې چه نفی اوذم دَضحک راغلیدې هغه محمول دی په عادی ضحک باندې، چه اکثراوقاتوکښې ضحک یاقهقهې کوی. اوعلامه زمخشری فرمائی چه حقیقةً ضحک دَنبی ﷺ نه ندې ثابت، اوکوموروایاتوکښې چه ضحک دنبی ﷺ لره ثابت کړې شویدې نودَهغې نه مراد مبالغه ده په تبسم کښې لکه په روایاتوکښې دی "حتی بدت نواجذه" اوحقیقةً ضحک چه ظهوردَاضراسو دې، دَنبی ﷺ په باره کښې ندې مروی.

﴿وَقَالَ رَبِّ أَوْزِعْنِيٓ﴾ حضرت سلیمان علیه السلام دَخوشحالئ دَاظهارنه ورستودرې (۳) دعا ګانې اوکړې، دائې اوله دعاوه چه اداء شکردَپاره ئې دَتوفیق دَشکردعائې اوغوختله اودعاء دَ

توفیق دَشکرداهم په حقیقت کښې شکروی او﴿أَوۡزِعۡنِيٓ﴾ دَ"ایزاع"نه دي، او"ایزاع" بندولو یا راپارولوته وئیلې کیږي.دلته ترینه مرادمداومت دي نودَایت مطلب دادې چه:اې الله!ماته توفیق راکړې چه څه همیشه دَپاره ستادَانعاماتو شکریه اداکړم.

﴿وَعَلَىٰ وَٰلِدَيَّ﴾حضرت سلیمان علیه السلام دَخپلووالدینودَنعمتونوتذکره اوکړه دَپاره دَتکثیراوتعمیم دَانعاماتو ،چه دَالله ﷻ انعامات په ماباندې ډیرهم دی،اوعام هم دی،ځکه چه انعام په والدینوداسې وی لکه انعام په اولادباندې.بلکه کله کله خلک دَهغې انعاماتوزیات احساس لری کوم چه په والدینوباندې شوی وی.اوبیاخاص طورباندې دینی انعامات چه دَهغې فائده اولادته ډیره میلاویږی اوحضرت سلیمان علیه السلام دلته"والدین"یعنی موراوپلار دَدواړودَانعاماتوذکراوکړو ،نوپلارباندې یعنی داود علیه السلام باندې الله ﷻ دینی اودنیوی دواړه قسمه انعامات کړی وو.لیکن دَسلیمان علیه السلام په مورباندې څه انعامات وو؟ نومفسرین فرمائی چه لوئی دینی نعمت داووچه هغې ته ایمان توفیق ورکړې شوې وو ،اوبیالوئی انعام داوو ،چه دَداؤد علیه السلام په زوجیت کښې وه،اودَدینه علاوه بعض مفسرین فرمائی چه هغې ته هم دَ"منطق الطیر"فهم ورکړې شوې ووا ودَحضرت داؤد علیه السلام دَپاره لکه څرنګه اوسپنه نرمه کړې شوې وه نوداانعام هغې ته هم ورکړې شوې وو.

﴿وَأَنۡ أَعۡمَلَ صَٰلِحٗا﴾دادویمه دعاده اوداعطف دې په﴿أَنۡ أَشۡكُرَ﴾باندې اودَ﴿أَوۡزِعۡنِيٓ﴾ تحت دې،په ماقبل کښې په ژبه سره اداء شکردَتوفیق دعاوه،اوپدې ایت کښې په عمل سره اداء شکردَتوفیق دَپاره دعاده،نودَاداء شکردَپاره درې(۳)څیزونوضرورت دې(۱)معرفت دَنعمت، چه دَمنعم علیه په زړه کښې دااحساس وی چه دادَفلانی دَطرف نه ماسره انعام دې اوکچرې احساس اومعرفت نه وی نواداء شکرهم نه کیږی(۲)قبول دَنعمت یعنی کوم نعمت چه دَمنعم دَطرف نه وی،نودَهغې اظهاروی(۳)صفت دَمنعم په جوداوسخاسره،اوبیاکامل شکراداء کولودَپاره هم دَدرې(۳)څیزونوضرورت دې(۱)ذکرپه لسان(۲)اعتقاداومحبت بالجنان(۳)عمل اوخدمت بالارکان،نوحضرت سلیمان علیه السلام په ژبه باندې اقراراودَالله ﷻ ذکراوکړو چه دادال دې په اعتقاداومحبت بالجنان باندې هم اودغه شان دال دې په معرفت دَنعمت اوپه قبول نعمت باندې هم،اوبیاپې دویمه"دعا"اوکړه دَپاره دَعمل بالارکان،چه﴿ وَأَنۡ أَعۡمَلَ صَٰلِحٗا

تَرْضٰىهُ﴾ او ترضاء نه مراد هغه عمل دې چه د الله ﷻ په دربار کښې ورته شرف د قبولیت حاصل شي، او دَریاء نه پاک وي

﴿ وَأَدْخِلْنِي بِرَحْمَتِكَ ﴾ دا دریم ۳ دعاده د پاره د حسن خاتمې او حسن عاقبت ﴿فِي عِبَادِكَ﴾ نه مراد کامل صالحین دي، او مطلق صالحین ترینه ندي مراد چه بیا اعتراض او کړې شي چه مرتبه او درجه د انبیاء کرامو علیهم السلام خو په صالحینو باندې او چته او بلنده ده لکه چه معلومیږي د سورة النساء د آیت اولئک الذین انعم الله علیهم من النبیین والصدیقین الخ نو بیا ولې انبیاء کرام په خپلو دعاګانو د صالحینو د مرتبې دعاغواړي دا خو ترقي نده بلکه تنزل دې

| |
|---|
| وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ فَقَالَ مَا لِيَ لَا أَرَى الْهُدْهُدَ ۖ أَمْ كَانَ مِنَ الْغَائِبِينَ ۝ |
| او حاضرې ئې واخسته د مارغانو بیائې اوویل چه څه چل دې په ماچه نه وینم هدهد، او که دې هغه د پټ شوونه |
| لَأُعَذِّبَنَّهُ عَذَابًا شَدِيدًا أَوْ لَأَذْبَحَنَّهُ أَوْ لَيَأْتِيَنِّي بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ۝ فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيدٍ |
| خامخا به څه سزا ورکړم ورته سزا سخته او یابه ئې ذبح کړم یا دا چې راوړي ماته دلیل ښکاره. نو تیرئې کړو وخت لګ |
| فَقَالَ أَحَطتُ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهِ وَجِئْتُكَ مِن سَبَإٍ بِنَبَإٍ يَقِينٍ ۝ |
| بیائې اوویل چه احاطه او کړه ما په هغه څه چه تا احاطه نده کړې په هغې او څه راغلې یم تاته د سبا ښارنه په خبر یقیني سره |

﴿وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ﴾ تفقد وئیلې کیږي: تطلب ماغاب عنک وتعرف احواله، یعني کوم څیز غائب شي د هغې طلب کول او د هغې د حالت نه، خان خبرول نو د آیت مطلب دا دې چه حضرت سلیمان علیه السلام د مارغانو خبرګیری شروع کړه، نو هدهد ورته ښکاره نشو، نو او فرمائیلو ئې ﴿مَا لِيَ لَا أَرَى الْهُدْهُدَ﴾ استفهام تعجبي دې یعني ماته تعجب دې چه څه هدهد نه وینم، او یا استفهام استخباري دې نو د آیت مطلب دا دې چه څه وجه ده چه څه هدهد نه وینم آیا حاضر دې او د مارغانو په ډېر رش ګڼره کښې څما د نظرنه غائب دې، ابن العربي وغیره فرمائي چه حضرت سلیمان علیه السلام ابتداء د قصور نسبت خان ته او کړو چه ﴿مَا لِيَ لَا أَرَى الْهُدْهُدَ﴾ چه څه هدهد نه وینم ماله څه شوي دي؟ دا د دې وجې نه چه سلیمان علیه السلام ته ابتدا خوف پیدا شو چه وحوش او طیور جمع کیدل د پاره د سلیمان علیه السلام د الله ﷻ نعمت وو، او د هدهد غیر حاضري د یو نعمت کم کیدل وو او نعمت کښې کمې

دانسان دخپلو عملو نو دوجې نه وی، نو سلیمان علیہ السلام ته خوف پیدا شو چه څما دکوم قصور دوجې نه پدې نعمت کښې کمی رانه شوې وي نوځکه ئې اوئیلو ﴿مَا لِيَ لَآ أَرَى﴾ او ددې وجې نه د بزرګانو حال دادې چه: اذافقدوا مالهم تفقدوا اعمالهم، یعنی بزرګان چه کله په خپل مراد کښې کامیاب نشی نو دخپلو اعمالو محاسبه کوی (ابن العربی).

﴿أَمْ كَانَ مِنَ ٱلْغَآئِبِينَ ۝﴾ ام منقطعه دې په معنی د بل اضرابیه سره. او داقول سلیمان علیہ السلام دتفتیش نه ورستو اوکړو چه تحقیق ئې اوکړو او هدهد نوو. نو اوئیلو چه دې دمارغانو په ګڼړه کښې پټ ندې بلکه غیرحاضر دې، اویا ام متصله دې نو معنی ئې داده چه: احاضر لااراه ام کان من الغائبین، یعنی دې حاضر دې اوځه ئې نه وینم یاحقیقة غائب دې. حضرت سلیمان علیہ السلام دا تفقد ولې کړې وو؟ څه وجه وه دتفقد دپاره؟ نوځنې مفسرین فرمائی چه دا دعادت مطابق وو، لکه څرنګه چه عموماً بادشاهان اومشران کوی. چه یومنزل مقصودته اورسیږی نو دلښکر او دخپلې محکمې دکشرانو تپوس کوی، اودهغوئ خبرګیری کوی، اودحضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه اودحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه وجه دتفقد دا منقوله ده چه حضرت سلیمان علیہ السلام په یوځائې کښې پړاؤ واچولو نو داوبو ضرورت پیښ شو او هدهد کښې الله ﷻ داصفت ایخې دې چه هغه ته داوبو دمسافت مقدار پته لګی چه دزمکې دپاځه اوبه په څومره مسافت کښې دی اوپه زمکه کښې دننه اوبه په څومره مقدار کښې ژوری دی، او د هدهد په باره کښې دی چه دزمکې دلاندې څیزونه ده ته داسې ښکاریږی لکه دشیشې دلاندې څیزچه عاموخلکو ته ښکاریږی اود سلیمان علیہ السلام په لښکرد هدهد ذمه داری داوه چه کله به هم سلیمان علیہ السلام ته داوبو ضرورت پیش شونو هدهد زمکه کښې اوکتلو اوبیا به ئې یوه حصه دزمکې په خپلې مخوکوکې (چونچ) سره اوکښتله او سلیمان علیہ السلام ته به ئې اطلاع ورکړه نو سلیمان علیہ السلام جناتو ته حکم اوکړو نو جناتو به په یو ساعت کښې هغه ځائې اوکښتلو او اوبه به ئې څرګندې کړې.

**فائده**: په دې ایت کښې دلیل دې پدې چه دحاکم اودمشرذمه داری دخپل رعیت اودکشرانو نګهبانی به کوی اودهغوئی دحالاتونه به ځان خبرساتی لکه څرنګه چه سلیمان علیہ السلام دیوې وړکی غوندې مرغئ (هدهد) خبرګیری اوکړه، اوهمدغه شان دحضرت عمر رضی الله عنه په باره کښې مروی دی چه اوفرمائیلو: لوان سخلة علی شاطئ الفرات اخذها الذئب لیسئل عنها عمر (قرطبی) یعنی کچرې دیو بیزې بچې ددریائې فرات په غاړه لیوه اوخوړلو نو ددې پوښتنه به دعمر نه کیږی، اوپه بل

روایت کښې داسې مروی دی:لومات الكلب على شاطی الفرات لكان عمرمسئولاًعنه يوم القيامة،یعنی کچرې دَدریائې فرات په غاړه یو سپے(دَتندې دَلاسه) مړشونو پوښتنې به ئې دَعمرنه کولې شی.

﴿ لَأُعَذِّبَنَّهُۥ عَذَابًا ﴾هرکله چه سلیمان علیه السلام حاضری واغستله او ٔهدهد ٔیقینی طورباندې غائب وونوسلیمان علیه السلام ده ته دَسزاورکولواظهاراواعلان اوکړوچه یابه ورته سخته سزاورکړم اویابه ئې ذبحه کړم اودَسزانه دَبچ کیدلوصورت دادې چه دَخپلې غیرحاضرئ دَپاره څه معقول عذرپیش کړی،او'او'دلته دَتنویع اودَتقسیم دَپاره دې اوداتقسیم دَسزاګانوپه اعتباردَتفاوت دَجرم سره دې نوکچرته عذرئې پیش کړوخوضعیف وونوسخته سزابه ورته ورکړم،اوکه بالکل عذرئې پیش نه کړونوذبحه به ئې کړم،اویادامطلب دې کچرته لږوخت دَپاره غیرحاضروونوسخته سزابه ورکړم اوکچرې ډیروخت دَپاره غیرحاضروو،نوبیابه ئې ذبحه کړم،اوپدې ایت کښې دلیل دې چه سزاپه قدردَجرم وی نه په قدردَجوثې،اودغه شان پدې ایت کښې دلیل دې چه دَتادیب دَپاره سزاورکول جائزدی.

﴿أَوْ لَيَأْتِيَنِّي بِسُلْطَانٍ﴾دَدینه مرادمعقول عذرپیش کول دی او'او'دلته یاپه خپلې معنی سره دې یعنی تنویع دَپاره دې اویاپه معنی دَ'الاّ'سره دې لکه داقول دَعربوشوچه'لَأَلْزَمَنَّكَ أَوْتُعْطِيَنِي حَقًّا'په معنی دَ'الّاان تعطینی حقا'سره دې.اوپدیکښې اشاره ده چه دَمعقول عذردَوجې سزامعاف کولې شی.

﴿فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيدٍ﴾'بعید'صفت دَزمانې دَپاره ای زماناًغیربعید،یعنی دَ'هدهد'په غیرحاضرئ باندې ډیروخت نه ووتیرشوې بلکه لږوخت ورستوحاضرشو،نوروحیواناتوورته دَسلیمان علیه السلام دَغصې په باره کښې اطلاع ورکړه چه سلیمان علیه السلام تاته ډیرغصه دې،نو'هُدهد'ترینه تپوس اوکړوچه څنګه الفاظ ئې وئیلې دې،نوهغوئ ورته دَسلیمان علیه السلام سزااوروله چه کچرې معقول عذرئې پیش نکړونویابه ورله سزاورکړم اویابه ئې ذبح کړم،نو'هدهد'اوئیل چه بس څه دَسزانه بچ شوم ځکه ماسره عذرشته دې،نوبهرحال هدهد دَسلیمان علیه السلام دربارته حاضرشو،سلیمان علیه السلام ترینه دَغیرحاضریدلوتپوس اوکړونو 'هدهد' ورته عذرپیش کړوچه﴿أَحَطتُ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهِۦ﴾دَدې عذرخلاصه اومقصددادې چه څه دَنافرمانئ دَوجې نه یادَخپل خواهش پوره کولو او دَ چکر لګولو دَپاره نه ووم غائب شوې،بلکه دَ'کارسرکار'دَوجې نه،نه ووم موجود،او'احطت'دَاحاطې نه دې دلته ترینه مرادمکمل معلومات دی،یعنی ماتاته داسې مکمل اوصحیح معلومات راوړیدی چه تاته هغه شان معلومات نیشته دې.

﴿وَجِئْتُكَ مِن سَبَإٍ﴾ دا تفسیر دي دَماقبل مبهم کلام، او هدهد په خپل کلام کښ اول ابهام اوکړو او بیائې تفسیر اوکړو، دې دَپاره چه دَسلیمان علیه السلام دده عذراوریدلو ته شوق پیداشي اودَدې خبرې اهمیت اوعظمت ئې په زړه کښ پیداشي، او سبا نوم دَقبیلې دې چه دَصنعا الیمن نه درې(۳)میله لرې په مآرب کښ پاتې کیدلو او سبا په اصل کښ دَدې قبیلې دَجدامجدنوم دې یعنی سبأبن یشجب بن یعرب بن قحطان، اودغه شان په حدیث دَابوداؤدکښ هم دی چه: ان النبی ﷺ سئل عن سبأفقال علیه السلام رجلاًکان له عشرة من البنین تیامن منهم ستة وتشاءم اربعة، یعنی سباء یوسړې ووچه لس(۱۰)خامن ئې وو، شپږ(۶)خامن ئې یمن طرف ته لاړو(نوهلته ئې نسل آبادشو) اوڅلور(۴)خامن ئې شام ته لاړو.

اوکچرې څوک اعتراض اوکړی چه دسلیمان علیه السلام نه دَبلقیس بادشاهی څنګه پټه پاتې شوې وه حالانکه دَسلیمان علیه السلام بادشاهی په ټوله دنیاباندې وه، انس وجن وحوش اوطیور اوهوادده تابع وه، نودومره کم مسافت باوجودپه هغه باندې دَبلقیس بادشاهی مخفی څنګه پاتې شوه؟ نوجواب ترینه دادې چه الله تعالیٰ دَمصلحت په بنیادکله کله یوقریب څیزدَیولوئی هستئ نه پټ پاتې کړی، لکه دَیعقوب علیه السلام نه ئې یوسف علیه السلام دکنعان په کوهی پټ پاتې کړې ووحالانکه دَدغې یوسف علیه السلام خوشبویعقوب علیه السلام دَالله تعالیٰ په ارادې سره بیاپه سلونو(۱۰۰)میله لرې نه محسوس کړو، نودغه شان الله تعالیٰ دَحضرت سلیمان علیه السلام نه هم دَبلقیس بادشاهی اودَهغې حالات مخفی کړو، دې دَپاره چه سلیمان علیه السلام کښ شائبه دَعجب هم پیدانشی اودغه شان تنبیه ورکول مقصودووچه دَدومره لوئی اسبابوباوجودعلم دَسلیمان علیه السلام ناقص دې، حتّی چه دَده دَلښکریومعمولی اووړوکی غوندې فردته هغه خبره معلومه وه چه سلیمان علیه السلام ته داسې خبرې اوکړې، لکه صاحب دَتفسیرخازن فرمائي: الهم الله الهد هد هذاالکلام فکافح سلیمان تنبیهًاعلی ان ادنی جنده قداحاط علمًابمالم یحط به، لیکون لطفًابه ترک الاعجاب والاحاطة بالشیء علمًاان یعلمه من جمیع جهاته الخ" (خازن).

اودغه شان پدې ایت کښ دلیل دې پدې چه دَهدهد عقیده هم داوه چه سلیمان علیه السلام عالم الغیب نه وو، اودغه شان پدې ایت کښ اشاره ده چه کله کله ادنی ته هغه علم حاصل وی چه اعلی ته نوی حاصل نو اعلی ته هم دَادنی نه استفاده کول پکاردی.

إِنِّي وَجَدتُّ امْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ ﴿٢٣﴾

بې شکه اوموندله ما یوه ښځه چه بادشاهی کوی په دغه خلقواوورکړي شویدي هغې ته دهرقسم خیزونه اودهغې تخت دي لوئ

وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ اللَّهِ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ

اوموندله ما هغه اوقوم دهغې چه سجده کوی نمرته ماسوی د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه اوښائسته کړیدي دوئ ته شیطان عملونه ددوئ

فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ فَهُمْ لَا يَهْتَدُونَ ﴿٢٤﴾ أَلَّا يَسْجُدُوا لِلَّهِ الَّذِي يُخْرِجُ

نومنع کړیدی شیطان دوئ دسمی لارې نودوئ هدایت نه مومی. چه سجده اونکړی الله ﷻ ته هغه الله ﷻ چه راوباسی

الْخَبْءَ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴿٢٥﴾

پټ خیزونه په اسمانونواوزمکه کښې اوعالم دي په هغه څه چه تاسوئې پټوروئ اوپه هغه څه چه ښکاره کوئ

اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ ﴿٢٦﴾

الله ﷻ چه دي نشته دي بل معبودمګرهغه دي چه رب دي دعرش لوئ

﴿إِنِّي وَجَدتُّ امْرَأَةً﴾ دابیان دنبأ دي، اوداعظیم خبرمشتمل دې په دوه (۲) حالاتوباندې یوسیاسی اوبل مذهبی حالت دې او هدهد ددغې قوم سیاسی حالت په درې (۳) مختصرجملوکښې بیان کړیدی اوهغه درې (۳) امورقابل تعجب دی اول (۱) قابل تعجب خبره اوسیاسی حالت ئې داذکرکړیدې چه ددوئ حکومت اوبادشاهی دښځې په لاس کښې ده، اودښځې بادشاهی قابل تعجب ځکه ده چه مخالفه ده دعقل اونقل نه، مخالفه دعقل نه ځکه ده چه زنانه صنف نازک اوناقص العقل وی دقوم مشری دزنانه سره مناسب نه وی، اومخالفه دنقل نه هم ده لکه حدیث کښې ورته اشاره راغلیده چه "لن یفلح قوم ولوامرهم امراة (بخاری)" اونوم ددې زنانه بلقیس بنت شراحیل بن مالک بن ریان وو، دیعرب بن قحطان دنسل نه وه، اوددوئ په خاندان اونسل کښې (۳۹) بادشاهان تیرشوی وو، اوددې پلارخلوېښتم (۴۰) نمبربادشاه وو، اودهغه نارینه اولاد نه وونودهغه نه مرګ نه پس دهغه دا لور بادشاه مقرره کړې شوه، اودلته هدهد په ځای د رایت وجدتُ استعمال کړو، نو په دیکښې اشاره ده چه ځما غائب کیدل دنفس رؤیت اودځه ځیزکتلو اودچکر لګولو دپاره نه وو بلکه دحکومت خدمت اودسرکارپه کارتللې وومه، اوداسې خلک مې معلوم ولو چه ستا اوستاددین مخالفت کوی

﴿وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ﴾دادويم سياسي حالت اوامرتعجب دي،چه باوجوددې چه دازنانه وه خوبياهم ورته هغه ټول اسباب اوالات ورکړې شوی ووکوم چه دَيولوئی بادشاه سره مناسب وی اوپه﴿كُلِّ شَيْءٍ﴾کښې استغراق عرفی دې.

﴿وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ﴾ دادريم سياسي اوقابل تعجب امردې،چه ددې دپاره يوعظيم الشان تخت دې،اودادلالت کوی په فروانی دَمال اومعاشي طوراستحکام اوپه خوشحالئ باندې، اودا قابل تعجب امرځکه دې چه دَسليمان عليه السلام دپاره دومره مرصع اومنقش اوقيمتي تخت نه وؤلکه څرنګه ددې وړوکی خطې ملکه اوزنانه ذات دپاره وو،اوچونکه حضرت سليمان عليه السلام پيغمبروواوپيغمبران دَدنياڅيزونه بقدرضرورت استعمالوی دَاسراف اوتبذيرنه ځان بچ ساتی نودَدې وجې نه سليمان عليه السلام خپل تخت منقش کړې نه وؤ.اودَبلقيس دَتخت مقدارپه قرآن يااحاديثوکښې ندې ذکرصرف اسرائيلي روايات دی،چه تصديق ئې نشي کيدې.نوپه ځنوروایاتو کښې دی چه دَبلقيس تخت ۸۰×۸۰ګز ووچه دَسروزرونه،جوړشوې وو.ياقوت وغيره سره پرې نقش ونګارشوې وو،اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه ۳۰×۳۰ مروی دی،خوبهرحال دَبلقيس تخت يوعظيم الشان تخت ووچه هدهد ورته په تعجب کښې شو.

**فائده**:هدهد دلته دَبلقبس تخت متصف کړيدې په وصف دَعظيم سره اوورستوئې بيادَالله جل جلاله عرش ته عظيم وئيلی دی په دواړوکښې فرق دې دَالله جل جلاله تخت دپاره ئې صفت العظيم يعنی معرف باللام ذکرکړيدې چه مرادترينه فردکامل دَعظمت دې،نوعرش دَالله جل جلاله عظيم دې په نسبت سره ټولومخلوقاتوته،اودَبلقيس دَتخت دپاره ئې صفت عظيم يعنی نکره ذکرکړيده نودَهغې عظمت نه مرادپه نسبت سره امثالواودَدنيادَباشاهانوته دې يعنی حقيقی عظمت اوکمال عظمت دَالله جل جلاله تخت لره دې ليکن چه دَدنيابادشاهانوته نسبت اوکړې شی نودَدې تخت بياعظيم وو.

﴿وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا﴾دادَقوم دَمذهبی حالاتوبيان دې اوهرکله چه ماقبل اموردنيوی وواګرچه قابل تعجب وولیکن حضرت سليمان عليه السلام هغې طرف ته التفات اوتوجه ورنکړه نوهدهد سليمان عليه السلام په جهادباندې راپاسولودپاره اوددغې قوم خلاف جهادکولودپاره دَهغوئی مذهبی حالت بيان کړوچه دابنځه اودَهغې قوم مشرک دی دَنمراودَستوروعبادت کوی.اوهرکله چه شرک

اقبح القبائح وونودَدِ وجې نه دَدې دَپاره ئې عامل مستقلاً ذکر کړو .او اکتفاء ئې په محذوف باندې اونکړه.

﴿وَزَيَّنَ لَهُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ ﴾دَ تزئين نه مراد په وسوسو په ذريعې سره بد اعمال خائسته کول دى. لکه کفر، شرک اونور بد اعمال شو. ﴿فَصَدَّهُمْ عَنِ ٱلسَّبِيلِ ﴾ فاء دَ تفريع دَپاره ده او دا تفريع ده په ماقبل باندې څکه چه وساوسو شيطانى باندې عمل کول سبب ګرځى دپاره دمنع کيدلو دَحق دَلارې نه او دَ توحيد نه﴿فَهُمْ لَا يَهْتَدُونَ﴾دَحق دَلارې نه منع کيدل سبب ګرځى دَهر قسم هدايت نه دَمحرومئ دَپاره. ﴿أَلَّا يَسْجُدُوا ﴾غوره قول دادې چه دلته لام اجليه مقدردې نو په اصل کښې داسې لان لايسجدوا يعنى شيطان دوئى ته بد اعمال څکه خائسته کوى چه دوئى الله ﷻ ته سجده اونکړى اوبعض فرمائى چه لا زائد دې، او ان يسجدوا متعلق دې دَ﴿لَا يَهْتَدُونَ ﴾سره اى فهم لايهتدون ان يسجدوا الله الخ يعنى دوئى لاره نه مومى چه سجده اوکړى الله ﷻ ته، اوبعض فرمائى﴿أَلَّا﴾په معنى دَ هلاّ سره دې اودا زجر دې دَهدهد دَطرف نه بلقيس اودَهغې قوم ته.

﴿ٱلَّذِى يُخْرِجُ ﴾دا دَهدهد دَطرف نه دليل عقلى دې په توحيد باندې اودا دليل مشتمل دې په اثبات دَدوه (٢) صفتونو دَالوهيت باندې دَپاره دَالله ﷻ، چه (١) يو کمال قدرت اودويم (٢) کمال علم دې، نو په ﴿يُخْرِجُ ٱلْخَبْءَ﴾سره اشاره ده کمال قدرت او په﴿وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ﴾سره اشاره ده کمال علم ته اودَ هدهد استدلال خلاصه داده چه الله ﷻ لره کمال قدرت او کمال علم ثابت دې او کوم ذات لره چه کمال قدرت او کمال علم حاصل نو دَ سجدې او عبادت لائق هغه وى، نو معلومه شوه چه عبادت لائق صرف الله ﷻ دې، هرچه ده کبرى نو هغه بديهى ده او هرچه ده صغرى نو دَهغې دَاثبات دَپاره ئې بطور مثال دوه (٢) جزئيات ذکر کړل، نو ﴿يُخْرِجُ ٱلْخَبْءَ﴾دَ کمال قدرت دَپاره دليل دې، او ﴿وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ ﴾دَ کمال علم دَپاره دليل دې او ﴿ٱلْخَبْءَ ﴾مصدر په معنى دَاسم مفعول مخبوء سره دې، يعنى پټ کړى شوى څيزونه (پوشيده) نو دَ خبء السموات نه مراد باران وريځې، نمر، سپوږمئ، او ستورى وغيره دى او خبءالارض نه مراد په زمکه کښې دانې، بوټې، کانونه وغيره دى، او اخراج په معنى دَ اظهار سره دې يعنى دَاسمان اودَزمکې پټ کړې شوى څيزونه الله ﷻ څرګنده وى

او هدهد دکمال قدرت د اثبات دپاره ددې وصف تخصیص ځکه اوکړوچه دازیات اوفق دې ددې مذکورې واقعې سره ځکه چه دبلقیس دبادشاهئ نه دمال فراوانی اودمعیشت استحکام وغیره معلوميدلونو هدهد دخبؤالسموات والارض، ذکراوکړواودینه ئې اشاره اوکړه چه اصل خالق اومالک ددې ټولوڅیزونودپاره الله ﷻ دې اویائې ددې وجې نه ددې وصف تخصیص اوکړوچه دهدهد کاردادې چه هغه په زمکه کښ دننه پټ چینجی وغیره راوباسی اوخوری، یعنی دخپل مزاج موافق ئې دادلیل ذکرکړو.

**فائده:** مفسرین فرمائی چه﴿أَلَّا يَسْجُدُوا﴾اګرچه اخباردې ظاهراًلیکن مفهوم ددې انشآء اووجوب دسجدې دې الله ﷻ ته، اودغه شان ورستومذکورصفات یعنی﴿يُخْرِجُ الْخَبْءَ﴾او﴿وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ﴾هم پدې دلالت کوی چه مقصودپدې کلام سره فقط اخباردممانعت ندې، بلکه اثبات دوجوب دسجدې دې الله ﷻ ته، نوددې وجې نه دلته سجده کول واجب دی.

﴿اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ظاهره داده چه داکلام دهدهددې اوددماقبل دپاره په منزله دنتیجې دې، او هدهد په دې خپلې نتیجې کښ دوه(۲)قسمه توحیدذکرکړیدې(۱)توحیدفی الالوهیت(۲) توحیدفی الربوبیة، نوپه الله لااله الخ سره توحیدفی الالوهیت ذکراوکړواوپه﴿ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ﴾ سره ئې توحیدفی الربوبیت ذکراوکړواوتخصیص د﴿ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ﴾ ددوه(۲) وجوهاتونه اوکړې شو(۱)یوددې وجې نه چه عرش په ټولومخلوقاتوکښ لوئی اوپه ټولومخلوقاتوباندې محیط دې، نوهرکله چه الله ﷻ رب دعرش دې دنورو مخلوقاتو رب په طریقې اولی دې، اوبل (۲)ددې وجې نه چه هدهد دبلقیس تخت کتلې ووچه یوعظیم تخت وو، اودهغې دتخت دهغې په عظمت باندې دلالت کولونودالله ﷻ کمال عظمت بیانولودپاره ئې تخصیص د العرش العظیم اوکړواوداخبره لږمخکښ تیره شوه چه هدهد دبلقیس تخت دپاره عرش عظیم یعنی نکره استعمال کړې وه چه دلالت ئې په مطلق عظمت باندې کولو، چه عظمت په نسبت سره ددنیابادشاهانوته وو، اودالله ﷻ دپاره دعرش ذکرپه صورت دمعرفې کښ یعنی العرش العظیم ذکرکړوچه دلالت په کمال عظمت باندې کوی، اوکمال عظمت دعرش دال دې په کمال عظمت دالله ﷻ باندې.

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ سَنَنْظُرُ اَصَدَقْتَ اَمْ كُنْتَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿۲۷﴾ اِذْهَبْ بِّكِتٰبِيْ هٰذَا فَاَلْقِهْ | | | | | | | | | | | |
| اووئيل سليمان علیہ السلام څه به گورم چه آياتارشتياويلی دی اوکه ئې ته دَدروغژنونه. يوسه داخماخط اوئی غورځوه | | | | | | | | | | | |
| اِلَيْهِمْ ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ فَانْظُرْ مَاذَا يَرْجِعُوْنَ ﴿۲۸﴾ قَالَتْ يٰۤاَيُّهَا الْمَلَؤُا اِنِّيْۤ اُلْقِيَ اِلَيَّ | | | | | | | | | | | |
| هغوئ ته بياواپس شه ورنه بياا وګوره چه څه جواب راليږي. دوئ اووئيل بلقيس اې مشرانوبې شکه غورځولې شويدې ماته | | | | | | | | | | | |
| كِتٰبٌ | كَرِيْمٌ ﴿۲۹﴾ | اِنَّهٗ | مِنْ | سُلَيْمٰنَ | وَاِنَّهٗ | بِسْمِ | اللّٰهِ | الرَّحْمٰنِ | | | |
| خط عزت مند(مهرزده) بې شکه دغه خط دَسليمان دَطرفه دې اومضمون دادي چه په نوم دَالله جل جلاله چه بې حده مهربان دې | | | | | | | | | | | |
| الرَّحِيْمِ ﴿۳۰﴾ | اَلَّا | تَعْلُوْا | عَلَيَّ | وَاْتُوْنِيْ | مُسْلِمِيْنَ ﴿۳۱﴾ | | | | | | |
| رحم | كونكي | دي | چه | لوئي | مکوئ | خماپه | مقابله | كښ | اوراشئ | ماته | مسلمانان |

﴿قَالَ سَنَنْظُرُ اَصَدَقْتَ﴾ دَهدهدبيان نه،ورستوحضرت سليمان علیہ السلام اوئيلوچه څه دَدې خبرې تحقيق كووم چه ته رشتياوائی اوکه دروغژن ئې،دَنظرنه مراددلته تأمل اوتحقيق كول دى،او﴿ اَصَدَقْتَ﴾جمله په موضع دَنصب كښ مفعول به ده دَ﴿سَنَنْظُرُ ﴾دَپاره په اسقاط دَحرف جرسره،چه كلمه دَ"فی"ده،ځكه چه كله نظرپه معنی دَتامل سره وی نودَده په صله كښ"فی"وی ﴿اَمْ كُنْتَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴾دا ابلغ دې په نسبت سره ديته چه"ام كذبت"ئې وئيلې وې،ځكه چه كله يوكس په جماعت ددروغژنوكښ شامل كړې شی نودَهغه دروغژن كيدل يقينی وی،اودغه شان پديكښ اشاره ده چه دَپيغمبرپه مخامخ دروغ وئيل ډيرلوئی جرم دې اودادَهغه سرې كاركيدې شی چه دروغ وئيل دَهغه ملكه گرځيدلی وی،اودغه شان پدې ايت كښ ادب وركولې كيږی،چه بغيردَتحقيق نه دَچاالزام منل پكارنه دی،اونه دَيوكس خبره علم يقينی فائده كوی اودغه شان دَدينه معلومه شوه چه حاكم اووالی ته دَخپل رعيت صحيح اومعقول عذرقبولول پكاردی اودَرعيت دصدق اوكذب امتحان اغستل پكاردی اودغه شان دې آيت كښ دليل دې پدې چه انبياء كرام غيب دان نه دي

﴿اِذْهَبْ بِّكِتٰبِيْ هٰذَا ﴾سليمان علیہ السلام ملكه سبأبلقيس په نوم باندې مختصرخط اوليكلو اوهدهدته ئې حكم اوكړوچه داخط فورااورسوه﴿ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ ﴾سليمان علیہ السلام هدهدته دَسفارت دَ

ادبو تعليم ورکړو چه هغوئ ته خط رسولونه پس بياته يوطرف ته شه دهغوئ نه ﴿فَٱنظُرۡ مَاذَا يَرۡجِعُونَ﴾يعنی دهغوئ خبروته سوچ کوه چه هغوئ څه جواب ماته راکوی اودآيت دظاهرنه معلوميږی چه الله ﷻ هدهدته داقوت ورکړې ووچه دهغوئ دخبروفهم اوادراک ئې کولې شو.

﴿قَالَتۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمَلَؤُاْ﴾ددينه نه مخکښې اندماج دې،تقديردعبارت داسې دې:بعلماذهب الهدهدبالکتاب فالقاه اليهاوتنحى عنهم وقرأت كتابه قالت الخ او هدهد چه کله دسليمان عليه السلام نه راروان شو اوصنعاءيمن کښې مأرب ته دبلقيس محل ته رااورسيدلونوبلقيس په دغه وخت کښې په خپل محل کښې اوده وه،اودهغې عادت داووچه کله به ئې ارام کولونو دمحل ټولې دروازې به ئې بندې کړې.نوهدهددروشن دان په ذريعې ددې کمرې ته اورسيدلواوخط ئې ددې په سينه باندې کيخودلواوبهرته رااوتلو.اودسليمان عليه السلام په خط باندې مهرلګيدلې وو.نوکله چه بلقيس راويخه شوه اواوکتلوئې چه ددې په سينه باندې خط پروت دې نوپريشانه شوه چه دې بندوکمروته خط څرنګه رااورسيدلو،اوکله ئې چه خط کولاؤکړونوپريشانی ئې نوره زياته شوه ځکه چه په هغې باندې مهرسليمانی ثبت وو،نوددې په زړه کښې دسليمان عليه السلام دبادشاهئ عظمت اوهيبت پيداشو،خوبهرحال دخپل مملکت مشران اومشيران ئې رااوغوختلواوهغوئ نه ئې اوئيلوچه:﴿إِنِّيٓ أُلۡقِيَ إِلَيَّ كِتَٰبٞ﴾چه ماته يوډيرمعززخط راغورځولې شويدې.اوبلقيس دې خط ته کريم.ددې وجې نه اوئيلوچه(۱) يوخو په خط باندې مهرلګولې شوې وو.اوپه خط باندې مهرلګيدل دخط کرامت دې،اوداطريقه دنبی پاک ﷺ هم وه چه کله به ئې بادشاهانوته خطونه ليږلونو مهربه ئې پرې لګولو،اوحضرت مولانامفتی محمدشفيع صاحب رحمه الله فرمائی چه بن صبالفافه دمهرقائمقام دی نوپه لفافه کښې خط بندول اقرب الی السنة دی

اودويم(۲)ددې وجې نه داخط کريم ووچه مضمون ئې جامع اوعظيم الشان وو.ځکه چه الفاظ ئې مختصراومعنی اومفهوم ئې ډيروو.اودغه شان شروع ئې په بسم الله شروه وه اومضمون ئې مشتمل ووپه دعوت الی التوحيدباندې.او(۳)دغه شان مرسل هم ئې کريم وو.نودخط کرامت دمرسل دوجې نه هم وی

﴿إِنَّهُ مِن سُلَيْمَانَ ﴾دامضمون دخط ذکرکیږی سره دتعارف دمرسل نه اومضمون دخط مشتمل دي په څلورو(۴)جملوباندې(۱)تعارف دمرسل(۲)ذکراوتوحیددالله ﷻ(۳)منع مخالفت اودتکبرنه(۴)دعوت الی الاسلام اومضمون دخط اګرچه په اعتباردالفاظوسره ډیرمختصردي لیکن دمفهوم په اعتبارسره پکښې ډیروسعت دي.

﴿إِنَّهُ﴾کښې ضمیرراجع دي کتاب ته،اوپه دویم﴿إِنَّهُ﴾کښې ضمیرراجع دي مضمون دخط ته،اومضمون دخط اګرچه حقیقةً نه دي مذکورلیکن حکمًامذکوردي،اوغوره خبره داده چه سلیمان علیه السلام خپل نوم د"بسم الله"نه اول نه وؤلیکلي بلکه"بسم الله"ئې اول لیکلي وه لکه چه داسنت دانبیاء کرامو علیهم السلام دی،اونبی پاک ﷺ به هم"بسم الله" دهرڅه نه اول لیکله اودلته تقدیم دنوم دسلیمان علیه السلام صرف حکایتا دي اومبنی دي په عرف اوعادت باندې،چه عام طورباندې دمرسل نوم اول اغستلې کیږی،اوددې تائیدپه روایت دابن ابی حاتم سره کیږی چه نقل کړیدې دیزیدبن رومان رحمه الله نه،چه هغه فرمائی چه حضرت سلیمان علیه السلام دخط الفاظ پدې ترتیب سره وو"بسم الله الرحمن الرحيم من سليمان بن داؤدالي بلقيس ابنة ذی شرح ولقومهاان لاتعلوا الخ"نولهذاددې آیت نه دانه ثابتیږی چه سلیمان علیه السلام خپل نوم د"بسم الله" نه مخکښې لیکلې وی،او"بسم الله"کښې جارومجرورمتعلق دی په"استعینوا"فعل امرپورې،نوپه "بسم الله"کښې درې(۳)قسمه توحید ذکرشو (۱)توحیدفی الاستعانة(۲)توحیدفی الالوهیت(۳)توحیدفی الصفات.

﴿أَلَّا تَعْلُوا عَلَيَّ﴾غوره قول دادې چه﴿أَلَّا﴾کښې"ان"مفسره او"لا"ناهیه دي اودامنع ده دغرور،تکبراودلوئی نه،اودعوت دي په منع دمخالفت ددین نه،یعنی څمادډین مخالفت مه کوئ چه دحق دین نه،انکاراوکړئی اوتکبراوکړئی اوهرکله چه تکبرپه ټولوخصلتونوکښې بدترین خصلت دي اوداسلام دپاره په ټولورکاوټونوکښې لوئی رکاوټ دي ددې وجې نه سلیمان علیه السلام ممانعت دتکبرنه اوکړو.

﴿ وَأْتُونِي مُسْلِمِينَ﴾دادعوت الی الاسلام دي،یعنی په داسې حالت کښې ماته حاضرشئ چه ایمان راوړونکی یئ،یعنی دایمان په حالت کښې ماته راشئ،نو"مسلمین"په معنی د"مؤمنین"سره دي،اوبعض فرمائی چه"مسلمین"په معنی د"منقادین"سره دي،یعنی څماحکم منونکی،اوعلامه آلوسی رحمه الله فرمائی چه اول احتمال په بنیاددعوت،دعوت دنبوت دي،اودویم دعوت،دعوت

دَملک ،یعني بادشاهۍ دي، اوشان دَپیغمبرسره زيات اليق دعوت دَنبوت دي نودَدې وجې نه اول احتمال زيات راجح اوغوره دي، اوهرکله چه دَسليمان عليه السلام دَخط بالاصالة مخاطبه بلقيس وه ليکن بالواسطه ټول رعيت اوقوم وونودَدې وجې نه﴿تَعْلُوا ﴾ او﴿ وَأْتُونِي ﴾وغيره صيغې دَجمع مذکورذکرشولې.

| |
|---|
| قَالَتْ يٰۤاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَفْتُوْنِيْ فِيْۤ اَمْرِيْ ۚ مَا كُنْتُ قَاطِعَةً اَمْرًا حَتّٰى تَشْهَدُوْنِ ۝ |
| اووئيل بلقيس اې مشرانوفتوه راکړئ ماته په کارځما کښ،نه يم څه فيصله کونکې دَيوکارتردې چه حاضرشئ تاسو ماته، |
| قَالُوْا نَحْنُ اُولُوْا قُوَّةٍ وَّاُولُوْا بَاْسٍ شَدِيْدٍ ۙ۬ وَّالْاَمْرُ اِلَيْكِ فَانْظُرِيْ مَاذَا تَاْمُرِيْنَ ۝ |
| اووئيل هغوئ چه مونږخاوندان دَقوة يواوسخت جنګ والا يو،باقي اختيارتادې پس ته اوګوره څه امرکوې ته، |
| قَالَتْ اِنَّ الْمُلُوْكَ اِذَا دَخَلُوْا قَرْيَةً اَفْسَدُوْهَا وَجَعَلُوْۤا اَعِزَّةَ اَهْلِهَاۤ اَذِلَّةً ۚ |
| دې ورته اووئيل بې شکه بادشاهان چه کله په زورداخل شي يوکلي ته نوخراب کړي هغه اواوګرځوي عزت مندد کلي ذليله، |
| وَكَذٰلِكَ يَفْعَلُوْنَ ۝ وَاِنِّيْ مُرْسِلَةٌ اِلَيْهِمْ بِهَدِيَّةٍ فَنٰظِرَةٌۢ بِمَ يَرْجِعُ الْمُرْسَلُوْنَ ۝ |
| اوهمداسې کاردوئ کوي.اوبې شکه څه ليږونکې يم دوئ ته قاصدسره دَهديې، نوګورم چه په کوم حال واپس راځي قاصدان . |

﴿قَالَتْ يٰۤاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَفْتُوْنِيْ ﴾هرکله چه بلقيس دَخط مضمون خپلومشيرانوته واورولو نودَهغې نه پس ئې ورته اوئيل چه اوس ماته مشوره راکړئ چه څه اوکړو؟ځکه چه ستاسونه بغيردَځه کارفيصله نه کووم،او﴿اَفْتُوْنِيْ ﴾دَفتوى نه دي اوفتوى وئيلې کيږي هغې مضبوط جواب ته چه په يوه حادثه کښ ورکولې شي،اودلته ترينه مراددَخپلې رائې اظهاراومشوره ورکول دي

﴿مَا كُنْتُ قَاطِعَةً اَمْرًا﴾بلقيس دخپلومشيرانواووزيرانودَتعظيم اودَهغوئ دَزړنو دَخوشحالۍ دَپاره ئې دَمشورې غوختلوعلت بيان کړوچه،څه ستاسودَمشورې نه بغيردَيومعمولي خبرې فيصله هم نه کووم نودَومره لوئې خبرې اوحادثې فيصله به ځنګه اوکړم،نودَ﴿قَاطِعَةً ﴾نه مراديقيني فيصله ده او﴿اَمْرًا ﴾کښ تنوين دَتحقيردَپاره دي،يعني دَيوحقيراومعمولي کارفيصله هم ستاسودَمشورې نه بغيرنه کوم،اوپديکښ اشاره ده چه دَمملکت په اهم اموروکښ مشورې

کولودستوربوقدیم دستوردې اواسلام دَدې مزیدتائیداوتقویت کړیدې اوپه احادیثوکښې دَمشورې ډیرلوئی اهمیت بیان کړې شویدې.

﴿قَالُوا نَحْنُ أُولُوا﴾وزراء اومشیرانوپه خپل جنگی مهارت اوطاقت باندې فخراوغرور دَوجې نه،بلقیس ته دَجنگ مشوره ورکړه،سره دَاظهاردَاطاعت نه.چه زمونږمشوره خودَجنگ ده باقی فیصله ستادَطرف نه ده څه چه ته وائې هغه به مونږمنو.حضرت الشیخ رحمه الله فرمائی چه دَمشیرانوجواب په چاپلوسئ باندې مبنی وو،تحقیق.سنجیدګی اودانشمندی پکښې نه وه. اوحقیقت دادې چه بلقیس خومره هغوئ ته دَصحیح مشورې ترغیب اودَهغوئ مشورې ته اهمیت ورکولواراده کړې وه خوهغوئ دَهغې برعکس بالکل غلطه اواحمقانه مشوره ورکړه.څکه چه دَمخالف دَقوت دَاندازه لګولونه بغیردَجنگ دَپاره آماده کیدل بې وقوفی ده په﴿أُولُوا قُوَّةٍ﴾ کښې اشاره ده کثرت دَتعداداواوقوت دَاجسادوته،اوپه﴿وَأُولُوا بَأْسٍ﴾کښې اشاره ده شجاعت اوجنګی تدبیرته.

﴿وَالْأَمْرُ إِلَيْكِ﴾دااظهاردَاطاعت دې چه زمونږمشوره دَجنګ ده باقی ته زمونږمشره ئې چه څه حکم ستاوی هغه به مونږمنو،﴿قَالَتْ إِنَّ الْمُلُوكَ﴾بلقیس ډیره زیرکه اوهوښیاره زنانه وه،اوسیاسی بصیرت ئې دَمشیرانوپه نسبت سره ډیروو.هغې ته دَسلیمان علیه السلام دَقوت اندازه دَخط دَرارسیدلوطریقې اودَخط دَمضمون نه شوې وه،څکه چه دروازوبندیدلو او دَچوکیدارانو دَ موجودګئ باوجوددَ هغې ته خط ملاؤ شو اودغه شان دَخط دَمضمون نه هم دَدنیوی اغراضواوطمع اودلالچ بوئې هم نه راتلونوهغه پوهه شوه چه خط رالیږونکې یوعام بادشاه ندې. او دَ مشیرانو مشوره بلاتحقیقه ده دوئی ته دَسلیمان علیه السلام دَقوت اندازه نیشته دې اوپه خپل طاقت باندې مغروره دی،نوځکه ئې دَهغوئ مشوره ردکړه،اوهغوئ ته ئې تعلیم ورکړوچه دَښه سوچ اوفکر کولونه ورستومشوره ورکول پکاردی،نوتاسوته پکارده چه دَجنګ دَانجام اودَعاقبت نه،ځان پوهه کړئې چه دَجنګ دوه(۲)لوئی خرابیانې دی(۱) فساد دَملک(۲)معززین ذلیل کیدل.نوکچرې بادشاه په تاسوباندې غالب شی نوستاسوملک به وران کړی اوستاسومعززین به ذلیله کړی.

﴿وَكَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ﴾دایاتتمه دکلام دَبلقیس ده چه خپلومشیرانوته ئې بطورتاکید عمومی ضابطه اودستوردَبادشاهانوبیان کړوچه داعادت دَبادشاهانودې چه اول اطلاع ورکوی

اوبیاجنګونه کوی اوملکونه ورانه وی اومعززین ذلیله کوی اویاداکلام دَالله ﷻ دې دَپاره دَتصدیق دَقول دَبلقیس.

﴿وَاِنِّيْ مُرْسِلَةٌ اِلَيْهِمْ﴾ هر کله چه بلقیس دَمشیرانو مشوره په دلیل سره رد کړه اوپه هغوئ باندې دَمشورې غلطی هم واضحه کړه نوبیائې خپله مشوره ورکړه،ددې دَمشورې خلاصه داده چه دَسلیمان علیه السلام امتحان اغستل پکاردی اوتحقیق کول پکاردی چه آیادې واقعی دَالله پیغمبراونبی دې اوکه صرف دنیاپرست بادشاه دې،نوکچرې دې محض دنیاپرست بادشاه وی نومقابله ئې اسانه ده اوکچرې محض بادشاه نوی بلکه نبی هم وی نوبیادَهغه سره مقابله ګرانه ده،نومونږ ته دَهغه اطاعت کول پکاردی،اودا امتحان په مال سره اغستلې کیږی،ځکه چه مال اوزنانه لویه فتنه ده لکه څرنګه چه په متعدد احادیثو کښې هم ذکردی،اودَامتحان اغستلو طریقه ئې داجوړه کړه چه دې اوئیل چه څه سلیمان علیه السلام ته هدایالیږم نوکچرې هدایائې قبولې کړې اومقصدئې پریخودلونو دنیاپرست دې اوکچرې هدایائې ردکړې اودَایمان اتباع نه بغیربل څیزباندې راضی نه شونو بیا پیغمبردې.

بلقیس دَسلیمان علیه السلام دَامتحان اغستلودَپاره هلکان،جینکئ روان کړل چه دَریښمو په لباس کښې ملبوس وو،په سرونو باندې تاجونه ووچه ملغلرې اویاقوت پرې لګیدلی وو اوپه لاسونو کښې ورسره دَسروزرو اوسپینوزرو خختې وې،اودَدوئی تعداد څومره وو؟نوقرآن اوحدیث کښې دَدې تصریح نیشته دې،البته اسرائیلی اوتاریخی روایات پدې سلسلې کښې راغلیدی خوهغه هم مختلف دی،صرف پدې خبره باندې اتفاق دې چه بلقیس سلیمان علیه السلام ته په لوئی تعداد کښې هلکان اوجینکئ چه په لاسونو کښې دَسرو زرو اوسپینوزروخختې اونورسازوسامان اولیږلو،

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا | جَآءَ | سُلَيْمٰنَ | قَالَ | اَتُمِدُّوْنَنِ | بِمَالٍ | فَمَآ |

پس هر کله چه راغلو قاصد سلیمان علیه السلام ته،نواووئیل سلیمان علیه السلام آیاتاسومددکوئ ماسره په مال،پس کوم څه چه

اٰتٰىنِۦَ اللّٰهُ خَيْرٌ مِّمَّآ اٰتٰىكُمْ ۚ بَلْ اَنْتُمْ بِهَدِيَّتِكُمْ تَفْرَحُوْنَ ﴿۳۶﴾ اِرْجِعْ اِلَيْهِمْ

ماته الله ﷻ راکړیدی غوره دی دَهغې نه چه تاسوته ئې درکړې،بلکه تاسویو بل ته هدیو ورکولو خوشالیږئ،واپس لاړشه هغوئ ته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَنَاْتِيَنَّهُمْ | بِجُنُوْدٍ | لَّا | قِبَلَ | لَهُمْ | بِهَا | وَلَنُخْرِجَنَّهُمْ |

خوراتلونکی ماته ورته راباندې ولو مونږ دوئ ته داسې لښکرې چه نه به وی طاقت دَمقابلې ددوئ دَهغې سره، او خامخا اوبه ئې باسو

مِّنْهَآ اَذِلَّةً وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ

دَدغې ښارنه ذليله اودوئ به خواروي.

﴿فَلَمَّا جَآءَ سُلَيْمٰنَ﴾وفدچه کله دَسليمان عليه السلام مخې ته راغلونوسليمان عليه السلام دوئی ته خپل مقصدواضح کړوچه ځمامطالبه ستاسونه،دَمال غوختلونه وه ځکه چه مال اودولت الله ﷻ ماته ډيرزيات راکړيدې ځمامطالبه ستاسونه،دَايمان ده.﴿ أَتُمِدُّونَنِ﴾کښ استفهام دَپاره دَانکاراوتوبيخ دې او﴿بِمَالٍ ﴾کښ تنوين دَپاره دَتحقيردې يعنی آياتاسودَدنياپه حقيرمال سره ځماامدادکوئ اوماته داحقيرمال بطوررشوت راکوئ اومادَخپل مقصدنه اړوئ.

﴿فَمَا ءَاتَىٰنِۦَ ٱللَّهُ ﴾مرادترينه دينی اودنيوی نعمتونه دی،علم،نبوت،حکومت اوعظيم الشان سلطنت دې چه په انس وجنی اوحيوش وطيوراوپه هواباندې وو.﴿بَلۡ أَنتُم بِهَدِيَّتِكُمۡ ﴾ بل دپاره دَاعراض دې اوداتعليل دې دَانکاردَقبولودَهداياتو.او"هديه"اسم دَ"مهدی"يعنی په هديه کښ ورکړې شوی څيز دې او"کم"ضميرخطاب کنايه ده دَمهدی اومهدی له نه نودَايت مطلب دادې چه هدايابطوررشوت قبولول دَدنياپرستوخکلوشيوه اوکاردې،اوځه خودنياپرست نه يم چه مال زياتوالی ته خوشحاليږم بلکه تاسودنياپرست يئ اودَيوبل هداياته خوشحاليږئی ځکه چه ستاسو مقصد دَدنيازيادتی ده.

﴿ٱرۡجِعۡ إِلَيۡهِمۡ﴾سليمان عليه السلام خپل مقصديوځل بيادوئ ته په واضح الفاظوسره بيان کړو، اودَ مطالبې نه منلوپه صورت کښ دَجنګ دهمکی ورکړه اوچونکه مخاطب دَسليمان عليه السلام سره پدې وخت کښ اميرالوفد"منذربن عمرو"وونودَې وجې نه سليمان عليه السلام په خطاب سره هغه خاص کړو، اوخطاب اميرته خطاب مامورانوته هم وی نوځکه اکتفاء هغه ته په خطاب سره اوکړې شوه اودَ﴿فَلَنَأۡتِيَنَّهُم ﴾نه مخکښ:ان لم يأتوني مسلمين،مقدردې،مطلب دادې چه سليمان عليه السلام دوئ ته اوئيلوچه تاسوخپل مشرانو دَمملکت ته واپس لاړشئ اوورته اووائي چه کچرته دوئی ايمان اوانقيادقبول نکړې اوځمادعوت ردکړې نوپه داسې لښکرسره به په دوئ باندې حمله اوکړم چه دوئی به دَهغې دَمقابلې طاقت نه لری او"قِبَل"دَمقابلې نه دې دلته ترينه مرادطاقت دَمقابلې دې.

﴿أَذِلَّة﴾ حال دي د﴿ وَلَنُخْرِجَنَّهُم﴾ كښې د "هم" ضميرنه، يعنى ستاسوعزت به په ذلت باندې بدل شي، مال ومتاع هرڅه به درنه قبضه كړې شي، او﴿أَذِلَّة﴾ جمع قلت ده اوجمع قلت د تاكيد د "اذلال" دپاره ده. ﴿وَهُمْ صٰغِرُوْنَ﴾ مراد ترينه مغلوب كيدل، گرفتاركيدل اوغلامان كيدل دى.

| |
|---|
| قَالَ يٰۤاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَيُّكُمْ يَاْتِيْنِيْ بِعَرْشِهَا قَبْلَ اَنْ يَّاْتُوْنِيْ مُسْلِمِيْنَ ۞۳۸ |
| اووئيل سليمان عليه السلام اې مشرانو كوم يوبه په تاسو كښې راوړى ماته عرش دهغى مخكښې ددينه چه راشى ماته مسلمانان |
| قَالَ عِفْرِيْتٌ مِّنَ الْجِنِّ اَنَا اٰتِيْكَ بِهٖ قَبْلَ اَنْ تَقُوْمَ مِنْ مَّقَامِكَ ۚ وَاِنِّيْ |
| اووئيل يوقوى پيرې د پيريانو نه چه څه به راوړم تاته هغه مخكښې ددينه چه ته پاسيږې د خپل ځائ نه، اوبې شكه څه پدې |
| عَلَيْهِ لَقَوِيٌّ اَمِيْنٌ ۞ قَالَ الَّذِيْ عِنْدَهٗ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتٰبِ اَنَا اٰتِيْكَ بِهٖ قَبْلَ |
| كارقوى يم امانتگريم. اووئيل هغه سړى چه هغه سره علم دكتاب ووځه به ئې راوړم تاته مخكښې ددينه چه |
| اَنْ يَّرْتَدَّ اِلَيْكَ طَرْفُكَ ؕ فَلَمَّا رَاٰهُ مُسْتَقِرًّا عِنْدَهٗ قَالَ هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّيْ ؕ |
| واپس شى تاته نظرستا پس هركله چه اوليدلوسليمان عليه السلام هغه تخت پروت ددَه خواه كښې اووئيل ئې دادفضل د رب خمانه دي |
| لِيَبْلُوَنِيْٓ ءَاَشْكُرُ اَمْ اَكْفُرُ ؕ وَمَنْ شَكَرَ فَاِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهٖ ۚ |
| چه امتحان اوكړى په ماچه آيا څه شكركوم اوكه ناشكرى كوم اوهرهغه څوك چه شكركوى نوشكركوى د خپل ځان لپاره. |
| وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ رَبِّيْ غَنِيٌّ كَرِيْمٌ ۞ قَالَ نَكِّرُوْا لَهَا عَرْشَهَا |
| اوڅوک چه ناشكرى كوى نوبيشكه رب خما بې پرواه دې، كريم دې، اووئيل سليمان عليه السلام بدل كړئ بلقيس ته تخت دهغى |
| نَنْظُرْ اَتَهْتَدِيْٓ اَمْ تَكُوْنُ مِنَ الَّذِيْنَ لَا يَهْتَدُوْنَ ۞۴۱ |
| چه اوگورومونږ چه آيا داهدايت مومى ياده دهغه كسانونه چه هدايت نه مومى. |

﴿قَالَ يٰۤاَيُّهَا الْمَلَؤُا﴾ ددينه مخكښې اندماج دې، تقديرد كلام داسې دې، فرجع المرسل اليها بالهدية واخبرها بما اقسم عليه سليمان عليه السلام فتجهزت للمسير اليه اذ علمت انه نبى ولا طاقة لها بقتال نبى الخ

یعنی چه کله دَدې کسان دې خواته واپس لاړو،اودیته ئې دَسلیمان علیہ السلام تولې خبرې اوکړې اودَسلیمان علیہ السلام ارادې ئې ورته ظاهرې کړې نودې فوراًسلیمان علیہ السلام خواته تللوتیاری شروع کړه ځکه چه داپوهه شوه چه دې پیغمبردې اوپیغمبردَمقصدنه،نه اوړی اونه ورسره جنګ کیدې شی،نودا دَخپل لښکرسره راروانه شوه،نوسلیمان علیہ السلام ته دَدې دَراتګ پته اولګیده اوداپته سلیمان علیہ السلام ته څنګه اولګیده نوغوره خبره داده چه سلیمان علیہ السلام ته داپته دَوحی په ذریعې وه.

نوپه دغه وخت کښې سلیمان علیہ السلام خپل مجلس والوته مخاطب شواوورته ئې اوفرمائیلوچه ﴿أَيُّكُمْ يَأْتِينِي بِعَرْشِهَا﴾چه دَدې تخت به ماته دَدې دَرارسیدلونه مخکښې مخکښې څوک حاضرکړې؟ اوسلیمان علیہ السلام دَدې دَتخت راحاضرولوخواهش اظهاراومطالبه دَدې وجې نه کړې وه چه سلیمان علیہ السلام دَخپل ظاهری شان وشوکت سره سره هغې ته دَالله ﷻ قدرت ښودل ضروری محسوس کولو،اوبیادَهغې دَمملکت په ټولوڅیزونواوپه ټولومالونوکښې دَتخت تخصیص ځکه اوکړوچه داپه ټولوڅیزونوکښې زیات محفوظ وو.ځکه چه داتخت دَاوه(۷)محلاتوپه مینځ کښې په یومحفوظ محل کښې ووچه هغې ته تالې(قفل)لګیدلې وې،اوګیرچاپیره ترینه پهریداران اولاړوو،نودومره لوئی اوعظیم تخت اومحفوظ په دومره لږ وخت کښې رارسول محض دَالله ﷻ په قدرت سره وو،ظاهری اسبابولره پکښې دخل نه وؤ،اوابن جریر رحمه الله وغیره حضراتو چه لیکلی دی چه سلیمان علیہ السلام دَدې راتللونه مخکښې دَدې تخت ځکه راوړل غوختلوچه ددې په مال باندې دَدې دَاسلام راوړلونه،مخکښې قبضه اوکړی ځکه چه بعدالاسلام دَسلیمان علیہ السلام دَپاره بیادَدې په مال باندې قبضه کول جائزنوو،غلطه خبره ده اودَشان دَپیغمبرسره غیرمناسبه ده،اوپدې ایت کښې دلیل دې چه سلیمان علیہ السلام محتاج وو،اوخدائ طاقت اوقدرت ورسره نوو.

﴿ قَالَ عِفْرِيتٌ ﴾ عفریت دَعفرنه دې،خبیث،مکار،اوشریرته هم وئیلې کیږی اوطاقتورته هم وئیلې کیږی،دلته ترینه مرادطاقتوردې،یعنی یوطاقتورجنی اوئیل چه نوم دَدې جنی ذکوان وویاصخر،اویاکودی وو،چه څه به تاته دَدې تخت ستادَمجلس دَختمیدلونه مخکښې رااورسوم، نودَ﴿أَن تَقُومَ مِن مَّقَامِكَ ﴾نه مراددَمجلس دَقضانه پاسیدل اودَهغې ختمول دی،اوروایاتوکښې دی چه دَسهرنه ترغرمې پورې به سلیمان علیہ السلام دَخلکوفیصلې کولې اودَهغوئ شکایات به ئې اوریدلونودَدې جنی مطلب داووچه ته دَخلکودَفیصلونه چه فارغ کیږی نومابه تاته،تخت رارسولې وی.

﴿وَإِنِّي عَلَيْهِ لَقَوِيٌّ أَمِينٌ ﴾جنی دَخدمت اودَذمه دارئی پوره کولودَپاره خپل اهلیت ظاهرکړو. چه (۱) یو قوت اوبل(۲) امانت دي. اودادوه(۲) صفات یعنی قوت اوامانت دَیوذمه وارکس دَپاره بنیادی اوضروری صفات دی. اودَدې صفاتودَفقدان دَوجې نه په ذمه دارئی پوره کولوکښې خلل اونقصان راځی. اوپه واقعې دَشعیب علیه السلام کښې هم دی چه دَشعیب علیه السلام بچیانوهغه ته مشهوره ورکړه چه. استاجره ان خیرمن استاجرت القوی الامین، نوجنی هم سلیمان علیه السلام ته خپل خدمات اواهلیت پیش کړوچه دَبلقیس تخت اګرچه ډیرلوئی دې خومانه هم الله تعالی لوئی قوت راکړیدې، اودغه شان په هغې باندې ملغلرې اونورقیمتی جواهرات لګیدلی دی خوځه امین یم، په هغې کښې به هیڅ قسم خیانت نه کوم.

﴿قَالَ الَّذِي عِندَهُ﴾ سلیمان علیه السلام دَجنی خبره ردکړه چه ماته تخت دَدینه هم زرپکاردې. نوپدې دوران کښې هغه کس چه هغه ته دکتاب علم ورکړې شوې ووهغه اوئیل چه ځه به ئې دَسترګودَ رپ نه مخکښې راوړسوم. داکس څوک وو؟دَدې په تعین کښې تقریباً اته(۸) اقوال راغلیدی. لیکن درې(۳) پکښې راجح دی، (۱) اول قول دَجمهورومفسرینودې چه ددینه مرادآصف بن برخیادې، چه دَسلیمان علیه السلام وزیراودَهغه دَترور(خاله) زوې هم وو، او علم من الکتاب نه مراد اسم اعظم دې یعنی آصف بن برخیاته اسم اعظم یادوو، اوهغه به چه په اسم اعظم سره دعااوغوختله نو الله تعالی به پوره کوله، اوامام ثعلبی رحمه الله دَحضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت نقل کړیدې چه نبی پاک ﷺ اوفرمائیلوچه: انّ اسم الله الاعظم الذی دعابه آصف بن برخیایاحی یاقیوم، اوبعض فرمائی چه الفاظ دَاسم اعظم اهیااشراهیاووچه دَهغې عربی الفاظ یاحی یاقیوم دی، نودادَاسم اعظم برکت اودَاصف بن برخیا کرامت وو.

(۲) دویم قول دادې چه دَدینه مرادحضرت جبرائیل علیه السلام دې، چه هغه په دغه موقعې باندې حاضروو، او علم من الکتب نه مرادعالم کیدل دَهغه دی په علومودَوحی باندې، ځکه چه حضرت جبرائیل علیه السلام په نزول دَوحی باندې مقرردې، اونزول دَوحی مستلزم دې علم لره په هغې باندې، اوحضرت جبرائیل علیه السلام ته الله تعالی دَاطاقت ورکړیدې چه ډیرلوئ اودروندڅیزدَسترګوپه رپ کښې دَیولرې ځائ نه بل لرې ځائې ته اورسوی، اودې قول ته حضرت الشیخ رحمه الله ترجیح ورکړیده.

(٣)دریم قول دادي چه دَدینه مراد پخپله سلیمان علیه السلام دي اوتعین په موصول سره دپاره دَاظهاردَشرف اوعظمت دَعلم دي اوعلم من الکتب نه مرادعلم په زبوراونوروصحائفوباندي دي،او﴿أَنَا ءَاتِيكَ﴾سره خطاب عفریت جنی ته دي،یعنی هرکله چه عفریت اوئیل چه تخت بلقیس به دَمجلس دَختمیدلونه مخکښ څه رااورسوم اوځه ډیرطاقتوریم،نوسلیمان علیه السلام ده ته په جواب کښ اوئیلوچه دَعلم اونبوت په وجې سره الله تعالیٰ ماته ستانه زیات قوت راکړیدي چه څه امعجزه ده چه داتخت څه دَسترګوپه رپ کښ رارسولې شم،دې قول ته امام رازی رحمه الله ترجیح ورکړیده،

﴿فَلَمَّا رَءَاهُ مُسْتَقِرًّا عِندَهُۥ﴾یعنی سلیمان علیه السلام خپلې سترګې پټې کړې اوچه بیائې کولاؤکړې نوتخت ورته مخې ته پروت وو،اوداتخت څرنګه راغلې وو،دَزمکې دَلاندې یاپه هواباندې راغلې وو،دواړه اقوال پکښ راغلیدی لیکن اکثرمفسرین فرمائی چه په زمکه کښ ته راغلې وویعنی دَزمکې دَلاندې نه راغلې وو،نوکله چه سلیمان علیه السلام تخت په خپل مخامخ اوکتلونودَاداء شکردَپاره ئې اوفرمائیلوچه﴿ هَٰذَا مِن فَضْلِ رَبِّي ﴾من تبعیضیه دي یعنی دومره لوئی تخت دَدومره لرې ځائې نه په لږوخت کښ رارسیدل محض دَالله تعالیٰ په فضل سره دی،اوالله تعالیٰ په ماباندې ډیرنعمتونه کړیدی په هغې کښ یونعمت داهم دې﴿لِيَبْلُوَنِيٓ ءَأَشْكُرُ ﴾ یعنی پدې انعاماتوسره مقصودځماامتحان اغستل دی،چه ځه دَالله تعالیٰ شکراداکوم اوکه دَهغه ناشکری کووم﴿وَمَن شَكَرَ ﴾یعنی دَهرعمل فائده اونقصان عمل کوونکی ته رسی نوکه یوکس دَالله تعالیٰ دَنعمتونوشکراداکړی نوخپل ځان ته فائده رسوی ځکه چه دَ ه په ذمه شکراداکول حق واجبه وونوداشکرسره خپله ذمه ئې خلاصه کړه اودغه شان وئیلې کیږی،الشکرقیدالنعمة الموجودة وصید النعمة المفقودة،یعنی شکرموجوده نعمت دَشکرکوونکی سره پاتې کوی اوغیرموجودنعمت ښکارکوی(شکردَزیادتی دَنعمت ذریعه ده).

﴿وَمَن كَفَرَ﴾دکفران نعمت نقصان هم انسان ته دي،په شکراداکولوسره دَالله تعالیٰ په خدائی اوعظمت کښ زیاتوالې نه راځی،اودَهغه په ناشکرئ سره دَالله تعالیٰ په عظمت کښ څه کمی نه راځی،یعنی الله تعالیٰ غنی بې پرواه ذات دي او کریم دي چه دَناشکرئی باوجودپه انسان باندې مسلسل نعمتونه کوی.

﴿قَالَ نَكِّرُوْا لَهَا ﴾سليمان عليه السلام حكم اوكړوچه دَبلقيس دَتخت هئيت بدل كړئى تنكير دېته وئيلې كيږى چه دَيو څيزپه هيئت اوصورت كښې داسې تبديلى راويستلې شى چه ناآشنا ښكاره شى اوپيژندلو كښې ئې مشكلات پيدا شى اوداتبديلى بعض فرمائى چه داسې راويستلې شوې وه چه دَتخت دَلاندې طرف پاسه كړې شو اوپاسه طرف لاندې كړې شو ،اوبعض فرمائى چه ملغلرې پكښې بدلې كړې شوې وې،دَسروجواهروپه ځائې په كښې شنه اولګولې شواودَې تغيرنه مقصددَبلقيس دَعقل امتحان اغستل وواودَهغې استعدادمعلومول وو،چه بيا سليمان عليه السلام دَهغې سره دَهغې دَعقل اواستعدادمطابق خبرې اوكړى،ځكه چه دَهرانسان سره دَهغه دَعقل موافق خبرې كول پكاروى،.﴿أَتَهْتَدِيْٓ أَمْ تَكُوْنُ﴾ يعنى دَدې نه،به خودبخوددَې عقل اواستعدادمعلوم شى.

فَلَمَّا جَآءَتْ قِيْلَ اَهٰكَذَا عَرْشُكِ ؕ قَالَتْ كَاَنَّهٗ هُوَ ۚ

نوكله چه بلقيس راغله ورته اووئيلې شو آياداشان دې تخت ستا،هغې اووئيل لكه چه هم هغه دې،

وَاُوْتِيْنَا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهَا وَكُنَّا مُسْلِمِيْنَ ۝۴۲ وَصَدَّهَا

اوراكړې شويدې مونږته علم په نبوت دَسليمان عليه السلام مخكې دَدېنه اووُومونږمسلمانان اومنع كړې وه (دالله تعالى دعبادت نه) بلقيس

مَا كَانَتْ تَّعْبُدُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ اِنَّهَا كَانَتْ مِنْ قَوْمٍ كٰفِرِيْنَ ۝۴۳ قِيْلَ لَهَا ادْخُلِي الصَّرْحَ

هغې څيزونو چه عبادت ئې كولو ماسوى دَالله جل جلاله نه بې شكه دا وه دَقوم كافرانو نه اووئيل شول دېته داخله شه بنګلې ته

فَلَمَّا رَاَتْهُ حَسِبَتْهُ لُجَّةً وَّكَشَفَتْ عَنْ سَاقَيْهَا ؕ قَالَ اِنَّهٗ صَرْحٌ

نوكله چه بلقيس اوليدله شيشه ګمان ئې پرې اوكړو دَاوبو اوپاينڅې ئې اوچتې كړې دَخپلوپندونه اووئيل سليمان عليه السلام دابنګله ده

مُّمَرَّدٌ مِّنْ قَوَارِيْرَ ؕ قَالَتْ رَبِّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ وَاَسْلَمْتُ مَعَ سُلَيْمٰنَ

جوړه شويده دَشيشونه،اووئيل بلقيس اې ربه بيشكه ما ظلم كړيدې په خپل ځان اواسلام مې راوړيدې دَسليمان عليه السلام سره

لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝۴۴

په الله رب العالمين

﴿فَلَمَّا جَآءَتْ قِيلَ أَهَٰكَذَا عَرْشُكِ﴾همزه استفهاميه"ها"حرف تنبيه"كاف"تشبيهي او"ذا"اسم اشاره ده،يعنى چه كله بلقيس رااورسيدله اوسليمان سره تخت طرف ته كيناستلودپاره راغله نودخبروشروع كولونه مخكښې ددې داستعدادمعلومولودپاره ديته اوئيلې شوچه آياستاتخت ددې تخت پشان دې؟ اوسليمان عليه السلام استفهام اوتشبيه دواړه ذكركړواواكتفاء ئې صرف په استفهام اونكړه چه داسې ئې وئيلې وې،چه﴿هذا عَرْشُكِ﴾يعنى ستاتخت دادې؟ ځكه چه مقصود دسليمان عليه السلام ددې امتحان اغستل وواوددې استعدادمعلومول وو،نودتشبيه په صورت كښې اشتباه زياته وه په نسبت سره غيرتشبيهي كلام ته،ځكه چه بغيردتشبيه نه،صرف استفهام كله كله دلالت په تلقين كوى.

﴿قَالَتْ كَأَنَّهُۥ هُوَ﴾اكثرمفسرين فرمائى چه بلقيس خپل تخت اوپيژندلوخوبياهم دسليمان عليه السلام داشتباهى سوال په جواب كښې دهغه دمطابقت دپاره اشتباهى كلام ذكركړو،نوځرنګه چه سليمان عليه السلام په بلقيس باندې اشتباه دپاره تشبيهى كلام ذكركړې وونودغه شان بلقيس هم په سليمان عليه السلام باندې اشتباه راوړلوكوشش اوكړو،يعنى ګوياچه داخوهغه تخت دې چه ماپه خپلې علاقې كښې پريخې وو،اوابن المنير رحمه الله فرمائى چه دبلقيس دجواب دهغې په عقلمندئى باندې دال وو،ځكه چه هغې په خپل جواب كښې دتخت ددوه(۲)څيزونو اعتبار اوكړو(۱)يودأصل مادې اوبل(۲)دموجوده تبديل هيئت اوددې وجې نه بلقيس دسليمان عليه السلام په جواب كښې"نعم"اونه وئيلو،نوددې دجواب خلاصه داده چه دأصل په اعتبارسره خوتخت هغه دې چه كوم ماپريخې وو،البته تبديلى دهيئت پكښې راغليده اوبعض فرمائى چه بلقيس خپل تخت نه وؤپيژندلې ابتداءً نوځكه ئې اوئيل چه﴿كَأَنَّهُۥ﴾اوبيائې تامل اوفكراوكړونواوپيژندلونودتيقن دپاره ئې اوئيل چه هُوهچه هاؤداخوهغه دې.

﴿وَأُوتِينَا ٱلْعِلْمَ مِن قَبْلِهَا﴾غوره قول دادې چه داكلام دبلقيس دې اوهركله چه دسليمان عليه السلام مقصددتخت راوړلونه،دالله تعالى قدرت اودخپلې معجزې اظهاروونوددې وجې نه بلقيس ده ته اوئيلوچه ځماتخت راوړل هم اګرچه ستادنبوت لوئى دليل دې خوماته ستادنبوت حق اليقين ددينه مخكښې حاصل شوې وو،اوداپته ماته دهدهدخط راوړلواوبياسفيران راتلل اودهغوئى نه ستاحالات اوريدلوسره لګيدلې وه چه ته دالله تعالى برحق نبى ئې.

﴿وَكُنَّا مُسْلِمِينَ﴾ يعنى مونږ دَاسلام اوستادَتابعدارئى اودَانقيادپه اراده راروان شوى يو.

تفسير عثمانى كښې دى چه مسلمين نه مرادظاهرى انقياددې، اوپه﴿وَأُوتِينَا ٱلْعِلْمَ﴾كښې مرادعلم په نبوت ندې بلكه علم په قدرت اوپه عظيم سلطنت دې،يعنى بلقيس چه كله دَهدهددَخط راوړلومنظراوكتلواوبيائې دَسفيرانونه، دَسليمان عليه السلام حالات واوريدلوچه سليمان عليه السلام بادشاهى صرف په انسانانونه بلكه جناتو،وحوش طيوروټولوباندې ده،نوداپې خيال راروانه شوه چه داخويوقاهربادشاه دې نولهذادده سره صلح اوانقياديكاردې،نودَ﴿مُسْلِمِينَ﴾نه مراد منقادين دى اودَسليمان عليه السلام دَتخت راوړلونه مقصدديته شرعى هدايت وركول وو،خوهركله چه دې دَتخت راوړلوحقيقى مقصداونه پيژندلونوسليمان عليه السلام ديته تعليم وركولودَپاره دويمه طريقه اختياركړه چه هغه دې دَپاره دَشيشومحل جوړول ووچه تفصيل ئې راروان دې.

﴿وَصَدَّهَا مَا كَانَت﴾داجواب دَيوسوال دې،سوال داوو،چه هركله بلقيس دومره عقلمنده ښځه وه چه دَقرائينونه ئې پته اولګوله چه داتخت دَدې دې،دغه شان سليمان عليه السلام ته دَهغه دَسوال مطابق جواب وركول وغيره دَدې دَعقلمندئې ثبوت دې،نوددومره عقل باوجوددې بياشرك ولې اختياركړو؟نوجواب ترينه اوشوچه دَغيرالله عبادت دَدې عادت ګرځيدلې وو،اوشرك دَدې نظريه جوړه شوې وه،نودَالله تعالىٰ دَقدرت په دلائلوكښې سوچ كولوموقعه ورته نوې ميلاؤشوې ځكه چه دَدې سره ګيرچاپيره ټول ماحول دكفراوشرك وو،نوځكه دې ايمان نه ووړاوړې،اګرچه دا عذر شرعى ندې،نوپدې توجيه سره﴿مَا كَانَت﴾كښې مامصدريه ده اوداټوله په تاويل دَمصدرسره فاعل واقع شويده دَ﴿صَدَّ﴾فعل دَپاره اوبعض فرمائى چه دَ﴿صَدَّ﴾دَپاره فاعل سليمان عليه السلام دې او﴿ مَا كَانَت﴾په معنى دَعن ماكانت سره دې،دَ ايت مطلب دادې چه منع كړه سليمان عليه السلام دَعبادت دَهغې نه چه ماسيوادَالله تعالىٰ نه دې عبادت كولو ليكن اوله توجيه زياته غوره ده.

﴿إِنَّهَا كَانَتْ مِن قَوْمٍ﴾داعلت دې دَماقبل يعنى عبادت لغيرالله دَپاره،اى انها كانت من قوم راسخين فى الكفرولذالك لم تكن قادرة على اظهاراسلامها(ابوسعود)پديكښې اشاره ده چه انسان كوم ماحول كښې پاتې كيږى نودَهغې ماحول اثرپه ده باندې كيږى،اودَهغې ماحول طورطريقې دَده عادت جوړيږى.

﴿قِيلَ لَهَا ٱدۡخُلِي ٱلصَّرۡحَ﴾سليمان عليه السلام جناتو ته،حکم اوکړوچه يو داسې عظيم الشان محل جوړکړئی چه فرش اولارې ئې دَشيشووی،اودَهغې دَلاندې دَاوبو حوضونه وی. نودَسليمان عليه السلام دَحکم مطابق جناتومحل تيارکړوچه صحن اولارې ئې دَشيشواولاندې ترينه حوضونه وو،چه په هغې کښې ماهی وغيره وو،نوبلقيس ته اوئيلې شوچه دې محل ته داخله شه،نوداچه داخليده نوخپلې پائينچې ئې اوچتې کړې،پدې خيال چه دااوبه دی،اودَدې پنډئی ښکاره شوې نوفوراً سليمان عليه السلام ديته اوئيلوچه دادَشيشونه جوړشوې محل دې يعنی لاندې اگرچه اوبه دی خوپاسه پرې شيشه ده.

حضرت سليمان عليه السلام داتدبيراوعمل ولې اوکړو؟ نوعام مفسرين فرمائی چه سليمان عليه السلام ديته دَخپلې بادشاهئ عظمت ښودلواودَالله ﷻ دَنعمتونواظهارئې کولوچه څه ستامال ته محتاجه نه يم دَغاموبادشاهانوپشان بلکه ځمامقصودستاسوايمان راوړل اودَالله ﷻ دين غالب کول وو،اوبعض فرمائی چه سليمان عليه السلام مقصودديته دَدې خبرې تعليم ورکول ووچه زنانه که هرڅومره عقلمنده شی خوبياهم کمزورې اوپه عقل کښې ئې فتوروی نودَدومره عقل باوجودته په دينی معامله کښې غلطه شوې وې اوشرک دې اختيارکړې وولکه څرنگه چه دلته غلطه شوې،خوپه ټولو توجيهاتوکښې بهترين توجيه دَحضرت عثمانی رحمه الله ده،هغه وائی چه دَدی مقصد دهغی ايمان راوړل وو،اوپدی خبره تنبيه وه چی نور او سپوږمئ عبادت کول دهغی خکلی والی نه متاثره کيدلو په وجه داسی دهوکه ده،لکه څنگه چه دلته دهوکه شوه.اوشيشی ئی دَ اوبو گمان اوکړو،اوديته قريب قريب توجيه دَحضرت الشيخ رحمه الله ده،هغوئی فرمائی چه کله بلقيس خپلې پائنچې اوچتې کړې نو فوراً سليمان عليه السلام ورته اوفرمائيلوچه داخوشيشومحل دې نوديته ندامت سره سره دَخپلې سابقه غلطئ احساس هم اوشوچه لکه څرنگه دلته څه په غلطئ کښې ووم نودغه شان هلته هم څه په يوې لوئی غلطئ کښې پرته ووم چه په شرک کښې مبتلاووم.

اوکوموخلکوچه وجه بيان کړيده چه سليمان عليه السلام دَدې پنډئ کتلې چه ويښته پرې شته دې اوکنه؟ نودې چه پائنچې اوچتې کړې نوپنډيوباندې ئې ويښته وو،نوانسانانوسليمان عليه السلام ته دَاُسترې استعمالولومشوره ورکړه،سليمان عليه السلام دې دَپاره استره خوښه نکړه،جناتوته هم دَدې ويښتوختمولوڅه طريقه نوه معلومه،نوبياسليمان عليه السلام دَشياطينونه،تپوس اوکړونوهغوئی ورته دَنورې بال صفامشوره ورکړه اودَهغې وخت نه دَبال صفاايجاداوشو،داټولې غلطې خبرې دی

دانبیاء کراموشان سره غیرمناسب بلکه سراسرمخالف دی اګرچه شریعت کښې دنظرالی المخطوبه ګنجائش شته دې.

﴿حَسِبَتْهُ لُجَّةً ﴾ لجه وئیلې کیږی ډیرواوبوته یعنی غلی ﴿قَالَتْ رَبِّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي﴾یعنی ماپه شرک سره په ځان باندې ظلم کړیدې،نوداا عتراف دغلطئ اودجرم دې، ﴿وَأَسْلَمْتُ مَعَ سُلَيْمَانَ﴾مع سلیمان نه مراد مع اتباع سلیمان دې،حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه کامسلمین کښې اخبارد ایمان وو،اوپدې جملې سره مقصودانشاء دایمان دې،یعنی اصل ایمان بلقیس پدې جملې سره راوړو،تفسیر عثمانی نه معلومیږی چه ماقبل کامسلمین،سره مرادلغوی معنی مرادوه،چه انقیادوودسلیمان علیه السلام اوپدې جملې سره مقصوداسلام شرعی دې یعنی ایمان،اودې وجې نه چه ماقبل کښې دمسلمین نه مرادانقیاددسلیمان علیه السلام وواوهغه انقیاددټولو اهل مملکت په مشورې سره وو،نوځکه مسلمین جمع اوئیلې شوه،اودلته چونکه اسلام شرعی او ایمان مراددې چه هغه دهرانسان دزړه سره تعلق لرې اوقلبی عمل دې،نودې وجې نه دلته صیغه دواحدمتکلم ذکرشوه اودغه شان پدې ایت کښې اشاره ده چه ایمان هغه معتبردې چه دپیغمبر دتعلیماتو موافق وی اودهغه اتباع پکښې وی.

**فائده نمبر(۱)** پدې ایت کښې دلیل دې چه دمکان زیبائش اوپه هغې کښې اسباب دارائش جوړول جائزدی اوبیاخاص طورباندې دضرورت په مواقعو کښې خلاف تقوی هم ندی.

**فائده نمبر(۲)**:قرآن مجید کښې دسلیمان علیه السلام اودبلقیس واقعه صرف دومره حدپورې ذکرده چه بلقیس ایمان راوړلو،ددینه ورستو څه حالات راغلیدی اوبلقیس سره دسلیمان علیه السلام نکاح شویدې یانه؟ قرآن اوحدیث کښې ددې تصریح نیشته دې،البته تاریخی روایاتو کښې دی چه سلیمان علیه السلام ددې سره نکاح اوکړواوخپلې علاقې یمن ته ئې واپس اولیږله اودخپل قوم په مشرئی باندې برقراره پریخودله اوسلیمان علیه السلام به په هرمیاشت کښې دری(۳)شپې ددې سره تیره ولې،نوکچرې داتاریخی روایت ثابت شی نودې نه دښځې په حکمرانئ په جوازباندې استدلال کول ځکه باطل دی چه د(۱) بلقیس حکمرانی تامه اوعامه نه وه،بلکه دیو مخصوص علاقې مشره وه اودسلیمان علیه السلام دحکم پابنده وه خپل حکم ئې نه چلیدلو(۲)اودغه شان زمونږپه دین کښې

دښمنځو په حکمرانئ باندې سخت وعيد راغليدې او شرائع من قبلنا هغه وخت کښې دليل ګرځي چه په هغې باندې من جانب الشارع نکيرنه وي وارد شوې.

| |
|---|
| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰى ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صٰلِحًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ فَاِذَاهُمْ فَرِيْقٰنِ |
| اويقيناًمونږليږلي وؤقوم ثمودته ورورددوئ صالح چه عبادت کوئ صرف دالله ﷻ پس دوئ دوه ډلې شوې [1] |
| يَخْتَصِمُوْنَ ﴿٤٥﴾ قَالَ يٰقَوْمِ لِمَ تَسْتَعْجِلُوْنَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ |
| چه جګړې ئې کولې، اووئيل صالح اې قومه څخاولې جلدي کوئ په عذاب په ځائې دعافيت |
| لَوْلَا تَسْتَغْفِرُوْنَ اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿٤٦﴾ قَالُوا اطَّيَّرْنَا بِكَ وَبِمَنْ مَّعَكَ |
| ولې مغفرت نه غواړئ دالله نه چه په تاسو رحم اوکړې شي، دوئ اووئيل بدفالي نيولي ده مونږ په تا او په هغه چا تاسره دي، |
| قَالَ طٰٓئِرُكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ تُفْتَنُوْنَ ﴿٤٧﴾ |
| اووئيل صالح عليه السلام بدفالي ستاسو الله ﷻ سره ده،بلکه تاسو يو قوم يئ چه په فتنه کښې اچولې شئ |

﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَآ إِلَىٰ ثَمُودَ﴾ دا دريم واقعه ده چه متعلقه ده دَدويمې دعوې سره،يعنې کارساز او متصرف صرف الله ﷻ دې،دَصالح عليه السلام دَقوم مؤمنانو ته،نجات ورکول او منکران هلاک کول دَالله ﷻ تصرف وو،صالح عليه السلام الله ﷻ قوم ثمودته ليږلې وو،چه هغوئې مشرکين وو،صالح عليه السلام هغوئې ته دعوت الى التوحيد ورکړو چه﴿أَنِ ٱعْبُدُوا ٱللَّهَ﴾دا په معنى دَ وحدوا الله سره دې،يعنې صرف اوصرف دَالله ﷻ عبادت کوئې،دَهغه سره څوک شريک نيشته دې.

﴿فَإِذَا هُمْ فَرِيقَانِ ﴾فاء مفاجاتيه ده،يعنې پکارخوداوه چه دوئې ټولو دَحضرت صالح عليه السلام خبره منلې وې،ليکن دوئې په دوه(٢)ډلو کښې تقسيم شو،يوه ډله دَمؤمنانو مستضعفين وه،او بله ډله دکافرانو مستکبرين وه،اوفطرى خبره ده چه دَډلو په خپل مينځ کښې بحث مباحثې اوجهګړې هم کيږي نو دغه شان دَحضرت صالح عليه السلام په قوم کښې هم شروع شو، نو دَ ﴿يَخْتَصِمُونَ﴾ مقصد دادې

[1] دريمه واقعه،دويمې دعوى سره متعلقه

چه یودَبل سره جهګړې اوبحث مباحثې ئې کولې اودَدوئی دَجهګړې ذکرپه سورة الاعراف ایت نمبر(۷۵، ۷۶)کښ شویدې.

﴿قَالَ يَٰقَوۡمِ لِمَ ﴾دَحضرت صالح علیه السلام دَدعوت په جواب کښ اوداَوښې دَهلاکت نه ورستودَعذاب مطالبه اوکړه اودائې اوئیل چه﴿یاصالح ائتنابماتعدنا﴾الخ (اعراف:۷۷)یعنی اې صالح کچرې ته رښتونې ئې نوپه مونږباندې عذاب راوله نوصالح علیه السلام دوئی په شفقت اومحبت سره پوهه کړل چه اې قومه!تاسوعذاب ته تادی اوجلتی ولې کوئ،اوتاسودتوبې اوایمان راوړلونه مخکښې ولې عذاب غواړئ؟نودَ﴿بِٱلسَّيِّئَةِ ﴾نه مرادعذاب دې اودَ﴿ٱلۡحَسَنَةِ ﴾ نه مرادتوبه اوایمان دې.

اوکه څوک اشکال اوکړی چه دَحضرت صالح علیه السلام زجرمقیددې په قیددَ﴿قَبۡلَ ٱلۡحَسَنَةِ ﴾سره چه دَدې دَظاهرنه دامعلومیږی چه که﴿قَبۡلَ ٱلۡحَسَنَةِ ﴾نه وی نوبیااستعجال دَعذاب صحیح دې؟

(۱)نویوجواب ترینه داکړې شویدې چه دلته قبل دَقبلیت زمانی دَپاره ندې،بلکه دَقبلیت رتبی دَپاره دې چه دَهغې ترجمه په ترجیح ورکولوسره کیږی،لکه وئیلې کیږی،صحة البدن قبل کثرة المال

(۲)اوبل جواب ترینه دادې چه داکلام دَدوئ دَیوغلط خیال په ردکښې اوپه هغې باندې زجر اوانکاردَپاره راوړې شویدې،چه دَدوئی خیال داووپدې خیال به دوئی عذا ب غوختلواول خو عذاب نشی راتللې،اوکه بیاچرته عذاب راشی نومونږبه په عین موقعه باندې توبه اوکړواوایمان به راوړونودَدوئی دَدې غلط خیال په ردکښې داکلام صالح علیه السلام اوئیلو.

﴿لَوۡلَا تَسۡتَغۡفِرُونَ ٱللَّهَ ﴾یعنی دَنزول دَعذاب نه مخکښې مخکښې استغفاراوکړئی اودشرک نه توبه اوباسئ ځکه چه دَالله ﷻ قانون اوسنت دادې چه دَنزول عذاب نه مخکښې توبه قبلوی اورحم کوی اونزول دَعذاب نه ورستوبیاتوبه نه قبلوی.

﴿قَالُواْ ٱطَّيَّرۡنَا بِكَ وَبِمَن مَّعَكَ ﴾دَحضرت صالح علیه السلام دَقوم پهَ منکرینوباندې دَهلاکت دَعذاب نه علاوه،قحط سالئ اوخشک سالئ وغیره صورت کښ الله ﷻ واړه واړه عذابونه هم راویستلې وو،دې دَپاره چه دوئ عبرت حاصل کړی اوالله ﷻ طرف ته توجه اوکړی خوهغوئ الله ﷻ ته توجه کولوپه ځائې یوه انتهائی غلطه عقیده اختیارکړه اوغلطه اوفاسده خبره ئې اوکړه چه داځومره

سختیانې اومصائب چه مونږته رارسیږی داستاسوسپیره والې دې، کوم وخت نه چه تاسونوې دین شروع کړیدې نومونږپه تکلیفونوکښې مبتلایو.

﴿قَالَ طٰٓئِرُكُمْ﴾یعنی نحوست اوسپیره والې دَچادَوجې نه نوی، ستاسودَمصائب اودَ تکالیفو سبب ستاسوبدعملونه دی، چه دَدغې بدعملونواثرپه دنیاکښې دادې چه دَالله ﷻ دَطرف نه قضء دَشرپه تاسوباندې نازلیږی، نواکثرمفسرین فرمائی چه دلته طائرپه معنی دَ قضاء الشر دَه اوقضاء چونکه ډیرپه تیزئ سره راځی لکه وئیلې شي لاشئ اسرع من قضاء محتوم یعنی دَقضاء نه تیزبل شې نیشته دې نودَدې وجې نه قضاء نه کله کله تعبیرپه طائرسره اوشی.

﴿بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ تُفْتَنُونَ﴾داپه معنی دَ معذبون سره دې یعنی بل انتم قوم معذبون، اویامقصد دادې چه یفتنکم الشیطان بوسوسته الیکم الطَّیرة یعنی شیطان تاسوپه فترینه اودهوکه کښې مبتلاکړی یې، چه تاسودَخپلوبداعمالودَانجام نه ناخبره اوددغې عذابونونسبت حضرت صالح علیه السلام اودَهغه ملګروته دَنحوست په طورکوئ.

وَكَانَ فِي الْمَدِينَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ ﴿۴۸﴾ قَالُوا

اووؤپه (ښاردَثمودیانو)کښې دَنهه کسانوجماعت چه فسادبه ئې کولوپه زمکه کښې او اصلاح ئې نه کوله دوئ اووئیل

تَقَاسَمُوا بِاللَّهِ لَنُبَيِّتَنَّهُ وَأَهْلَهُ ثُمَّ لَنَقُولَنَّ لِوَلِيِّهِ

قسمونه ئې اوخرئ په الله ﷻ چه خامخاشپې به حمله کوؤمونږپه صالح علیه السلام اوپه اهل دده بیابه وایوولی دده ته

مَا شَهِدْنَا مَهْلِكَ أَهْلِهِ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ﴿۴۹﴾ وَمَكَرُوا مَكْرًا

چه نه وؤموجودمونږپه ځائ دَهلاکت دَاهل دده کښې اوبیشکه مونږ رشتنی یو، اوتدبیرئې جوړکړوپه تدبیرجوړولوسره

وَمَكَرْنَا مَكْرًا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿۵۰﴾ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ مَكْرِهِمْ

اومونږتدبیرجوړکړوپه تدبیرجوړولوسره اودوئ نه وؤخبرپس اوګوره څنګه وؤانجام دَتدبیردَدوئ

أَنَّا دَمَّرْنَاهُمْ وَقَوْمَهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿۵۱﴾ فَتِلْكَ بُيُوتُهُمْ خَاوِيَةً بِمَا ظَلَمُوا

چه بیشکه مونږهلاک کړل دوئ اوقوم ددوئ ټول، پس دغه دَدوئ کورونه دی غورځیدلی په سبب دَظلم دَدوئ.

| |
|---|
| اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۝ وَاَنْجَيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ۝ |
| بيشکه پدیکښ دلیل دعبرت دي لپاره دغه قوم چه پوهيږی اونجات ورکړومونږايمان والوته اودوئ يريدل دالله ﷻ نه |

﴿وَكَانَ فِي الْمَدِينَةِ﴾ دحضرت صالح علیہ السلام دقوم په شهريعنی حجرکښ نهه(۹)کسان لوئی لوئی بدمعاشان وو،چه ډيرسخت لوفران اوهرقسم بدکارونه پکښ موجودوو،شرک، زناکاری، سود، غلا، ډاکه وغيره غلط کارونه به ئې کولو،اوقرطبی وغيره حضرات فرمائی چه ددوئ مشرقداربن سالف وو،اوداهغه بدبخته ووچه دصالح علیہ السلام اوبنه ئې قتل کړې وه،نوکله چه دوئ اوبنه قتل کړه نوصالح علیہ السلام دوئ ته اوفرمائيلو چه تمتعوا فی دارکم ثلثة ایام چه ددرې(۳)ورځونه پس به په تاسوباندې عذاب راځی،نودې نهه کسانو په خپل مينځ کښ مشوره اوکړه چه کچرې داصالح علیہ السلام يقيناً پيغمبروی نوعذاب به په مونږباندې خامخاراځی نومونږبه دخپل هلاکت نه مخکښ دحضرت صالح علیہ السلام نه خپل بدل واخلواوکه پيغمبرنه وی اوعذاب رانشی نومونږبه ورنه په ارام شونودوئ منصوبه جوړه کړچه دشپې په وخت کښ په ده باندې اوده دکورنئ په کسانو باندې حمله اوکړواودې به سره دکورنئ نه،مړکړو،اوکه دده وارث په مونږباندې دعوی دقتل اوکړی نومونږ په انکاراوکړو،چه مونږنه يوخبر،نودمنصوبې مطابق دوئ دشپې په وخت کښ حضرت صالح علیہ السلام باندې دحملې په نيت لاړوخو الله ﷻ دحضرت صالح علیہ السلام حفاظت دملائکو په ذريعې سره اوکړو.

﴿تِسْعَةُ رَهْطٍ﴾ رهط اسم جمع ده اطلاق ئې ددرې(۳)نه ترلسو(۱۰)پورې کيږی نودانهه کسان وو،اودوئ دپاره د رهط لفظ استعمالول يادې وجې نه ووچه دوئ دخپلو قبيلو مشران وواودمال اودولت دوجې نه،ددوئ متبعين ډيروونوځکه هريوکس ته مستقلاً رهط اوئيلې شواويا رهط يوکس دپاره ددې وجې نه استعمال شوچه دهريوکس فساددومره عظيم اوزيات وولکه دېوپوره جماعت فساداوشی،يعنی هريوکس په شراوفسادکښ په منزله درهط وو.

﴿يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ﴾ مرادترينه شرک،قتل،ډاکې وغيره دی ﴿وَلَا يُصْلِحُونَ﴾ داتاکيددې دماقبل دپاره،اوپدیکښ اشاره ده چه دهغوئ سره دخپل اصلاح احساس نه وؤ او دا بدکارونه دهغوئ عادت مستمره ګرځيدلې وو. ﴿قَالُوا تَقَاسَمُوا بِاللَّهِ﴾ دادهغوئ دفساديوه نمونه

ذکرکیږی،چه دوئ دَحضرت صالح علیه السلام دَقتل یوه مضبوطه منصوبه جوړه کړه تقاسموا دَباب تفاعل نه امردې،اومقوله ده دَقول دَپاره،یعنی دوئ په خپل مینځ کښ اعتماد دَپاره دااوئیلوچه په الله تعالیٰ باندې قسمونه،اوخورئ،او﴿لَنُبَيِّتَنَّهُ وَأَهْلَهُ﴾ورله مقسم له دې،یعنی دې دَپاره قسمونه اوخورئ چه مونږټول به دَشپې په وخت کښ په حضرت صالح علیه السلام اودَهغه په کورنئ باندې حمله کوو،اویادا صیغه دَماضی ده دَباب تفاعل نه،اوبدل دې دَقالوا نه یعنی دوئ اوئیلو.اوددوئ وئیل په الله تعالیٰ باندې قسمونه خوړل وواویاحال دې دَقالوا دَضمیرفاعل نه په تقدیرد قدسره یعنی قالوا حال کونهم متقاسمين على الله لنبيتنه واهله الخ.

﴿ثُمَّ لَنَقُولَنَّ لِوَلِيِّهِ﴾مرادترینه دَصالح علیه السلام ولی یعنی دَهغه ورثاء دی،یعنی دوئ په خپل مینځ کښ قسمونه اوکړل چه مونږبه صالح علیه السلام اودَهغه کورنئ والابه قتل کړواوبیاچه کله ورثاء دَهغه په مونږباندې دعوه دَقتل اوکړی نودوئی سره به گواهان نه وی،نومونږباندې به قسم راځی نومونږبه ورته قسم اوکړوچه مونږدَصالح علیه السلام دکورنئ قتل ته،نه یوحاضرشوی مهلک یاپه معنی دَمصدرسره دې،یعنی اهلاکهم اویاظرف مکان یازمان دې.نونفی دَظرفیت سره نفی دَنفس فعل په طریق اولی سره راځی.

﴿وَإِنَّا لَصَادِقُونَ﴾ یعنی مونږبه خپلوخبروکښ رینښتونی یو،یعنی مونږبه نه حانث کیږو،اوخلک به راته دروغژن نه وائی،اوددوئ ځان ته رینښتونی په دې اعتبارسره اوئیلوچه حیله ئې جوړه کړه،اوصورت دَحیلې ئې داووچه قتل نه مونږصالح علیه السلام اودهغه اهل دواړه کړو،اوبیابه قسم داسی اوخوروچې مونږدهغه اهل دَهلاکت په موقع موجودنه وؤ.نودروغ ژن به نشوځکه چې مونږ خوصرف دَهغوئ هلاکت په موقع نه وؤموجود،بلکه داخودواړو هلاکت موقع وه.

﴿وَمَكَرُوا مَكْرًا﴾ مکراً مفعول مطلق دې تنوین پکښ دَپاره دَتعظیم اوتفخیم دې،یعنی دوئی دَصالح علیه السلام دَقتل یوه لویه منصوبه جوړه کړه،اوالله تعالیٰ فرمائی﴿وَمَكَرْنَا مَكْرًا﴾یعنی مونږ دَصالح علیه السلام دَبچ کیدلواودَدوئ هلاک کولوفیصله اوکړه،اورِوایاتوکښ دی چه دوئ دَصالح علیه السلام دَقتل دَپاره دَشپې په وخت کښ اووتلو،صالح علیه السلام به دَعبادت دَپاره یوځائ ته تللو،په لاره کښ به غاروو،دوئ په هغې غارکښ پدې انتظارپټ کیناستلوچه حضرت صالح علیه السلام به پدې لاره تیریږی

نوموئ نږیه ئې قتل کړو، نو الله ﷻ په غار باندې یو لوئ کاڼړې راواغوړځولو چه دوئ په غار کښې دننه پاتې شولو او هلاک شولو، او ابن عباس ﷺ فرمائی چه دوئ صالح ﷺ ته رسیدلو وو، صالح ﷺ په دغه وخت کښې مونځ کولو، الله ﷻ د ملائکو په ذریعې د صالح ﷺ حفاظت اوکړو، ملائکو دوئ په کاڼړو باندې اویشتلو او دوئ هلاک شولو، او باقی قوم بیا الله ﷻ د صیحې په عذاب سره هلاک کړو.

﴿فَٱنظُرۡ كَيۡفَ كَانَ﴾ داخطاب هر مخاطب ته دې، او د هغوئ د مکر و فریب انجام بیانیږی، "کیف" خبر مقدم د "کان" دې، او "عاقبة امرهم" اسم دې، ای کان کیف عاقبة امرهم، او ابهام د پاره د تهویل شان دې، یعنی د دوئ مکر انجام ډیر بد ترین او سخت ترین وو، او ﴿أَنَّا دَمَّرۡنَٰهُمۡ﴾ بیان د انجام د دوئی د مکر دې او په ﴿دَمَّرۡنَٰهُمۡ﴾ کښې ضمیر راجع دې نهه (۹) کسانو ته، نو د دغې نهه (۹) کسانو، هلاکت جدا ذکر کول او د قوم هلاکت جدا ذکر کول په دیکښې اشاره ده چه د دوئ عذابونه هم جدا جدا وو، یعنی دا نهه (۹) کسان په جدا عذاب سره هلاک کړې شوی وو، او قوم په جدا عذاب سره، تفصیل ئې لږ مخکښې تیر شو.

﴿ فَتِلۡكَ بُيُوتُهُمۡ خَاوِيَةَۢ ﴾ تلک سره اشاره ده هغې کنډراتو ته کوم چه د مکې او د شام په لاره کښې وو، او د عربو تجارتی قافلې به په هغې تیریدلې ﴿خَاوِيَةَۢ﴾ دوه (۲) معنو سره راځی، په معنی د خالی سره چه کله ماخوذ شی وه "خوی البطن" نه او په معنی ده "ساقطة" سره راځی چه ماخوذ شی د "خوی النجم" نه دلته ترینه دواړه معانی مراد کیدې شی ﴿بِمَا ظَلَمُوٓاْ ﴾ "باء" سببیه او "ما" مصدریه ده ای بسبب ظلمهم او په دیکښې اشاره ده چه ظلم سبب د بربادئ او تباهئ د ملکونو دې.

﴿وَأَنجَيۡنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾ صیغه د جمع متکلم د تعظیم د پاره راوړې شویده، دا مقصود بالواقعه ذکر کیږی چه کفار هلاک کوونکې او مؤمنانو ته نجات ورکوونکې صرف الله ﷻ وو، حضرت صالح ﷺ سره نجات موندونکو او مؤمنانو ملګرو تعداد په دغه وخت کښې د یو روایت مطابق څلور زره (۴۰۰۰) او د بل روایت مطابق یو سل شل (۱۲۰) وو، لیکن غوره قول دا دې چه یو سل شل (۱۲۰) خاندان وو چه په څلور زره (۴۰۰۰) افرادو باندې مشتمل وو.

دعذاب راتللووخت کښ حضرت صالح علیه السلام اودهغه ملګری کوم ځائې کښ وو؟ پديکښ اقوال متعددی دی (۱) بعض فرمائی چه دوئ په خپل ځائ کښ وو، په عذاب سره منکرین هلاک شولو اودوئ محفوظ پاتې شولو (۲) علامه الوسی رحمه الله فرمائی چه مکې معظمې ته راغلی وو، اودصالح علیه السلام وفات هم په مکه کښ شوې وو، دکعبې سره قريب جانب غربی کښ مدفون دې (۳) خازن فرمائی چه رملة ته راغلی وو، (۴) عام مفسرين فرمائی چه حضرموت ته راغلی وو، اوحضرت موت ته ځکه حضرت موت وئيلې کيږی چه حضرت صالح علیه السلام چه دلته راغې نووفات شواوپدې علاقه کښ هم يوقبردې چه دهغې متعلق مشهورده چه دادصالح علیه السلام قبرمبارک دې.

| |
|---|
| وَلُوْطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ أَتَأْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ وَأَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ ﴿٥٤﴾ أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُوْنَ |
| اولیږلې وومونږلوط علیه السلام كله ئې چه اووئيل خپل قوم ته آياتاسوراتلئ کوئ بدکارئ ته اوتاسوپوهيږئ. آياتاسوراتلل کوئ[1] |
| الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّنْ دُوْنِ النِّسَآءِ ۚ بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ ﴿٥٥﴾ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ إِلَّآ |
| نارينوته په شهوت سره په ځائ دښځونه بلکه تاسوقوم جاهله يئ. پس نه وو جواب دقوم دهغه مګر |
| أَنْ قَالُوْٓا أَخْرِجُوْٓا اٰلَ لُوْطٍ مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۚ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ ﴿٥٦﴾ فَأَنْجَيْنٰهُ |
| داچه اوئيل ئې اوباسئ آل دلوط دخپل کلی نه، بې شکه دوئ داسې خلق دی چه ځان پاک ساتی. پس بچ کړومونږلوط علیه السلام |
| وَأَهْلَهٗٓ إِلَّا امْرَأَتَهٗ ۫ قَدَّرْنٰهَا مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿٥٧﴾ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ |
| اواهل دده مګرښځه دده، مقدره کړې وه مونږ دادباقی پاتې کيدونکونه په عذاب کښ اووراوورولو مونږپه دوئ باران دکانړو، |
| فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿٥٨﴾ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسَلٰمٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ |
| پس بدووباران دويرولوشو. اووايه ته اې پيغمبره! تول ثناصفت الله تعالی لره دې اوسلام دې په بندګانودده باندې هغه چه |
| اصْطَفٰى ۗ آٰللّٰهُ خَيْرٌ أَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٥٩﴾ |
| غوره کړی ئې دی، آياالله تعالی غوره دې اوکه هغه بتان غوره دی چه دوئ ئې شريکوی دالله تعالی سره |

[1] خلورمه واقعه دعوی ثانی سره متعلقه

﴿وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِۦٓ﴾ داڅلورمه واقعه ذکرکیږي چه دَدویمې دعوې سره متعلقه ده، چه لوط علیه السلام خپل قوم دَبداعمالواوقبیح افعالونه، منع کولولیکن قوم دَهغه خبره اونه منله، اورسرکشۍ ئې اختیارکړه، نوالله جل جلاله منکرین هلاک کړل اومؤمنانوته ئې نجات ورکړو.

﴿وَلُوطًا﴾ منصوب دې په فعل مقدرسره چه"ارسلنا"دې اوداعطف دې په﴿إِلَىٰ ثَمُودَ﴾ باندې، نوعبارت په اصل کښې داسې"ولقدارسلنالوطاً"اویاداعطف دې په﴿ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا﴾ باندې، اودَ﴿وَأَنجَيْنَا﴾ تحت دې، یعنی وانجینالوطاًاذقال الخ.

﴿أَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ﴾ استفهام دَپاره دَزجر، توبیخ اوانکاردې او﴿ٱلْفَٰحِشَةَ﴾ نه مرادکامل فی الفحش عمل دې چه اغلام بازی ده.﴿وَأَنتُمْ تُبْصِرُونَ﴾ داجمله حال واقع شویده دَضمیرفاعل دَ"تاتون"نه او﴿تُبْصِرُونَ﴾ نه، یابصیرت قلبي مراددې په معنی دَعلم یعنی "تعلمون" سره، او مقصود پدې سره تاکیددې په زجراوانکارکښې، ځکه چه دَقبیح کارپه قبح باندې پوهه اوعالم کس لپاره قبیح کار کول ډیر بد اوشنیع وي په نسبت سره هغه کس ته چه هغه ته دَقبیح کاردَقبح علم نه وی نودَایت مقصددادې چه تاسوبنه پوهیږئ چه داعمل ډیربد، اوشنیع عمل دې، څناورهم داکارنه کوی خوتاسوئې کوئ، یعنی دانسته طورباندې تاسوداعمل کوئ، اویا﴿تُبْصِرُونَ﴾ نه بصارت حسی مراددې، اوفحاشت دَدې فحش عمل نازل کړې شویدې په منزله دَمحسوس باندې دَوجې دکمال ظهورنه، په فحاشت کښې، نومطلب دادې چه تاسوفحش کارکوئ حالانکه تاسوبنه ګورئ چه داډیربد، اوفحش عمل دې اویادَ﴿تُبْصِرُونَ﴾ نه، بصارت حسی مراددې اومفعول به ورله"بعضکم من بعض"دې ای تبصربعضکم من بعض، یعنی ستاسوبې حیائی دومره انتهاء ته رسیدلې ده چه دابې حیااوفحش کاردَیوبل په مخامخ کوئ، اودَیوبل نه پرده هم نه کوئ، لکه په سورة العنکبوت ایت نمبر(۲۹)کښې دی چه"وتاتون فی نادیکم المنکر".

﴿أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ ٱلرِّجَالَ﴾ دابیان دَ﴿أَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ﴾ دې، یعنی کمال فحش کاردادې چه تاسودَنارینوسره بدکاری کوئ محض دَشهوت پوره کولودَپاره، حالانکه دَشهوت پوره کولودَپاره الله جل جلاله جائزه طریقه دَزنانوسره نکاح مقررکړیده﴿شَهْوَةً﴾ مفعول له، دَاتیان دَپاره دې.

﴿مِّن دُونِ ٱلنِّسَآءِ﴾ دون په معنی دَمتجاوزین سره دې، یعنی زنانه چه محل دَشهوت پوره کولو دپاره دی، هغې نه تجاوزکوونکی یئ نارینو طرف ته، ﴿بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ﴾ بل یاد اضراب اویاد ترقی دپاره دې، اوحکم په دوئ باندې دَجهالت په اعتبار دَعمل سره دې، اوماقبل کښې حکم دَبصیرت قلبی اودَپوهې والا په اعتبار دَنفس علم اومعلومات سره وو، یعنی دَدې عمل په قباحت باندې ښه پوهه یئ، علم درته شته دې خو بیاهم عمل دَجاهلانو کوئ اویا ﴿تَجْهَلُونَ﴾ په معنی دَ غافلون عن العاقبة سره دې، یعنی دَدې کار دَقباحت نه خبریئ خو دَدې انجام نه ناخبره یئ. نولهذا دا اعتراض نه واردیږی چه ماقبل کښې حکم دَ ﴿تُبْصِرُونَ﴾ لګیدلې وو چه په معنی دَتعلمون سره وو. اودلته حکم دَ ﴿تَجْهَلُونَ﴾ اولګیدلو نو په دواړو ایاتونو کښې تعارض دې.

**فائده**: پدې ایت کښې دَاغلام بازئ عمل، قباحت اوشناعت په مختلف تاکیداتو سره ذکرشویدې (۱) تفسیربعدالابهام (۲) استفهام توبیخی (۳) حرف"ان" (۴) لام تاکیدی (۵) لفظ دَرجال ذکرکول په ځائ دَذکران باندې (۶) تعلیل دَاتیان ذکرکول په شهوة سره چه تنبیه ده په خطاء فی المحل باندې په فعل کښې (۷) ﴿دُونِ ٱلنِّسَآءِ﴾ ذکرکول چه تنبیه ده په خطاء فی المحل باندې په ترک کښې (۸) اضراب کول جهالت ته.

﴿فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِۦٓ﴾ دَباطل پرستو عادت دادې چه کله په دلیل کښې خاموش شی نودَحق منلو په ځائ په حق پرستو پورې توقې اوپه هغوئ باندې ظلم کوی، دَحضرت لوط علیه السلام قوم نه هم دَحضرت لوط علیه السلام دَناصحانه تبلیغ اومسکت دلیل په جواب کښې دَهغه دَعلاقې نه دَویستلو مشوره اوکړه، اوویوبل ته ئې دَلوط علیه السلام دَویستلو دَپاره غیرت ورکړو چه دادَبهرنه راغلې کس تاسو ته نصیحتونه کوی، اوستاسو عملونو ته بدوائی، اوددینه نفرت کوی، نودَقریې اضافت کم ته دَپاره دَتوهین دَلوط علیه السلام وواوخپلو کسانو ته ته غیرت ورکولو دَپاره وو، چه علاقه ستاسوده اودې دَبهرنه راغلیدې اوتاسو ته خبرې کوی، اوداکلام دَدوئ چه ﴿إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ﴾ تعلیل دې دَاخراج دَپاره، یعنی دوئ ځانونه پاک ګڼړی اومونږ اوزمونږ عمل ته پلیت وائی نو پاک دَپلیت سره په یوځائ کښې وخت نه تیره وی نولهذا دوئ دې زمونږ دَعلاقې نه لاړشی اوداخبره چه انهم اناس الخ دوئ بطوراستهزاء کوله.

﴿فَأَنجَيْنَـٰهُ وَأَهْلَهُۥٓ﴾لوط علیہ السلام ته الله تعالیٰ حکم اوکړو چه دَشپې شپې خپل اهل اومنوونکی کسان دَځان سره کړه اودَدې علاقې نه اوځئ،لوط علیہ السلام دَخپلوکسانوسره ابراهیم علیہ السلام ځائ ته راغلوصرف يوه بي بي ئې پاتې شوه چه کافره وه اګرچه فاحشه اوبدکاره نه وه.خودَخپل قوم محبت پرې دَالله تعالیٰ دَمحبت نه غالب وو،نوکفرئې اوکړواوهلاکه شوه او﴿ قَدَّرْنَـٰهَا﴾په معنی دَ "قدرنا كونها" سره دې،ځکه چه تعلق دَتقدیردَافعالوسره وی،نه دَذواتوسره.﴿وَأَمْطَرْنَا﴾په قومونوکښ سخت ترین عذاب الله قوم لوط ته ورکړیدې،تفصیل ئې باربارتیرشویدې.

﴿قُلِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ وَسَلَـٰمٌ ﴾داثمره دَدریمې اوڅلورمې واقعې ذکرکیږی،چه صفات دَالوهیت صرف په الله تعالیٰ پورې مختص دی،انبیاءکرام اواولیاء په خپلې سلامتیاکښ محتاجه دی الله تعالیٰ ته،غوره قول دادې چه داخطاب نبی پاک ﷺ ته دې،اودَحمدحکم عمومَادَټولونعمتونودَشکرئې اداکولودَپاره دې اوداعدآء دین اودَدښمنانودَانبیاءکرامو په هلاکت باندې خصوصًادې

**فائده**:پدې ایت کښ اشاره ده چه دَداسې کس اوقوم په هلاکت باندې شکریه اداکول جائزبلکه ضروری دی چه هغوئ اعداء دین وی،اومسلمانانوته ورنه تکلیف وی،البته دنیوی معاملات کښ دښمنی اویادَیولالچ په بنیاددښمنی کول پکارهم ندی اونه دَداسې مخالف په تکلیف اوهلاکت باندې خوشحالی کول پکاردی.

﴿وَسَلَـٰمٌ عَلَىٰ عِبَادِهِ ٱلَّذِينَ ٱصْطَفَىٰٓ﴾مراددَدینه انبیاء کرام دی بالاتفاق اوصحابه کرام ترینه هم مرادکیدې شئ ځکه چه انبیاء کرام معصوم دی دګناهونونه،خوصحابه کرام محفوظ دی دَ ګناهونونه،نودواړه دَ "اصطفی" مصداق دی،

﴿ءَآللَّهُ خَيْرٌ ﴾استفهام دَپاره دَتبکیت اودَپاره دَتهکم دې په حالت دَمشرکینوباندې،یعنی هرکله چه دَدې مذکوره واقعاتونه،معلومه شوه چه الله تعالیٰ خپلونیکانوبندګانوته نجات ورکوی اومنکرین اومشرکین هلاک کوی نوتاسوخپله سوچ اوکړئ چه دکوم ذات په عبادت سره نجات میلاویږی هغه بهتردې اوکه هغه څوک غوره دی چه دَهغوئ په عبادت سره انسان هلاک کیږی؟ دیرلوئ احمق اوبیوقوف دې هغه کس چه بیاهم دَالله تعالیٰ نه علاوه دَبل چاعبادت کوی او "خیر" اګرچه

صیغه دَاسم تفضیل ده لیکن اللهﷻ خیرمحض دي دَهغه په مقابله کښې بل خیرنیشته دي.نودَ
وجې نه داپه معنی دَمبالغې سرهاوپه روایت کښې دی چه نبی پاکﷺ به دَدې ایت دَتلاوت نه
ورستودا الفاظ وئیلو چه:بل الله خیرٌ وابقی واجل واکرم.

| |
|---|
| اَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَنْۢبَتْنَا |
| بلکه هغه ذات غوره دي چه پیداکړی ئې دی اسمانونه اوزمکه اونازل کړي ئې دي ستاسولپاره دَاسمان نه باران پس زرغون کړل مونږ |
| بِهٖ حَدَآئِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ ۚ مَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُنْۢبِتُوْا شَجَرَهَا ۗ |
| پدې سره باغونه دَتازګئ والا .نشته دي تاسولره طاقت دَدې چه زرغون کړئ اونی دَدغوباغونو |
| ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَّعْدِلُوْنَ ﴿٦٠﴾ اَمَّنْ |
| آیاشته بل معبود دَاللهﷻ سره.بلکه داکافران داسی قوم دي چه اعراض کوی دَحق(توحید)نه (شرک ته)بلکه هغه ذات |
| جَعَلَ الْاَرْضَ قَرَارًا وَّجَعَلَ خِلٰلَهَآ اَنْهٰرًا وَّجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ وَجَعَلَ |
| چه ګرځولی ده زمکه قرار اوګرځولی ئې دی په مینځ دَدې کښې نهرونه اوګرځولی ئې دی دې لپاره غرونه اوګرځولي ده |
| بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا ؕ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٦١﴾ |
| په مینځ دَدوؤدریابونوکښې پرده،آیاشته دې بل معبود دَاللهﷻ سره،بلکه زیات دَدوئ نه نه پوهیږی |

﴿اَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ﴾ په دویمې دعوې باندې پنځه دلائل عقلیه علی سبیل الاعتراف من
الخصم ذکرکیږی، دااول دلیل عقلی دي﴿اَمَّنْ﴾ مرکب دي دَ"ام"او"من"نه په"ام"کښې دوه(۲)اقوال
دی(۱)یوقول دادي(داقول غوره دي)چه"ام"منقطعه دي په معنی دَ"بل"سره او"بل"دَپاره دَاضراب دي
دَماقبل نه،ځکه چه ماقبل کښې استفهام تبکیتی تعریضاًذکرشونوپدې ایت کښې انتقال
اوشوتبکیت صریحی ته،نوپدې اعتبارسره استفهام به تقریری وی یعنی تاکیدبه وی دَدې خبرې
چه هغه ذات ډیرغوره دي کوم ذات چه زمکې اواسمانونه وغیره پیداکړیدی،نودآیت
مقصدداشوچه کله ماقبل ایت کښې اوئیلې شوچه﴿ءَآللّٰهُ خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ﴾ نوپه دیکښې تبکیت
دَخصم دې تعریضاًنواوس پدې ایت کښې اوئیلې شوچه﴿اَمَّنْ﴾بلکه هغه ذات غوره دي چه اسمانونه

اوزمکې ئې پیدا کړیدی نو دا تبکیت صراحتاً دې، نو دلته په استفهام کښې هغه لفظ او کلام مقدر دې کوم چه دَماقبل ایت په جواب کښې ثابت وو، چه هغه لفظ دَ خیر دې اودغه شان په مواضعو اربعو کښې هم ام منقطعه دې.

(۲) دویم قول دادې چه ام متصله دې، لکه څرنګه چه ماقبل امایشرکون. کښې ام متصله دې اوپدې سوال اوماقبل سوال کښې فرق دادې چه ماقبل سوال اجمالی وو، ځکه چه صرف اسم ذاتی دَالله ﷻ په استفهام کښې ذکرشوې وو، او دا سوال تفصیلی دې او په اسماء صفاتو سره دې، (۳) درې صفات پکښې ذکرشویدی (۱) خلق (۲) انزال المآء (۳) انبات الشجر، او ام متصله دَدوه (۲) څیزونو په مینځ کښې راځی، نو دلته یوامرمذکوراوبل مقدردې، نوتقدیردَعبارت داسې دې، الاصنام خیر امن خلق السموات والارض (خازن) اوجواب ئې محذوف دې چه بل الله خیر البته دومره خبره ده چه ماقبل سوال کښې تقدیم دَلفظ الله وو او دلته تقدیم دَاصنامو اوشو، نکته پکښې داده چه ماقبل سوال اجمالی وو تفصیل پکښې په صفاتو سره نه وو ذکر، نو هلته دَادب اودَتعظیم تقاضا وه چه لفظ دَ الله مقدم کړې شی او دلته په سوال کښې متعدد صفات ذکردی نو مقتضی الحال دادې چه په داسې مواضعو کښې شق اجمالی مقدم کړې شی او شق تفصیلی مؤخرکړې شی، دې دَپاره چه دَشق اجمالی نه فراغت حاصل کړې شی او شق تفصیلی ته مکمله توجه او کړې شی، او صفات په ذهن دَسامع کښې راسخ شی، نو کچرې دَالله ﷻ ذکرمقدم کړې شوې وې سره دَصفاتو نه او بیا شق اخرذکرشوې وې نو کامله توجه به نوه راغلې، لیکن اوله توجیه زیاته غوره ده ځکه چه مناسب دَمقام او دَاستعمال سره ده.

﴿فَأَنۢبَتۡنَا بِهِۦ حَدَآئِقَ﴾ پدې کښې التفات شویدې دَغائب نه متکلم ته، او پدې التفات کښې تنبیه ده پدې خبرې چه داتول مذکورامورمختص دی دَالله ﷻ سره یعنی الله ﷻ تخلیق دَاسمانونو او دَزمکې کړیدې، بیا دَاسمان دَطرف نه په زمکې باندې باران راوروی، او په هغې یو قسم اوبو سره اودَهغه یو قسم زمکې نه دَمختلف انواعو، مختلف رنګونو اومختلف خوندونو والامیوې پیدا کوی.

﴿مَّا كَانَ لَكُمۡ﴾ دا خطاب جنس مخاطب او جنس مخلوق ته دې که هغه دَپیغمبرهستی وی او یا اولیآء الله وی، هیڅ څوک دَدې طاقت نه لری چه دَزمکې نه، اونې، بوټی راززغون کړی ﴿أَءِلَٰهٞ مَّعَ ٱللَّهِ﴾ دا استفهام انکاری دې دَهردلیل نه ورستو دا سوال کړې شویدې چه ﴿أَءِلَٰهٞ مَّعَ ٱللَّهِ﴾ چه دَدې

اوریدلونه پس تاسوخپله سوچ اوفکراوکړئی چه دَاللهﷻ سره په تصرف اوواکداریٔ کښې بل شریک شته دې؟اوهرکله چه جواب ئې بالکل ظاهراوباهروو چه"لا"یعنی نیشته دې،نوددې وجې نه حذف کړې شو.

﴿بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَعْدِلُونَ﴾دَدوئ تبکیت نه ورستودا انتقال دې دَدوئ بدحالت طرف ته دَپاره دَزجر،اوغوره قول دادې چه"عدل"دلته په معنی دَاعراض اوانحراف سره دې اوصله چه"عن" دې محذوف دې ای یعدلون عن الحق یعنی دا داسې قوم دې چه ددومره واضحو دلائلو باوجود دَحق نه اعراض اوباطل ته میلان کوی اوبعض فرمائی چه"عدل"په معنی دَمساوات سره دې اوصله ورله"فی" محذوفه ده ای یساوون فیه غیره تعالی من آلهتهم،یعنی دا داسې قوم دې چه دَدومره واضحودلائلو باوجود بیاهم دَاللهﷻ سره په واکداریٔ کښې باطل الهه شریک جوړه وی.

﴿أَمَّن جَعَلَ الْأَرْضَ قَرَارًا﴾دادویم دلیل عقلی دې،پدیکښې څلور صفات ذکردی اودَټولو تعلق دَسفلیاتوسره دې(۱)زمکه دَسکون اودَقراروالاجوړول(۲)پدیکښې نهرونه پیداکول(۳)پدیکښې غرونه پیداکول(۴)دوه(۲)مختلف رنګ اوذائقې والاسمندرونو په مینځ کښې حاجز پیداکول

﴿قَرَارًا﴾مصدرنه مرادظرف یعني"مستقر"دې،یعنی قرارګاه. دَایت مطلب دادې چه اللهﷻ زمکه دَانسان اودَنورو حیواناتو دَپاره قرارګاه پیداکړیده،دکروی شکل باوجوددَانسان دَپاره قابل رهائش ده،دغه شان بعض حصې باندې اوبه دی اوبعض حصه ئې دَانسانانو اوحیواناتو دَاستوګنې دَپاره ده،اودغه اوچه حصه نه دومره سخته ده چه انسان ته تکلیف ورکړی اونه دومره نرمه ده چه پشان دَاوبو چه انسان ترینه فائده وانخلی.

﴿وَجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ﴾"رواسی"نه مرادلوئ لوئ غرونه دی،نودَزمکې اضطراب ختمولو دَپاره اللهﷻ پدیکښې لوئ لوئ غرونه پیداکړل،لکه په حدیث کښې دی چه اللهﷻ کله زمکه پیداکړه نودې به اضطراب کولو یعنی خوزیدله به ،نودَدې اضطراب ختمولو دَپاره اللهﷻ پدې باندې لوئ لوئ غرونه پیداکړل،اوماقبل کښې په﴿جَعَلَ الْأَرْضَ قَرَارًا﴾سره مرادمانع ذاتی لرې کول وو اوپدې یعنی﴿وَجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ﴾سره مرادمانع عرضی دَانتفاع نه لرې کول دی،نولهذا دا اعتراض نه واردیږی چه دَ﴿جَعَلَ الْأَرْضَ قَرَارًا﴾نه ورستوذکردَ﴿وَجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ﴾مستدرک دې.

﴿ وَجَعَلَ بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ ﴾مرادترینه خوږاوتریخ سمندرونه دی﴿بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾یعنی اکثرددوئ پدې قطعی دلائلودتوحیدکښ سوچ اوفکرنه کوی نوددې وجې نه دعقیدې دتوحیدنه ناخبره دی اوبعضې پکښ داسې دی چه ضداوتعصب دوجې نه توحیدنه منی،اویادادقبیلې تنزیل العالم بمنزلة الجاهل نه دې ځکه چه اکثرمشرکین به پدې باندې پوهیدلوچه خالق ددې امورو تولو الله ﷻ دې اواعتراف به ئې هم کولولکه سورة المؤمنون آیت نمبر(۸۴)نه تر(۸۹)پورې کښ دی،اوسورة العنکبوت ایت نمبر(۶۱)کښ سورة لقمان ایت نمبر(۲۵)کښ اوسورة الزخرف ایت نمبر(۹)کښ دی، کانهم یجهلون الله تعالی فلایعلمون مایجب له من الوحدانیة(قرطبی).

| |
|---|
| أَمَّنْ يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوءَ وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَاءَ |
| بلکه هغه ذات غوره دې چه قبولوی سوال دپریشان حاله چه کله ورته سوال اوکړی اولری کوی تکلیفونه اوګرځولی ئې تاسوخلیفه ګان |
| الْأَرْضِ ۗ أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ ۚ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴿٦٢﴾ أَمَّنْ يَهْدِيكُمْ |
| په زمکه کښ،آیاشته دې بل معبود دالله ﷻ سره،ډیرکم نصیحت قبلوئ تاسو .بلکه هغه ذات غوره دې چه لاره ښائی تاسو ته |
| فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَمَنْ يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ ۗ |
| په تیاروډبیابان کښ اوسمندرکښ اوهغه ذات چې رالیږی هواګانی زیرې ورکونکې مخکښ دباران خپل نه، |
| أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ ۚ تَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٦٣﴾ أَمَّنْ يَبْدَأُ الْخَلْقَ |
| آیاشته دې بل معبود دالله ﷻ سره،ډیرلوئ دې الله ﷻ دهغه نه دوئ ورسره شریکوی بلکه هغه ذات غوره دې چه اول ځل ئې پیداکړیدی خلق |
| ثُمَّ يُعِيدُهُ وَمَنْ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ ۗ أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ |
| بیابه ئې دوباره پیداکوی اوهغه ذات چه رزق درکوی تاسوته دآسمانه اوزمکې نه آیاشته دې بل معبود دالله ﷻ سره. |
| قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿٦٤﴾ |
| نه ورته اووایه (اې پیغمبره) راوړئ دلیل خپل په شرک کچرته یئ تاسورښتنی، |

﴿أَمَّن يُجِيبُ ٱلْمُضْطَرَّ﴾ دادريم(۳) دليل عقلي دې پديكښې درې(۳) صفتونه دالله ﷻ ذكرشويدي (۱) دعاقبولوونكې (حاجت روا) صرف الله ﷻ دې بل څوك حاجت روانيشته دې (۲) تكليف لرې كوونكې (مشكل كشا) صرف الله ﷻ دې بل څوك مشكل كشانيشته دې (۳) اولاد وركوونكې اوپه دښمن باندې غلبه وركوونكې صرف الله ﷻ دې. مضطر باب افتعال نه صيغه داسم مفعول ده، اصل ماده ئې ضرده، وئيلې كيږي هغه سخت مجبوراوپريشان حال ته چه دپريشانئ دخلاصيدلو طاقت نه لرى اوپه ﴿ٱلْمُضْطَرَّ﴾ كښې الف لام دجنس دپاره دى اوصدق دجنس په ضمن دفردما كښې هم متحقق كيږي، او الف لام دپاره داستغراق ندې چه بيادااعراض اوكړې شي چه ډير مضطر داسې شته دې چه دعاگانې نه قبليږي؟ اوبعض حضرات فرمائي چه الف لام دپاره داستغراق دى اوايجابت موقوف دې په مشئيت دالله ﷻ باندې، اوقرينه پرې دسورة الانعام ايت نمبر(۴۱) فيكشف ماتدعون اليه ان شآء الخ اودامسلك داهل السنة والجماعت دې چه قبوليت ددعاموقوفه په مصلحت دعبدباندې نده، بلكه په مشئيت دالله ﷻ باندې موقوفه ده. اومعتزله چه اصلح ماهوللعبد، په الله ﷻ باندې دوجوب قائله دى نوهغوئ ايجابت هم موقوف كوى په مصلحت دعبد باندې، يعنى هغوئ داوائى چه كومه دعاچه په هغې كښې مصلحت دعبدوى نوالله ﷻ ئې قبلولوى، اوكه مصلحت پكښې دعبدنووبيانه قبليږي، ليكن مسلك ددوئ باطل دې اوخلاف دې دنصوصونه، لكه دسورة الانعام ايت نمبر(۴۱) شووغيره اوبعض حضرات فرمائي چه ايجابت اگرچه موقوف دې په مشئيت دالله ﷻ باندې، خوبياهم ددې ايت نه دامعلوميږي چه كومه دعاپه كيفيت داضطرارسره وى نوتفضلاً الله ﷻ هغه دعاضرورقبلولوى، ليكن صورتونه دقبوليت مختلف دى، كله ايجابت اوقبوليت صورت داوى چه بعينه هغه څيزوركړې شى كوم چه دعاكوونكى غوختلې وى، كله دقبوليت صورت داوى چه هغه څيزخوورته ميلاؤنشى اوياهغه تكليف ورنه لرې نكړې شى چه دكوم څيزدپاره يادكوم تكليف دلرې كولودپاره ئې دعاكړې وى البته دهغې په بدلې كښې يوبل بهترڅيزاويايوبل لوئ آفت اوتكليف نه ورته نجات ميلاؤشي، اوكله دقبوليت صورت داوى چه دآخرت دپاره ذخيره كړې شى لكه په حديث كښې دى چه دقيامت په ورځ باندې به يوكس په خپل عملنامې كښې ډيرې نيكئ اوگورى نوعرض به اوكرى چه ياالله ﷻ ماخودومره نيكئ نه دى كړي، الله ﷻ به ورته اوفرمائي چه تاته يادندى چه دنياكښې تاځمانه فلانې څيزغوختلې وؤ ليكن تاته نه وومیلاؤشوې، فلانې څيزدې غوختلې وؤ او نه ووميلاؤشوې داده‌غې په بدله كښې دى.

نو دا انسان به تمنا او کړي چه کاش به دنيا کښې ځما يو سوال هم نوې قبول شوې او دَ ﴿إِذَا دَعَاهُ﴾ قيد دَپاره دَبيان الحال دې او احترازي ندې، يعنې دَدې مقصد دَپاره ذکرشويدې چه دَمجبورئ او دَ سختئ په وخت کښې يو مجبوره کس ته صرف الله ياد وي او هغه ته بلنه کوي.

**فائده**: دَدعا قبوليت اګرچه موقوف دی په مشيئت دَالله ﷻ باندې، داسې خو دعا دې نه غواړې چه "اللهم اغفرلي ان شئت" ځکه چه په حديث کښې ترينه منع راغليده.

﴿وَيَكْشِفُ ٱلسُّوٓءَ﴾ دا دَقبيلې دَعطف العام على الخاص نه دې، اجابت دَمضطر خاص دې او دا عام دې ځکه چه مکشوف عنه کله مضطروی او کله غير مضطروی ﴿وَيَجۡعَلُكُمۡ خُلَفَآءَ ٱلۡأَرۡضِ﴾ مراد پدې سره بقاء دَنسل ده، يعنې تاسو له اولاد درکوی او دَيو بل په ځائ موا باده وی او يا ترينه مراد خلافت، تسلط او غلبه ده، يعنې تاسو له دکفارو په زمکه باندې يا دَمخالف په زمکه باندې غلبه او تسلط درکوی ليکن اول احتمال زيات غوره دې.

**نکته**: پدې ايت کښې دانسان دَزندګئ دوه (۲) حالته ذکرشويدی، دَايت شروع دَحالت دَمضطرنه اوشو چه دا انتهائی کمزورې حالت دې، او اختتام ئې په حالت دَخلافت باندې اوشوه، چه داعالی حالت دې، پديکښې اشاره ده چه ځنې وخت کښې يو کس ډيردَتکليف او دَسختئ ژوندتيره وی، اچانک الله ﷻ پرې مهربانه شی او دده بدحالت په ښه حالت سره بدل کړی، او دا زمونږ په مشاهده کښې دی.

﴿أَمَّن يَهۡدِيكُمۡ﴾ دا خلورم دليل دې، پديکښې دوه (۲) صفتونه دَالله ﷻ ذکرشويدی (۱) هدايت او خلاصې ورکول دَتيارونه (۲) هوا ګانې او بارانونه رالېږل، هدايت نه مراد منزل مقصود ته راهنمائی کول دی، او دَ ﴿فِي ظُلُمَٰتِ ٱلۡبَرِّ﴾ نه مراد دَشپې په وخت کښې په خوشې صحراء کښې سفرکول دی، نو الله ﷻ دَشپې په وخت کښې دَمسافرودَراهنمائی دَپاره ستورې پيداکړيدی چه دَهغې په ذريعې سره مسافرخپل منزل مقصود ته رسيږی، او دَ ﴿وَٱلۡبَحۡرِ﴾ نه دَشپې په وخت کښې سمندرکښې سفرکول هم مرادکيدې شی، او دغه شان دَسمندرڅپې او طوفانونه هم مرادکيدې شی چه هغه په منزله دَظلماتو دی، او دَظلماتو اطلاق اګرچه حقيقةً په تيارو دَشپو باندې کيږی، ليکن مجازاً ظلمات دَجهل ترينه هم مرادکيدې شی نو ګويا چه پديکښې اشاره ده ديته چه لکه څرنګه ظاهری منزل

مقصودته دَرسیدلودَپاره الله ﷻ علامات اوذرائع پیداکړیدی،نودغه شان دَظلماتودَجهل نه دَخلاصیدلودَپاره هم الله ﷻ لوئ لوئ علامات پیداکړیدی.

﴿ أَمَّن يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ﴾داپنځم دلیل عقلی دې پدیکښ دری(۳)صفات دَالله ﷻ ذکرشویدی (۱)ایجاد اول الخلق(۲)اعاده خلق(۳)انتظام معاش،یعنی کوم ذات چه په اول ځل ئې پیدائش کړیدې،هغه ذات به دوباره راژوندی کول کوی اوهغه ذات ستاسودَپاره دَمعاش انتظام اوبندوبست کړیدې،نومرادپه﴿ثُمَّ يُعِيدُهُ﴾سره بعث بعدالموت دې،اوکچرې اشکال اوکړې شی چه دابه څرنګه دلیل عقلی علی سبیل الاعتراف من الخصم اوګرځی ځکه چه مشرکین خومعترف دَبعث بعدالموت نه ووبلکه منکروودَبعث بعدالموت نه؟نوجواب ترینه دادې چه دَدوئ انکارپه منزله دَعدم انکارنازل کړې شویدې،دَوجې دکمال وضوح دَاعادې نه،په براهینوقطعیوسره،نودوئی فرضاًمعترف وو،چه ګویادوئی دَپاره څه عذردَانکاردَپاره باقی ندې پاتې شوې.

﴿قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ ﴾داچیلنج دې منکرینواومشرکینوته،چه مونږپخپلې دعوې باندې واضح دلائل پیش کړل،چه دَهغې نه حقانیت دَتوحیداوصدق ددعوې ثابت شو،نوکچرې تاسوپخپلې دعوې کښ رښتونی یئ نوتاسوهم دلائل پیش کړئ.

**فائده نمبر(۱)**:داپنځه(۵)دلائل عقلیه ذکرشوپه ذکردَپنځلس(۱۵)صفاتوسره،خلاصه دَدې ټولوداده(۱)خالق الله ﷻ دې بل خالق نیشته دې(۲)باران راوروونکې الله ﷻ دې بل څوک باران وروونکې نیشته دې(۳)رازق الله ﷻ دې بل څوک رازق حقیقی نیشته دې(۴)زمکې لره قرارورکوونکې الله ﷻ دې بل څوک قرارورکوونکې نیشته دې(۵)نهرونوچلوونکې الله ﷻ دې بل څوک چلوونکې نیشته دې(۶)غرونوپیداکوونکې الله ﷻ دې بل څوک پیداکوونکې نیشته(۷)سمندرونوکښ تصرف کوونکې اودَدې په مینځ کښ جدائ راوستونکې الله ﷻ دې بل څوک تصرف کوونکې نیشته دې(۸)حاجت رواالله ﷻ دې بل څوک حاجت روانیشته دې(۹)مشکل کشاالله ﷻ دې بل څوک مشکل کشانیشته دې(۱۰)اولادورکوونکې الله ﷻ دې بل څوک اولادورکوونکې نیشته دې(۱۱)لارې ښودونکې الله ﷻ دې بل څوک حقیقةً لارې ښودونکې نیشته دې(۱۲)هواګانوچلوونکې الله ﷻ دې بل څوک هواګانوچلوونکې نیشته دې(۱۳)اول ځل پیداکوونکې الله ﷻ دې بل څوک مبدأنیشته دې(۱۴)اسباب دَرزق مهیاکوونکې یعنی مال

ورکوونکې الله ﷻ دې بل څوک مال وررکوونکې نيشته دې،نوددينه معلومه شوه چه هرڅه دَالله ﷻ په ارادې سره کيږي اودَالله ﷻ دَارادې نه بغيرهيڅ نشى کيدلې،اودامقصددکلمې يعنى دَلااله الاالله دې.

**فائده نمبر(۲)**:پدې پنځه دلائلوکښې په هردليل کښې دَاعتراف اغستلوورستوبطورزجرمختلف جملې مثلاً﴿بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَعْدِلُونَ﴾وغيره ذکرشويدى پدې جملوکښې دليل سره دمطابقت، اودکفارودَحالت اعتبارکړې شويدې،نوهرکله چه اول دليل مشتمل ووپه علويات،جويات اوسفلياتوباندې،چه دَزمکې،اسمان وغيره خالق الله ﷻ دې اوکفاروبه هم دَدې اعتراف کولوخوبياهم دَتوحيدنه منکروو ،نوځکه په اوليل کښې زجربه﴿قَوْمٌ يَعْدِلُونَ﴾سره اوشواوبياهرکله چه دويم دليل دَاول نه زيات واضح وواودوئ ته معلوم ووچه علم يقينى سره خوبياهم دوئ دَخپل علم دَمقتضى مطابق عمل نه کولو،نودَاول زجرنه ترقى اوکړې شوه اودوئ نازل کړې شوه په منزله دَهغه جهلاؤباندې چه په محسوساتوباندې هم جاهل وى،نوځکه اوئيلې شوچه﴿بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾اوهرکله چه دريم دليل مشتمل ووپه انعاماتوباندې، اودَ انعاماتوتقاضاداده چه منعم عليه دَمنعم انعامات ياداوساتى اودَهغې شکريه اداکړى اوکفاروبه دَالله ﷻ نعمتونه يادهم نه ساتلو،اونه به ئې دَالله ﷻ نعمتونوشکريه اداکوله،نودَدې وجې نه په دريم دليل کښې ترقى اوشوه اواوفرمائيلوچه﴿قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ﴾ ځکه چه احسان فراموش انسان دَجاهل نه بدتروى.اوبياهرکله چه هدايت په ظلماتوکښې اوارسال دَهواګانوپه منزله دَمتمماتوووددَماقبل دَپاره،اومشرکين دَدې اعتراف باوجود،محض دَضداوعناددَوجې نه،دَهدايت اوخلاصى وغيره نسبت به ئې خپلوباطل معبودانوته کولونوځکه دَځلورم(۴)دليل په آخرکښې ذکرشوچه﴿تَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾اوبياهرکله چه په آخيرکښې دَټولونعمتونواجمالى اعاده اوشوه ځکه چه ابداء الخلق سره اشاره وه ابتدائى نعمتونوته،اوپه﴿ثُمَّ يُعِيدُهُ﴾سره اشاره وه اخروى نعمتونوته اوپه ﴿وَمَن يَرْزُقُكُم﴾سره اشاره وه درميانى نعمتونوته،نوګوياچه پدې سره پوره اتمام حجت اوشو نوځکه په آخرکښې بطورچيلنج دَدليل مطالبه اوکړې شوه چه﴿هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ﴾.

قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ ؕ

ته اووایه (اې پیغمبره) نشته خبر هغه چاته چه په آسمانو نو اوزمکه کښ دي،د غیب سوا د الله نه

وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ ﴿۶۵﴾ بَلِ ادّٰرَكَ عِلْمُهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ ۫ بَلْ هُمْ

اوخبرندی کافران چه کله به پورته کولې شي دوئ (دقبرونونه) بلکه ختم دې علم ددوئ په باره دآخرت کښ،بلکه دوئ

فِيْ شَكٍّ مِّنْهَا ۫ بَلْ هُمْ مِّنْهَا عَمُوْنَ ﴿۶۶﴾

په شک کښ دی دقیامت نه،بلکه دوئ دقیامت نه ړانده دی

﴿قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ﴾ دابطورلف نشرغیرمرتب متعلق دې دَاولې دعوې سره اودَاول دوه (۲) واقعاتوثمره ذکرکیږی،چه علم غیب خاصه دَالله ﷻ ده،پدې سره الله ﷻ دَخپل ذات نه علاوه بل هیڅ څوک ندې متصف کړې،نه پیغمبر،نه فرشته اونه یوولی،البته ایثاراواطلاع علی الغیب ئې کړیده،خوهغه هم دَټولومغیباتونه ده بلکه دَبعضې مغیباتوکړیده.اومرادپه ﴿مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ﴾ سره ملائک دی اوپه ﴿وَالْاَرْضِ﴾ سره مرادانبیاء کرام،اولیاء الله وغیره دی اودَ ﴿الْغَيْبَ﴾ نه مرادغیب حقیقی دې اوغیب اضافی ندې،یعنی غیب په دوه (۲) قسمه دې (۱) حقیقی (۲) اضافی، غیب حقیقی دیته وئیلې کیږی چه نه معلومیږی په هیڅ یوسبب دَاسبابودَعلم سره،نه حواسوسره،نه په بداهة العقل اونه په وحی سره داقسم علم غیب خاصه دَالله ﷻ ده،پدې سره ئې هیڅ څوک ندی متصف کړی اوداقسم غیب مراددې په دې آیت کښ.

دویم قسم اضافی دې،اوداهغې ته وئیلې کیږی چه نه معلومیږی په حواسواوبداهة العقل سره بلکه طریقه دَمعلومیت دَهغې صرف وحی وی لکه حشر،نشر،جنت اوجهنم وغیره شو،اوداقسم علم الله ﷻ په خپل ذات پورې ندې خاص کړې،اودیته انباءاواطلاع علی الغیب هم وئیلې کیږی لکه په سورة آل عمران کښ دی چه "وماكان الله ليطلعكم على الغيب ولكن الله يجتبى من رسله من يشاء" اوعلامه قرطبی رحمه الله دَعلم غیب اواطلاع علی الغیب په مینځ کښ دَفرق دَپاره واقعه ذکرکړیده چه یوځلې حجاج بن یوسف نجومی رااوغوختلواوترلوئې،اوبیائې په خپل لاس کښ دَنجومی نه پټ کاڼړی رااوغستلواوشمارئې کړلو،اوبیائې دَنجومی نه تپوس اوکړوچه داڅومره کاڼړی دی؟نونجومی دخپل علم نجوم کښ حساب اوکړواودکاڼړوتعدادئې ورته صحیح

اوخودلو،حجاج بن یوسف په دویم ځلې کانړی راواغستلواوشمارئې نکړو.اودَنجومی نه ئې دَهغې تعدادتپوس اوکړونونجومی ورته تعدادخودلوکښ غلط شو.بیائې کوشش اوکړوبیاهم غلط شو،نوحجاج ترینه تپوس اوکړوچه داڅه وجه ده چه اول ځلې دې صحیح جواب راکړواوبیاپه دویم ځلې غلط شولې؟ نونجومی ورته اوئیلوچه اول ځلې چه تاکانړی راواغستلونوشماردې کړو،نوهغه دَحددَعلم الغیب نه اووتلو،نوماته په هغې باندې اطلاع میلاؤشوه،اوپه دویم ځلې تاشمارنکړو،نودَدې وجې نه هغه دَحددَغیب نه،نووتلی،نودَدې وجې نه ماته هم پته اونه لګیدله.اودافرق دې په مینځ د علم غیب اواطلاع علی الغیب کښ نوعلم الغیب جداڅیز دې اواطلاع علی الغیب جدادې.

﴿إِلَّا ٱللَّهُ﴾پدې استثناء کښ دوه(۲)احتماله دی اودواړه مورداعتراض دی.یواحتمال دادې چه استثناء منقطعه شی اودااحتمال غوره دې اواکثرومفسرینودیته ترجیح ورکړیده.اودااحتمال ظاهردې،ځکه چه الله ﷻ دَجنس دَ﴿مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾نه،ندې،اوداستثناء منقطعې په صورت کښ په مستثنی باندې رفع وئیل په لغت دَحجازیین کښ اګرچه جائزنه دی،لیکن په لغت دَبنوتمیم کښ جائزدی،بناء بربدلیت،نودَدې وجې نه دلته په﴿إِلَّا ٱللَّهُ﴾باندې رفع وئیلې شویده.لکه بنوتمیم وائی"مافی الدارا حدالاحمار"اوبعضې مفسرینونکته بیان کړیده چه پدې مقام کښ دَبنوتمیم مذهب مختاره کړې شوحالانکه اکثرقرآن مجیددَلغت دَحجازینوسره موافق دې،نودلته دَبنوتمیم دَمذهب غوره کولودَپاره نکته داده چه دَبنوتمیم دَلغت مطابق نفی دَعلم غیب دَغیرالله نه په طریقې ابلغې سره کیږی،لکه پدې قول دَشاعرکښ دی:

وبلدة لیس بهاانیس — الاالیعافیرُوالاالعیس

نوپدې شعر کښ مستثنی"یعافیر"او"عیس"دَجنس دَمستثنی منه یعنی انیس نه نه دی اومقصود پدې سره نفی دَانیس دې پدې شعرکښ په طریقې ابلغې سره،ځکه چه دَدې شعرمقصددادې چه کچرې یعافیراوعیس دَجنس دَ"انیس"نه وی،نوبیابه پدې بلده کښ انیس وی،لیکن داخبره خومتیقنه ده چه دادواړه یعنی یعافیراوعیس دَجنس دَانیس نه،ندی نوداخبره هم په تیقن سره ثابته شوه چه پدې بلده کښ انیس نیشته دې،نودغه شان پدې ایت کښ په لغت دَبنوتمیم سره نفی دَعلم غیب دَغیرالله نه،په طریقې ابلغې سره اوشولو،ځکه چه پدې صورت کښ دَایت مطلب دادې چه

کچري الله ﷻ دَجنس دَ ﴿مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ نه وی نو بیا به خو ﴿مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ عالم الغیب وی، لیکن دا خبره متیقنه ده چه الله ﷻ دَجنس ددوئ نه، ندي نو دا هم په تیقن سره ثابته شوه چه سوا دَ الله ﷻ نه، بل څوک عالم الغیب نیشته دي، نو خلاصه داده چه پدې صورت کښې دَعلم استحاله دَمخلوق نه راغله په صورت دَتعلیق کښې دَاستحالې دَمجانست دَ الله ﷻ سره، یعنی لکه څرنګه الله ﷻ دَمخلوق مجانس ندې اودَمخلوق دَجنس نه ندې، او الله ﷻ دَمخلوق مجانس کیدل محال دی، نو دغه شان دَمخلوق دَپاره علم الغیب ثابتول هم محال دی، او الله ﷻ متفرد دې په علم الغیب سره اوددې وجې نه په حدیث دَحضرت عائشه ﷺ کښې دی: من زعم ان محمداً یعلم مافی غدٍ فقداعظم الفریة علی الله (رواه مسلم).

اویااستثنامتصله ده او الله ﷻ په ﴿مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ کښې داخل دې لیکن مراد په ﴿مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ سره من تعلق علمه بها دې، یعنی دَ ﴿مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ نه عمومی معنی مراده یعنی هغه څوک چه علم دَهغه متعلق وی په اسمانونو او زمکې پورې، نو پدې معنی سره په الله ﷻ باندې اطلاق دَ ﴿مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ صحیح دې نو دَایت مطلب دادې چه هغه څوک چه هغوئ ته دَاسمانونو او دَزمکې په باره کښې علم شته دې نو په هغوئی کښې علم غیب صرف او صرف الله ﷻ له ثابت دې او بعض فرمائی چه الله په ﴿مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ په اعتبار دَفرض او تقدیر سره دې، او دَایت مطلب دادې چه کچري بالفرض والمحال الله ﷻ دَقبیلې دَ ﴿مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ نه او ګرځولې شی نو بیا به هم دَ الله ﷻ نه علاوه بل څوک عالم الغیب نه وی.

﴿وَمَا يَشۡعُرُونَ أَيَّانَ﴾ یعنی مخلوقاتو ته هغه ملائکه وی یا انبیاء کرام یا بل څوک هیڅ چاته دَدې په باره کښې علم نیشته دې چه دوباره ژوندی کیدل به کله کیږی، نو مخلوقات دَخپلو مکمل حالاتو په باره کښې علم نه لری نو علم غیب به ورته څرنګه ثابت شی.

﴿بَلِ ٱدَّٰرَكَ عِلۡمُهُمۡ فِي﴾ دا زجر دې مشرکینو ته په انکار دَقیامت باندې، او چونکه کفار و به دَعدم تعیین دَقیامت نه استدلال کولو په عدم وقوع دَاخرت باندې نو څکه الله ﷻ دَنفی دَتعیین نه ورستو په انکار دَقیامت باندې دوئ ته زجرور کوی او دَ ﴿ٱدَّٰرَكَ﴾ په اصل کښې تدارک و و باب تفاعل

فاکلمې په مقابله کښې دال راغې،نوتاپه دال سره بدل کړې شوه نودَدارک شو،اوبیادال ساکن شواوپه دریم دال کښې مدغم کړې شو،اوابتدا بالسکون مشکل وه نوشروع کښې همزه وصلی راوړلې شوه،نو"ادّاک"ترینه جوړشو،او"بل"یاپه خپلې معنی سره دې یعنی دَاضراب دَپاره دې، نوداکلام رااوګرځولې شومشرکین مکه ته،ځکه چه په عدم تعیین دَقیامت باندې دَاللهﷻ نه علاوه هرڅوک متصف دی،مګرمشرکینوبه دَعدم تعیین نه،استدلال په عدم وقوع کولونوځکه کلام دوئ طرف ته رااوګرځولې شو او﴿ٱدَّٰرَكَ﴾یاپه معنی دَ"تکامل" او"استحکم"سره دې،او"تکامل" او"استحکام"دَعلم دَدوئ په اعتباردَاسبابوسره دې چه تعلیمات دَانبیاء کراموغیره دی،یعنی اسباب دعلم په وقوع دَقیامت باندې حدکمال ته رسیدلیدی،چه دوئ دَهغې دوجې نه پدې نتیجې باندې رسیدلې شی چه قیامت خامخاواقع کیدونکې دې،اوهیڅ شک پکښې نیشته دې،خوبیاهم دوئ دَهغې په وقوع کښې شک کوی،بلکه ړانده دی اودلائلواوعلاماتودَوقوع قیامت ته نه ګوری،اوبعض فرمائی چه﴿فِي ٱلۡأٓخِرَةِ﴾متعلق دې دَ﴿ٱدَّٰرَكَ﴾سره،اودَایت مطلب دادې چه دَبعث بعدالموت"متعلق ددوئ علم به په اخرت کښې کامل شی،اوپه دنیاکښې دوئ په شک کښې بلکه ړانده دی خودآخرت عمل به دوئ ته فائده ورنکړی.

اویا استحکام اوتکامل دَعلم ددوئ په باره دآخرت کښې استهزاءً وئیلې شویدی لکه یوجاهل کس په باره کښې اوئیلې شی چه داخودیرلوئی عالم دې،دده علم انتهاء ته رسیدلې دې،اوچونکه دوئ به دَنبی پاکﷺ نه تپوسونه کول چه قیامت به کله واقعې کیږی نوتهکماًورته اوئیلې شوچه دَتعیین سوال کول مستلزم دی دې لره چه په نفس وقوع باندې علم وی،حالانکه دوئ خودَنفس وقوع نه منکردی،نودَتعین سوال ولې کوی؟

**فائده**:"بل"کچرته دَاضراب دَپاره شی پدې ایت کښې،نودادری(۳)اضرابات دکفارودَدرې(۳) قسمونو مطابق راوړې شویدی،چه ځنې هغه ووچه دَتعیین په باره کښې اګرچه علم نه لرلولیکن په نفس بعث بعدالموت باندې ئې علم وو،خوبیاهم دَضداوعنادپه بنیادبه ئې انکارکولو،اوځنې هغه کسانووچه هغوئ دَبعث بعدالموت په باره کښې شک کوونکی وو،اوځنی هغه ووچه هغوئ دامسئله بالکل نه منله،اودَجهل اوعمی په بنیادبه ئې ترینه انکارکولو،اوداهم ممکنه ده چه"بل" دَپاره دَترقی شی اوپدې سره اشاره شی دَترقی دَانکارته ددوئ په باره دآخرت کښې،نودَ﴿أَيَّانَ

يُبْعَثُونَ﴾ نه ترقي شوه﴿بَلِ ادّٰرَكَ﴾ته چه دا يومذموم حالت دي ځکه چه په عدم تعيين دَوقوع
قيامت کښې تول برابردی، که هغه انبياء کرام دی يا اولياء الله، ياعام مسلمانان دی اوياکافر، چاته هم
دَتعيين علم نيشته دې، البته دَمؤمنانو يقين او ايمان په نفس وقوع باندې شته دې او دکفارو يقين په
نفس وقوع باندې هم نيشته دې چه دا يو مذموم حالت دې، ځکه چه علم علی المعاد دَضرورياتو ددين
نه دې، نو ترک ئې مذموم دې دويم قسم حالت دَهغه کفارو دې چه هغوئ دَوقوع دَقيامت نه په شک
کښې وی او حالت دَشک بدتردې دَاول حالت نه، ځکه چه اول حالت کښې عدم دَعلم وو او عدم دَعلم
فی نفسه عام دې کله دَخلو دَذهن نه وی او کله دَشک دَوجې نه او دادويم حالت خاص دې چه صرف
شک دَوجې نه وی او خصوص په ذم کښې بدتروی دَعموم نه او دريم حالت چه ړوندوالې دې
دا بدترين دې ځکه چه دَشک په صورت کښې مطلوب ته رسيدل ممکن وی او دَ عمی په صورت کښې
مطلوب ته رسيدل ناممکن دی(تهانوی رحمه الله، بتغيير يسير).

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا وَّاٰبَآؤُنَآ اَىِٕنَّا لَمُخْرَجُوْنَ ﴿۶۷﴾ لَقَدْ وُعِدْنَا هٰذَا

او وائی کافران آیا چه کله مونږ خاورې شو او پلاران زمونږ هم نو آیا مونږ به بيا را او باسلې شو. يقيناً وعده کړې شوی وه دا مونږ سره

نَحْنُ وَاٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۶۸﴾ قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا

او پلارانو زمونږ سره ددې نه مخکښې، نه ده دا مګر دروغ دی دَمخکنو خلقو، ته ورته او وايه او ګرځئ په زمکه کښې پس او ګورئ

كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۶۹﴾ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُنْ فِيْ ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُوْنَ ﴿۷۰﴾

څنګه وو انجام دَمجرمانو، او ته مه غمژن کيږه دَدوئ په تکذيب او مه کيږه په تنګئ کښې دَهغې نه چه دوئ ستا خلاف منصوبې کوی

وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۷۱﴾ قُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ رَدِفَ لَكُمْ

او وائی دوئ کله به وی دا وعده دَقيامت کچرته یئ تاسو دَرشتنونه او وايه ته قريبه ده چه شی او رسيږی تاسو ته

بَعْضُ الَّذِيْ تَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿۷۲﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ

بعض هغه عذاب چه تاسوئ زرغواړئ، او بې شکه رب ستا خاوند دَفضل دې په خلقو خو ليکن زيات دَدوئ

لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۷۳﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ﴿۷۴﴾

شکر نه او باسی. او بې شکه رب ستا خه پوهيږی په هغه څه چه پټوی ئې سينې دَدوئ او هغه څه چه ښکاره کوی ئې

| |
|---|
| وَمَا مِنْ غَآئِبَةٍ فِي السَّمَآءِ وَالْأَرْضِ إِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ﴿۷۵﴾ |
| اونشته دي څه پټ څيزپه اسمان کښ اوزمکه کښ مګرپه کتاب ښکاره کښ ليکلي شويدي. |

﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوٓا﴾ دا شکوی اوزجردي په مشرکينوباندې په انکاردبعث بعدالموت سره، يعنی مشرکين وائی چه داخبره زمونږعقل نه منی چه مونږاوزمونږمشران چه دخاوروسره خاورې شودهغې باوجودبيابه هم مونږدوباره راژوندی کولې شو، اواستفهام په ﴿أَءِذَا كُنَّا تُرَٰبًا﴾ اوپه ﴿أَئِنَّا لَمُخْرَجُونَ﴾ کښ دپاره دانکاردې، اوتکراردااستفهام دپاره دتاکيددنفی دې.

﴿لَقَدْ وُعِدْنَا﴾ يعنی ددې پيغمبرﷺ نه مخکښ نوروانبياء وهم زمونږدمشرانوسره داوعدې کړې وې چه تاسوبه دوباره راژوندی کيږئ خولاتراوسه پورې څوک هم ژوندی نشونومعلومه شوه چه داهسې ددروغوقصې دی اوڅه حقيقت نيشته دې.

**فائده:** هرکله چه په سورة المؤمنون ايت نمبر(۸۲)کښ مقصوداصلی نفی دايجاددمبعوث عنه وونوځکه هلته تقديم د﴿نَحْنُ وَءَابَآؤُنَا﴾ اوشو، اودلته مقصودچونکه نفی دايجاددبعث دې نودې وجې نه تقديم دلته د﴿هَٰذَا﴾ اوشوچه پدې سره اشاره ده بعث ته.

﴿قُلْ سِيرُوا۟ فِى الْأَرْضِ﴾ دا تخويف دنيوی دې اوهرکله چه عموماًسبب داعراض دقيامت نه، حب جاه اوحب مال وی، نوددې وجې نه ددوئ دانکاربعث نه ورستوالله ﷻ دوئ ته تخويف دنيوی ورکوی، چه څومره اسباب ددنيادی که هغه عهده ده يامال دې ټول فناء کيدونکی څيزونه دی، تاسوپدې زمکه کښ اوګرځئ اواوګورئ چه الله ﷻ څومره منکرين هلاک کړيدی، اودانکاردوجې نه دهغوئ څه انجام اوشو؟ دهغوئ دحالاتونه تاسوعبرت واخلئ. ﴿وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ﴾ داپه دويم خلې تسلی نبی پاک ﷺ ته ذکرکيږی، چه کچرې دا کفارايمان نه راوړی، اوپه خپل کفرباندې مداومت کوی، اوتاپورې توقې کوی نوته مه پريشانه کيږه ستاپه ذمه صرف ددين تبليغ کول اودالله ﷻ احکامات اوپيغام رسول وو، هغه تااوکړو

﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْوَعْدُ﴾دا ويمه شكوى ده،منكرينو به بطوراستهزاء دنبي پاكﷺ نه تپوس كولو چه داوعده دعذاب اودقيامت به كله رځي،﴿قُلْ عَسَىٰٓ أَن يَكُونَ﴾دا جواب شكوى ده چه دكوم عذاب په باره كښ تاسو جلتي كوئ نودهغې څه حصه به تاسوته به ډيرزر.دراورسيږي نومرادپه﴿ بَعْضُ ٱلَّذِى﴾سره دنيوى عذاب دې لكه بدروغيره كښ شو.او﴿رَدِفَ لَكُم﴾كښ عندالبعض لام زائددې ځكه چه﴿رَدِفَ ﴾مفعول ته بالذات متعدى كيږي اوبعض فرمائي چه كله﴿رَدِفَ ﴾متضمن شي معنى دفعل "دنا"يا"قرب"لره نوبياتعديه ددې په لام سره كيږي.نودلته چونكه متضمن دې معنى د"دنا"او"قرب"لره نوځكه تعديه ئې په لام سره اوشوه، اوهم دامقصددهغه چادې چه وائي چه كله دماقبل اومابعدكښ اتصال وى نو هلته﴿رَدِفَ ﴾بالذات متعدى كيږي لكه په حديث دحضرت معاذﷺ كښ دي چه: كنت رديف رسول اللهﷺ اوكوم ځائ كښ چه نفس قربت وى او اتصال حقيقةً نوى نو هلته بيا په واسطې دلام سره متعدى كيږي،اوعسى،لعل وغيره الفاظ ترجيه په كلام دملوكواودبادشاهانوكښ په مقام دوعدوكښ دجزم اوصدق الامردپاره وى،اوپدې سره مقصودخپل عظمت ظاهرول وى چه لكه څرنګه زمونږتصريحى اوصراحت خبره واجب اونافذالعمل وى نودغه شان زمونږاشارات هم واجب العمل دى،اودتعميل دپاره زمونږاشاره هم كافى ده،نوګوياچه﴿قُلْ عَسَىٰٓ أَن يَكُونَ ﴾داللهﷻ دطرف نه دعذاب وعده وه دمشركينوسره اوداوعده په جنګ بدركښ صادقه شوه.

﴿وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو فَضْلٍ ﴾يعنى عذاب مؤخركيدل داللهﷻ دطرف نه په خلكوباندې اوخاص طورپه منكرينوباندې ډيرلوئ انعام دې ځكه چه دوئ ته دسوچ كولواوتوبې ويستلوموقعه ميلاؤشى اوكوم عذاب ته چه دوئ جلتي كوى نوكه داعذابونه دغه شان په جلتئ جلتئ سره راتللې نودوئ ته به هيڅ قسم موقعه نوې ميلاؤشوې.

﴿وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ ﴾داپه اخيركښ بطورلف،نشرمرتب په دواړه دعووباندې يو(۱)يو(۱)دليل عقلى ذكركيږي،نوداداولې دعوې سره متعلق دليل عقلى ذكركيږي،چه غيبدان صرف اللهﷻ دې،ځكه چه اللهﷻ ستاسودظاهرى اوباطنى ټولوحالاتوباندې واقف دې،ستاسودسينوپه رازونه باندى خبردې اوپه هغه څه هم خبردې كوم چه تاسوظاهره وئى،اوپه تقديم د"تكن صدورهم"كښ

اشاره ده دیته چه الله ﷻ ته علم په ظاهراوباطن يوقسم اوبرابردی.په ظاهری څیزونوباندې علم زيات اوپه باطنی باندې کم ندې.

﴿وَمَا مِنْ غَآئِبَةٍ﴾ تاء دپاره دمبالغې ده لکه علامة په معنی د کثيرالعلم سره او راوية په معنی دکثيرالرواية.سره دې،اوياتاء دپاره دنقل ده چه غائبة په اصل کښ صفت دې رانقل کړې شويدې اسميت ته،اونوم ګرځولې شويدې دهرهغه څیزدپاره چه مخفی اودنظرنه پټ وی،که هغه يوه خبره وی ياعمل وی اوياخصلت وی،اوپه﴿ فِي كِتَٰبٍ مُّبِينٍ﴾سره مرادلوح محفوظ اويادالله ﷻ علم ازلی دې،نودآيت مطلب داشوچه هرهغه څیزچه دمخلوقاتودنظرنه پټ اودمخلوق په نسبت غائب دی هغه څیزهم دالله ﷻ په علم ازلی کښ اويا په لوح محفوظ کښ وی،اوهرکله چه داخبره ثابته شوه چه دمخلوقاتوپه نسبت غائب څیزالله ﷻ ته حاضروی اودالله ﷻ دعلم نه بهرنه وی نومخلوقاتوته ځرګنداوظاهرڅیزپه طريق اولی سره دالله ﷻ دعلم نه بهرندې.

| |
|---|
| إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَقُصُّ عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَكْثَرَ الَّذِي هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿٧٦﴾ وَإِنَّهُ |
| بې شکه داقرآن بیانوی په بنی اسرائیلوزیاتې هغه خبرې چه دوئ په هغې کښ اختلاف کوی.بیشکه داقرآن |
| لَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴿٧٧﴾ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُم بِحُكْمِهِ ۚ |
| خامخاهدايت دې اورحمت دې لپاره دمؤمنانو،بې شکه رب ستافيصله به اوکړی ددوئ په مينځ کښ په حکم خپل سره، |
| وَهُوَ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ ﴿٧٨﴾ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۖ إِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ الْمُبِينِ ﴿٧٩﴾ |
| اوهغه غالب دې پوهه دې،پس توکل کوه په الله ﷻ بيشکه ته په حق ښکاره ئې. |

﴿إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ﴾داجمله معترضه ده مقصودپدې سره حقانيت اوصداقت دنبی پاک ﷺ ثابتول دی،خلاصه ئې داده چه داپيغمبر ﷺ ريښتونې اوداكتاب بالكل برحق دې ځکه چه پدې قرآن سره دډيروهغومسائلوحل اوشوکوموکښ چه دبنی اسرائيلواختلاف وو،لکه حضرت عيسى عليه السلام کښ ددوئ اختلاف وو،چابه ورته خدائ ونيلوچابه ورته ابن الله ونيلواوځوک به دتثليث قائله وو،اوبدبختويهوديانوبه حضرت مريم ﷺ اوحضرت عيسى عليه السلام ته به ئې هغه نسبت کولوچه دوئ دډواړه ورنه منزه وو،اودغه شان دې قرآن هغه ټول ډيرحقائق واضح کړل دکوموپه باره

کښې چه بنی اسرائیل په غلط فهمۍ کښې مبتلاوواوياي اصل واقعات پټ کړی اوبدل کړی وو،او "اکثر"دلته په معنی دکثیرسره دې،اودَ"کثیر"مقصددادې چه دَډیرومسائلووضاحت نې کړیدې اودَ "قلیل"یعنی دَلږوئې ندې کړې،بلکه دَایت مقصددادې چه قرآن مجید ټول ضروری مسائل بیان کړیدی،خودَاکثرومسائلوبیان صراحتاًدې اوبعضې پکښې داسې دی چه دَهغوئ بیان اوذکراشارةً دې.

﴿وَإِنَّهُۥ لَهُدًى ﴾ داهم ترغیب الی القرآن دې اوقرآن مجیدذریعه دَهدایت اوباعث دَرحمت اګرچه دَټولومخلوقاتودَپاره دې لیکن تخصیص دَمؤمنانودَې وجې نه دې چه دوئ ترینه نفع اغستلې ده.﴿إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِى﴾مرادپدې فیصلې فیصلې سره عملی فیصله ده ځکه چه شرعی اوعقلی فیصله اللهﷻ په دنیاکښې کړیده،او﴿بِحُكْمِهِۦ﴾سره مرادمحکوم دې نودَ آیت مطلب دادې چه قیامت په ورځ به اللهﷻ دَهغې فیصلې مطابق حکم اوعملی قضابه کوی کومه فیصله چه شرعی اوعلمی طورباندې قرآن کښې کړې شویده،نولهذادااعتراض نه واردیږی چه حکم اوقضاءمترادفین دی،لازم شوکمال اتحادپه مینځ دَمتعلِق اومتعلَق کښې حالانکه ددوئ په مینځ کښې من وجه مغایرت ضروری دی.اویومرادف مقیدکړې شوپه بل مرادف سره اوداسې تقیدخالی عن الفائدهٔ وی،ځکه چه ظاهر کښې دَدې ایت معنی داشوه چه"یحکم بحکمه"اویادَ﴿بِحُكْمِهِۦ﴾نه مرادحکمت بالغه دې اودَدې تائید په قرأت دَابوالمتوکل ابوعمران اوپه قرأت دَعاصم جحدری سره کیږی چه ددوئ په قرائت کښې﴿بِحِكَمِهِۦ ﴾یعنی په کسرې دَ"حاء"اوپه فتحې دَ"کاف"سره راغلیدی یعنی اللهﷻ فیصلې په حکمت بالغه باندې مشتملې دی اویاپه حکمت سره مرادعدل اوانصاف دې،یعنی دَاللهﷻ فیصلې په عدل اوانصاف باندې مبنی دی،دَعدل اوانصاف مطابق به اللهﷻ دَدوئ په مینځ کښې به فیصله اوکړی.

﴿وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْعَلِيمُ ﴾هرکله چه دَتنفیذدَقضاء دَپاره قوت اوعلم ضروری وی نودَدې وجې نه دلته دَاللهﷻ دَپاره دادوه(۲)مخصوص صفات ذکرکړې شو.﴿فَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ ﴾داهم تسلی ده نبی پاکﷺ ته چه دامشرکین ستاخبره نه منی،اوستاخلاف منصوبې جوړه وی،خوته مه پریشانه کیږه،اوپه اللهﷻ باندې توکل کوه ځکه چه ته په حق باندې ئې.﴿إِنَّكَ عَلَى ٱلْحَقِّ ٱلْمُبِينِ ﴾داعلت

اولی دي،دتسلئ اودتوکل دپاره چه په الله ﷻ توکل ځکه کوه چه ته په حق باندې ئې اوالله ﷻ دحق پرستوخلکومددګاردې.

| |
|---|
| إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ ﴿٨٠﴾ وَمَا أَنتَ بِهَادِي |
| بیشکه ته نشې اورولې مړوته اونشې اورولې کڼروته بلنه کله چه اوګرځی دوئ په شا.اونه ئې ته هدایت کونکې |
| الْعُمْيِ عَن ضَلَالَتِهِمْ ۖ إِن تُسْمِعُ إِلَّا مَن يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا فَهُم مُّسْلِمُونَ ﴿٨١﴾ |
| ړوندته دګمراهئ دهغوئ نه، ته نشې اورولې مګرهغه چاته چه ایمان راوړی په آیاتونوزمونږپس هغوئ مسلمان دی. |

﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ﴾داعلت ثانیه دې دتسلئ دپاره په ذکردډرې(۳)تشبیهاتوسره،امام رازی رحمه الله فرمائی چه داعلت دتسلئ دپاره ځکه دې چه الله ﷻ دنبی پاک ﷺ دزړه نه ددوئی دایمان راوړلوطمع اوامیدهم اویستلو،دانسان په زړه کښ چه ترکوم وخته پورې طمع وی نوکمال توکل دده دپاره ګران اومشکل وی،خوچه کله طمع اوامیدختم شی نوبیاتوکل کول هم اسان شی نوالله ﷻ پدې آیت کښ دمخصوص کفاروددایمان راوړلوطمع دنبی پاک ﷺ ختم کړه،چه ددې کفاروپه زړونوباندې مهرجباریت لګولې شویدې اوددوئی مثال دمړوپشان دې چه لکه څرنګه هغوئ ته په اورولواوپه اوریدلوکښ فائده نیشته دې نودغه شان دوئ ته هم قرآن اورولواووعظ ونصیحت کولوکښ فائده نیشته دې،اودغه شان ددوئ مثال دکڼروپشان دې اوبیاخاص طور باندې هغه کڼرچه مخ ئې هم بل طرف ته اړه ولې وی،اودغه شان ددوئ مثال پشان دړوندو دې،نوړوندچه کله ضدی اوعنادی وی نوهغه ته لاره خودل مشکل کاردې،نودغه شان داکفاردهغه ضدی اوعنادی ړوندپشان دی،ددوئ زړونه هم دحق دلارې نه رانده دی عناداً،نودوئ ته هم دحق دلارې هدایت کول ستادپاره ګران اومشکل کاردې.

﴿إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ﴾داتاکیددپاره دې،ځکه کوڼرکه مخامخ وی بیاهم نه اوری،اوبعض علماء فرمائی چه کوڼرچه کله مخامخ وی نوبیاپه خبرې باندې پوهیدلوامکان وی،ځکه چه دشونډوپه خوزولوسره یاپه اشارې سره پوهه شی لیکن چه کله مخ واړوی نوبیائې پوهه کول ډیرګران شی،﴿وَمَا أَنتَ بِهَادِي الْعُمْيِ﴾دادریمه تشبیه ده پدیکښ دمشرکینوتشبیه دړندوسره ورکړې شویده او﴿عَن ضَلَالَتِهِمْ﴾متعلق دې د"هادی"یعنی هدایت سره اوهدایت متضمن دې په معنی

دَصرف لره اوصرف عن الضلالة مستلزم دي، ایصال الی المطلوب لره نوځکه دلته دَنبی پاکﷺ نه نفی دَ"هادی" اوشوه﴿إِن تُسْمِعُ إِلَّا مَن﴾دَسماع نه مرادسماع قبول اونافع دي، یعنی په خپل وعظ اونصیحت سره فائده نه صرف مؤمنانو ته ورکولې شی ځکه چه هغوئ ستاخبره اوری.

**فائده نمبر(۱)**: دادرې(۳)قسمه تشبیهات دَمنکرینو دَدرې(۳)حالاتو په اعتبارسره دی چه څنې منکرین هغه قسم دی چه په ضداوعنادکښې انتهاء درجې ته رسیدلې وی اودَدې وجې نه دَهغوئ په زړونوباندې مهرجباریت ثبت کړې شوې وی، اوهغوئ ته هدایت میلاؤیدل محال اوناممکن وی، نودَهغوئ مثال پشان دَمړی دې ځکه چه مړی ته لاره ښودل یعنی ارشادالمیت محال دې، او(۲)دویم قسم هغه کفاردی چه دَاول قسم نه لږ کم درجې عنادیان دی، دَهغوئ مثال پشان دکوڼړدې چه آوازنه اوری اوپه خبره باندې نه پوهیږی خوارشادیعنی لاره خودل ورته ممکن دی، اگرچه ډیرمشکل دی ځکه کوڼرپه اشارې سره پوهه کولې شی اوپه اشارې سره پوهه کول گران کاردې (۳)دریم قسم هغه کفاردی چه دَهغوئ ضداوعناداوانکاردَدویم(۲)قسم نه هم کم دې، دَهغوئ مثال پشان دَړونددې اوړوندته لاره خودل اگرچه مشکل دی لیکن په نسبت دکوڼړته اسان دی، ځکه چه ړونداگرچه گوری نه، اونظرئې نه لگی، لیکن خبرې اوآوازاوری نواوریدلو په وجې سره یوطرف ته بل طرف ته اوړیدې شی اودَدې وجې نه مشهوره محاوره ده چه"المعاشرة مع الاعمی اسهل من المعاشرة مع الاصم".

**فائده نمبر(۲)**دَدې آیت نه بعض اهل علمو استدلال کړې دې په نفی دَسماع موتی باندې"سماع موتی"یعنی مړی اَوری اوکه نه اوری دایواختلافی مسئله ده اودااختلاف په قرن اولی یعنی دَصحابه کرامو ﷺ په دورکښې هم وواوترنن ورځې پورې دې، ددې مسئلې دَمختصروضاحت نه مخکښې بطورتمهیددَیوڅوخبرو، پیژندل ډیرضروری دی.

(۱)سماع موتی مسئله دَصحابه کرامو ﷺ په دورکښې هم اختلافی وه حضرت ابن عمر ﷺ اوداسې نورکبارصحابه کرام ﷺ دَثبوت قائله وو، حضرت عائشه ﷺ دَعدم ثبوت قائله وه، نولهذادَثبوت اودَعدم ثبوت دَوجې نه یوفریق ته دَمسلک اهل السنة والجماعت نه دَخارج کیدلونسبت کول غیرمناسب دی اوهسې هم دااختلاف څه دَاصولو نه، نه دې، محض فروعی اختلاف دې نولهذا دادومره زیات معرکة الارا جوړول هم ندی پکارلکه څرنگه چه جوړه کړې شویدې.

(۲) مسئله سماع په يوځوصورتونوکښ اتفاقي ده:(۱) اول صورت اتفاقي سماع دَانبياء كرامودې چه قول اهل السنة والجماعت دَدې دَثبوت قائله دى،ځكه چه حديث كښ دى چه دَنبى پاكﷺ قبرته نزدې ځوك صلوة اوسلام وائى نونبى پاكﷺ ئې بالذات اورى اوچه دَلرى نه ځوك صلوة اوسلام وائى نودَملائكوپه ذريعې سره ئې اللهﷻ نبىﷺ ته رسوى. (۲) دويم صورت اتفاقي دَعام اهل قبورسماع ده دَلرې ځائې نه نواهل السنة والجماعت دَدې په عدم سماع باندې متفق دى چه عام اهل قبوردَلرى نه،نه اورى،ددينه علاوه دوه(۲) صورتونه اختلافي دى يو(۱) صورت مواضع منصوصيه دى چه اهل قليب بدر،صورت تسليم على اهل القبور،صورت قرع النعال وغيره دى چه پديكښ دَاكثراهل السنة والجماعت مسلك دَثبوت سماع دې،مگرشرذمه قليله پدې مواضعو كښ تاويل كوى،ليكن تاويل خلاف اصل سره سره دكثيراهل السنة والجماعة په مقابلې كښ دَ"قليل"افرادواختلاف خاص اعتبارهم نه لرى.

زيات متنازع فيه صورت دادې چه عام اهل قبوراورى اوكه نه اورى؟ نوپديكښ اختلاف دې بعض حضرات دَعدم سماع قائله دى او اكثراهل علم دَثبوت سماع قائله دى،كوم حضرات چه دَعدم سماع قائله دى دَهغوئ استدلال دَقرآن مجيددَدرې(۳)اياتونونه دې يو(۱) دامذكورايت چه پديكښ اللهﷻ مروته اورول نفى كړيدى دويم(۲) دَسورة الروم ايت نمبر(۵۲)دې،چه په هغې كښ هم داقسم مضمون ذكردې،اودريم(۳) دَسورة فاطرايت نمبر(۲۲)دې چه"انّ الله يسمع من يّشاء ومآانت بمسمع من في القبور"چه پديكښ هم دَاهل قبورنه سماع نفى كړې شويده،دَدې درې(۳)اياتونونه،علاوه دَدې حضراتو استدلال په اقوالودَفقهآؤاوځنى فقهى عباراتوسره هم دې،مثلاعلامه ابن الهمام په فتح القديرج۲ ص۶۹ كتاب الجنائزپه تلقين الميت كښ عدم سماع نسبت اكثرمشائخودَاحنافوته كړيدې،اودغه شان دَهغه خپل ذاتى رجحان هم عدم سماع ته دې،علامه شامى په ج۳ ص۱۴۳ كتاب الايمان كښ هم دَعدم سماع مسئله ليكلې ده اوددې مسلك نسبت حضرت عائشهؓ اوحضرت قتادهؓ ته هم شويدې،اودغه شان دَحضرت شيخ المشايخ مولاناگنگوهىؒ دكلام نه هم عدم سماع مسلك راجح معلوميږى،اوكوم حضرات چه دَثبوت سماع قائله دى دَهغوئ استدلال په متعددواحاديثوسره دې(۱) حضرت انسؓ نه مروى دى فرمائى چه نبى پاكﷺ ارشاداوفرمائيلوچه:العبداذاوضع في قبره وتولى وذهب اصحابه حتّى انه ليسمع قرع نعالهم اتاه ملكان فاقعداه فيقولان له(بخارى)يعنى چه كله يوبنده په قبركښ كيخودلې شى اودده ملگرى دَده نه روان

شي نودامړي دَهغوئ دَپيزاراوازاورى نوده ته دوه(۲)ملائک راشي اودې کينه وى اوتپوسونه ترينه شروع کړى،اوداحديث مستدرک،حاکم دَحضرت ابوهريرهؓ نه په داسې الفاظوسره نقل کړې دې چه:والذى نفسى بيده انه ليسمع خفق نعالهم حين يولون عنه،اوپه څنې کتب دَاحاديثوکښ دامضمون داسې منقول دې:انّ الميت يسمع حس النعال اذاولواعنه الناس مدبرين،حضرت گنگوهىؒ دَدې حديث په تشريح کښ داوئيلى دى چه:ليسمع:صيغه دَمضارع مجهولې ده او:قرع نعالهم:ورله نائب فاعل دې اودَحديث مقصددادې چه کله خلک مړې دفن کړى اوواپس ترينه روان شى نوصرف دومره فاصلې پورې دَقبرنه تللى وى چه دَپيزاراواز ئې اوريدلې شى نودوه(۲)ملائک مړى ته راشي،نوگوياچه:ليسمع قرع نعالهم:کنايه ده دَسرعت اتيان دَملائکونه،نولهذادَدې تعلق دَسماع موتى سره نيشته دې،ليکن دَحضرت گنگوهىؒ داتشريح محض يوه توجيه اودَيوصورت احتمالى بيان دې اودَهغه ترجيح نده،اودَدې باوجوددااحتمال دَظاهرنه مخالف هم دې.ځکه چه دَحضرت ابوهريرةؓ په روايت کښ دى چه:ليسمع خفق نعالهم حين يولون عنه:اوداقول دَامام بخارىؒ،حافظ ابن حجرؒ،علامه عينى اوملاعلى قارى هم دى(۲)دويم استدلال دَجمهورودَحضرت ابن عمرؓ،ابن مسعودؓ وغيرهماروايت سره دې چه نقل کړيدې امام بخارى،مسلم وغيره چه کله په غزوه بدرکښ اويا(۷۰)ترينه مشرکين مردارشونوپه هغوئ کښ څلورويشت(۲۴)سرداران قريش مکه نبى پاکﷺ دَبدرپه کوهى کښ اوغورځولوپه دريمه ورځ نبى پاکﷺ دکوهى په غاړه اودريدلواوهغه مړوته مخاطب شواوورته ئې اوفرمائيلوچه:اليس قدوجدتم ماوعدربکم حقا،اناقدوجدناماوعدربنا حقا:يعنى مونږسره چه زمونږرب دَامداداونصرت وعده کړې وه هغه خورېښتونى اوصحيح اومونده آياتاسوهم دَخپل رب وعده دَعذاب صحيح اومونده اوکه نه؟نوحضرت عمرؓ پدې عمل دَنبى پاکﷺ باندې سوال اوکړوچه يارسول الله! دابې روحه جسمونه به څرنگه واورى اودوئ سره ته څرنگه خبرې کوې،نونبى پاکﷺ ورته اوفرمائيلوچه:والذى نفسُ محمدبيده ماانتم باسمع لمااقول منهم:يعنى دَاللهﷻ په ذات باندې قسم! چه تاسودې خبرولره دَهغوئ نه زيات نه يئ اوريدونکى يعنى څرنگه چه تاسواورئى نوهمدغه شان هغوئ هم اورى،اوپه يوروايت دَمسلم کښ دى چه:لکنهم لايقدرون ان يجيبوا:چه اورى خوليکن جواب نشى ورکولې،پدې حديث باندې هم دَقائلين عدم سماع دَطرف نه کلام کړې شويدې،په مختلف وجوهاتوسره(۱)حضرت عائشهؓ نه انکارمروى دې،چه کله هغې ته دَدې حديث په باره کښ پته اولگيده نوهغې اوفرمائيلوچه:کيف يقول رسول الله ذلک والله تعالى يقول ماانت بمسمع من فى

القبور،انک لاتسمع الموتی.لیکن جمهورعلماء فرمائی چه دَحضرت عایشهؓ علمیت په خپل ځائ مسلم دې لیکن پدې باب کښ دَحضرت ابن عمرؓ روایت معتبردې اوجمهوروقبول کړیدې اودحضرت عائشهؓ انکارئې ندې قبول کړې(۱)یودَدې وجې نه چه حضرت عائشهؓ پدې موقعه باندې حاضره نوه اوکوم صحابه کرام چه حاضروو هغه زیات احفظ وودَقول نبی پاکﷺ لره.اودیته ترجیح ورکړیده حضرت شیخ الحدیث مولانازکریاصاحبؒ په لامع الدراری کښ هغه فرمائی:وقال السهیلی عائشةؓ لم تحضر قول النبیﷺ وغیرهاممن حضراحفظ للفظ النبیﷺ(لامع ج۲ ص۱۳۴).

اودغه شان ابن تیمیهؒ په خپل کتاب الانتصارکښ هم داسې وئیلی دی چه دَده قول صاحب دَ المنحة الوهبیة نقل کړیدې چه فرمائی: وانکارعائشةؓ سماع اهل القلیب الکفارمعذورة فیه لعدم بلوغهاالنص وغیرها لایکون معذورامثلهالان هذه المسئلة صارت معلومة من الدین بالضرورة(المنحة الوهبیة).

(۲)بل دَدې وجې نه چه ابن عمرؓ پدې مسئلې کښ متفردهم ندې بلکه دَحضرت ابوطلحهؓ،حضرت ابن مسعودؓ،حضرت انسؓ وغیرهم نه هم منقول اوداروایت ترینه مروی دې،اودریم(۳)وجه داده چه دَحضرت عائشهؓ دَعدم سماع نه رجوع هم منقوله ده څکه چه ابن اسحاق په کتاب المغازی کښ دحضرت عائشهؓ نه دغه قسم روایت نقل کړیدې،اوامام احمدؒ دَهغې روایت تحسین کړیدې،نوداواضح دلیل دې دَدې چه حضرت عائشهؓ دَخپل مسلک عدم سماع نه رجوع کړې وه،دَحضرت عائشهؓ دَرجوع یوبل دلیل داهم دې چه کله حضرت عمرؓ دَحضرت عمرؓ دَحضرت عائشهؓ په حجره کښ دَنبی پاکﷺ په خواکښ دفن کړې شونوحضرت عائشهؓ به چه کله بیازیارت مبارک ته راتلله نوحجاب یعنی پرده به ئې کوله،اودابه ئې فرمائیلوچه ددینه مخکښ به ماڅکه پرده نه کوله چه یوځماخاونداوبل ځماپلارووااواوس دَحضرت عمرؓ دَحیادَوجې نه پرده کووم اودغه شان حضرت عائشهؓ دَخپل رورحضرت عبدالرحمن بن ابی بکرالصدیقؓ قبرته تلل اوهغه ته خطاب کول هم دلیل دې پدې چه حضرت عائشهؓ دَعدم سماع مسلک نه رجوع کړې وه،اوهرچه دې داخبره چه دَحضرت عائشهؓ نه دَسماع تفسیرپه علم سره منقول دې،نوداهم دَدې مذکوروجوهاتودَوجې نه جمهورونډې قبول کړې،اودَدې باوجودحضرت شیخ الحدیث فرمائی چه:وقال(السهیلی)واذاجازان یکونوافی تلک الحال عالمین جازان یکونواسامعین امابأذان رؤسهم کماهوقول الجمهوراوبأذان الروح علی رای من یوجه السوال الی

الروح من غيررجوع الى الجسد(لامع)نودَدې عبارت نه يوه(۱)داخبره معلومه شوه چه اهل قبورپه حالت دَاماتت كښې چه كله عالمين وى نوپدغه حالت كښې سامعين كيدل څه مستبعدندى دويمه(۲)ترينه داخبره معلومه شوه چه اهل قبورپه حسي اوجسماني غوګونوسره اوريدل.دامذهب دَجمهورو علماء دې.

امام بخاري رحمه الله داحديث نقل كړيدې اوبيائې ورسره دَحضرت قتادة رحمه الله قول ذكركړيدې فرمائي چه:احياهم الله تعالى يعني. اهل الطوى حتى اسمعهم قوله ﷺ توبيخاوتصغيراً ونقمةً وحسرةً وندماً(بخاري)يعني الله تعالى صرف اهل قليب بدرژوندى كړل دې دَپاره چه دَنبي پاك ﷺ خبرې ورته واوروى چه دَدوئ حسرت ،افسوس،ذلت اورسوائي نوره هم زياته شي،نودَحضرت قتادة رحمه الله دكلام مقصددادې چه مقتولين بدرته خطاب كول اګرچه هغوئ دَنبي پاك ﷺ كلام اوريدلوخوبياهم پدې سره استدلال په عموم دَثبوت سماع موتى كول جائزندى ځكه چه داصرف دَنبي پاك ﷺ خصوصيت وواودَهغه دَپاره الله تعالى مقتولين بدرژوندى كړى وو.ليكن جمهورودَحضرت قتادة رحمه الله توجيه ردكړيده(۱)يوخودَدې وجې نه چه دَحضرت قتادة رحمه الله قول په هرځائ كښې حجت ندې ځكه چه په هغه باندې دَقدرى تهمت دې(۲)بل دَدې وجې نه،چه په خصوصيت باندې څه دليل هم نيشته دې،ظاهر دَالفاظودَحديث نه عموم ترشح كيږى.

(۳)دريم دليل دَجمهوروحديث دَسلام دې په اهل قبورباندې چه نقل كړيدې امام مسلم په خپل صحيح كښې په كتاب الجنائز باب مايقال عنددخول القبوروالدعاء لاهلها كښې دَمتعددصحابه كرامو رضي الله عنهم نه،ابوداؤددَحضرت ابوهريره نه اوبيهقى اوامام احمدهم دَمتعددوصحابه كرامونه نقل كړيدې،فرمائي:ان رسول الله ﷺ اتى المقبرة فقال السلام عليكم دارقوم مؤمنين واناانشاءالله بكم لاحقون،دَدې حديث په تشريح كښې علامه عثماني رحمه الله په فتح الملهم كښې داسې فرمائي چه:اشارة الى انهم يعرفون الزائرويدركون كلامه وسلامه،يعني سلام په اهل قبورباندې پديكښې اشاره ده چه مړى زيارت كوونكې پيژني اودَهغه په سلام اوكلام باندې پوهيږى.اودې وجې نه حافظ ابن قيم رحمه الله په كتاب الروح كښې فرمائي:هذاخطاب لمن يسمع ويعقل ولولاذلك لكان هذا الخطاب بمنزلة خطاب المعدوم والجماد،والسلف مجمعون على هذا وقدتوارت الاخبار عنهم بان الميت يعرف زيارة الحى له ويستبشربه،يعني كچرې مړى اوريدل نشوكولې نوبياپه السلام عليكم سره دوئ ته خطاب كول به صحيح نووځكه چه داخطاب په منزله دَمعدوم اوجمادته دَخطاب كولوشي اوحالانكه تولواسلافوپدې اجماع ده اودغه شان په توارث سره دَدوئ نه منقول دى چه مړې خپل زيارت

کوونکې پېژنی اوهغه ته خوشحالیږی،اوهمدغه شان حافظ ابن کثیر رحمه الله هم وئیلی دی اوددې وجې نه حافظ ابن حجر رحمه الله وغیره فرمائی چه اهل قبوروته پدې الفاظو:السلام علیکم،سره سلام کول مسنون دی اوابن کثیر رحمه الله متعدد احادیث دَسماع موتی په ثبوت کښې ذکرکړیدی اوپه هغې کښې یو داحدیث هم نقل کړیدې،اوبیاپه اخیرکښې فرمائی:وقدشرع السلام علی الموتی والسلام علی من لم یشعرولایعلم بالمسلّم محال،یعنی مړوباندې سلام اچول مشروع«مسنون»دی اوپه داسې څیزباندې سلام کول چه نه هغه ته دَسلام کوونکی شعوروی اونه علم نودامحال دې«اوشریعت دَمحال کارحکم نه کوی».

«۴»څلورم استدلال دَجمهورپه هغه روایت سره دې کوم چه ذکرکړیدې امام بیهقی اوامام حاکم چه کله نبی پاک ﷺ دَاحدنه واپس شونودَبعضې شهدآءوپه قبرونوباندې اودریدلواوبیائې صحابه کرامو رضی الله عنهم ته اوفرمائیلوچه تاسودوئ ته سلام اوکړئ:والذی نفسی بیده لایسلّم علیهم احدٌ الّاردّواعلیه الی یوم القیمة،یعنی ځمادې دَالله ﷻ په ذات قسم وی چه څوک هم په دوئ باندې سلام اچوی دوئ دَهغوئ دَسلام جواب ورکوی ترقیامت ورځې پورې،اوپدې حدیث کښې"الی یوم القیمة"تصریح پدې دلیل دې چه مړی باندې چه کله هم عندالقبرسلام واچولی شی اوڅوک هم وی نوهغه اوری اوجواب ورکوی اوتخصیص ئې په یوې زمانې اوپه یوفردپورې ندې،اودَدې حدیث تصحیح امام حاکم رحمه الله کړیده،اوامام حاکم رحمه الله اګرچه متساهل دې لیکن دَهغه تصحیح مطلقاًمردوده نده بلکه دَهغه په باره کښې قول فیصل علامه سیوطی رحمه الله تدریب الراوی کښې کړیدې چه دَامام حاکم رحمه الله په مستدرک کښې تقریباًنیم احادیث دَصحیحین دَشرائطوموافق دی اوتقریباًدوه«۲۰۰»سوه احادیث داسې دی چه هغه اګرچه علی شرط الصحیحین ندی لیکن رجال ئې معتبراوصحیح دی،البته څنې احادیث ضعیف اوڅنې منکردې،نوبهرحال دَامام حاکم رحمه الله تصحیح مطلقاًردکول مناسب ندی،اوبیاخاص طورباندې دَهغه حدیث چه تائیدئې په نورو صحیحواحادیثوسره کیږی.

«۴»دَجمهورواستدلال په واقعې دَام محجن رضی الله عنها سره هم دې،ام محجن رضی الله عنها یوه زنانه چه دَمسجدنبوی خدمت به ئې کولو،وفات شوه صحابه کرامو رضی الله عنهم دَهغې جنازه تدفین وغیره اوکړو اونبی پاک ﷺ ته پته اونه لګیده،نبی کریم ﷺ دَهغې په قبرباندې تیریدل اوشونوتپوس ئې اوکړو چه دادَچاقبردې نوصحابه کرامو رضی الله عنهم ورته اوفرمائیلوچه دَام محجن رضی الله عنها قبردې،نبی پاک ﷺ ورته

اوفرمائیلو چه هغه ام محجن چه دَمسجد نبوی خدمت ئې کولو ؟صحابه‌ؓ عرض اوکړو چه هاؤنبی پاکﷺ دَصحابه کرامو‌ؓ سره صف جوړکړواوپه هغې باندې جنازه یادَهغې دَپاره ئې اجتماعی دعااوکړه،بیانبیﷺ هغې ته اوفرمائیلو "ایّ العملِ وجدتِ افضل؟" چه تاپه خپلو عملونوکښې افضل اوپه ټولوکښې غوره عمل کوم عمل اوموندلو؟ صحابه کرامو‌ؓ عرض وکړوچه یارسول الله! اتسمع؟ چه دااوری؟ نونبی پاکﷺ اوفرمائیلو :ماانتم باسمع منها،یعنی تاسودَدینه زیات نه اورئی یعنی لکه څرنګه چه تاسواورئی هم دغه شان داهم اوری.

ددینه علاوه نورهم ډیراحادیث دی چه جمهوروورسره استدلال کړیدې حضرت شاه انورشاه کشمیری‌رحمه الله په فیض الباری کښې فرمائی:اقولُ والاحادیث فی سمع الاموات قدبلغت مبلغ التواتر(فیض الباری ج۲ ص ۴۲۷)یعنی سماع الموتی دَثبوت په باره کښې احادیث حدتواترته رسیدلی دی حضرت شاه صاحب په العرف الشذی کښې فرمائی چه:وان ذخیرة الحدیث تدل علی سمع الموتی،اودَدې وجه نه دامسلک اکثرصحابه کرامو‌ؓ اواسلافواختیارکړیدې،حضرت عمر‌ؓ، ابن عمر‌ؓ،ابوطلحه‌ؓ،ابن مسعود‌ؓ،حضرت انس‌ؓ دامسلک اختیارکړیدې،امام مسلم رحمه الله دحضرت عمروبن العاص‌ؓ قول اووصیت نقل کړیدې چه هغه خپلوورثاؤاوملګروته کړیدې،فرمائلی چه:فاذادفنتمونی فسنّواعلیّ التراب،سنّا،ثم اقیمواحول قبری قدرماتنحرجزورویقسم لحمها حتّی استأنس بکم وانظر ماذاارجع به رسل ربّی(مسلم)یعنی چه کله تاسومادفن کړئ نوپه ماباندې خاورې واړوئ اوبیاڅمادَقبرنه ګیرچاپیره دومره وخت پورې اودرېږئ څومره وخت کښې چه اوښ حلال کړې شی اوغوښه ئې تقسیم کړې شی،دې دَپاره چه ستاسوپه وجې سره څه مانوس شم اوسوچ اوکړې شم چه دَخپل رب ملائکوته څه جواب ورکړم،ددینه معلومه شوه چه دَعمروبن العاص‌ؓ مسلک هم داووچه اهل قبوراحساس اوشعورلری،اوددې وجې نه علامه قرطبی‌رحمه الله سماع ته واضح وئیلی دی اوابن جریرطبری‌رحمه الله وغیره حضراتودَاثبات سماع دَپاره ډیردلائل ذکرکړیدی،حافظ ابن کثیر‌رحمه الله فرمائی چه:والسلف مجمعون علی هذا(ابن کثیرج۳ ص۴۳۸)یعنی دَاسلافوپه ثبوت دَسماع باندې اجماع راغلیده،اودغه شان دَامام بخاری‌رحمه الله دَصنیع هم معلومیږی چه سماع الموتی ثابت دی،امام بخاری‌رحمه الله باب منعقدکړیدې"باب المیت یسمع خفق النعال"دَدې باب نه دَامام بخاری‌رحمه الله لکه څرنګه جواز دَشی مع النعال دې په مقبره کښې نودغه شان ورسره ورسره مسئله دَسماع موتی ته هم اشاره ده اوبیائې حدیث هم ذکرکړیدې چه دلالت کوی په

ثبوت دَسماع الموتی باندې، دغه شان په کتاب الجنائزکښ یوبل باب منعقد کړیدې، باب قول المیت وهوعلی الجنازة ·قدمونی· اودَحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه نه مروی حدیث ذکرکړیدې چه هغه فرمائی: کان النبی ﷺ یقول اذاوضعت الجنازة فاحتملهاالرجال علی اعناقهم فان کانت صالحة قالت قدمونی الخ، قسطلانی رحمه الله دَدې په تشریح کښ لیکلی دی:قالت بلسان القال بحروف واصوات یخلقهاالله فیها (قسطلانی ج۲ ص۴۳۱)اوحضرت شاه صاحب رحمه الله په فیض الباری کښ دَدې ترجمة الباب تحت یوتفصیلی اوجامع بحث کړیدې اوثبوت دَسماع ته ئې ترجیح ورکړیده، اودیته ئې دَحضراتو احنافو اصل مذهب وئیلی دی، باقی داایت مذکوره نودینه جمهورمختلف جوابونه کړیدی، منجمله دَهغې نه دادی(۱)دلته نفی دا سماع ده اومتنازع فیه سماع ده اونفی دَاسماع نده مستلزمه نفی دَسماع لره، فقیل بالفرق بین السماع والاسماع والنفی هوالثانی دون الاول والمطلوب هوالاول دون الثانی(فیض الباری) نودَدې جواب خلاصه اوتوضیح داده چه یوعالم مشاهداودادنیاده اوبل عالم برزخ دې،نوپه دې مشاهدعالم اودنیاکښ سماع دَالله جَلَّ جَلاَلُهٗ دَعادت موافق اوماتحت الاسباب ده، چه دکوم انسان الات اوجوارح سماع صحیح وی نودَالله جَلَّ جَلاَلُهٗ عادت پدې جاری دې چه داانسان خبرې اوری، بل کس ورته په خپل اختیارسره خبرې اورولې شی، اوعالم برزخ چونکه دَعالم مشاهدنه مختلف دې، نودَدې وجې نه احکامات ئې هم بدل، نوهلته دَاهل قبورواوریدل یاهغوئی وراورل دَانسان په اختیارکښ ندی، ځکه چه تحت الاسباب ندی، نولهذا پدې ایت کښ نفی اسماع اختیاری ده باقی پاتې شو·سماع·چه مرتب ده په اسماع اختیاری اوغیراختیاری باندې نودَهغې نفی نده شوې، یعنی ستاپه قدرت او اختیارکښ نده چه ته مړوته واوروې نودادَقبیلې دَ·ومارمیت اذرمیت ولکن الله رمی·نه دې

حضرت مولاناقاسم نانوتوی رحمه الله فرمائیلی چه، سمع اموات دَحداسماع نه جدادې، استماع اموات ممکن دې، اواسماع ضروری نده اودَدې وجې نه په ایت کښ نفی دَاسماع راغلیده اوپه حدیث کښ نبی پاک ﷺ سلام په اهل قبورباندې بیالغوعمل وې، اودالغواوفضول عمل به دَملحدانودَاعتراضاتواودَهغوئی دَربان درازئی دَپاره کافی وې.

(۲)دویم جواب دَاکثرومفسرینواودَمحدثینودې چه مرادپدې نفی سره نفی دَسماع نافع ده، اوسماع نافع هغه ده چه په هغې باندې قبولیت مرتب وی، اوکوم سماع چه نافع نوی اوقبولیت پرې نوی مرتب نوهغه نازله ولې شی په منزله دَمعدوم باندې لکه سورة الاعراف ایت

نمبر(۱۰۰)کښی دی ونطبع علی قلوبهم فهم لایسمعون دغه شان په سورة حم السجده ایت نمبر(۱)کښی دی فاعرض اکثرهم فهم لایسمعون دغه شان په سورة الفرقان ایت نمبر(۴۴)کښی دی چه ام تحسب ان اکثرهم یسمعون او یعقلون ددینه علاوه نورډیرایاتونه دی چه په هغې کښی دکافرانونه،نفی دسماع راغلیده اوحالانکه داپه مشاهده کښی وو،چه هغوئ اوریدل کولې شونولهذا هلته هم منفی سماع نافع اوسماع قبول ده نودلته هم منفی سماع نافع اوسماع قبول ده،ځکه چه دعدم انتفاع دوجې نه کله یوڅیزپه منزله دمعدوم ګرځولې شی لکه سورة الاعراف کښی دی"لهم قلوب لایفقهون بها ولهم اعین لایبصرون بها ولهم آذان لایسمعون بها"نودلته هم د"لایبصرون"اود"لایسمعون"نه مراد نفی دقبول ده اومطلق لیدلواواوریدلونفی نده مراد،اوددې وجې نه علامه آلوسی رحمه الله فرمائی چه:والجواب عن الاية ان المنفی هوالسماع النافع وينزل الشي بمنزلة العلم لعدم الانتفاع.

اوابن کثیررحمه الله ددې په تفسیرکښی داسې فرمائی:ای لاتسمعهم شیئاًینفعهم،اوحافظ ابن حجررحمه الله وغیره محدثین فرمائی:واما استدلالها بقوله تعالی:انک لاتسمع الموتی فقالوا معناهالاتسمع سماعاًینفعهم(فتح الباری) اوددینه علاوه عقلی قرینه ددې توجیه دترجیح دپاره داده چه پدې ایت کښی دکفاروتشبیه ورکړې شویده دمړوسره اوقانون دادې چه وجه دشبهې په مشبه اومشبه به کښی ملحوظه وی،نوکچرې داایت دلیل اوګرځولې شی پدې چه مړی بالکل نه اوری نووجه دشبهې به عدم سماع شی،اودایعنی عدم سماع به ملحوظ وی په مشبه یعنی کافرانوکښی هم،اوپه مشبه به یعنی مړوکښی هم،حالانکه په مشبه کښی عدم سماع،ندې ملحوظ بلکه دکفارونه سماع متحققه ده،البته سماع نافع اوسماع قبول ورته نوو حاصل،اوددې وجې نه،قاضی بیضاوی رحمه الله فرمائی:وانماشبهوا بالموتی لعدم انتفاعهم باستماع مايتلی عليهم كماشبهوا بالصم(بیضاوی).

(۳)دریم جواب ددې ایت نه حضرت مولاناعبدالحی لکهنوی رحمه الله په عمدة الرعایة کښی کړیدې،دهغې خلاصه داده چه ددې ایت تعلق دسماع موتی سره ندې ځکه چه د"الموتی"نه مرادپدې ایت کښی"موتی القلوب"یعنی دزړونومړی دی،اوعرفی اموات،ندی مراد،اوموتی القلوب یعنی دزړونو مړی کفاردی،نودایت مطلب دادې چه ته هغه چاته اورول نشې کولې دچازړونه مړه دی،یعنی کفاروته اورول نشې کولې یعنی هغوئی ته ته هدایت نشې ورکولې:الصحیح ان المرادبالموتی هناک موتی القلوب وهم الکفارلاالاموات العرفية(عمدة الرعایة).

(۴)څلورم جواب دَدې ايت نه حضرت شاه صاحب رحمه الله داسې کړيدې چه سماع، اسماع، استماع تولومعنی تقريباً يوه ده خودلته نفی دَاسماع نه مرادنفی دَعمل دې ځکه چه اوريدل اورول دَپاره دَعمل کولووی اوکله چه يوکس عمل نه کوی نوګوياچه اوری هم نه لکه يوسړې مونځ نه کوی نوته دَهغه په باره کښې وائی چه ماده ته څوځلې اوئيل چه مونځ کوه خودې خبره نه اوری يعنی عمل پرې نه کوی.باقی هغه عبارات دَفقهاؤچه په هغې کښې نفی دَسماع موتی باندې تصريح ده اوديته ئې اصل مسلک دَاحنافوونيلې دې لکه په فتح القديرکښې علامه ابن الهمام رحمه الله دَتلقين الموتی نه مرادقريب الموت مرادکړيدې او موتی ئې په خپل حقيقی معنی سره ندې مرادکړې اووجه ئې دابيان کړيده چه:وعندی الن مبنی ارتکاب هذاالمجاز هنا عند اکثر مشايخنا هو ان الميت،لايسمع عندهم، نوپه يکښې تصريح ده چه اکثر و مشائخو دَ احنافو مسلک دادې چه مړی نه اوری. اوبيا علامه رحمه الله حواله ورکړيده په کتاب الايمان کښې دَيوې متفقې مسئلې چه يوسړې قسم اوکړی چه څه به دَفلانی کس سره خبرې اونکړم اوبيائې ورسره پس دَمرګ نه خبرې اوکړې نودَتولواحنافوپه نيزداسړې حانث ندې،علامه رحمه الله دَدې دَعدم حنث دَپاره علت داذکرکړيدې چه:لانها تنعقدعلی مايحيث يفهم والميت ليس کذلک لعدم السماع،ليکن دَعلامه ابن الهمام رحمه الله پدې تعليل چه:لانهاتنعقدالخ باندې محدثينوردکړيدې اوداتعليل ئې دَعدم حنث دَپاره ندې قبول کړې بلکه دَعدم حنث دَپاره وجه داده چه داروملاردَقسمونوپه عرف باندې دې اوپس دَمرګ نه يوسړی سره خبرې کول،عرفاً ديته خبرې کول نشی وئيلې کيدلې.

ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات شرح دَمشکوة(ج۸ ص۱۱)کښې فرمائی: اقول هذامنهم مبنی علی ان الايمان علی العرف فلايلزم منه نفی حقيقة السماع کماقالوافيمن حلف لاياکل اللحم واکل السمک مع انه تعالی سماه لحماطرياً(مرقاة)اومولاناعبدالحی لکهنوی رحمه الله په عمدة الرعاية کښې دَعلامه ابن الهمام رحمه الله پدې تعليل باندې داسې ردکړيدې،وانماحکموافی الحلف بالضرب والکلام والدخول عليه ونحوهابعدم الحنث عندوجودهذه الاشيآء بالميت لکون الايمان مبنية علی العرف،والعرف قاض علی ان هذه الاموريرادبهاارتباطهامادام الحيوة لابعدالموت فالکلام بالميت وان کان کلاماًحقيقة ويوجدفيه الاسماع والافهام لکن العرف يحکم بان المراد فی قوله لااکلمک هوالکلام حالة حياته(عمدة الرعاية ج۳ ص۲۵۴).

يعنی فقهاؤدَمړی وهلودَهغه سره دَخبروکولواوهغه ته دَتللووغيره کښې دَعدم حنث حکم دَدې وجې نه کړيدې چه دَقسمونوداروملارپه عرف باندې دې،اوعرف دافيصله کوی چه دَدې

کارونو ارتباط دنیازندګئ پورې محدوددې، دَمرګ نه پس دَدې اموروارتباط دَقسم خوړلې شوی څیزونو سره نیشته اګرچه دَمرګ نه پس دَمړی سره خبرې کول حقیقةً کلام دې. او پدیکښې اسماع یعنی اورول او افهام شته دې، لیکن دَعرف فیصله داده چه یوکس دااوائی چه لاکلمک چه څه به تاسره به خبرې اونکړم نوددینه په حالت دَحیات کښې عدم تکلم مراددې.

اوحضرت شیخ الاسلام عثمانی رحمه الله هم دَدې توضیح کړیده اوفرمائی چه: وامامسئلة الایمان التی ذکرهاالشیخ ابن الهمام فمبنی الایمان علی العرف فاذاحلف احدّانه لایکلم فلانًافلایفهم منه اهل العرف الاالتکلیم فی حالة الحیوة فلایحنث بتکلیمه میتا(فتح الملهم)اوددې دَپاره ډیرشواهددی اوډیرمسائل په عرف باندې مرتب دی مثلاًیوسړې قسم اوکړی چه څه به غوخه نه خورم اوبیائې دَماهی غوخه اوخوړه له نوداسړې حانث ندې ځکه چه عرف اوعادت کښې دَمطلق غوخې اطلاق په ماهی باندې نه کیږی، اګرچه شرعًا دَماهی په غوخې باندې اطلاق دَغوخې شویدې، دغه شان یوکس قسم اوکړو چه څه به سر نه خورم، اوبیائې دَمرغئ سراوخوړلونوداکس حانث ندې ځکه په عرف کښې دَسر اطلاق دَغوا، غوئې اودَمیښې اوبیزې وغیره باندې کیږی.

اوددې وجی نه حضرت کشمیری رحمه الله په فیض الباری باب قول المیت وهوعلی الجنازة قدمونی، تحت په علامه ابن الهمام رحمه الله باندې سخت ردکړیدې فرمائی: اقول والاحادیث فی سمع الاموات قدبلغت مبلغ التواتروفی حدیث صححه ابوعمران احداًاذاسلم علی المیت فانه، یردعلیه ویعرفه ان کان یعرفه فی الدنیااوخرجه ابن کثیرایضًاوترددفیه فالانکارفی غیرمحله سیمااذالم ینقل عن احدٍمن ائمتارحمهم الله تعالی فلابدبالتزام السماع فی الجملة واماالشیخ ابن الهمام رحمه الله فجعل الاصل هوالنفی وکل موضع ثبت فیه السماع جعله مستثنیً ومقتصرًاعلی المورد قلت اذن ماالفائدة فی عنوان النفی ومالفرق بین نفی السماع ثم الاستثناء فی مواضع کثیرة وادعاء التخصیص وبین اثبات السماع فی الجملة مع الاقراربانالاندری ضوابط اسماعهم فان الاحیاء اذالم یسمعوافی بعض الصورفمن ادعی الطردفی الاموات ولذاقلت بالسماع فی الجملة(فیض الباری).

دَدې عبارت خلاصه داده چه دَسماع الموتی په باره کښې احادیث حدتواترته رسیدلی دی(اوبیاخاص طورباندې هغه حدیث)چه دَهغې تصحیح ابوعمر رحمه الله کړیده چه څوک په مړی باندې سلام واچوی نومړې ده ته جواب ورکوی اوکه چرې داسلام اچوونکې دَدې مړی پیژندګلووی په دنیاکښې نوپه قبرکښې ئې هم دامړې پیژنی(نوداحدیث په عموم دَسماع موتی باندې دلالت کوی)نولهذا دَسماع موتی نه انکارکول بې موقع اوبې محل دی، اوبیاخاص طورباندې په

دې صورت کښې دَسماع نه انکار کول چه زمونږ په ائمه يعنې دَاحنافو، کښې دَچانه هم نفی دَسماع نده منقوله، نو لهذا دَفی الجمله سماع التزام ضروری دې او کومه خبره چه شيخ ابن الهمام رحمه الله کړيده چه اصل ضابطه او قانون دَعدم سماع دې، او کوم احاديثو نه چه سماع ثابتيږی نو هغه مواضع مستثنی دی او دَسماع والاحاديث ئې په خپل موردپورې منحصر ګرځوليدی نو حضرت شاه صاحب رحمه الله پدې باندې په درې(۳) وجوهاتو سره رد کړيدې اول(۱) وجه داده چه څنې مواضعو کښې اثبات دَسماع دَوجې نه بيا عنوان دَمطلق نفی دَسماع قائم کول او اصل ضابطه عدم سماع وئيل بې فائده دی(۲) او دغه شان يوطرف ته نفی دَسماع قول کول او بيا دَډيرمواضعو استثنا کول او دَتخصيص دعوی کول او فی الجمله اثبات دَسماع کول دَدې په مينځ کښې به څه فرق راشی؟ ځکه چه رجع دَدې سماع ته کيږی. (۳) او دغه شان نفی دَسماع نه مراد څه دې؟ کچرې مقصود نفی دَسماع نه داوی چه مړی بالکل نه اوری نو دا دَنصوصو نه مخالفه ده او کچرې مقصود دَنفی نه داوی چه مړی په بعض صورتونو کښې اوری او په بعض صورتونو کښې نه اوری، نو بيا ديته عنوان نفی دَسماع الموتی ورکول غلط دی ځکه چه ژوندی خلک هم کله کله دَبل چاخبره او اواز نه اوری، او نه ورته دَهغه دَخبرې او دَاوازڅه پته لګی، نو بيا دَمړو په باره کښې عدم سماته اصل ضابطه وئيلو څه معنی شوه او دَدې باوجود چه مونږ دَدې اقرار هم کوو چه مونږ دَمړو دَسماع او اسماع دَضوابطو نه خبر هم نه يو، ځکه چه ژوندی خلک هم کله کله نه اوری نو دَمړو په باره کښې څوک دَدې دعوی کولې شی چه مړی هروخت اوری نو لهذا ځکه شاه صاحب رحمه الله وايم چه سماع فی الجمله ثابت دې.

دغه شان علامه الوسی رحمه الله په تفسير روح المعانی کښې په سماع الموتی باندې دَاوږد اوطويل بحث نه ورستو خپله فيصله داسې کړيده چه: والحق ان الموتى يسمعون فى الجملة الخ يعنی حقه خبره داه چه مړی فی الجمله خبرې اوری. او دَدې قائل علامه تفتازانی وغيره متکلمين هم دی، لکه چه دَهغه دَعبارت چه په شرح مقاصد کښې دې دَهغې نه معلوميږی، او دا قول زيات راجح دَدې وجې نه هم دې چه دَټولو اهل السنة والجماعت پدې اتفاق دې چه دَمرګ نه پس دَروح تعلق څه ناڅه درجې کښې دَبدن سره وی او دَدې وجې نه اجزاء دَبدن دَتنعيمات دَقبر او عذاب قبر احساس کوی نو هرکله چه دَروح تعلق په څه ناڅه درجې کښې دَبدن سره وی نو که اجزاء دَبدن اواز واوری نو دا څه مستبعده خبره نده.

**خلاصه**: خلاصه دکلام داده چه سماع دوه(۲) قسمه ده چه يو قسم سماع مطلقه ده چه هغې ته سماع کامل هم وئيلې کيږی او دويم قسم سماع، مطلق سماع ده چه هغې ته سماع فی الجمله وئيلې

کیږی دَسماع مطلق دَمړودپاره څوک هم قائله ندی.ځکه چه سماع مطلق دَژوندودپاره ندې ثابت نومړودپاره به څرنګه ثابت شی البته مطلق سماع ثابته ده اومطلق سماع مرتبه دَمطلق شئ ده چه پدې باندې احکام دَعموم اوخصوص دواړه جاری کیږی نولهذا دَنصوصونه چه کومه سماع ثابته ده نودَهغې دَوجې نه مطلق سماع ثابته شوه نودَدې وجې نه عنوان دَنفی دَسماع قائم کول غیرمناسب دی والله اعلم وعلمه اتم واحکم

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ اَخْرَجْنَا لَهُمْ دَآبَّةً مِّنَ الْاَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ ﴿۸۲﴾ | | | | | | | | |
| اوکله چه واقع شی خبردَقیامت پدوئ نوراباسو به باسومونږ دوئ ته څناوردزمکی نه چه خبری به کوی حلفوسره. | | | | | | | | |
| اَنَّ | النَّاسَ | كَانُوْا | بِاٰيٰتِنَا | لَا | يُوْقِنُوْنَ ﴿۸۲﴾ | | | |
| چه | بیشکه | خلق | وؤچه | زمونږپه | آیاتونونی | یقین | نه | کولو |

﴿وَاِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ ﴾داتخویف دنیوی دې،او وقوع نه مرادقرب دې اوقریب الشئ نه تغییرعموماًپه وقوع الشئ سره کیږی،او﴿الْقَوْلُ ﴾ نه مرادقیامت دې دَ آیت مطلب دادې چه کله اخری زمانه شی اوقیامت قریب شی نوپدغې وخت کښې به الله ﷻ دَزمکې نه یوعجیب الخلقت دابه پیداکړی اوبعض فرمائی چه﴿ وَقَعَ﴾په معنی دَثبت سره دې او ﴿الْقَوْلُ﴾ نه مراد غضب اوعذاب دَالله ﷻ دې لیکن داټولې معانی متقاربې دی او ﴿مِّنَ الْاَرْضِ﴾کښې اشاره ده چه دَدې دابې پیدائش به خلاف عادت دَزمکې نه وی اوتوالدبه ئې دَبلې دابې نه نه وی اوتنوین په﴿دَآبَّةً ﴾کښې دَتعظیم اوتنویع دَپاره دې اودا﴿دَآبَّةً ﴾ به دَعلاماتوکبری ؤدَقیامت نه به وی.لکه چه په حدیث دَمسلم وغیره کښې دی چه نبی پاک ﷺ ارشاداوفرمائیلوچه قیامت به ترهغه وخته پورې نه راځی ترڅوچه لس(۱۰)علامات تاسواونه ګورئ(۱)نمردَمغرب دَطرف نه راختل(۲)دخان یعنی لوګې(چه قرب قیامت کښې به ظاهریګی مؤمن ته به ددینه زکام اولګی اوکافرته به سخت تکلیف اوعذاب ورکوی.داقول دَجمهورومحدثینو دې(۳)خروج دابۃ(۴)خروج یاجوج اوماجوج(۵)نزول عیسی علیه السلام(۶)خروج دجال(۷، ۸، ۹)درې خسوفه یوبه په مغرب کښې وی دویم په مشرق اودریم په جزیرة العرب کښې وی(۱۰)اور چه دَقعرعدن نه به ظاهرشی چه داټول خلک به یومیدان ته راجمع کړی.اودَاحادیثونه معلومیږی چه خروج دابې نه ورستوبه قیامت ډیرقریب وی اومحدثین فرمائی

چه خروج دابه اوطلوع شمس دَمغرب نه دَدې دواړوعلاماتودَظهورنه ورستوبه دَچاايمان نه قبليږي،بعض مفسرينودَدې عجيب الخلقت دابې شكل وصورت اوهيئت هم بيان كړيدې ليكن دَهغې ثبوت دَنصوصونه،نشي كيدلې،نولهذازمونږدَپاره صرف پدې باندې ايمان راوړل كافي دى،چه دادابه به رااوځي اوخبرې به كوي مؤمن اومنافق به پيژني اودَتولې دنياچكربه لګوي

بعضې علماء فرمائي چه﴿ دَآبَّةً ﴾اسم جنس دې چه اطلاق ئې په قليل اوكثيردواړوباندې كيږي نولهذا دابه صرف يوه﴿ دَآبَّةً ﴾نوي بلكه متعددې دابې به وي دَهرښهردكسانودَپاره به خپله﴿ دَآبَّةً ﴾ وي،ليكن غوره قول دادې چه دا﴿ دَآبَّةً ﴾به يوه وي

دا﴿ دَآبَّةً ﴾به كله راواوځي نودَحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروى دى چه﴿دَآبَّةً﴾ هغه وخت راواوځي چه كله قرآن لوستونكي اوطواف كونكي ختم شي،ليكن علامه آلوسي رحمه الله پدې رد كړيدې چه دَاكثرونصوصو اواحاديثونه ثابته ده چه دا﴿دَآبَّةً﴾به هغه وخت ظاهريږي چه كله مؤمن اوكافردواړه په دنياكښې موجودوى،نولهذاغوره خبره داده چه كله ګناهونه،شرك اوكفرزيات شي اوامربالمعروف ونهى عن المنكرمنقطع شي نوپدې وخت كښې به الله جل جلاله داعلامه ظاهره كړي اودَدينه ورستوكه بياپوكافرايمان راوړي نودَهغه ايمان به نوي قبول

دَدې دابې ظهوربه دكوم ځائ نه كيږي،پدې كښې روايات متعدددى بعض رواياتوكښې مدينه،په ځنوكښې طائف اوپه ځينوكښې سدوم راغليدى ليكن اكثررواياتوكښې دَمكې معظمې ذكردې،نولهذاممكنه ده چه اصل مبدأئې مكه معظمه وى اومدينه،طائف وغيره ئې هم صرف مراكزوى

﴿تُكَلِّمُهُمْ أَنَّ ٱلنَّاسَ﴾ضميرمرفوع راجع دې﴿دَآبَّةً ﴾ته،اوضميرمنصوب راجع دې منكرينودَقرآن اومنكرينودَبعث بعدالموت ته،اوپه﴿أَنَّ ﴾كښې دوه(۲)قرائت دى،په كسرې سره اوپه فتحې سره،نوچه په فتحې دَهمزې سره شي لكه چه داقراءة دَجمهورودې نودَدې سره به باء حرف جرمحذوف وى يعنى بان الناس اوپدې باء كښې دوه احتماله دى(۱)يادَتعدئې دَپاره ده چه داجمله مفعول ثاني دې دَ﴿تُكَلِّمُهُم ﴾دَپاره او﴿بِـَٔايَـٰتِنَا ﴾نه مراد بآيات ربنا دې نومعنى داده چه دابه

خلکو سره خبرې کوي چه خلک زمونږ دَرب په ایاتونو باندې یقین نه لری(۲)یا باء سببیه ده او دا سبب بیانیږی دَاخراج دَ دابه دَپاره او ﴿تُكَلِّمُهُمْ﴾دَپاره مفعول ثانی محذوف دې چه ببطلان الادیان کلهاسوی الاسلام،دې.اویاعدم قبول توبتهم دې نومعنی ئې داده چه دا دابه به خبرې کوی په بطلان دَټولو ادیانونو باندې چه ټول ادیان باطل دی سیوادَدین اسلام نه.اویابه خلکوسره خبرې کوی چه ستاسوتوبه نه قبلیږی اودا دابه به ولې رااوځی؟ ځکه چه﴿أَنَّ ٱلنَّاسَ كَانُوا﴾ځکه چه خلک زمونږ په ایاتونو باندې ایمان نه لری.

اویا﴿أَنَّ﴾په کسرې سره دې،چه داقرأة دَبعضې قرآؤدې،ځکه چه﴿تُكَلِّمُهُمْ﴾مؤل دې په تاویل دَقول سره،اوقول نه ورستو اِنَّ په کسرې سره وی او﴿بِـَٔايَٰتِنَا﴾نه مراد بآیات ربنا دې.نومعنی ئې داده چه دا دابه به خلکوته وائی چه خلک زمونږ دَرب په ایاتونو باندې یقین نه لری اوبعض مفسرین فرمائی چه﴿تُكَلِّمُهُمْ﴾دَکلام نه ندې بلکه دَکلم نه دې چه جرحې ته وئیلې کیږی،نوپدې تقدیردَایت دوه(۲)معانی دی(۱)یوه داچه﴿أَنَّ ٱلنَّاسَ كَانُوا﴾تفسیردکلم یعنی دَجرحې دې﴿ بِـَٔايَٰتِنَا﴾نه مراد بایات ربنا دې نومطلب دادې چه دا دابه به په خلکوباندې جرحې کوی اوزورنه به ورکوی چه تاسوزمونږ دَرب په ایاتونوباندې ایمان نه لرو(۲)دویم تفسیردادې چه کلم یعنی جرحة په معنی دَوسم سره دې اودَدې تائیدپه هغې حدیث سره کیږی چه نقل کړیدې امام ترمذیرحمه الله،ابن کثیررحمه الله وغیرهماحضراتوچه:قال رسول اللهﷺ تخرج دابة الارض ومعهاعصاموسیعلیه السلام وخاتم سلیمانعلیه السلام فتخطم انف الکافربالعصاوتجلی وجه المؤمن بالخاتم حتّی یجتمع الناس علی الخوان یعرف المؤمن من الکافر،یعنی نبی پاکﷺ ارشاداوفرمائیلوچه دابة الارض به رااوځی چه ددې سره به دَحضرت موسیعلیه السلام عصااودَحضرت سلیمانعلیه السلام مهروی،په عصاسره به دکافرپه پوزه باندې یونشان جوړکړی اوپه مهرسره دَمؤمن مخ نورانی کړی،حتّی چه خلک به په یوځائ باندې راجمع شوی وی،مؤمن اوکافربه دَدغې نشاناتودَوجې نه پیژندلې شی،اوپه بعض رواياتوکښې دی چه خلک بل یوبل ته اوازکوی چه،یامؤمن یاکافر.دَدې روایت تصحیح اګرچه امام حاکم کړیده لیکن محدثین فرمائی چه دَدې په سندکښې علی بن زیددې چه هغه ضعیف راوی دې.

وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ فَوْجًا مِّمَّنْ يُّكَذِّبُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ ﴿۸۳﴾

اوپه كوم ورځ چه راپورته كړومونږدهرې ډلې نه يوډله دهغه چاچه تكذيب ئې كولوزمونږدآياتونودوئ به راحصارولي شي

حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْ قَالَ اَكَذَّبْتُمْ بِاٰيٰتِيْ وَلَمْ تُحِيْطُوْا بِهَا

تردې چه كله راشي ميدان حساب ته الله ﷻ به ورته اووائي آياتاسوتكذيب كړې وؤزمونږدآياتونواواحاطه نه وه كړې تاسوپه هغه آياتونو

عِلْمًا اَمَّاذَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۸۴﴾ وَوَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ بِمَا ظَلَمُوْا

دجهته دعلم نه اويانورڅه وؤهغه چه تاسو كول .اوواقع به شي خبردعذاب پدوئ په سبب دظلم ددوئ

فَهُمْ لَا يَنْطِقُوْنَ ﴿۸۵﴾ اَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا الَّيْلَ

پس دوئ به خبرې نشي كولې(معذرت په نشي كولې)آيانهويني دوئ چه بيشكه مونږګرځولې ده شپه

لِيَسْكُنُوْا فِيْهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۸۶﴾

لپاره ددې چه ارام پكښې اوكړي اوورځ مورنړاګرځولې ده بيشكه پدې كښې خامخادلائل دتوحيد دي لپاره دهغه قوم چه ايمان راوړي

﴿وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِن كُلِّ أُمَّةٍ﴾ دمبادي دقيامت ذكرنه ورستوتخويف اخروى ذكركيږى،اودې حشر نه مرادحشركلى ندې چه ټول مخلوقات به دحساب كتاب دپاره راجمع كولې شي بلكه ددې حشرنه خصوصى اوجزئى غوندې حشرمراددې،چه مجرمين به دعذاب اودسخت زورنې دپاره راجمع كړې شي او"من"په"من كل امة"كښې تبعيضيه دې اوپه"ممن يكذب"كښې"من"بيانيه دې نومطلب دادې چه دهرامت نه بعض افرادچه زمونږداياتونوتكذيب ئې كړيدې هغوئ به مونږراجمع كړو.اودلته رعايت دترتيب وقوعى اونكړې شوچه اول ذكردنفخې شوې وې بياحشركلى اوعمومى ذكرشوې وې اوبياحشرخصوصى بلكه دلته اول دحشرخصوصى بيادحشرعمومى اوبيادنفخې ذكرشويدې،ځكه چه مقصودپدې ځائ كښې تنبيه ده پدې چه هرحالت مستقل واهيه اوسختى ده،اودامقصودپه ترتيب وقوعى سره نشو حاصليدلې،ځكه چه په ظاهركښې"نفخه"سخته داهيه ده نوداتوهم كيدلې شوچه ټولې سختئ په

نفخه کښ دی، اونفخه دې تولو سختیولره متضمنه ده اوهرحالت به ځان له مستقله سختی نوی، نودېې وجې نه دَترتیب وتوعی اعتبار اونکړې شو (روح).

﴿فَهُمۡ يُوزَعُونَ﴾ دا دَ وزع نه دې په معنی دَ بندولو سره یعنی تول به په یوځائ کښ بند کړې شی اوجمع به کړې شی ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءُو﴾ یعنی دوئ تول به میدان حساب ته راوستې شی، دا ذکردَحشرعمومی دې ﴿قَالَ أَكَذَّبۡتُم﴾ یعنی الله ﷻ به ورته توبیخاً اوائی نودا استفهام دَاستعلام دَپاره ندې بلکه دَزجراوتوبیخ دَپاره دې ﴿وَلَمۡ تُحِيطُواْ بِهَا﴾ واو حالیه دې اوداقیددَمزیدشناعت اوقباحت دَپاره دې یعنی دَالله ﷻ دَایاتونوتکذیب کول مستقل جرم اوکفردې اوبیابلاتحقیقه تکذیب کول بدترین اوقبیح ترین جرم دې ﴿أَمَّاذَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ﴾ ام یامتصله دې په معنی دَهمزه استفهامیه سره اواستفهام دَپاره دَتبکیت دې او ﴿كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ﴾ کنایه ده دَعدم تکذیب نه یعنی تصدیق نه، نودَایت مطلب دادې چه آیاتاسوبې تحقیقه ځمادَایاتونوتکذیب کړې وو، یاتاسوتکذیب نه ووکړې نوکه تکذیب مونه وی کړې نوبیاتاسوڅه عمل کړې دې، هغه عمل اوښائې؟ سیوادَتکذیب نه تاسوبل څه عمل کړیدې؟ اوچونکه تصدیق دَدوئ نه، ندې متحقق نودَدې وجې نه دوئ به خاموش پاتې شی اودابه نشی وئیلې چه مونږتکذیب ندې کړې لیکن زیاته غوره توجیه داده چه ام منقطعه دې په معنی دَ بل سره دې اودا انتقال دَیوتوبیخ نه بل توبیخ ته دې اوما اسم استفهام دې مبتداء ده او ذا موصول او کنتم تعملون جمله ورله صله ده اوعائدپکښ محذوف دې، موصول دَمبتداء دَپاره او کنتم تعلمون کنایه ده دَنوروبدعملونونه، لکه انبیاء کرام علیهم الصلوات والتسلیمات اولیاء الله اوداعیان حق ته تکلیف ورکول شووغیره، نواول توبیخ اوزجرصرف دَایاتونوپه تکذیب باندې دې اودازجراوتوبیخ په نوروبدعملونوباندې دې، نودَایت مطلب دادې چه تاسوصرف بلاتحقیقه تکذیب باندې اکتفاء اونکړه بلکه نورجرمونه اوبدعملونه موهم کولو.

﴿وَوَقَعَ ٱلۡقَوۡلُ عَلَيۡهِم﴾ نوهرکله چه دوئ څه معقول عذرپیش نکړې شی اودَدروغوعذرونه به نشی کولې نوخاموشه به پاتې شی اولاجوابه به شی نوالله ﷻ فرمائی چه دوئی دَعذاب موعودمستحق اوګرځیدلواوعذاب موعودپه دوئی باندې ثابت شو ﴿فَهُمۡ لَا يَنطِقُونَ﴾ یعنی څه

عذر او حجت به نشی کولې ځکه چه دَدوئ دَپاره به څه عذر نوی، او یا مقصد دادې چه په خلو باندې به نې مهر اولګی اودَخبرو کولو طاقت به نه لری، او هر کله چه مواطن او مواقف دَقیامت متعدد ددی نو دَدې وجې نه په بعضې مواقفو کښې به دوئ بالکل عذر نشی پیش کولې او په بعضې مواقفو کښې به دَدروغو عذرونه پیش کوی خو نه به قبلیږی.

﴿أَلَمْ يَرَوْا أَنَّا جَعَلْنَا﴾ دا دویم دلیل عقلی دې چه متعلق دې دَدویمې دعوې سره چه کارساز او متصرف صرف او صرف الله ﷻ دې او دَرؤیت نه مراد رؤیت قلبی دې، بصری ندې او په دې ایت کښې صنعة احتباک شویدې، ځکه چه دلته دوه (۲) جملې دی نو په اولې جملې کښې دَجعل مفعول ثانی محذوف دې چه "مظلمًا" دې او متعلق ئې ذکر دې او په هغې باندې اکتفا شویده او په دویمې جملې کښې مفعول ثانی مذکور دې او متعلق محذوف دې چه "لینشروا فیه" دې، نو تقدیر دَعبارت داسې دې "جعلنا الليل مظلمًا ليسكنوا فيه والنهار مبصراً لينشروا فيه" یعنی آیا دوئ نه ګوری چه شپه مونږ دَتیاری والا پیدا کړیده دې دَپاره چه دوئ پکښې ارام اوکړی او ورځې مونږ او الا پیدا کړیده، دې دَپاره چه دوئ پکښې ګرځی راګرځی، دَشپې دَورځې دا تصرفات دَالله ﷻ په اختیار کښې دی نو لهذا کارساز او حاجت روا هم هغه دې.

دغه شان پدې ایت کښې امکان دَوقوع دَقیامت او بعث بعد الموت په دلیل عقلی سره ثابتیږی لکه څرنګه چه ماقبل ایت کښې نفس وقوع دَقیامت ذکر شوه، نو پدې آیت کښې په دلیل عقلی سره دَبعث اثبات کیږی، ځکه چه دَشپې خوب مشابه دې دَمرګ سره لکه مشهوره ده چه "النوم اخو الموت" او دَورځې راپیدا ریدل مشابه دی دَبعث سره، ځکه چه دَمرګ حقیقت دادې چه زوال دَتعلق راشی دَروح دَجسد نه او دَبعث حقیقت دادې چه عود دَدې تعلق اوشی نو په خوب سره هم من وجه زوال دَدې تعلق راځی اګرچه ضعیف وی لیکن په یو مرتبه کښې زوال دې او یقظت یعنی بیداریدل عود دَدې تعلق دې، نو لهذا دَدنیا خوب مشابه شو دَخوب برزخی یعنی دَمرګ سره او یقظت مشابه شو دَحیات اخروی او بعث سره، نو دَیو مشابه او نظیر سره تعلق دَقدرت الهی مشاهد دې او دا تعلق معلل بالعلت هم ندې بلکه مقتضی دَدې ذات دَالله ﷻ دې، نو لهذا معلومه شوه چه نظیر او مشابه آخر چه موت او بعث دی هم دَالله ﷻ مقدور دی.

﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَـٰتٍ﴾ هر كله چه شپه، ورځ، خوب او بيداريدل هريو مستقل دليل دي په قدرت د الله ﷻ باندې نو ځكه 'ايات' جمع ذكر شوه او يا دا چه صيغه د جمعې په اعتبار د عظمت د دليل سره ذكر شويده يعنى جمع تعظماً ده.

وَ يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ فَفَزِعَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ

او ياد كړه هغه ورځ چه پو كړي شي په شپيلۍ كښ نو بې هوشه به شي هغه څوك چه په اسمانونو كښ دي او هغه څوك چه

فِي الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ ؕ وَكُلٌّ اَتَوْهُ دٰخِرِيْنَ ﴿۸۷﴾ وَتَرَى الْجِبَالَ

په زمكه كښ مگر هغه څوك چه الله ﷻ ئې او غواړي او ټول به راشي حضور د الله ﷻ ته عاجزه او ته به وينې غرونه

تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَّهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ ؕ صُنْعَ اللّٰهِ الَّذِيْٓ

گمان به پرې كوې چه ولاړ دي حال دا چه دا به روان وي په شان د تيريدلو د وريځ. جوړول د الله ﷻ دي هغه الله ﷻ

اَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ ؕ اِنَّهٗ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَفْعَلُوْنَ ﴿۸۸﴾

چه محكم كړي ئې دي هر څيز بيشكه هغه خبردي په هغه څه چه تاسو ئې كوئ.

﴿وَيَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ﴾ دا تخويف اخروي ذكر كيږي او 'صور' په احاديثو كښ دى چه يو قرن يعنى ښكر دي او پديكښ پوكونكي حضرت اسرافيل عليه السلام دي په حديث د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه كښ دى چه نبى پاك ﷺ ارشاد او فرمائيلو چه: كيف انعم وصاحب الصور قد التقم القرن واستمع الاذن متى يؤمر بالنفخ (ترمذي) يعنى يعنى څه به خرنگه بې غمه شم حالانكه د صور والا صور په خله كښ نيولې دي او غوږونه ئې نيولى دي (پدې انتظار دي) چه كله به ده ته د صور پو كولو حكم كيږي.

دلته د اكثرو مفسرينو په نيز د نفخه نه نفخه اولى مراده ده، ليكن د نفخه اولى په تعين كښ اختلاف دي، د جمهورو په مسلك نفخه اولى هغه ده چه په هغې سره به دنيا ورانه شي او ددينه تعبير په 'نفخة الفزع' سره هم كيږي لكه دلته مذكور دي 'نفخة صعق' ورته هم وئيلې كيږي او نفخة اماتة هم وئيلې كيږي لكه سورة الزمر كښ دى، او دې صور اولى او نفخة اولى ته 'فزع' او 'صعق' ځكه وئيلې كيږي چه د دې وجې نه به مخلوقات اول په گبهراهټ كښ مبتلا شي بيا به د سخت گبهراهټ د وجې نه

به مخلوقات بې هوشه شي اوبالآخربه مړه شي.اوبيابه دويمه نفخة اوهلې شي چه هغې ته نفخة قيام اونفخه بعث وئيلې كيږي اوپه هغې سره به مخلوقات دوباره(۲)ژوندي كړي شي.نودَجمهورو په مسلك نفخات صرف دوه(۲)دي.(۱)نفخة فزع اوصعق (۲)اونفخه نفخه قيام اوبعث اودامسلك زيات اوفق دي دَقرآن اودَاحاديثوسره.قرطبي رحمه الله فرمائي:قلت والسنة الثابتة من حديث ابى هريرة رضي الله عنه وحديث عبدالله بن عمر رضي الله عنه تدل على انهمانفختان لاثلاث أخرجهمامسلم،وهوالصحيح ان شاءالله تعالى انهمانفختان قال الله تعالى ونفخ فى الصورفصعق من فى السموات الخ فاستثنى هناكمااستثنى فى نفخة الفزع فدل على انهماواحدة(قرطبي)اودغه شان دَحضرت حسن بصرى رحمه الله مرسل روايت هم صريح دال دې پدې چه نفخات دوه(۲)دي.حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائي چه:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم بين النفختين اربعون سنة،الاولى يميت الله بهاكل حي والاخرى يحيى بها الله كل ميت،يعني نفخات دوه(۲)دي دَدواړونفخاتوپه مينځ كښې به څلويښت كاله فاصله وي،په اولې نفخې سره به الله جل جلاله هرژوندې څيزمړكړي اوپه دويمې نفخې سره به الله جل جلاله هرمړڅيزراژوندې كړي.

قاضي عياض رحمه الله اوابن العربي رحمه الله فرمائي چه نفخات درې(۳)دي.(۱)يوه نفخه فزع(۲)دويم نفخه صعق(۳)اودريم نفخه قيام.دې قول ته ابن كثيرهم ترجيح وركړيده.قاضي عياض رحمه الله نه بل قول دَڅلورو(۴)نفخاتومنقول دې چه(۱)يوه نفخه اماتت(۲)نفخه احياء(۳)دريم نفخه صعق(۴)څلورم نفخة قيام يابعث.اودَدې څلورمې نفخې ذكرپه سورة يسين كښې شويدې(ونفخ فى الصورفاذاهم من الاجداث الى ربهم ينسلون)اوبعض حضراتودپنځو(۵)نفخاتوقول كړيدې چه څلوردامذكوردي اويوه ورسره ئې نفخه فزع زياته كړيده.راجح مسلك دَجمهورودې ځكه چه زيات اوفق دكتاب الله اودَاحاديثوسره دې لكه څرنګه مخكښې تيرشو.

نودجمهورو په مسلك نفخة فزع.صعق.اماتت،يودى،پدې سره په ګهبراهټ هم وي،بيهوشي به هم وي اوموت به ورسره هم وي اوكوم حضرات چه دَمتعددنفخاتوقائل دي نودَهغوئ په مسلك نفخه فزع جداده دَنفخه صعق نه.نواول خلې صورپوك كړې شي نوټول مخلوقات به ګبهراؤشي اوختونه ګردنونه به ښكته كړي چه دااوازښه واوري،بيابه ورپسې بياصوراوهلې شي چه به هغې سره به خلك بې هوشه اومړه شي اوبيابه ورپسې نفخة القيام وي،

﴿ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَن فِي ٱلْأَرْضِ﴾دَدينه مرادټول مخلوقات دی اوبعض فرمائی چه دَدینه مرادصرف انس وجن دی.او﴿مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ ﴾ذکرمبنی برفرض دې یعنی کچرې علی سبیل الفرض په اسمان کښ جنات،شیاطین وغیره وی نوهغوئ به په اسمان کښ ګبهراؤشی.﴿إِلَّا مَن شَآءَ ٱللَّهُ﴾استثناء متصله ده اومفعول دَمشیئت محذوف دې چه "ان لایفزع"دې اودَدې په تعین کښ اقوال متعدددی چه دا"فزع"به په چاباندې نه راځی اوپدې نفخ سره به په چاباندې مرګ نه راځی؟ نواکثرعلماء فرمائی چه داځلورمقرب ملائک اوحملة العرش دی.بعض فرمائی چه حورالعین،ولدان الجنة،رضوان اومالک خزنة النار مراددی،بعض فرمائی چه انبیاء کرام ترینه مراددی.اودَدې استثناء مقصداندې چه په مقربوملائکو اوحملة العرش باندې مرګ نه راځي بلکه مرګ په هرمخلوق باندې به راځی لکه:کل نفس ذائقة الموت،او"کل شيئ هالکٌ الاوجهه"پدې باندې دال دی بلکه دَایت مطلب دادې چه پدې"نفخې"سره به دوئ ته ګهبراهټ یامرګ نه راځی بلکه ورستوبه بیادوئی وفات کړې شی.

﴿وَكُلٌّ أَتَوْهُ دَٰخِرِينَ ﴾تنوین په ﴿وَكُلٌّ ﴾کښ عوض دَمضاف الیه نه دې،ای کلهم بعداحیاتهم یوم القیامة اتوه داخرین،یعنی هریوددې مخلوقاتونه دَبعث اودَصورثانی نه بعددَقیامت په ورځ په عاجزئی سره راځی.اوتعبیردَدې ټولونه په ماضی سره دَوجې دَتیقن دَوقوع نه دې.

﴿ وَتَرَى ٱلْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً ﴾داداحوالودَقیامت نه دریم هیبت ناک حالت ذکرکیږی چه دامضبوط اوعظیم الجثه غرونه به دَقیامت په ورځ دَوریځوپشان روان وی،اودلته په رؤیت سره مرادرؤیت بصری دې،اوغوره خبره داده چه داخطاب هرهغه مکلف ته دې چه صلاحیت دَرؤیت پکښ وی یابشخصه اویابنوعه.﴿وَهِيَ تَمُرُّ مَرَّ ٱلسَّحَابِ ﴾داجمله حال واقع شویده دَضمیرمنصوب دَ﴿ تَحْسَبُهَا﴾نه او﴿مَرَّ ٱلسَّحَابِ﴾تشبیه بلیغه ده په حذف دَاداتودَتشبیه سره،یعنی"وهی تمرمثل مرالسحاب"اوداتشبیه په سرعت کښ ده اوبعض فرمائی چه داتشبیه په"حسبان"کښ ده یعنی لکه څرنګه چه وریځې باندې ګمان کولې شی چه دااولاړه ده حالانکه هغه ډیره په تیزئ سره روانه وی نودغه شان به په غرونوباندې ګمان کولې شی چه چرته دااولاړدی حالانکه دابه تیزتیزروان وی،نودلته دَغرونودَپاره دوه(۲)صفات متضادجموداومرورثابت کړې شویدی نوجمود په

اعتبار د ګمان د کتونکی سره دي. ځکه چه د لوئی جسم والا ځيزچه کله په يو سمت او يو کيفيت سره حرکت کوي نو انسان ته داسې محسوسې کيږی چه دا ځيزچرته په خپل ځائ باندې ولاړ دي او حرکت نه کوی. او مرور د اصل او حقيقت په اعتبار سره دې او بعض علماء فرمائی چه وصف جمود په اعتبار د حال سره دي او مرور په وخت د نفخې ثانيه کښ وی

قرطبی وغيره حضراتو د قيامت په ورځې د غرونو مختلف احوال بيان کړيدی(١) اول حالت ئې اندکاک دې چه د هغې ذکرپه سورة الحاقه ايت نمبر(١۴) کښ دې فدکتادکة واحدة دويم حالت کالعهن المنفوش دې چه د هغې ذکرپه سورة القارعة ايت نمبر(۵) کښ دې. دريم حالت ئې هباء منثوراً دې چه د هغې ذکرپه سورة الواقعة ايت نمبر(۵، ٦) کښ دې. څلورم حالت نسف دې چه د هغې ذکرپه سورة طه ايت نمبر(١٠۵) کښ دې. پنځم حالت ئې مرالسحاب دې چه دلته ذکردي، او شپږم حالت سراب دې چه د هغې ذکرپه سورة النبأ ايت نمبر(٢٠) دې.

﴿صُنۡعَ ٱللَّهِ ٱلَّذِيٓ أَتۡقَنَ كُلَّ شَيۡءٍ﴾ صنع مفعول مطلق دې اضافت ئې شويدې فاعل ته، او عامل ئې محذوف دې په حذف وجوبی سره، ځکه چه دا هغه مفعول مطلق دې چه تاکيد واقع شويدې د پاره د مضمون د جملې سابقې، او په اصطلاح د نحويانو کښ ديته تاکيد لنفسه وائی لکه له على الف درهم اعترافاً شو، نو هرکله چه ماقبل کښ نفخ الصور ذکر شو، بيا په هغې باندې لوئ لوئ امورمرتب شوچه فزع د مخلوقاتو ده. اتيان د هرځيزدې په عاجزئ سره، او غرونو ختميدل دی نو په دې ټولو امورو کښ اشاره وه او پيدې خبرې باندې دلالت دې چه دا نظام پيدا کول او بيا ختمول بلا فائدې نه دی، او د قبيلې د فساد محض نه، ندی بلکه پديکښ د الله ﷻ يوزبردست حکمت دې، نو دا د قبيلې د بدائعو او صنائعو د الله ﷻ نه دې يعنی خلاصه داده چه نفخ الصور. فزع د عالم وغيره په صنعې د الله ﷻ باندې دلالت کوی او د بل ځيزاحتمال نه لری، نو ځکه دلته اکتفاء په مفعول مطلق او کړې شوه ځکه چه فعل باندې دلالت د ماقبل جملې مضمون او کړو، او مفعول مطلق سدمسد واقع شويدې د فعل د پاره او کوم ځائ کښ چه قرينه او سدمسد دواړه وی نو عامل هلته حذف کيږی په حذف وجوبی سره او ﴿أَتۡقَنَ كُلَّ شَيۡءٍ﴾ د ماقبل تاکيد کوی ځکه چه اتقان ونيلې کيږی: الصنع والخلق على ماتقتضيه الحکمة. يعنی يو ځيزجوړول او پيدا کول په مناسب حکمت سره، نو د زمکې، اسمان، انسانان، جنات

وغيره پيدا كول، بيا په دوئ فزع او مرګ راويستل د الله ﷻ حكمت دې او دا ټول امور دهغې حكمت مطابق انجام ته رسيږي.

| |
|---|
| مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا ۚ وَهُمْ مِّنْ فَزَعٍ يَّوْمَئِذٍ اٰمِنُوْنَ ﴿۸۹﴾ |
| څوک چه راوړي نيكي پس ده لره بدله غوره ده دهغې نه، او دوئ به ديرې نه په دغې ورځې امن كښې وي |
| وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَكُبَّتْ وُجُوْهُهُمْ فِي النَّارِ ؕ هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۰﴾ |
| او څوک چه راوړي ګناه او به غورځولي شي پرمخې په جهنم كښې، بدله نه دركولي كيږي تاسوته مګر دهغه عملونو چه تاسو كوئ |
| اِنَّمَآ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ رَبَّ هٰذِهِ الْبَلْدَةِ الَّذِيْ حَرَّمَهَا وَلَهٗ |
| بيشكه امركړي شويدي ماته چه څه عبادت اوكړم رب ددې كلي هغه رب چه داني ګرځولي دي حرم او هغه لره (قدرت) دي. |
| كُلُّ شَيْءٍ ۫ وَّاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿۹۱﴾ وَاَنْ اَتْلُوَا الْقُرْاٰنَ ۚ فَمَنِ اهْتَدٰى فَاِنَّمَا |
| دهر څيز، او ماته امركړي شويدي چه شمه څه دمسلمانانو نه. او دا چه لولم قرآن. پس څوک چه هدايت قبول كړي نو بيشكه |
| يَهْتَدِيْ لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ ضَلَّ فَقُلْ اِنَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُنْذِرِيْنَ ﴿۹۲﴾ وَقُلِ |
| هدايت قبلوي لپاره دفائدې خپلې. او څوک چه ګمراه شي نو ته ورته اوايه بيشكه څه يم ډيره ونكونه او اوايه |
| الْحَمْدُ لِلّٰهِ سَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ فَتَعْرِفُوْنَهَا ؕ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ |
| ټول صفتونه الله ﷻ لره دي ځامخا او به ښائي تاسوته دلائل دقدرت خپل پس او به پيژنئ تاسو هغه او ندي رب ستا ناخبره |
| عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۳﴾ |
| دهغه عملونو نه چه تاسوئې كوئ |

﴿مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ﴾ هركله چه ماقبل كښې وقوع دقيامت او دهغې اهوال ذكرشو نو اوس په دې اياتونو كښې احوال دمكلفينو ذكر كيږي ورستو دوقوع دقيامت نه، نو دا اول حالت دې چه په دې كښې بشارت اخروي دې مؤمنانو لره، او مراد په ﴿بِالْحَسَنَةِ﴾ سره به نيزد اكثر مفسرينو كلمه توحيد ده

چه لااله الاالله ده اوبعضوترینه اخلاص اوبعضوترینه مطلق اطاعت مرادکړیدي،لیکن اول قول زیات غوره دي اوپه لفظ دَ﴿جَآءَ ﴾کښ اشاره ده حفاظت دَنیکۍ ته په اخلاص سره اوپه باء چه ملابسة دَپاره ده سره اشاره ده استقامت ته،نودَایت مقصددادي چه کوم کس په استقامت او اخلاص سره نیکی اوتوحید دَالله ﷻ په دربار کښ پیش کړی نو

﴿فَلَهُ خَيْرٌ مِّنْهَا ﴾بعض مفسرین فرمائی چه خیر اسم تفضیل دلته په معنی دَمبالغې سره دي او من یاابتدائیه دي اویااجلیه دي،نوکه من ابتدائیه شی نومعنی به ئې داشی چه له خیرمن الخیورمبدؤه ونشوه منهاای من جهة هذه الحسنة بحر+روح یعنی دده دَپاره به خیر وی چه مبداددغې خیربه حسنه وی،اوهغه خیرجنت دي اویا من اجلیه دي،نومعنی ئې داده چه﴿فَلَهُ خَيْرٌ مِّنْهَا ﴾حاصلٌ من اجلها،یعنی دده دَپاره به ډیره ښه بدله وی دَدې حسنه اوکلمې دَوجې نه اوبعض فرمائی چه خیر اسم تفضیل په خپلې معنی سره دي اوتفضیل په اعتباردَتضیعف دَاجرسره دي،یعنی اجرپه دوه(۲)قسمه دي یوقسم استحقاقی اوبل احسانی دي،نواستحقاقی دادي چه یو(۱)عمل باندې یواجرمیلاؤشی اواحسانی دادي چه الله ﷻ په یوعمل باندې لس(۱۰)ګنااجرورکوی نودَایت مقصد دادي چه کوم کس نیکی پیش کړی نوالله ﷻ چه کوم احسانی اجرده ته ورکوی هغه ډیرغوره دي په نسبت سره اجراستحقاقی ته،

﴿ وَهُم مِّن فَزَعٍ ﴾ من فزع جارمجرورمتعلق دی په﴿ءَامِنُونَ ﴾پورې،او﴿مِّن فَزَعٍ ﴾کښ تنوین دَپاره دَتنکیردې اوهرکله چه﴿ءَامِنُون ﴾معنی نفی ده ځکه چه په معنی دَ لایخافون سره دي،او فزع نکره ده تحت النفی واقع شوه نولهذاددینه به مرادهرقسم فزع وی،لیکن مرادترینه په قیامت کښ فزع ده،لکه دَقبرنه راپاسیدلووخت کښ به فزع وی چه ذکرئې په سورة عبس ایت نمبر(۳۴، ۳۵، ۳۶)کښ دي،دغه شان دَحساب،کتاب په وخت کښ به فزع وی چه ذکرئې په سورة الجاثیه ایت نمبر(۲۸)کښ دي،اودغه شان دَمرګ دَذبحې په وخت کښ به فزع وی،نودَدې ټولوفزعاتونه به مؤمنان محفوظ وی اوفزع دَصعق ترینه مرادنه ده ځکه چه هغه به په مؤمنانوباندې هم طاری کیږی.

﴿وَمَن جَآءَ بِٱلسَّيِّئَةِ﴾ دادويم حالت دمکلفینو دي. چه پدیکښې تخویف اخروی ذکرکیږی.
مشرکانو ته اود ﴿بِٱلسَّيِّئَةِ﴾ نه مرادشرک دي، ځکه چه ماقبل ایت کښې د ﴿بِٱلْحَسَنَةِ﴾ نه مراد توحیدوو، نولهذا دلته مقابلة د السيئة نه مرادشرک دي، اودغه شان ﴿بِٱلْحَسَنَةِ﴾ او ﴿بِٱلسَّيِّئَةِ﴾ مطلق دی اوشی چه کله مطلق ذکرشی نورجع ئې فردکامل ته کیږی اوفردکامل د حسنة دپاره توحید اود سینة دپاره کفراوشرک دي.

﴿هَلْ تُجْزَوْنَ﴾ داياالتفات دي دغيبت نه خطاب ته. اوياددينه مخکښې قول مقدردي.
نوتقدیر دعبارت داسې دي چه مقولاًلهم هل تجزون" اوپدیکښې اشاره ده تخصیص ددې سزاته چه دوئی به التیامخ جهنم ته ځکه غورځولې شی چه داجزاء بمثل العمل ده. چه دوئی به دالله ﷻ دین التیاکولو نوځکه به دوئ جهنم ته الټه مخ غورځولې شی.

﴿إِنَّمَآ أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ﴾ هرکله چه ماقبل کښې دلائل عقلیه په توحیدذکرشو، بیان دمبدأ اومعاد اود مقدماتو دقیامت اوشو، اوصفت داهل قیامت دثواب اودعقاب ذکرشو، نواوس په آخیرکښې بطورثمره دلائل وحی ذکرکیږی، نودااول دلیل وحی دي، یعنی ماته حکم کړې شویدې چه څه ددې حرمت والاشهردرب عبادت اوکړم، دهغه سره بل څوک شریک جوړنه کړم، اومرادپه ﴿ٱلْبَلْدَةِ ٱلَّذِى حَرَّمَهَا﴾ سره مکه معظمه عموماًاوحرم شریف خصوصاًدې، چه الله ﷻ په هغې کښې قتل مقاتله، به چاباندې ظلم، په هغې کښې ښکارکول اودهغې واخه اوبوټی کټ کول حرام کړیدی اوتخصیص دمکې ددې وجې نه اوشوچه په ټولوبلادواوشهرونوکښې الله ﷻ ته ډیرمحبوب شهردې، اودغه شان دمشرکینوپه نظرکښې هم مکه اوحرم ډیرقابل احترام وو، نودتشریف اوتعظیم دوجې نه ددې ذکراوشو، اوددې ایت تعارض دهغه حدیث سره نیشته دي چه په هغې کښې دی: انّ ابراهیم حرم مکة وانا حرمت المدينة، چه پدې حدیث کښې تحریم دحرم اودمکې نسبت حضرت ابراهیم علیه السلام ته شویدې، اوپدې ایت کښې دتحریم نسبت الله ﷻ ته شویدې، ځکه چه اصل محرّم الله ﷻ دي اوابراهیم علیه السلام ته نسبت دمحرّم مجازاً دي پدې اعتبار سره چه حضرت ابراهیم علیه السلام مظهرددغې حکم دالله ﷻ دي.

﴿وَلَهُۥ كُلُّ شَيۡءٖۖ﴾ پدیکښې اشاره ده ماقبل دلائل عقلیو دَتوحید ته اجمالاً او مقصود پدې سره دَدې وضاحت دې چه توحیدلکه څرنګه دَوحی تقاضاده.نودغه شان دَانسانی عقل اوفطرت تقاضاهم ده اودغه شان مقصود پدې سره دفع دَتوهم هم ده چه ګویاکه څوک توهم اوکړی.چه کلې ته دومره لوئی عزت اواحترام ولې ورکړې شو؟نوجواب ترینه اوشوچه ټول څیزونه دَالله ﷻ په ملک اوتصرف کښې دی.الله ﷻ مالک حقیقی دې،اومالک ته اختیاردې چه په خپل ملک کښې څرنګه تصرف کوی.کولې شی،نوالله ﷻ حرم پاک اومکې معظمې ته په نوروځایونوباندې غوره والې ورکړیدې.

﴿وَأُمِرۡتُ أَنۡ أَكُونَ﴾ دادویم دلیل وحی دې او ﴿ٱلۡمُسۡلِمِينَ﴾ یاپه معنی لغوی سره دې نودَایت مطلب دادې چه ماته حکم کړې شویدې چه څه په ټولوامورو کښې الله ﷻ ته منفادشم. اودتوحید عملونه ښکاره کړم اویا "ٱلۡمُسۡلِمِينَ" په معنی اصطلاحی سره دې.اودآیت مقصد دادې چه ماته حکم دَمثبت علی الاسلام شویدې،یعنی چه په ملت اسلام باندې قائم.دائم پاتې شم.

﴿وَأَنۡ أَتۡلُوَاْ ٱلۡقُرۡءَانَۖ﴾ دادریم دلیل وحی دې یعنی ماته داحکم هم کړی شویدې چه څه دَقرآن په تلاوت باندې مواظبت اوکړم اومواظبت په تلاوت دَقرآن باندې شامل دې نفس تلاوت ته هم.اوتلاوت په طریقې دَدعوت الی الایمان ته هم شامل دې.

﴿فَمَنِ ٱهۡتَدَىٰ﴾ یعنی څماکارصرف دعوت اوتبلیغ دې باقی که چاڅمادعوت اومنلونوخپله فائده ئې اوکړه په ماباندې څه احسان نیشته دې اوکه چااونه منلونوخپل نقصان ئې اوکړو.نو

﴿فَإِنَّمَا يَهۡتَدِي لِنَفۡسِهِۦۖ﴾ مقصددادې چه منفعت دَاهداء ده ته راجع کیږی په بل چاباندې ئې احسان نیشته.اودامقصدنه دې چه مبلغ ته به فائده نه میلاویږی.بلکه مبلغ ته دَتبلیغ اجراوثواب خامخامیلاویږی اودَیوکس دَتبلیغ دوجې ته نیک عمل شروع کړې شی نوهغه ته هم په اجراوثواب کښې حصه رسیږی

﴿وَمَن ضَلَّ فَقُلۡ﴾ جواب دَ"من ضل"دَپاره محذوف دې چه "فوبالُ ضلاله علیه"دې،یعنی که څوک ګمراهی اختیارکړی نودګمراهئ وبال پده دې یعنی خپل نقصان ئې اوکړو،او ﴿فَقُلۡ إِنَّمَآ أَنَا۠ مِنَ

﴿ٱلۡمُنذِرِينَ﴾ په منزله دَعلت دَماقبل دَپاره دې اوقائمقام دَجواب محذوفه دې. اوداتفريع ده په اول دوه (۲) علتونو دَتوحيدباندې چه په ضمن دَاول دوه (۲) واقعاتوكښ ذكردى، چه عالم الغيب صرف اوصرف الله ﷻ دې انبياء كرام اوبل څوك نه دى اوځه هم تاسوته صرف دَعذاب نه ويره دركوم اودَدې علم راته نيشته دې چه عذاب به كله راځى.

﴿وَقُلِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ سَيُرِيكُمۡ﴾ داتفريع ده په ورستنودوه (۲) علتونوباندې چه په ضمن دَورستنودوه (۲) واقعاتو (واقعه دَصالح علیہ السلام واقعه دَلوط علیہ السلام) كښ مذكوردى، چه ټول صفات دَالوهيت دَتصرف اوكارسازئ دَالله ﷻ سره مختص دى. بل څوك كارسازنيشته دې نولهذا بركات وركوونكې هم صرف الله ﷻ دې.

﴿سَيُرِيكُمۡ ءَايَٰتِهِۦ﴾ مراددَدينه يانمونې دَعذاب دنيوى اواخروى دى، لكه په بدركښ صناديدقريش هلاكيدل. قحط سالى مسلط كيدل وغيره شو. اوياترينه مراددلائل دَتوحيددى. انفسى وى ياافاقى، ليكن اول احتمال زيات غوره دې. ﴿وَمَا رَبُّكَ بِغَٰفِلٍ﴾ پديكښ اشاره ده وعداووعيدته، چه الله ﷻ ستاسودَعملونونه، بې خبره نه دې، هرچاته به الله ﷻ دَهغه دَعمل مطابق به جزااوسزاوركوى.

**فائده**: دَدې سورة ابتداء په ترغيب الى القرآن سره شوې وه اواختتام ئې په الحمدلله سره اوشو، پديكښ تعليم دې مسلمانان ته چه دَهرعمل اوخاص طورباندې دَنيک عمل اختتام په الحمدلله اودَالله ﷻ په شكراداكولوسره كوى. ځكه چه دَنيک عمل توفيق ميلاويدل دَالله ﷻ دَطرف نه په يو انسان باندې عظيم احسان اولوئى نعمت دې.

| ركوعاتها (۹) | سورة القصص مكيّة | آياتها (۸۸) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكى دې شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۲۸) وحسب النزول (۴۹)**

سورة القصص مكى سورت دې،ترتيب قرآنى كښ اتويشتم (۲۸) نمبراوترتيب نزولى كښ نهه څلويښتم نمبرسورت دې.دَسورة النمل نه ورستواودَبنى اسرائيل نه مخكښ نازل شويدې، زمانه دَنزول ئې دورمتوسط دَمكې معظمې دې،اوبعضِ فرمائى چه زمانه دَنزول دور آخير دمكې دې.په (۸۸) آياتونو (۹) ركوعاتو (۱۴۴۱) كلماتواو (۵۸۰۰) حروفوباندې مشتمل دې

**ربط**: دَسورة القصص دَسورت النمل سره ربط اسمى دادې چه په سورت النمل كښ دَنمل يعنى دَميږى په واقعې اوقصې سره په توحيدباندې نقلى دليل ذكركړې شوېدې سورت كښ دَموسى عليه السلام قصه اوواقعات ذكركيږى چه دَدې توحيددَپاره حضرت موسى عليه السلام سخت سخت تكليفونه برداشت كړيدى،اوپه آخيركښ الله جل جلاله فتح موسى عليه السلام ته وركړه.

**ربط معنوى**: دَماقبل سره ربط معنوى دادې چه ماقبل سورت كښ اثبات دَتوحيدووپه دلائل عقليه.نقليه اووحى سره نوپدې سورت كښ تشجيع اوترغيب وركولې شوى بيان دَمسئلې توحيدته،اوتسلى وركولولې كيږى په ذكردَواقعې دَموسى عليه السلام سره چه دَ سختو تكليفونوباوجودحضرت موسى عليه السلام ثابت قدم وو اودَيوسخت جابراوظالم په مخامخ ئې دَتوحيداظهاراوكړو.

دغه شان ماقبل سورت په اخيركښ ذكرووچه سَيُرِيكُمْ آياته پدې سورت كښ دَهغې اياتونونمونې بيانيږى چه الله جل جلاله فرعون اوقارون څرنګه هلاک كړل؟؟ دغه شان ماقبل سورت كښ ذكرووچه فَمَنِ اهتدىٰ فانمايهتدى لنفسه ومن ضلّ..الخ يعنى چه څوک هدايت والا لار اختياركړى نوفائده ئې خپله ده اوګمراه شونونقصان ئې هم خپل دې،نوپدې سورت كښ دَدې مثالونه اونمونې بيانيږى چه موسى عليه السلام اودَهغه قوم چه په هدايت باندې وونوالله جل جلاله ورته فتح اوغلبه وركړه،اوفرعون اوقارون چه ګمراه وودَدنيوى لوئى لوئى اسبابوباوجودنقصان ئې اوموندلواوهلاک شولو.

**دعویٰ سورت:** دَدې سورت دعویٰ تسلي ده نبی پاک ﷺ ته او اثبات دَتوحید دې په دلائل عقلیه، نقلیه سره، او رددې دَدرې (۳) اقسامو دَشرک.

**اجمالي خلاصه:** دَدې سورت اجمالي خلاصه داده چه دا سورت مشتمل دې په درې (۳) حصو باندې، اوله حصه دَآیت نمبر (۴۳) پورې ده، پدې حصه کښې تمهید او ترغیب الی القرآن دې، اجمالي واقعه دَحضرت موسیٰ علیه السلام ده په ذکرد پنځو (۵) نعمتونو په بنی اسرائیلو باندې، او بیا تفصیلي واقعه دَحضرت موسیٰ علیه السلام ذکر کیږی چه په هغې کښې پنځه امور ذکر کیږی او بیا شپږم امر په آیت نمبر (۷۰) کښې ذکر کیږی او دا متعلق دی دَژوند دَموسیٰ علیه السلام سره، او په دې شپږ امورو باندې په اخیر دَسورت کښې نور شپږ امور متفرع دی چه هغه متعلق دی دَژوند دَنبی پاک ﷺ سره.

**دویمه حصه:** دَآیت نمبر (۴۴) نه تر آیت نمبر (۶۷) پورې ده، پدې حصه کښې صدق د رسالت دَنبی پاک ﷺ، حکمت دَارسال رسل، شکوې، جواب شکوې، دلیل نقلی دَاهل کتابو سابقینو نه، تزهید في الدنیا، زجرونه، تخویفات، او بشارتونه، ذکر کیږی.

**دریمه حصه:** دَآیت نمبر (۶۸) نه ترآخره پورې ده، پدې کښې دلائل عقلیه په توحید باندې ذکر کیږی، چه درې (۳) پکښې عقلی محضه، او دوه پکښې علی سبیل الاعتراف من الخصم دی. واقعه دَقارون ذکر کیږی دَپاره ددې چه په دنیا باندې غرور باندې ندې پکار، او په آخیر کښې شپږ امور ذکر کیږی چه متعلق دی دژوند دَنبی پاک ﷺ سره چه متفرع دی په اول شپږ امورو باندې. چه متعلق وو دَژوند دَموسیٰ علیه السلام سره. او اختتام دَسورت په توحید باندې کیږی.

**تفصیلي خلاصه حصه اول:** آیت نمبر (۲) کښې تمهید مع الترغیب دې، دَآیت نمبر (۳) نه تر ایت نمبر (۶) پورې اجمالي واقعه دَموسیٰ علیه السلام ذکر کیږی. دَآیت نمبر (۷) نه ترآیت نمبر (۴۳) پورې دَحضرت موسیٰ علیه السلام تفصیلي واقعه ذکر کیږی چه په پنځه اهم امورو باندې مشتمله ده، امر اول (۱) ﴿إِنَّ فِرْعَوْنَ عَلَا فِي الْأَرْضِ﴾ ایت نمبر: ۴ یعنی فرعون ډیر سرکش وو په محکوم قوم باندې سخت سخت ظلمونه کول، امر دوم (۲) ﴿إِنَّا رَادُّوهُ إِلَيْكِ﴾ آیت نمبر: ۷ یعنی مونږ دَموسیٰ علیه السلام مور ته دا الهام او کړو چه غم مه کوه مونږ به موسیٰ علیه السلام تا ته واپس کړو.

امر سوم (۳) ﴿وَجَاعِلُوهُ مِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ یعنی دا خوشخبری موهم ورکړه چه ده ته به مونږ نبوت هم ورکړو.

خلورم امر(۴)﴿قَالَ رَبِّ بِمَآ أَنْعَمْتَ عَلَيَّ﴾ آيت نمبر:۱۷ يعنی موسیٰ عليه السلام دَالله ﷻ سره عهداوکړوچه اې الله ﷻ تاخمالغزش معاف کړواوپه باندې دې انعام اوکړونوځه به هم دَمجرمانو اعانت نه کوم.

پنځم امر(۵)﴿وَقَالَ مُوسَىٰ رَبِّيٓ أَعْلَمُ﴾ايت نمبر:۳۷ دَقوم دَانکارپه جواب کښې موسیٰ عليه السلام اوفرمائيلو چه دَهرڅه علم الله ﷻ ته دې،هغه ښه عالم دې چه په هدايت باندې څوک دی اودَچاانجام به ښه وی.

**تفصيلي خلاصه حصه ثاني**: دآيت نمبر(۴۳)نه تر(۴۲)پورې صدق دَرسالت دَنبی پاک ﷺ ذکرکيږی.په آيت نمبر(۴۷)کښې تخويف دنيوی اوحکمت دَارسال رسل ذکرکيږی په آيت نمبر(۴۸)کښې شکویٰ اوجواب شکویٰ ده،په ايت نمبر(۴۹، ۵۰)صدق دَقرآن په ذريعې دَتحدی اوعجزدَدوئی ذکرکيږی.په ايت نمبر(۵۱)کښې ترغيب الی القرآن دې،دآيت نمبر(۵۲) نه ترآيت نمبر(۵۵)پورې دليل نقلی دَاهل کتابوسابقينونه،اودَهغوئ دَصفاتوذکردې په آيت نمبر(۵۲)کښې تسلی ده نبی پاک ﷺ ته،په ايت نمبر(۵۷)کښې دويمه شکوی سره دَجواب شکویٰ نه ذکرکيږی.په آيت نمبر(۵۸)کښې تخويف دنيوی دې.په آيت نمبر(۵۹)کښې دَيوسوال جواب دې،په ايت نمبر(۲۰ ، ۲۱)کښې ترغيب الی الايمان اوتزهيدفی الدنياذکردې،دآيت نمبر(۲۲) نه تر(۲۲)پورې تخويف اخروی اودَهغې متعلقات ذکردی.

**تفصيلي خلاصه حصه ثالثه**: دَايت نمبر(۲۸)نه دريمه حصه دَسورت شروع کيږی،نوپه ايت نمبر(۲۹، ۲۸)کښې دوه(۲)عقلی دلائل په توحيدباندې ذکرکيږی،په آيت نمبر(۷۰)کښې ثمره اونتيجه دَدغې دلائلوذکرکيږی.په ايت نمبر(۷۱، ۷۲)کښې دلائل عقليه علی سبيل الاعتراف من الخصم ذکرکيږی.په ايت نمبر(۷۳)کښې بل دليل عقلی محضه دې په ايت نمبر(۷۴، ۷۵)کښې تخويف اخروی ذکردې.دَايت نمبر(۷۲)نه تر(۸۲)پورې واقعه دَقارون ذکرکيږی دَپاره دَتخويف،اودَايت نمبر(۸۳)نه تراخيره پورې شپږامورچه متعلق دی دَژوند دَنبی پاک سره چه متفرع دی دَاول شپږواموروسره چه متعلق وودَژوند دَموسیٰ عليه السلام سره (تمت).

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| طٰسٓمٓ ① | تِلْكَ | اٰيٰتُ | الْكِتٰبِ | الْمُبِيْنِ ② | نَتْلُوْا | عَلَيْكَ | مِنْ | نَّبَاِ | |
| الله جل شانه | پوهیږي | ددی په معنی، | داآیاتونه دکتاب ښکاره | دی، لولومونږیه | تاباندی | څه حالات | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُوْسٰى | وَفِرْعَوْنَ | بِالْحَقِّ | لِقَوْمٍ | يُّؤْمِنُوْنَ ③ | |
| دموسی علیه السلام اوفرعون | په رښتیاسره | لپاره | دعبرت دهغه قوم | چه ایمان راوړي | |

﴿ طٰسٓمٓ ﴾ داحروف مقطعات دی، تفصیل ئې مکررتیرشویدې ﴿تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ ﴾

داتمهیداوترغیب دې قرآن ته او﴿الْمُبِيْنِ ﴾ دباب افعال نه دې، اوباب افعال لازمی هم استعمالیږی اومتعدی هم، نولازمی صورت کښ به ئې معنیٰ داشی چه: داآیاتونه دداسې کتاب دی چه ظاهردې یعنی نزول ئې دالله تعالیٰ د طرف نه ظاهردې، اوپه دویم صورت یعنی متعدی استعمالولوپه صورت کښ معنی به ئې داشی چه: داآیاتونه دداسې کتاب دی چه هغه وضاحت کوونکې دې یعنی دوعدوعیداوقصص وغیره وضاحت کوونکې کتاب دې، اوتوصیف د"کتاب"په "المبین" سره پدیکښ اشاره ده چه پدې سورت کښ اکثردلائل نقلیه بیانیږی.

﴿نَتْلُوْا عَلَيْكَ مِنْ نَّبَاِ ﴾دادنبی پاک ﷺ ته تسلی ورکولودپاره دموسیٰ علیه السلام اجمالی واقعه بیانیږی. چه ددې توحیدپه خاطرموسیٰ علیه السلام ته دفرعون اودهغه دقوم دطرف نه سخت سخت تکالیف رسیدلی وو، او"نتلو"په خپلې معنی یعنی"نقرأ"سره دې اواسنادمجازی دې ځکه چه اصل لوستونکې دقرآن پاک په نبی پاک ﷺ باندې حضرت جبرئیل علیه السلام دې لیکن په حکم دالله تعالیٰ سره دې نوځکه ئې دلته مجازااسنادئې الله تعالیٰ خان ته اوکړو. اویا"نتلو"په معنی د"ننزّل"او"نوحی"سره دې اومجازمرسل دې، ځکه نزول اووحی دقرآن سبب دې دقرأت دپاره

او"من" په ﴿ مِنْ نَّبَاِ﴾ کښ تبعیضیه دې اوداجمله صفت واقع شویده دموصوف محذوف دپاره چه هغه په حقیقت کښ مفعول د"نتلو"دپاره دې، نوتقدیردعبارت داسې دې "نتلوعلیک شیأ من نبأ موسیٰ"(جمل) او﴿بِالْحَقِّ ﴾جارمجرورمتعلق دی د"متلبسین"محذوف سره اوحال واقع

شویدې دفاعل د نتلو نه یعني نتلو حال کونامتلبسین بالحق ای محقین او ﴿لِقَوۡمٍ يُؤۡمِنُونَ﴾ متعلق دې د نتلو سره او لام تعليليه دې. نود ایت مقصد دادې چه مونږ تا ته واقعه دموسی علیه السلام اودفرعون صحیح صحیح بیانوو. دې دپاره چه مؤمنان تنه عبرت واخلی. اوهرکله چه ددې واقعاتواوقصونه فائده مؤمنان اخلی اوهغوئ ورنه عبرت حاصلوی نوددې وجې نه تخصيص دمؤمنانواوشو. کنې واقعه دمؤمنانواوغیرمؤمنانوټولودپاره ذکرکیږی

| |
|---|
| إِنَّ فِرۡعَوۡنَ عَلَا فِي الۡأَرۡضِ وَجَعَلَ أَهۡلَهَا شِيَعًا يَّسۡتَضۡعِفُ طَآئِفَةً |
| بی شکه فرعون تکبرکړې وؤپه زمکه کښ اوګرځولی ئی وؤاهل دهغې ډلې ډلې چه ضعیفه کړې ئی وه یوه ډله |
| مِّنۡهُمۡ يُذَبِّحُ أَبۡنَآءَهُمۡ وَيَسۡتَحۡيِۦ نِسَآءَهُمۡ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ مِنَ الۡمُفۡسِدِينَ ﴿٤﴾ |
| ددوئ نه، ذبح کول به یې ځامن ددوئ اوژوندئی به ئی پریخودلی ښځی ددوئ. بیشکه هغه وؤدفسادکونکونه |

﴿إِنَّ فِرۡعَوۡنَ عَلَا فِي الۡأَرۡضِ﴾ پدې ایت کښ دفرعون لوئ لوئی جرائم ذکرکیږی دا امراول دې چه په اخیرکښ پدې باندې تفریع ذکرکیږی په تلك الدار الآخرة الخ دا داول جرم ذکردې چه فرعون په زمکه دمصرکښ لوئی تکبراختیارکړې ووچه دخدائی دعویٰ ئې کړې وه. ﴿وَجَعَلَ أَهۡلَهَا شِيَعًا﴾ دادویم جرم ذکردې اوددې متعددمقصدونه کیدې شی (۱) یو مقصد دادې چه فرعون اهل مصرپه مختلفوجماعتونوکښ تقسیم کړی وو، اودهغوئ نه به ئې سخت سخت خدمتونه اغستلو، دچانه به ئې تعمیرات جوړولوکاراغستلو، دچانه به ئې دزمینداری خدمت اغستلو، چاته به ئې دکوهیانوجوړولوکارحواله کړې وو، اوچابه چه کارنه کولوپه هغه باندې به جزیه اوټیکس لګولو،

(۲) دویم مقصددادې چه فرعون اهل مصرپه مختلف طبقاتوباندې تقسیم کړی وو، یوه طبقه ئې عالی ګرځولې وه چه قبطیان وواودویمه طبقه ئې پسته اوذلیله ګرځولې وه، چه بنی اسرائیل وو، اوډیرملکونوکښ نن صبادا طبقاتی تقسیم هم دفرعون په نقش قدم باندې تلل دی (۳) دریم مقصددادې چه فرعون دخپل اقتداراوحکومت ته دوام ورکولودپاره ئې قوم اواهل مصرپه مختلف طبقاتوکښ تقسیم کړی وو، اوداسې تقسیم ئې کړې ووچه دقوم په

خپل مینځ کښې سخت ضد او تعصب وو او دَفرعون دَظلم خلاف متحد کیدلو ته تیارنوو. لکه څرنګه چه دَانګریزانو او دَهغوئی دَحواریانو دَحکومت چلولو طرز عمل دې، دَانګریزانو پالیسی داده چه قوم تقسیم کړئی او حکومت پرې او کړئی.

﴿يَسْتَضْعِفُ طَآئِفَةً﴾ دا دَدریم جرم ذکر دې، او مراد دَطائفې مستضعفې نه بنی اسرائیل دی، چه فرعون دوئی بالکل بې وسه کړی وو، او تر ډیروخته پورې په سختو سختو مصیبتونو کښې ګرفتار وو. ﴿يُذَبِّحُ أَبْنَآءَهُمْ﴾ دا جمله یا بدل واقع شویده دَماقبل نه او یا حال دې دَضمیر دَ ﴿يَسْتَضْعِفُ﴾ نه او تفسیر دَ ﴿يَسْتَضْعِفُ﴾ دې، چه فرعون به بنی اسرائیلو باندې سخت سخت ظلمونه داسې کولو چه دَبنی اسرائیلو ماشومان هلکان به ئې قتل کولو، او جینکۍ به ئې دَخپل خدمت دَپاره ژوندئی پریخودلې.

﴿إِنَّهُۥ كَانَ مِنَ ٱلْمُفْسِدِينَ﴾ پدیکښې دَفرعون نورو جرمونو ته اشاره ده لکه کفر، شرک، کول شو، خلک دَموسی علیہ السلام دَاتباع نه منع کول شو وغیره.

| |
|---|
| وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى ٱلَّذِينَ ٱسْتُضْعِفُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً |
| او اغوختل مونږ دا چه احسان او کړو په هغو چه ضعیفه کړې شوی وو په زمکه کښې چې واو ګرځوو هغوئ پیشوایان |
| وَنَجْعَلَهُمُ ٱلْوَٰرِثِينَ ۝ وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ وَنُرِىَ |
| او او ګرځوو هغوئ وارثان (دَحکومت دَفرعون) او قوت ورکړودوئ ته په زمکه کښې او چه او ښایو |
| فِرْعَوْنَ وَهَٰمَٰنَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَحْذَرُونَ ۝٦ |
| فرعون ته او هامان ته او لښکرو دَوئ ته دَ بنی اسرائیلونه هغه څه دکوم نه چې دوئ یره کوله . |

﴿وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى ٱلَّذِينَ﴾ پدې ایاتونو کښې ذکر دَپنځو (۵) دینی او دنیوی نعمتونو دې چه الله تعالیٰ په بنی اسرائیلو باندې کړی وو، پدې آیت کښې دَدرې (۳) انعاماتو ذکر دې اول (۱) دا چه دوئی ته دَفرعون دَغلامۍ او دَظلم نه نجات ورکړو، دویم (۲) دا چه دَدین او دنیا مقتدی او پیشواګان ئې جوړ کړل. دریم (۳) دا چه دَمصر بادشاهی او حکمرانی هم ورته ورکړه.

﴿وَنُمَكِّنَ لَهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ﴾ پدې ایت کښې دوه مزید انعامات ذکرکیږي، (۴) چه دَمصرنه علاوه دَنورو ملکونو بادشاهی هم ورته ورکړه، لکه سورة المائده ایت نمبر (۲۰) کښې دی.

﴿وَنُرِيَ فِرۡعَوۡنَ﴾ داپنځم (۵) انعام ذکردې، چه دَدوئی سخت ترین دښمن هلاک کړي شو اودَهغه بادشاهی په هغې طریقې سره ختم شوه لکه څرنګه هغوئی دَځان دَپاره دَبنی اسرائیلونه خطره محسوسه کوله.

دَ"حذر" معنی ده دَضرراونقصان نه بچ کیدل، فرعون دَبنی اسرائیلونه داخطره محسوس کوله چه خمابادشاهی به دَدوئی دَلاسه ختمیږي، وجه داوه چه فرعون خوب لیدلې وو، چه دَبیت المقدس نه اورراووچت شی چه دَټول مصرنه چاپیره شی، دَقبطیانوکورونه اوسوزوی اودَبنی اسرائیلوکورونه، ورنه، محفوظ پاتې شی، فرعون دکاهنانونه ددې خوب تعبیرتپوس اوکړو نوکاهنانوورته اونیلوچه په بنی اسرائیلوکښې به یوماشوم پیداکیږي چه دَهغه دَوجې نه به ستاحکومت اودَقبطیانوتسلط ختم شی، اویاداوجه وه چه فرعون دَمخکښنوانبیاء کرامو دَاقوالونه پته لګولې وه چه په بنی اسرائیلوکښې به یوپیغمبرپیداکیږي چه دَهغې دَوجې نه به بنی اسرائیلوته دَقبطیانودَظلم نه نجات میلاؤشی اودَهغوئی حکومت به ختم شی اودَبنی اسرائیلوتسلط اوغلبه به قائم شی، اوکاهنانوورته خبرورکړوچه دَهغه ماشوم دَپیداکیدلو زمانه داده.

اویاداوجه وه چه بنی اسرائیلوپه خپل مینځ کښې دامذاکره کوله چه داهغه دوردې چه الله ﷻ به په مونږ کښې یوماشوم بچې پیداکړي اوهغه ته به نبوت ورکړي اودَهغه دَوجې نه به الله ﷻ فرعون هلاک کړي اودَقبطیانودَظلم نه به مونږته نجات میلاؤشی، نوبهرحال: فرعون، هامان اوقبطیانوته داخطره محسوسه شوه چه دَبنی اسرائیلودَماشوم دَوجې نه زمونږحکومت ختمیدووالادې نودَدې دَپاره فرعون دَبنی اسرائیلوپه زرګاؤخنې روایاتوکښې دی چه دوه اویازره (۷۲۰۰۰) ماشومان فرعون قتل کړي وو. خوالله ﷻ خپله وعده پوره کړه اوفرعون ته ئې اوخودله اودَهغه حکمرانی ئې دَموسیٰ علیه السلام په ذریعې سره ختمه کړه.

| | |
|---|---|
| وَاَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اُمِّ مُوْسٰٓى اَنْ اَرْضِعِيْهِ ۚ فَاِذَا خِفْتِ عَلَيْهِ فَاَلْقِيْهِ | |
| [1] او الهام اوکړو مونږ مورد موسیٰ علیه السلام ته چه تې ورکوه موسیٰ علیه السلام ته پس هرکله چه نه اویریږې په ده نو اوئی غورځوه | |
| فِى الْيَمِّ وَلَا تَخَافِىْ وَلَا تَحْزَنِىْ ۚ اِنَّا رَآدُّوْهُ | |
| په دریاب کښ اومه یریږه(دده په هلاکت)اومه خفه کیږه(په جدائی دده) بیشکه مونږ واپس کونکی یو دده | |
| اِلَيْكِ وَجَاعِلُوْهُ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ۞ فَالْتَقَطَهٗٓ اٰلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُوْنَ لَهُمْ | |
| تانه اوګرځونکی یو دده لره د رسولانونه پس نورا اوچت کړو موسیٰ آل دفرعون چه شی موسیٰ علیه السلام ددوئ | |
| عَدُوًّا وَّحَزَنًا ۗ اِنَّ فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ وَجُنُوْدَهُمَا كَانُوْا خٰطِـِٔيْنَ ﴿۸﴾ | |
| دشمن اوباعث دغم بی شکه فرعون اوهامان اولښکری ددوئ په غلطه وو | |

﴿وَاَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اُمِّ مُوْسٰٓى﴾ ددې ایت نه دحضرت موسیٰ علیه السلام واقعه تفصیلاً ذکرکیږی اوداتفصیلی واقعه مشتمله ده په پنځه(۵)مقاماتوباندې،اول مقام ترایت نمبر(۱۴)پورې دې، پدیکښ دموسیٰ علیه السلام په موریاندې دتکلیفونو،بیادخوشحال،بشارتونو اوهغې ته ددوه(۲) امرونواودوه(۲)منهیاتوذکردې خلاصه داده چه حضرت موسیٰ علیه السلام ادپیدائش په زمانه کښ فرعون دبنی اسرائیلوپه کورونوکښ هرحامله زنانه باندې یوه داینه مقررکړې وه چه دهغې زنانه بچې پیداشونوکه هغه به جینۍ وه نوژوندئی به ئې پریخودله اوکه نارینه به وونومورته به ئې نه خودلوبلکه فوراًبه ئې قتل کړو،دموسیٰ علیه السلام پیدائش اوشو،الله جل جلاله دهغې مقررې داینې په زړه کښ ورسره محبت پیداکړوهغې ورته څه اونه وئیلوبیاموریه دریاب کښ اوغورځولو،دفرعون کورته اودهغه لاس ته ورسیدلوالله جل جلاله دفرعون زړه دموسیٰ علیه السلام دپاره نرم کړو،اوبیاالله جل جلاله موسیٰ علیه السلام دخپلې مورغیږې ته واپس کړو.

﴿وَاَوْحَيْنَآ﴾ددینه مخکښ عبارت محذوف دې،تقدیردعبارت داسې دې وضعت موسی امه فی زمن الذبح وخاف علیه واوحینا الخ او وحی نه دلته معنیٰ عرفی اوشرعی نده مرادبلکه

[1] دراقعی اول مقام

دلته دَوحی نه مرادمعنیٰ لغوی ده چه "القاء الشئ في القلب"ته ونیلې کیږی. اوداالقاء کله کله دَالله ﷻ دَطرف نه بالذات وی. اوکله کله په واسطې دَفرشتې سره وی، نوظاهردَایت نه دامعلومیږی چه داالقاء دَالله ﷻ دَطرف نه په زړه دَموردَموسیٰ علیه السلام کښې بالذات وه. اودادَهغې په حق کښې الهام وو. اوبعض مفسرین فرمائی چه دې ته حضرت جبرئیل علیه السلام مخامخ راغلې ووأو دامذکوره خبرې ئې ورته کړې وې اوحضرت جبرئیل علیه السلام یابله فرشته چاته مخامخ راتلل اوخبروکولوسره څوک پیغمبرنه جوړیږی لکه صحیح حدیث کښې دی چه فرشته اقرع، ابرص اواعمیٰ ته راغلې وه اوهغوئی سره ئې خبرې کړې وې، نولهذابالاجماع موردَموسیٰ علیه السلام پیغمبره نوه، اودَموسیٰ علیه السلام دَموریه نوم کښې اقوال متعدددی، بعضِ فرمائی چه نوم دَدې لحیانة بنت یصهربن لاوی بن یعقوب علیه السلام وو، بعضِ فرمائی چه یوخابذبنت یصهروو، بعضِ فرمائی رخاء یارخت نوم ئې وو.

﴿ أَنْ أَرْضِعِيهِ ﴾ "ان"تفسیریه دې اودادوه(۲)امرونه دی دَموسیٰ مورته. نواول امرداوو چې خپل بچی ته پئ ورکوه، اومرادپدې حکم رضاعت یعنی دَپیوورکولوحکم سره ترهغه وخته پورې پئ ورکول دی چه اخفاء ئې ممکنه وی، اوچه کله امکان دَاخفاء کمزورې شی نوبیاورته حکم په دریائې نیل کښې دَغورځولووو. نولهذاداعتراض نه واردیږی چه "ارضاع" یعنی پئ ورکول خپل بچې ته یوطبعی امردې اوپه طبعی امورو کښې حکم بلافائده وی، نولهذاداحکم هم بلافائده دې

﴿فَإِذَا خِفْتِ عَلَيْهِ ﴾دادویم امردې، یعنی چه کله ته داخطره محسوسه کړې چه اوس به فرعون ته پته اولګی اودې به قتل کړی نوپس دریاب کښې ئې اوغورځوه اودَ﴿ٱلْيَمِّ ﴾نه مراد دریائې نیل دې اودَموسیٰ علیه السلام مورڅومره مده موسیٰ علیه السلام پټ ساتلې وو؟؟ پدیکښې تاریخی روایات متعدددی بعضِ روایاتو کښې اته(۸)میاشتې بعضِ روایاتو کښې څلور(۴)میاشتې اوپه بعضو کښې درې(۳)میاشتې راغلې دی.

﴿وَلَا تَخَافِي وَلَا تَحْزَنِيٓ ﴾ دادوه نهی دی موردَموسیٰ علیه السلام نه. چه داویره مه کوه چه دې به په دې دریاب کښې ډوب شی. اوضائع به شی اونه دده په جدائې باندې غمژنه کیږه. اومراد دَدی خوف اوحزن نه عقلی اواختیاری دې اوطبعی ندې مراد﴿إِنَّا رَآدُّوهُ إِلَيْكِ﴾ . دا دوه بشارتونه دي

اول داچې موسی علیه السلام به تاته صحیح سالم واپس کوؤ اوبل داچه ﴿وَجَاعِلُوهُ مِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ یعنی ده ته به مونږ نبوت هم ورکوو، اودادریم(۳) امردې دَ هغه پنځه امورونه چه دَسورت په آخیرکښې پدې باندې تفریع کیږی چه وَماکنتَ ترجوا ان یلقیٰ الیکَ الکتٰب.

**فائده**: پدې آیت کښې دوه(۲) امرونه، دوه(۲) نهی اودوه(۲) بشارتونه جمع شوی دی دادَقرآن دَعظیم صاحت اوبلاغت نه دې. قرطبی رحمه الله وغیره حضراتوواقعه لیکلې ده چه اصمعی دَیوې زنانه نه یرفصیح کلام واوریدلوچه هغې ونیلو:

استغفرالله لذنبی کله قبلت انساناًبغیرحلـــــه

مثل الغزال ناعمًافی دله فانتصف اللیل ولم اصله

یعنی څه دَالله تعالیٰ نه دَخپلوټولوګناهونومعافی غوارم چه مایوانسان په ناجائزې طریقې سره قبول کړو. دَموسیٰ پشان دَهغه سره مې نازونخرې کولې، نیمه شپه شوه اومامونځ اونکړو، نواصمعی دَدې په فصاحت باندې تعجب اوکړو، اواونیلوچه قاتلکِ الله ماافصحک. یعنی څه عجیب فصیح کلام دې نوهغې زنانه ورته اوئیلوچه څماداکلام به څه فصیح وی، تادَالله تعالیٰ داکلام اوایت ندې اوریدلې چه وَاوحیناالی ام موسیٰ الخ چه داپه فصاحت کښې انتهاء ته رسیدلې دې، چه پدیکښې دوه(۲) امرونه دوه(۲) نهی اودوه(۲) بشارتونه جمع شویدی.

﴿فَالْتَقَطَهُ آلُ فِرْعَوْنَ﴾ فاء فصیحه ده دَدینه مخکښې معطوف علیه عبارت محذوف دې تقدیردَعبارت داسې دې ففعلت ماامرت بهِ من ارضاعِه والقاه فی الیم لماخافت علیه یعنی دَموسیٰ علیه السلام موردَالله تعالیٰ دَحکم مطابق ده ته پیٔ ورکولې اوچه کله ئې خطره محسوسه کړه نودې ئې دریاب ته اوغورځولو، اوداخوف دَموسیٰ علیه السلام مورهغه وخت محسوس کړوچه کله کاهنانوفرعون ته اوئیلوچه زمونږدَعلم موافق هغه بچې په بنی اسرائیلوکښې پیداشویدې، نوفرعون تالاشی نوره سخته کړه نودَموسیٰ علیه السلام موردَدې خطرې دَوجې نه اته(۸) یا خلور(۴) یادرې(۳) میاشتې ورستودریائې نیل کښې اوغورځولو، دریائې نیل چه دَبنی اسرائیلو دکورونوسره تیرشوې وودَهغې نه یونهردَفرعون محل ته جداشوې وو، نودَ موسی علیه السلام مورچه کله تابوت دریاب کښې اوغورځولونوتابوت دَالله تعالیٰ په حکم سره دَفرعون دَمحل والانهرباندې روان شو، په دغه ورځ فرعون دَخپل محل سره دَدریائې نیل په غاړه دربارلګولې

وو،نوځرنګه چه تابوت محل ته اورسيدلونوخادمانواونوکرانواونيولو، اوهغه ئې دفرعون،بي بي حضرت آسيه ته پيش کړو،هغې چه کولاؤکړونوپکښې ماشوم بچې وو،هغې فرعون ته پيش کړو،مزيدواقعه راځي.'التقاط'وئيلې کيږي حصول اووجدان دڅيزته بغيردطلب اودقصدنه،نودايت مطلب دادې چه پدې تابوت پسې دوئی ګرځيدلونه،بلکه بغيردطلب نه الله ﷻ دوئی ته اورسولواودال فرعون نه مرادخادمان دفرعون دی چه تابوت ئې اوچت کړې وو،باقي دتابوت کيفيت وغيره تفصيل په سورة طٰه کښې تيرشويدی.

﴿ لِيَكُونَ لَهُمْ عَدُوًّا ﴾غوره قول دادې چه'لام'په'ليکون'کښې دعاقبت دپاره دې،يعنی انجام کاراومآل ددې التقاط به داشی چه داماشوم به ددوئی دپاره دښمن اوددوئی دغم ذريعه اوګرځی،لکه پدې قول دشاعرکښې دی:

له منادِی ينادی کل يوم لدواللموت وابنواللخراب

نو'للموت'او'للخراب'کښې'لام'دعاقبت دپاره دی،اګرچه توالدځوک دې دپاره نه کوی چه مړه شی،ليکن دمرګ دپاره ابتدائی مقدمه پيدائش دې،اوانجام کاراومأل دتوالد،موت دې نه ووددې وجه لام العاقبت پرې داخل شو،نودغه شان دلته هم اګرچه دوئي داتابوت دې دپاره نوورااوچت کړې چه دې زمونږدښمن شی اومونږته دده دوجې نه پريشانی جوړه شی،ليکن انجام کارئې دښمنی اوددوئې پريشانی وه نوځکه پرې لام العاقبت داخل شو.

﴿كَانُوا خَٰطِـِٔينَ ﴾'خطا'نه مرادخطاءفی الاعتقادوالافعال دی،چه ددوئی عقيده خرابه وه،اوکارونه ئې دظلم وو،نوداګوياچه په منزله دعلت دې دماقبل دپاره چه موسیٰ عليه السلام ددوئی دپاره دشمن اوذريعه دپريشانئ به ځکه اوګرځی چه ددوئی عقيده هم کفريه وه اوافعال ئې دظلم والاوو،حالانکه دوئی دموسیٰ عليه السلام پرورش اوساتنه دې دپاره کوله چه دې به زمونږدپاره دسترګويخوالې وی اومونږته به فائده راکړی،خوچونکه عقيده ئې باطله اواعمال ئې فاسدوونوځکه موسیٰ عليه السلام دوئی دپاره دسترګويخوالې په ځائی دتکليف ذريعه جوړشو.

اويادَ﴿خَٰطِـِٔينَ﴾نه مرادخطاء ده په تربيت دموسیٰ عليه السلام کښې،اوداجمله معترضه ده دتاکيددماقبل دپاره راوړې شوه،ځکه چه دماقبل نه هم دامعلومه شوه چه مقصوددَدې

النقاط نه،دَدوئی عدوان اوحزن نه وؤ،اودوئی دَموسیٰ علیہ السلام تربیت دې دَپاره نه کولوچه دې زمونږدَپاره ذریعه دَعدوان اودَحزن اوګرځی بلکه دَدوئی مقصدداووچه دې به زمونږدَپاره قرة عين وی،ليکن دوئی خطاء شواوالتقاط انجام عدوان اوحزن شونولهذادوئی خطاشودا مضمون دَماقبل نه معلوم شونوپدې جملې﴿خٰطِئِیۡنَ کَانُوۡا﴾سره دَدغې مضمون تاکيد اوشو،اوحضرت شيخ رحمہ اللہ به فرمائيلوچه دَخٰطِئِیۡنَ نه مراد بيوقوف دی چه دوئی لوئی بيوقوفه ووچه دَالله تعالیٰ دَقدرت سرئ بې تکروهلو.

| |
|---|
| وَقَالَتِ امۡرَاَتُ فِرۡعَوۡنَ قُرَّتُ عَیۡنٍ لِّیۡ وَلَکَ ؕ لَا تَقۡتُلُوۡهُ ٭ۖ عَسٰۤی |
| اواوئيل ښځې دَفرعون چه يخوالې دَسترګودې «داهلک» ماله اوتاله،مه قتلوه دې کيديشی |
| اَنۡ یَّنۡفَعَنَاۤ اَوۡ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا وَّهُمۡ لَا یَشۡعُرُوۡنَ ⑨ وَاَصۡبَحَ |
| چه نفع به ورسوی مونږته يابه اونيسوده لره ځوې حال داچه دوئ نه پوهيدل چه انجام به څه وی اوشولو |
| فُؤَادُ اُمِّ مُوۡسٰی فٰرِغًا ؕ اِنۡ کَادَتۡ لَتُبۡدِیۡ |
| زړه دَموردَموسیٰ علیہ السلام خالی دَهرڅه نه بغيردَغم دَموسیٰ نه بيشکه قريبه وه چه اظهارئې کړې وې به |
| بِهٖ لَوۡلَاۤ اَنۡ رَّبَطۡنَا عَلٰی قَلۡبِهَا لِتَکُوۡنَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ ⑩ |
| موسیٰ چه دامې ځوې دې کچرته نه وې کلک کړې مونږزړه ددې په صبرسره لپاره ددې چه شی داددااعتماد کونکونه زمونږ په وعدو |

﴿وَقَالَتِ امۡرَاَتُ فِرۡعَوۡنَ﴾دَفرعون دَبی بی نوم آسيه بنت مزاحم بن عبيدبن الريان بن وليدوو،اوپه بعضِ رواياتوکښ دی چه دادَنسل دَبنی اسرائيلونه وه،هرکله چه خادمانوصندوق اوتابوت اونيولونودَفرعون بی بی،اسيه ته ئې پيش کړو،نوهغې چه تابوت کولاؤکړونوپکښ خائسته ماشوم وو،حضرت آسيه چه کله اوکتلونوډيرمحبت ئې ورسره پيداشو،اوفرعون ته ئې پيش کړو،فرعون چه کله موسیٰ علیہ السلام اوکتلونوسخت غصه اوشواودَده په زړه کښ الله تعالیٰ داخبره واچوله چه داهم هغه بچې دې چه دَده دَلاسه به ځماحکومت ختميږی،اودَده دَذبحه کولوحکم ئې اوکړو،نوپه دغه وخت کښ خپلې بی بی

آسيه ورته مشوره ورکړه چه دې مه قتل کوه،دې به څما او ستا دسترګو يخوالې وی او ممکنه ده چه دده په ذريعې سره مونږته څه فائده حاصله شی اويا به مونږده لره خپل بچې جوړکړواودفرعون دخپل بی بی سره ډيرمحبت وو،نوځکه ئې دهغې مشوره قبول کړه اوالله ﷻ دفرعون زړه هم دموسیٰ علیه السلام دپاره نرم کړو،اوپه روايت دنسائی وغيره کښ دی چه فرعون خودآسيه سفارش قبول کړوخودائې ورته اوئيلوچه لکِ لالِی چه ستادسترګو يخوالې دې اوځماندې،کچرې دې بدبخته داسې وئيلې وې چه لِی کَمَاهُولکِ چه لکه څرنګه ستادسترګويخوالې دې دغه شان څماهم دې نوالله ﷻ به ده ته هم ايمان نصيب کړې وې.

﴿عَسَىٰٓ أَن يَنفَعَنَآ﴾ دنفع اميدئې يادذې وجې نه اوکړوچه آسيې رضي الله عنها دحضرت موسیٰ علیه السلام په تنه دی کښ نوراوليدلونوداپوهه شوه چه داعام بچې ندې،اوبعض مفسرين فرمائی چه دفرعون يوه لوروه په هغې باندې دبرص مرض وونوآسيې رضي الله عنها دموسیٰ علیه السلام لاړې(توکی)په هغې باندې اولګولې نوهغه ټهيک شوه،نوآسيه پوهه شوه چه دابچې ډيرنفع مند دې.

﴿أَوْ نَتَّخِذَهُۥ وَلَدًا﴾ ظاهره داده چه"او"دمانعة الخلودپاره دې،ځکه چه نفع منديدل داتخاذالولدسره جمع کيدې شی،يا"او"دبل ترقی په معنٰی سره دې،ځکه چه منفعت دولدزيات دې دمنفعت دغيرولدنه اودفرعون ښځې دموسیٰ علیه السلام دمتبنٰی جوړولوخواهش اظهارځکه اوکړوچه ددې نارينه اولادنوو،اوبعض مفسرين فرمائی چه دفرعون بالکل اولادنه ووځکه چه دې نامردوو.

﴿وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ داياکلام دالله ﷻ دې اوحال دې د"آل فرعون"نه چه دافاعل دالتقاط دپاره وو،نودآيت مطلب دادې چه فرعونيانوموسیٰ علیه السلام رااوچت کړواودهغه سره ئې محبت شروع کړوخوحال داووچه دوئي ته پته نه وه چه زمونږدحکومت تباهی به دده دلاسه وی،اويادا کلام دآسيې دې چه فرعون ته ئې مشوره ورکړه چه دې به مونږځان لره بچې جوړکړواودخلکو نه به ئې پټ اوساتو،عام خلک به داوائی چه دادددوئی خپل بچې دې

﴿وَأَصۡبَحَ فُؤَادُ أُمِّ مُوسَىٰ فَٰرِغًا ﴾ فارغ په معنی دَخالی سره دې، ای خالیًا من کل شئ غیر ذکر موسی علیه السلام، یعنی دَموسی علیه السلام مور چه کله موسی علیه السلام په تابوت کښې بند کړو او په دریاب کښې واچولو نو پدغه وخت کښې دَموسی علیه السلام دَمور زړه دَدنیا دَټولو فکرونو نه خالی وو سیوا دَموسی علیه السلام دَیاد او دَفکرنه، او دَشدت غم دَوجې نه قریبه وه چه دی راز فاش کړې وې خو الله تعالیٰ ورته ربط قلبی نصیب کړو او صبر ئې ورکړو او زمخشری فرمائی چه فارغاً په معنی دَصفر العقل سره دې، یعنی دَعقل تللو او ختمیدلو ته وئیلې کیږی، نو دَایت مقصد دادې چه موسی علیه السلام مور ته چه کله پته اولګیده چه موسی علیه السلام دَدریاب چپو دَفرعون کورته اورسولو نو عقل ئې بالکل ختم شو او دَبدحواسئ دَوجې نه قریبه وه چه رازئې هم فاش کړې وې، ځکه چه دَبچی محبت ډیر زیات وو، اګرچه دَدې یقین دَالله تعالیٰ په وعدې باندې هم وو، خو کله حب طبعی په عقلی باندې غالب شی، نو دلته هم داسې شوی وو. لیکن الله تعالیٰ دَدې زړه کلک کړو، او بعض فرمائی چه فارغاً معنی ده خالیًا عن الصبر، او دَایت مقصد دادې چه کله دَموسی علیه السلام مور ته داپته اولګیده چه موسی علیه السلام صحیح، سالم دَفرعون کورته اورسیدلو او فرعون دَقتل کولو په ځائی دَهغه سره محبت شروع کړو نو دَموسی علیه السلام دَمور زړه پدې وخت کښې دَډیرې خوشحالئ دَوجې نه، دَصبرنه خالی شو، او قریبه وه چه خلکوته ئې وئیلې وې چه داځمابچې دې.

﴿لَوۡلَآ أَن رَّبَطۡنَا ﴾ جواب دَدې لولا محذوف دې، چه "لابَدَتُه" دې او پدې باندې دلالت "ان كادت لتبدی" کوی ﴿لِتَكُونَ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ داعلت دې اوثمره دَربط قلب ده، یعنی مونږ دَدې زړه پدې مصیبت کښې کلک کړودې دَپاره چه دَدې یقین زمونږ په وعدو باندې نور هم زیات او قوی شی، نو دَمن المؤمنین نه مراد هغه څوک دی چه دَتکلیف په وخت کښې صبر او کړی او ایمان ئې نور هم کلک او مضبوط شی، او یا تنه مراد هغه څوک دی چه دَتکلیف په وخت کښې په ایمان باندې ثابت قدم پاتې شی او مطلق مؤمنان ترینه نه دی مراد ځکه چه دَموسی علیه السلام مور دَاول نه مؤمنه وه.

| |
|---|
| وَقَالَتْ لِاُخْتِهٖ قُصِّيْهِ ۡ فَبَصُرَتْ بِهٖ عَنْ جُنُبٍ وَّهُمْ |
| اواوئیل موردَموسیٰ علیه السلام خوردَموسیٰ علیه السلام ته چه پړه پسي څه نو هغې کتل موسیٰ ته دلرې نه اودوئ(فرعونیان) |
| لَا يَشْعُرُوْنَ ۝١١ وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ الْمَرَاضِعَ مِنْ قَبْلُ |
| نه پوهیدل(چه دائې خورده)اومنع کړې وؤمونږپه موسیٰ علیه السلام باندې دَپیئو ورنکونښځو مخکښ(دَخور راتلونه) |
| فَقَالَتْ هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰٓى اَهْلِ بَيْتٍ يَّكْفُلُوْنَهٗ لَكُمْ وَهُمْ لَهٗ |
| نواووئیل خورئې آیاځه تاسوته اوښایم دَاسې یوکورروالاچه تربیت اوکړی دَده ستاسولپاره اوهغوئ به ده لره |
| نٰصِحُوْنَ ۝١٢ فَرَدَدْنٰهُ اِلٰٓى اُمِّهٖ كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ |
| خیرخواه وی‌نو واپس کړومونږموسیٰ علیه السلام خپلې مورته چه یخې شي سترګې دَدې اوخفه نشي |
| وَلِتَعْلَمَ اَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝١٣ |
| اوچه پوهه شي چه بیشکه وعده دَالله جل جلاله حقه ده لیکن اکثردَدوئ نه نه پوهیږي |

﴿وَقَالَتْ لِاُخْتِهٖ﴾ دَتفتیش حال دَپاره دَموسیٰ علیه السلام مورخپله لوراودَموسیٰ علیه السلام خورئې اولیږله چه نوم دَهغې مریم بنت عمران وو، اوبعض فرمائي چه کلثوم یاکلثمه بنت عمران وواودائې دي دَپاره اولیږله چه پته اولګوی چه مخکښ نورځه کیږي، دَموسیٰ علیه السلام خوردیرعقلمنده اوهوښیاره وه هغې ځان بالکل ناخبره اوبې غرضه کړواودَلرې لرې نه ئې حالات معلومولوچه څوک پرې شک اونکړي، نودَ﴿عَنْ جُنُبٍ﴾معنی ده "عن بعید"﴿وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ﴾یعنی فرعونیانوته داپته نه وه چه داجینئ دَده خورده اودَده دَحال معلومولودَپاره راغلیده.

﴿وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ الْمَرَاضِعَ﴾پدې ایت کښ دَموسیٰ علیه السلام خپلې مورته دَواپس کیدلو ذکردې، اوتحریم کنایه ده دَ"منع"نه اوتحریم شرعی نه دې مرادځکه چه داعمردَتحریم شرعی دَتکلیف نه وو، او"مراضع"جمع دَ"مرضع"ده اوهرکله چه عمل دَارضاع خاص دې په زنانه پورې،

نوددې وجې نه دااسم دمؤنث دپاره بغير د تاء نه استعماليږى اومراد پدې سره هغه مراضع دى چه په هغه وخت كښ هلته حاضرې وې او ﴿مِن قَبْلُ﴾ مضاف اليه محذوف دې. تقدير د عبارت داسې دې من قبل قصها اثره يعنى دموسى عليه السلام دخور راتللونه مخكښ مونږپه موسى عليه السلام باندې دزنانو پئ ښنكل منع كړى وونودفرعون بى بى ډيركوشش اوكړو. ومختلف مراضع ئې رااوغوختلې خوموسى عليه السلام دچاپئ هم نه ښنكل، دهغې دوجې نه آسيه رضي الله عنها ډيره پريشانه وه ﴿فَقَالَتْ هَلْ أَدُلُّكُمْ﴾ دموسى عليه السلام خور (مريم ياكلثوم) چه كله دامنظر اوكتلو چه زنانه راخى اوموسى عليه السلام دچاپئ هم نه ښنكى اوفرعون اودهغه بى بى پريشان دى. نوجرأت ئې اوكړو اونزدې راغله اوهلته موجودخلكوته ئې اوئيلوچه تاسوته داسې كوراوزنانه اونه ښايم چه داماشوم به دهغې زنانه پئ هم اوڅكى اوهغه كورنئ به دده صحيح تربيت هم اوكړى. دده به ډيرخواه اوده سره به محبت كونكى وى.

اومفسرينوليكلى دې چه كله دموسى عليه السلام خوردااوئيلوچه وهم له نصحون نوپه مجمع كښ هامان هم ناست وونوهغه فوراً اعتراض اوكړوچه ستادې خبرې نه، داسې معلوميږى چه ته ددې ماشوم كورنئ والاپيژنې خوزمونږنه ئې پټه وې، نودې ورته په جواب كښ اوئيلوچه ځماپه كلام كښ له نه مراددابچې ندې بلكه بادشاه ورنه مراددې چه هغه كوروالادبادشاه دپاره ډيرخيرخواه دى اودده تابعداردى، اوبعض فرمائى دې ورته جواب كښ اوئيلوچه داخبره مادبادشاه دخوشحاله كولودپاره اوكړه اوځمامقصدپدې سره داووچه زمونږتعلق دبادشاه سره دې، اودضرورت په وخت كښ دداسې توريو نه كاراغستل جائزدى.

﴿فَرَدَدْنَهُ إِلَىٰٓ أُمِّهِۦ﴾ فا فصيحيه ده ددينه مخكښ كلام محذوف دې يعنى چه كله دموسى عليه السلام خورداخبره اوكړه نودوئى ورنه تپوس اوكړوچه هغه زنانه څوك ده نودې ورته اوئيلوچه هغه ځماورده نودوئى ورنه بياتپوس اوكړوچه دهغې په سينوكښ پئ څرنګه راغلو، نودې ورته اوئيلوچه ځماورورهارون عليه السلام په پيدائش سره راغليدى اوهارون عليه السلام په هغه زمانه كښ پيداشويدې چه په هغې كښ دماشومانوقتل كولوحكم نه ووكړې شوې، نودوئى ددې تصديق اوكړواودموسى عليه السلام مورئې رااوغوختله، دموسى عليه السلام مورراغله او څرنګه ئې چه موسى عليه السلام خپلې سينې ته نزدې كړو، اوموسى عليه السلام باندې دخپلې مور

خوشبو اولګیده نوپیئ ښنبکل ئې شروع کړل،اومنقول دی چه فرعون ددينه تپوس اوکړوچه دې ماشوم دنوروزنانوپيئ نه ښنبل نوداستاپيئ ئې څرنګه ښنبکل شروع کړو.نودې ورته اوونيل چه اصل خبره داده چه څه يوه پاکه زنانه يم اوځمادسينوپيئ ډيرخواګه دی.نوچه کوم ماشوم دبل چاپيئ نه ښنبکی هغه ځماپيئ خامخاښنبکی.

بيافرعون اودهغه بی بی ددينه مطالبه اوکړه چه ته زمونږپه محل کښ پاتې کيږه اودې بچې ته پيئ ورکوله،نودې ورته اوئيلوچه ځمانوربچی دی څه دلته دراتللونه معذوره يمه،اوکه تاسوغواړئی نوځه به ستاسوداماشوم خپل کورته بوځم اوپيئ به ورته ورکوم،چه کله لوئی شی نوتاسوته به ئې واپس کړم،نوفرعون اودهغه بی بی پدې خبره باندې راضی شو. اوموسی علیه السلام ئې هغې ته حواله کړو.

اوروایاتوکښ دی چه فرعون دموسی علیه السلام مورته پدې ارضاع باندې روزانه يو(۱) دينار اجرت مقررکړو،بچې هم الله جل جلاله واپس کړواومفت اجرت هم ورته ميلاويدلو، اود موسی علیه السلام دمورد پاره ددې اجرت بطورمال فئ اغستل جائزووځکه چه فرعون حربی کافروو.

﴿كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ ﴾دادماقبل دپاره په منزله دعلت نودی﴿وَلِتَعْلَمَ أَنَّ وَعْدَ اللَّهِ ﴾ دوعدې نه مراد وعده د رد يعنی دبچی دواپس کولواودهغه دنبی جوړولوده،چه په ايت نمبر(۷)کښ تيرشويدی.اوکه څوک اشکال اوکړی چه دالله جل جلاله په وعدې باندې ديته علم داول نه حاصل شوې ووچه کله ديته الهام اوشويااورته فرشته مخامخ راغله،نواوس دوباره هغه علم حاصليدل تحصيل دحاصل دې،نوجواب دادې چه ددې نه مرادعلم په عين اليقين سره دې. الله جل جلاله ددې سره دوه(۲)وعدې کړې وې،يوه(۱)وعده دبچی دردوه اودويمه وعده دهغه دنبوت وه نودايوه وعده الله جل جلاله فی الحال پوره کړه اوديته ئې اوخودله اوبله وعده دموسی علیه السلام موريدې مشاهدې وعدې باندې قياس کړه چه دايوه وعده پوره شوه نوهغه بله به هم خامخا پوره شی نوګوياچه په دواړووعدوباندې ديته علم عين اليقين حاصل شو.

﴿وَلَمَّا بَلَغَ اَشُدَّهٗ وَاسْتَوٰى اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا﴾

[1] اوهرکله چه اورسيدلوموسی علیه السلام خپلی ځوانئ ته اوپوره شوعقل دده ورکړومونږورته نبوت اوعلم دتورات.

---

1 دقصی دويم مقام

وَكَذٰلِكَ نَجۡزِي الۡمُحۡسِنِيۡنَ ۞

اوهم دغه شان مونږ بدله ورکوو نیکانو ته.

﴿ وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُ ﴾ دَدې ايت نه دَقصې دويمه مقام شروع كيږي ترايت نمبر(۲۲) پورې پديكښې په موسىٰ عليه السلام باندې دَځوانئ ته رسيدلونه ورستو دَتكاليفو ذكر دې، يعنى قبطى قتل كول په هغې باندې دَالله ﷻ نه معافى غوختل، فرعونيانو ته پته لګيدل، دَموسىٰ عليه السلام په قتل كولو باندې دَهغوئى اتفاق راتلل، او بيا موسىٰ عليه السلام په هجرت باندې مجبوره كيدل. نو پدې ايت كښې دَموسىٰ عليه السلام دَځوانئ اول حالت ذكر كيږي، چه كله موسىٰ عليه السلام دَخپلې ځوانئ قوت ته اورسيدلو نو الله ﷻ ورته په دينى اودنيوى كارونو كښې پوهه اوبصيرت وركړو په "اشد" او "استوى" كښې دَمفسرينو اقوال متعدددى، بعضِ فرمائى چه دواړه متحددى اوددې اطلاق دَاتلس(۱۸) نه تر ديرش(۳۰) كالو پورې عمر باندې كيږي، ليكن دَجمهورو رائى داده چه دادواړه متغايردى، لكه چه داظاهره تقاضادَعطف هم ده، دَجمهورو په خپل مينځ كښې دَدې په تعين كښې اختلاف دې چه دَعمر كوم حصې ته "اشد" او كومې ته "استوى" وئيلې كيږي، نو راجح او غوره قول دادې چه "اشد" عبارت دې دَهغې مرتبې دَعمرنه چه په هغې كښې كمال دَقوت جسمانيه راشى، او "استوى" عبارت دې دَهغې مرتبې دَعمرنه چه په هغې كښې كمال دَقوت عقليه راشى، او بعضِ فرمائى چه "اشد" هغه مرتبه ده چه په هغې كښې كمال قوت حاصل شى او "استوى" چه په هغې كښې كمال خلقت دَبدن حاصل شى او بدن دَنموانتهاته اورسيږي. او نوره نمو پكښې نه راځي، او دادَعمر په كوموكالونو كښې وى؟؟ نو دَحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دوه(۲) قولونه مروى دى، يو(۱) داچه دَاتلس(۱۸) كالونه تر ديرش(۳۰) پورې عمر مرتبه دَ "اشد" ده او ديرش(۳۰) نه تر څلويښتو(۴۰) پورې عمر مرتبه دَاستواء ده، او دويم قول دادې چه درې ديرش(۳۳) كالو پورې عمر مرتبه دَ "اشد" ده، او بيا دَدرې ديرش(۳۳) نه تر څلويښتو پورې عمر مرتبه دَ استوى ده ځكه چه دَاتلس(۱۸) كالونه تر ديرش(۳۰) يادرې ديرش(۳۳) پوريكښې دَانسان قوت خپل انتهاء ته اورسيږي، څلويښت(۴۰) كالو پورې عمر كښې دَانسان بدن خلقت خپل انتهاء ته اورسيږي، څلويښت(۴۰) كالو ته من وقوف وئيلې كيږي. ددينه په پورته بيا دَانسان په بدن كښې نوره نمونه كيږي.

ليکن علامه آلوسي رحمه الله فرمائي چه دَدې مرتبودَپاره دَعمردَيوې حصې تعين کول صحيح نه دی بلکه اشدّ مطلق هغې مرتبې ته وئيلې کيږي چه په هغې کښې کمال دَقوت جسماني راشي او استوئ مطلق هغې مرتبې ته وئيلې کيږي چه په هغې کښې کمال دَقوت عقليه راشي اودا په اعتباردَزمکې اودَشهرونو،په اعتباردَزمانو،اوپه اعتبار دَاحوالو اومزاجونوسره مختلف دی،دَبعضې علاقودَبعضې زمانواودَبعضې مزاجونووالاخلکوکښې دامرتبې په جلتئ سره حاصلې شي،اوپه بعضوکښې په تاخيرسره،البته دَابن عباس رضي الله عنه قول په اغلب باندې محمول دې.

﴿ءَاتَيۡنَٰهُ حُكۡمٗا وَعِلۡمٗا﴾ حکمت نه مراددَصحيح فيصلې قوت دې اودَعلم نه مراددَديني معاملاتوپوهه ده يعني موسیٰ عليه السلام ته دَنبوت نه،مخکښې بطورمقدمه نبوت،الله تعالیٰ فهم سليم اوعقل مستقيم عطاءکړو،اوبعض فرمائي چه دَحکمت نه مرادحکمت دَانبياءکرامو دې،اودَانبياءکرامو حکمت دَهغوئي سنت دی،نودَايت مطلب دادې چه الله تعالیٰ فطري طور باندې حضرت موسیٰ عليه السلام ته دَانبياءکراموسنت مطابق ژوند تيرولوطريقه اودَهغوئ علوم عطاءکړی وو، اودَدې وجې نه به حضرت موسیٰ عليه السلام به دَنبوت نه مخکښې هم دَشرک نه بيزارئ اوخلکوته به ئې دَتوحيددعوت اوتبليغ کولو،اوبعضې مفسرينودَحکمت اوعلم نه نبوت مرادکړيدې،ليکن پدې اعتبارسره به بياپه قصې کښې تقديم اوتاخيرراځي چه دادَاسلوب کلام سره موافق ندې.ځکه چه موسیٰ عليه السلام ته نبوت دَقبطي دَقتل نه پس اومدين ته هجرت کولواوبيادَهغې نه پس خپلې علاقې ته دَمورسره ملاقات ته راتللوپه وخت په لاره کښې ميلاؤشوې وو،نوځکه اول احتمال زيات غوره دې.

﴿وَكَذَٰلِكَ نَجۡزِي ٱلۡمُحۡسِنِينَ﴾ مشبه به موردَموسیٰ عليه السلام ده او المحسنين نه مراد المصدقين بوعدالله دی،نودَايت مطلب دادې چه څوک هم دَالله تعالیٰ دَوعدوتصديق اوکړی اودَالله تعالیٰ په ذات باندې اعتماداوتوکل اوکړی نوالله تعالیٰ هغه ته داسې بدله ورکوی لکه چه څرنګه ئې دَموسیٰ عليه السلام مورته ورکړه چه دَدې بچې دَدښمن په لاسونوکښې تللوباوجوددَقتل نه بچ شو،دښمن پرې مهربانه شو،بچې سره دَمال نه مورته واپس شواوهغې بچې ته الله تعالیٰ علم اوحکمت هم ورکړو.

او یا مشبه به موسى عليه السلام دي ،او د المحسنین نه مراد المتقین دی او دا یت مطلب دادې چه څوک هم تقوی اختيار کړی نو الله ﷻ ورته داسې بدله ورکوی،لکه چه موسی علیه السلام ته نې ورکړې وه یعنی فهم سليم او عقل مستقیم ورته عطاء کړی او په هغې کښې ورته ترقی نصیب کړی،لکه د حضرت حسن بصری رحمه الله نه مروی دی فرمائی چه مَن اَحسَنَ عبادةَ ربّهِ فی شبیبتہ اعطاهُ الله الحکمة فی اکتھاله او یا د المحسنین نه مراد انبیاء کرام دی او د جزاء نه مراد د هلاکت نه بچ کول او بطور خرق عادت حفاظت کول او اعلی مقام ته رسول دی.نو د ایت مطلب دادې چه څرنګه مونږ د موسی علیه السلام حفاظت اوکړو او هغه ته مولوئی مقام او اعلی مرتبه ورکړه نو دغه شان معامله د ټولو انبیاء کرامو سره ده.

| |
|---|
| وَدَخَلَ الْمَدِيْنَةَ عَلٰى حِيْنِ غَفْلَةٍ مِّنْ اَهْلِهَا فَوَجَدَ فِيْهَا |
| او داخل شو موسى عليه السلام ښار د مصر ته په وخت د غفلت د اهل د هغې کښې یعنی د غرمې نو اوموندل په هغې کښې |
| رَجُلَيْنِ يَقْتَتِلٰنِ ۗ هٰذَا مِنْ شِيْعَتِهٖ وَهٰذَا مِنْ عَدُوِّهٖ ۚ فَاسْتَغَاثَهُ |
| دوه کسان چه جګړه نې کوله.دا یو ده ډلې نه وو او دا بل د ده دشمن د ډلې نه وو.نو مدد اوغوختلو موسى عليه السلام نه |
| الَّذِيْ مِنْ شِيْعَتِهٖ عَلَى الَّذِيْ مِنْ عَدُوِّهٖ ۙ فَوَكَزَهٗ مُوْسٰى |
| هغه سړی چه د ده ټولی نه وو په هغه سړی چه د دشمن د ده ټولې نه وو.نو په سوک یې اووهلو هغه موسى عليه السلام |
| فَقَضٰى عَلَيْهِ ۗ قَالَ هٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ عَدُوٌّ مُّضِلٌّ |
| نو مړنی کړو هغه او وئیل موسى عليه السلام دا کار د عمل د شیطان نه دې.بی شکه شیطان دشمن دې ګمراه کونکې دې |
| مُّبِيْنٌ ⑮ قَالَ رَبِّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ فَاغْفِرْ لِيْ فَغَفَرَ لَهٗ ؕ |
| ښکاره. او وئیل موسی اې ربه خامخا ما ظلم اوکړو په ځپل ځان.نو ته ما معاف کړه نو الله ﷻ ورته معافی اوکړه |
| اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ⑯ |
| بیشکه الله ﷻ هغه معاف کونکې رحم کونکې دې |

﴿وَدَخَلَ ٱلْمَدِينَةَ عَلَىٰ حِينِ غَفْلَةٍ﴾ پدې ايت کښ مقدمات دهجرت دحضرت موسیٰ ذکرکيږی. هرکله چه حضرت موسیٰ علیه السلام سنِ نموته اورسيدلو اوالله تعالیٰ ورته نبوت نه مخکښ ده ته عقل سليم ورکړې وو، نوموسیٰ علیه السلام به دفرعون دَدين نه سخت نفرت کولو اوخلکوته به ئې دالله تعالیٰ توحيد اودسمې لارې تبليغ کولو. فرعون دپاره داخبره ناقابل برداشت وه نواراده ئې اوکړه چه موسیٰ علیه السلام قتل کړی خودحضرت آسيه رضي الله عنها په سفارش ئې پريخودلو اودکورنه ئې اويستلو. اومولاناشبيراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی چه فرعون موسیٰ علیه السلام دکورنه، ويستلې نه وو، بلکه حضرت موسیٰ علیه السلام به دفرعون دَدين نه، نفرت کولودهغې دَوجې نه به اکثر موسیٰ علیه السلام دَده په کورکښ نه پاتې کيدلوبلکه دخپلې مورکورته به ډيرتللوچه هغه دمصرنه بهرواقع وو، اوکله کله به مصرته دفرعون محل ته راتلو. اوبعضِ حضرات فرمائی چه موسیٰ علیه السلام چکرته بهرته تللې وو، بهرتقديرايوه ورځ موسیٰ علیه السلام دغفلت په وخت کښ چه دادغرمې وخت دې چه اکثرخلک پدې وخت کښ قيلوله کوی، مصرته داخل شو، اوپه علی حين غفلة کښ اشاره ده چه داوخت عموماًدشهرته داخليدلونه ووخوحضرت موسیٰ علیه السلام قصداًداوخت مصرته داخليدلودپاره خوښ کړې وو، اوغالباًدَدې وخت انتخاب وجه داده چه حضرت موسیٰ علیه السلام به خلکوته خفيه تبليغ کولو، اوخپل ځنې متبعين ئې هم پيداکړی وو، نودهغوئی سره دملاقات اوخبروترودپاره دَدې نه بل زيات مناسب وخت نه وؤ، نوځکه موسیٰ علیه السلام پدې وخت کښ ښارته راتللو، نوچه يوه ورځ ښارته داخل شونو ﴿فَوَجَدَ فِيهَا رَجُلَيْنِ يَقْتَتِلَانِ﴾ مراددَدينه يتحاربان دې، يعنی دواړه جنګيدلو. ﴿هَٰذَا مِن شِيعَتِهِۦ﴾ اشاره دلته حکايةً راغليده، يعنی دغائب ماضی نه تعبيرپه اسم اشارې سره اوشوچه هغه وضع کړې شويده دحاضردپاره، دپاره دحکاية الحال چه داکتوونکې کچرې په په دې وخت کښ موجودوې نودابه ئې وئيل چه هذامن شيعته الخ اودااسم اشاره چه دحکاية الحال دپاره وی، عرب دَدې استعمال په ځائې دضميرکوی په ربط کښ، نوموسیٰ علیه السلام چه کله اوکتلوچه دوه (۲) کسان په خپل مينځ کښ جنګ کيږی چه يو (۱) کس دموسیٰ علیه السلام دقوم قبيلې والادې، اوبل کس دفرعون دقبيلې يعنی قبطی دې، اوسبب دجګړې دااووچه قبطی دفرعون باورچی وو، هغه يولوئی ګيډې دلرګوپه بنی اسرائيلی باندې بارکړې ووچه دادفرعون محل ته

اورسوه، اوبنى اسرائیلى غریب بوډا اوضعیفه وو، دهغې کېډى اوچتولو اوهلته ته ورلو طاقت نې نه لرلو، نوځرنګه چه دې بنى اسرائیلى موسىٰ علیه السلام اوکتلو نوامداد ئې ورنه اوغوښتلو چه مادې ظالم قبطى نه خلاص کړه.

﴿فَوَكَزَهُۥ مُوسَىٰ﴾ موسىٰ علیه السلام ددې مظلوم دخلاصولو اودډغې ظالم دظلم نه، دفع کولو دپاره قبطى ته یو سوک ورکړو اوبعض روایاتوکښې دى چه موسىٰ علیه السلام اول قبطى ته نصیحت اوکړوچه داغریب بوډا ضعیف ولې تنګوې، دې به ستادادومره لوټى بوج ځرنګه اورسوى. نوهغه بداخلاقه قبطى موسىٰ علیه السلام ته غصه اوکړه اوداتې ورته اوئیلوچه اوس به دابوج ته اوړې موسىٰ علیه السلام ته هم غصه ورغله اوهغه ئې یوه سوک اووهلو.

﴿فَقَضَىٰ عَلَيْهِ﴾ "قضى" کښې ضمیرموسىٰ علیه السلام ته راجع دې، او "قضى" چه کله متعدى شى په "على" سره نومعنى ئې مرګ کیږى، نومطلب دادې چه موسىٰ علیه السلام په یو سوک سره دده کار فیصله کړو یعنى هغه قبطى مړشو اویاضمیرپه "قضى" کښې الله تعالىٰ ته راجع دې اودآیت مطلب دا دې چه الله تعالىٰ په قبطى باندې فیصله دمرګ اوکړه.

﴿قَالَ هَٰذَا مِنْ عَمَلِ ٱلشَّيْطَٰنِ﴾ "هذا" سره اشاره ده قتل دقبطى ته یعنى موسىٰ علیه السلام په خپل عمل باندې سخت پښیمانه شواوداتې اوئیل کومه غصه چه ماته راغله اودهغې دوجې نه ماقبطى قتل کړوداد شیطان عمل دې ﴿قَالَ رَبِّ إِنِّى ظَلَمْتُ﴾ دپښیمانتیانه ورستو موسىٰ علیه السلام الله تعالىٰ ته تضرع اوعاجزى اوکړه اودخپل ددې عمل معافى ئې اوغوښتله چه اې الله تعالىٰ ماپخپل ځان باندې په سبب دقتل کولودقبطى سره ظلم اوکړوته ماته بخښنه اوکړې.

﴿فَغَفَرَ لَهُۥٓ﴾ الله تعالىٰ موسىٰ علیه السلام ته معافى اوکړه اوپه ذریعى دالهام ئې هغه ته دبخښنې خبر ور کړو.

**فائده:** مسلک داهل السنة والجماعت دادې چه انبیاء کرام علیهم الصلوات والتسلیمات قبل النبوة اوبعدالنبوت دکبائرونه معصوم دى، اوبعضې خلک قبل النبوت په صدرو دکبائرودانبیاء کرامونه، قائله دى اواستدلال ئې دموسىٰ علیه السلام په دې واقعې سره کړیدې اوطریقه داستدلال ئې داده چه (۱) موسىٰ علیه السلام دخپل عمل یعنى قتل قبطى نسبت شیطان ته

اوکړوچه﴿هَـٰذَا مِنْ عَمَلِ ٱلشَّيْطَـٰنِ﴾اوعمل شيطاني خوګناه وی (۲)اودغه شان موسیٰ علیه السلام خپل دې عمل ته ظلم اوئيلواوپدې باندې دَالله ﷻ نه معافي اوغوختله اوظلم ګناه کبيره دې(۳)اودغه شان معافي غوختل اومعافي ورکول په بدله دَجرم کښ وی،نومعلومه شوه چه حضرت موسیٰ علیه السلام نه جرم اوګناه کبيره شوې وو.

دَاهل السنة والجماعة دَطرف نه دَدوئی دَاول استدلال جواب دادې چه حضرت موسیٰ علیه السلام دَخپل عمل نسبت شيطان ته اوکړه دَدينه دَدې عمل ګناه کيدل نه ثابتيږی،ځکه چه دَيوعمل نسبت شيطان ته کول مستلزم نه دی دَهغې عمل ګناه لره،لکه حضرت يوشع علیه السلام (فتی دَموسیٰ علیه السلام)دَخپل نسيان نسبت شيطان ته کړې وو چه وماانسٰنيهُ الاّالشّيطانُ الخ اونسيان ګناه ندې،ليکن هرکله چه دَدې کارپه انجام باندې شيطان ته خوشحالي ميلاويږی نودَدې وجې نه،نسبت ئې شيطان ته کيږی.

(۲)دويم جواب داکړې شويدې چه داقبطی کافرحربی اوظالم وو،ليکن دده دَقتل حکم موسیٰ علیه السلام ته نه وؤکړې شوې،اونه موسیٰ علیه السلام دَده دَقتل اراده کړې وه بلکه دَموسیٰ علیه السلام اراده ده ته دَتعزيرورکولووه چه دې دَدې ظلم نه،منع شی،ليکن اتفاقًاهغه قبطی دَحضرت موسیٰ علیه السلام په مکې سره مړشوچه ديته قتل خطاءوئيلې شی،اوداګناه نه وی اودَدې نظيرداسې دې لکه زمونږپه شريعت کښ قاضی په يومجرم باندې حد،ياتعزيرجاری کړی اواتفاقًاهغه مجرم دَسزاپه دوران کښ مړشی نوقاضی باندې ګناه نيشته،نوحضرت موسیٰ علیه السلام باندې هيڅ قسمه ګناه نه وؤليکن دَالله ﷻ دَخوف اوخشيت دَوجې نه دَخپل عمل نسبت ئې شيطان ته اوکړو،ځکه چه دَقتل حکم دَالله ﷻ دَطرف نه،نووراغلې.

(۳)دريم جواب حضرت عثمانی رحمه الله اودَنوروااهل علمودکلام نه،معلوميږی چه فرمائی چه هذا کښ اشاره قتل دَقبطی ته نه ده،بلکه پدې سره اشاره غصې اوغضب ته ده،چه دَهغې دَوجې نه قبطی مړشو،اوداغصه موسیٰ علیه السلام ته اګرچه دَيوحربی کافرپه ظلم باندې راغلې وه چه داعين ايمان دې،ليکن هرکله چه دغصې په دوران کښ دَغصې دَجوش دَوجې نه،دَمعاملې پوره تحقيق اونکړې شی اودَتاديبی ضرب اندازه اونه لګولې شی چه دَهغې دَوجې نه بيادَډيروفتنو اومصائبو دروازې کولاؤشی نوحضرت موسیٰ علیه السلام قبطی ته مکه دَغصې دَجوش په وخت کښ ورکړې وه نودَدغې غصې جوش نسبت ئې شيطان ته اوکړو.

(۴)څلورم جواب حضرت سندهی رحمه الله او تهانوی رحمه الله کړیدې. فرمائی چه حضرت موسی علیه السلام په دغه وخت کښې دَفرعون حکومت سره معاهدوو. اودامعاهده اګرچه تحریری صورت کښې نه وه لیکن عملی صورت کښې ضروروه. ځکه چه بنی اسرائیلو په دغه وخت کښې دَفرعون حکومت تسلیم کړې وو. نودَفرعون دَحکومت قوانین په دوئی باندې لاګووو. نودَموسی علیه السلام قبطی قتل کول ګویادَهغې معاهدې خلاف ورزی اوقانون شکنی وه. اوداخلاف ورزی اوقانون شکنی اګرچه ارادةً نه وه خوبیاهم حضرت موسی علیه السلام دَخپل اعلی مرتبې دایوقسم ګناه متصورکړواونسبت ئې شیطان ته اوکړو. اوددینه معلومه شوه چه کچرې یومسلمان دَیوکافرپه حکومت کښې پاتې کیږی نودَهغې حکومت ټول قوانین منل اوپه هغې باندې عمل کول دَده دَپاره ضروری دی ترڅوچه صریح معصیت نوی، اودغه شان سرکاری املاک یادَهغوئی جان اومال ته بغیردَاطلاع نه تعرض کول جائزنه دی. ځکه چه دایوعملی معاهده وی اواسلام دَمعاهدې دَپاسدارئی حکم کوی، نه دَنقض عهد. اودَدې وجې نه حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه چه کله خپل ملګری چه دې ورسره پاتې کیدلو. قتل کړل اودَهغوئی دَمال سره نبی پاک صلی الله علیه وسلم ته پیش کړو نو نبی پاک صلی اله علیه وسلم ورته او فرمائیلو چه: امالاسلام فاقبل واماالمال فمال غدرٌلاحاجة لنافیه(ابوداود)یعنی ستاځه قبولوم لیکن دامال ددهوکې مال دې، مونږته دَدې ضرورت نیشته دې، اوحافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه قسطلانی رحمه الله په خپلوشروحاتودَبخاری کښې دَدې خبرې وضاحت کړیدې چه دکافر مال په حالت دَامن کښې اغستل جائزنه دی. ځکه چه کله یومسلمان اوکافرپه یوځائی کښې پاتې کیږی اودَیوبل نه مطمئن وی اوامن وی نوګویادا عملی معاهده ده.

(۵)امام رازی رحمه الله داجواب کړیدې چه دَموسی علیه السلام دَپاره ددغې کافرقتل جائزوو، ځکه چه دې حربی کافروو، البته اولی اوغوره دَدې قتل تاخیروو چه لږورستوزمانه کښې ئې قتل کړې وې لیکن اتفاقاًداکافرحربی دموسی علیه السلام په مکې سره قتل شو، نوپه ظاهرکښې دَموسی علیه السلام نه ترک دَمندوب اوشو، نوحضرت موسی علیه السلام دَدغې ترک مندوب نسبت شیطان ته اوکړونوګویاچه دَ هذامن عمل الشیطان معنیٰ داده اقدامی علی ترک المندوب من عمل الشیطان اوپه دغه خلاف اولی په ترک باندې ئې بیامعافی هم دَالله تعالی نه اوغوختله

ددويم استدلال نه جواب داکړې شويدې چه (۱) دَحضرت موسى عليه السلام په خپل عمل باندې اطلاق دَظلم کول دَکسرنفسى اودَتضرع په بنياددى، نه حقيقةً، ځکه چه عادت دَمقربينو دادې چه استعظام الصغير من السيئات وتحقير العظيم من الحسنات يعنى صغيره سيئه (خلاف اولى) ورته کبيره ښکارى اوکبيره حسنه ورته حقيره ښکارى.

(۲) دويم جواب دادې چه دَانبياء کرامو په عمل باندې دَظلم اطلاق صرف صورتًا اومشاكلةً وى، حقيقةً نه وى، توضيح ئې داده چه ظلم وئيلې کيږى په لغت کښې وضع الشئ فى غير محله ته نودَعمل محل دَانبياء کراموا تيان دې په احسن اموروباندې، خوکله کله نبى احسن پريدى اواتيان په حسن اوکړى، لکه څرنګه چه عوام جائزپريدى اوناجائز اختيار کړى. اګرچه په حسن باندې حقيقةً اوشرعًا اطلاق دَظلم نشى کيدې ځکه چه عمل خوبهرحال نيک دې. ليکن هرکله چه اصل محل دَنبى دَعمل احسن وواونبى خپل عمل په محل احسن کښې ادانکړوبلکه محل حسن کښې ئې اداکړو، نوګوياچه داداسې شوچه وضع الشئ فى غير محله خوداهم صرف مشاكلةً اوصورتًا ځکه چه حقيقت کښې خوداعمل نيک دې، نودَدې وجې نه اطلاق دَظلمورباندې کيږى، اودَدې وجې نه مشهوره مقوله ده وئيلې شى چه حسنات الابرار سيئات المقربين.

(۳) حضرت والدصاحب نوّرالله مرقده به فرمائيلوچه ظلم کلى مشکک دې، متفاوت دې په اعتباردَافرادوسره، نواطلاق ئې په معصيت حقيقى باندې هم کيږى په طريقې دَاقوى اواشديت سره، اوپه خلاف اولى باندې هم کيږى په طريقې دَاضعفيت سره نودَعامو خلکوظلم معصيت وى چه ګناه کبيره ده اودَانبياء کراموظلم فى نفسه حسن کاروى خوترک احسن دَوجې نه، دې حسن ته ظلم اوئيلې شى، ځکه چه دَهغوئې دَلوئې مراتبواواعلى شان سره مناسب احسن وى نه حسن.

اوباقى دَدريم استدلال نه جواب داکړې شويدى چه (۱) دَحضرت موسى عليه السلام په خپل عمل باندې مغفرت غوختل محمول دى په کسرنفسى باندې، (۲) دويم جواب ترينه دادې چه توبه اوطلب دَمغفرت دَخواصوپه حقيقت کښې رفع دَدرجاتووى.

قَالَ رَبِّ بِمَآ أَنْعَمْتَ عَلَيَّ فَلَنْ أَكُونَ ظَهِيرًا لِّلْمُجْرِمِينَ ﴿١٧﴾

اووئيل موسى عليه السلام اې ربه په سبب دَ دې چه تاانعام اوکړو په ما نواوس دينه ورستوبه هرګز نه شم مددګاردَمجرمانو

﴿قَالَ رَبِّ بِمَآ أَنْعَمْتَ عَلَيَّ﴾ "باء" په ﴿بِمَآ أَنْعَمْتَ﴾ كښې یا قسمیه ده او ما مصدریه ده او جواب قسم محذوف دې چه "لامتنعنّ عن مثلِ هذاالفعل" دې او "فلن اکونَ الخ" تفسیر دَمحذوف جواب دې او په هغه باندې مرتب دې، نو اصل عبارت داسې دې "اقسم بانعامکَ علی لامتنعنّ عن مثل هذاالفعل" او "مثل هذاالفعل" څه دې؟؟ نو "فلن اکونَ الخ" ئې تفسیر او کړو چه دَظالمانو مدد گاربه نه جوړیږم او یا "باء" سببیه ده او "فلن اکونَ الخ" مرتب دې په "بماانعمتَ" باندې او دَ "مجرمین" نه یا دابنی اسرائیل مراد دې چه دې کافرو و، په دې تقدیردَ ایت مطلب دادې چه موسی علیه السلام اوفرمائیلو چه اې الله تعالیٰ! تاپه ما باندې انعام او کړو دَې انعاماتو په سبب څه به هرګزدَ مجرمانو معاونت او امداد اونکړم یعنی نن خو ما دَې مجرم بنی اسرائیلی امداد او کړو او تا څه معاف کړم نو آئنده دَپاره به بیاخیال کوم او دَداسې مجرمانو امداد به نه کوم، پدې احتمال دَدې ایت دَظاهرنه معلومیږی چه دابنی اسرائیلی کافرو و مسلمان نه وو، قاله قتاده، او یادَ "مجرمین" نه مراد فرعون او دَهغه ملګری دی، پدې تقدیردَایت مطلب دادې چه موسی علیه السلام اوفرمائیلو چه اې الله! تاپه ما باندې انعام اوکړونو دَې انعام په سبب څه به ائنده دَپاره هم دَمظلومانو امداد کوم او دَ فرعونیانو ظالمانو مرسته او امداد به نه کوم.

او یا "باء" سببیه ده او متعلقه ده دَفعل محذوف سره چه "اعصمنی" دې او دا جمله استثنائیه دعائیه ده، او استعطاف یعنی الله تعالیٰ ته وسیله ګرځول دی دَانعام مغفرت دَپاره دَحصول دَنورو انعاماتو، نو تقدیردَعبارت داسې دې "اعصمنی بسبب ماانعمت علی فلن اکون ظهیراً للمجرمین" یعنی اې الله تعالیٰ! چه کوم انعام دَمغفرت، اعطاء دَعلم وحکمت وغیره تاپه ما باندې کړیدی، دَدې په برکت او وسیلې سره ما په آئنده کښې دَمجرمانو دَملګرتیانه او امداد نه بچ او ساتې، دَدې ایت نه علماؤ دَې استنباط کړیدې چه دَظالم مدد کول په هیڅ حال کښې هم جائزنه دی او دغه شان دَظالم حکومت ملازمت کول هم جائزنه دی، علامه آلوسی رحمه الله فرمائی "وقدکان السلف یجتنبون کل الاجتناب عن خدمتهم" یعنی اسلافو به دَظالمانو بادشاهانو دَسرکاری خدمات او ملازمتونو نه ځان مکمل بچ ساتلو او علامه آلوسی رحمه الله او قرطبی رحمه الله واقعات دَاسلافو نقل کړیدی، فرمائی چه عبدالرحمن بن مسلم حضرت امام

ضحاک رحمه الله لره دَبخاری په عطایاؤباندې ذمه دارمقررکولولیکن امام ضحاک رحمه الله هغه ته باربارمعذرت کولوحتی چه امیریعنی بادشاه ده لره معذور اوګنړلو نودَحضرت ضحاک رحمه الله نه چاتپوس اوکړوچه دَبادشاه دَدومره اصرار باوجود تاولې دا ملازمت قبول نکړو،نوهغه ورته اوفرمائیلوچه خه نه خوښوم چه په هیڅ کارکښ دَظالمانومرسته اوکړواوحدیث کښ دی چه"ینادی منادیوم القیمة این الظلمة واشباه الظلمة واعوان الظلمة حتّی من لاق لهم دواةً اوبری لهم قلمًافیجمعون فی تابوت من حدید فیرمی بهم فی جهنم"یعنی دَقیامت په ورځ به یواعلان کونکې اعلان اوکړي چه چرته دی ظلم کونکی؟چرته دی دَظالمانومددکوونکی اوملګرتیاکوونکی حتّی چه چادَظالم سره دوات برابرامدادکړې وی یعنی دَسیاهی دوات ئې ورته ورکړې وی یائې ورته قلم تهیک کړې وی داټول به دَاوسپنې په یوتابوت کښ جمع کړې شی اوجهنم ته به اوغورځولې شی.

دغه شان عبید الله بن الولید الصافی دَحضرت عطاء بن ابی رباح نه دَخپل رورپه باره کښ تپوس اوکړوچه څماورورسرکاری ملازم دې اودَهغه په لاس کښ صرف دومره قدرې کاردې چه خه راځی اوخه اوځی دَسرکاری خزانې نه،نوهغه لیکی اوکچرې دې داملازمت پریدی نومحتاجه اوقرضدارې به شی،حضرت عطاءتنه تپوس اوکړوچه ستاورورڈچاسره منشی دې،ده ورته اوئیلوچه دَخالدبن عبدالله القسری سره،نوحضرت عطاء رحمه الله ورته اوفرمائیلوچه آیاتادَموسی علیه السلام داقول ندې اوریدلې چه هغه فرمائیلوچه﴿رَبِّ بِمَآ أَنْعَمْتَ عَلَيَّ فَلَنْ أَكُونَ ظَهِيرًا لِّلْمُجْرِمِينَ﴾اووروروته دی اوایه چه قلم اوغورځوی،الله تعالی به ورته دَرزق بندوبست اوکړی.

| |
|---|
| فَأَصْبَحَ فِي الْمَدِينَةِ خَآئِفًا يَتَرَقَّبُ فَإِذَا الَّذِي اسْتَنصَرَهُ |
| پس صباکړوموسی علیه السلام په ښارکښ یریدونکې،انتظارئی کولوچه څه به کیږي نوناڅاپه هغه کس چه مددئی غوښتلې ووورنه |
| بِالْأَمْسِ يَسْتَصْرِخُهُ ۚ قَالَ لَهُ مُوسَىٰٓ إِنَّكَ لَغَوِيٌّ مُّبِينٌ ⑱ فَلَمَّآ |
| پرون بیائی ورته فریادکولو.اووئیل هغه ته موسی علیه السلام بیشکه ته خوامخاشری ئې ښکاره نوهرکله چه |

| |
|---|
| اَنْ اَرَادَ اَنْ يَّبْطِشَ بِالَّذِيْ هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا ۙ قَالَ يٰمُوْسٰى |
| اراده اوکړه موسیٰ علیہ السلام چه حمله اوکړی په هغه کس چه هغه دشمن وو د دواړو اوئیل اسرائیلی ای موسیٰ |
| اَتُرِيْدُ اَنْ تَقْتُلَنِيْ كَمَا قَتَلْتَ نَفْسًۢا بِالْاَمْسِ ۖ اِنْ تُرِيْدُ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ |
| آیا ته غواړی داچه قتل کړې ما لکه چه قتل کړې وؤتا سړي پرون ته اراده نه لری مګر داچه شی ته |
| جَبَّارًا فِي الْاَرْضِ وَمَا تُرِيْدُ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْمُصْلِحِيْنَ ﴿۱۹﴾ |
| لوئ ظالم په زمکه کښې او ته دا نه غواړې چه شی ته د روغی کونکونه |

﴿فَاَصْبَحَ فِي الْمَدِيْنَةِ﴾ جار مجرور متعلق دی د "اصبح" سره او ﴿خَآئِفًا﴾ خبر د "اصبح" دې او "یترقب" خبر بعد الخبر دې اویا حال دې د "خائفا" د ضمیرنه او مفعول د "یترقب" محذوف دې چه "المکره" یا "الخبر" وغیره دی، او ﴿ الْمَدِيْنَةِ ﴾ نه مراد هغه شهر دې چه موسیٰ علیہ السلام د لاسه پکښې قبطی قتل شوې وو، نو د آیت مقصد دا دې چه حضرت موسیٰ علیہ السلام په دغه شهر کښې داسې حالت کښې شپه تیره کړه چه ویریدلو او انتظارئې کولو چه د دې قتل اطلاع او خبر فرعون ته رسیدلې دې او که نه؟ یعنی دا حالات ئې معلومولو، او سورة طٰه کښې تیر شویدی چه طبعی خوف د انبیاء کرامو د عالی مرتبې سره مخالف ندې او نه د توکل خلاف دې.

﴿فَاِذَا الَّذِي اسْتَنْصَرَهٗ بِالْاَمْسِ﴾ "اذا" مفاجاتیه ده او ﴿يَسْتَصْرِخُهٗ﴾ د "صراخ" نه دې چیغې وهلو ته وئیلې کیږی، لیکن کنایه ده بلکه حقیقت عرفیه دې په مدد غوختلو کښې او په لفظ د "یستصرخ" کښې اشاره ده چه د دې سړی نن ورځ فریاد د پرون ورځی نه زیات وو، ځکه چه هلته صرف استنصار وو او دلته استصراخ دې نو حضرت موسیٰ علیہ السلام د دې حالاتو معلومولو د پاره ګرځیدلو چه څه به کیږی او فرد جرم به په چا لګیږی، چه ګوری نو ناچانک بیا هغه پرونې اسرائیلی چیغې وهی، او د قبطی خلاف امداد غواړی.

﴿قَالَ لَهٗ مُوْسٰٓى﴾ ظاهر او غوره داده چه ضمیر بنی اسرائیلی ته راجع دې او "غوی" په معنی د "مغوی" سره دې لکه "الیم" په معنی د "مولم" سره راځی یعنی ته ما لره خطا کونکې ئې ځکه چه

ستادلاسه پرون هم ځمانه سرې قتل شو،نن بياچيغې اوباسې،بل مرگ راباندې كوې.اويا غوی په معنی دَ الغاوی سره دې يعنی ته په قتال اوجنگ كښ سركشی كوونكې ئې روزانه دَزوروروسره جنگونه كوې خوچرته په كوركښ په ارام سره كينه.اوياصبركوه په دې تكليفونوباندې.

﴿فَلَمَّآ أَنْ أَرَادَ أَن يَبْطِشَ ﴾موسیٰ عليه السلام په بنی اسرائيلی باندې ترس اوشواودَهغه دَامداداوهغه دَظلم نه خلاصولواراده ئې اوكړه،اودلته بطش ذكرشوچه وئيلې كيږی الاخذ بصولة وسطوة يعنی په سختئ سره نيولوته وئيلې كيږی نوموسیٰ عليه السلام اراده اوكړه چه قبطی په سختئ سره اونيسی اودَ وكز يعنی دَسوك(مكې)وركولواراده ئې اونكړه ځكه چه دَهغې دَوجې نه پرون كس مړشوې وو.

﴿هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا ﴾دَجمهوروقول دادې چه هو ضميرقبطی ته راجع دې اوپه الذی موصول سره هم قبطی مراددې،چه دې دَدې بنی اسرائيلی اودَموسیٰ عليه السلام دواړوسخت دشمن وو.دَبنی اسرائيلی دښمن ځكه وؤ،چه دَهغوئی نه ئې غلامان جوړكړی وو،سخت سخت اذيتونه اوتكليفونه ئې ورته رسولو،اودَموسیٰ عليه السلام دښمن ځكه ووچه دَهغه دَدين نه مخالف ووا و﴿قَالَ يَـٰمُوسَىٰٓ ﴾دَدې قول قائل دَجمهوروپه نيزبنی اسرائيلی دې،ځكه چه بنی اسرائيلی اوكتلوچه موسیٰ عليه السلام ماته غصه شو،اوموسیٰ عليه السلام ده ته داهم اوئيلوچه﴿إِنَّكَ لَغَوِىٌّ مُّبِينٌ ﴾نو دې بنی اسرائيلی گمان اوكړوچه موسیٰ عليه السلام لاس هم په ماپسې رااوچت كړواوده ته خودَموسیٰ عليه السلام دَسوك(مكې)انجام هم معلوم وو،نوسخت اويريدلواورازئې فاش كړوچه پرون دی قبطی مړكړې وواونن ماموكوې،ته خوديرلوئی جابراوظالم ئې دَخلكوروغې جوړې نه كوې بلكه قتلونه كوې.

بعضې مفسرينوداوئيلی دی چه مرادپه﴿بِٱلَّذِى هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا ﴾سره بنی اسرائيلی دې او لهما كښ ضميرپرونی قبطی اونن قبطی ته راجع دې،نودابنی اسرائيلی دَپرونی اودَنن ورځی دواړوقبطيانوسخت دښمن وو،نودی بنی اسرائيلی گمان اوكړوچه موسیٰ عليه السلام ماته غصه هم شولواودائې هم راته اوئيلوچه انک لغوی نودالاس ئې هم ماپسې رااوچت كړو.نو

دَخپلې ويرې نه،ئې رازافشاءکړو اوبعضې مفسرين فرمائی چه مراد په﴿بِالَّذِی هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا ﴾ سره قبطی مراددې اودَدې قول قائل﴿يٰمُوسٰٓى اَتُرِيدُ اَن تَقْتُلَنِی ﴾هم قبطی دې اوداخبره هغه دَخپلې اندازې اوګمان موافق اوکړه،ځکه چه کله موسیٰ علیه السلام دده دَنيولواودَبنی اسرائيلی دَمددکولواراده اوکړه نودې قبطی دَخپل طرف نه په ګمان سره موسیٰ علیه السلام ته اوئيلوچه دابنی اسرائيلی خوزمونږخدمتګاران دی،مونږچه دَدوئی نه خدمت اخلونوته پرې خفه کيږې اوزمونږسره جنګ اودَدوئی امدادکوې،نودَدينه پته لګی چه پرون چه کوم قبطی مړدې نوهغه هم تاقتل کړيدې دَدی بنی اسرائيلی دَوجې نه،اوهرکله چه يوانسان پټ يوکارکړې وی چه بياکله په ده باندې دَهغې متعلق څه خبره راشی نودَده کيفيات بدل شی،نوممکنه ده چه کله قبطی موسیٰ علیه السلام تاداوئيلی وی چه﴿ اَتُرِيدُ اَن تَقْتُلَنِی﴾نودَحضرت موسیٰ علیه السلام کيفيت بدل شوې وی،اودَتصديق اثارپرې ظاهرشوی وی،اودروغ وئيل دَموسیٰ علیه السلام نه ممکن نه وو، نودَدې وجې نه دويمه جمله اودويم کلام ئې ډيريقينی اوپه حصرسره ذکرکړوچه﴿اِن تُرِيدُ اِلَّآ اَن تَكُونَ جَبَّارًا﴾اوډيره مبالغه ئې اوکړه چه اول ئې صفت ثبوتی ذکرکړوچه ته جبارئې يعنی دَچاقانون هم دَځان دَپاسه نه منې،جباروئيلې کيږی"المتعظم .الذی لايتواضع لامراحد"هغه لوئی کوونکې چه دَچاقانون اودَخبرې پرواه نه کوی(کبير).

وَجَآءَ رَجُلٌ مِّنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ يَسْعٰى ۫ قَالَ يٰمُوْسٰٓى اِنَّ الْمَلَاَ يَاْتَمِرُوْنَ

اوراغې يوسړې دَآخرسرښارنه رامنډې ئې وهلې اوئې وئيل اې موسیٰ علیه السلام بيشکه مشران مشوره کوی

بِكَ لِيَقْتُلُوْكَ فَاخْرُجْ اِنِّیْ لَكَ مِنَ النّٰصِحِيْنَ ﴿۲۰﴾ فَخَرَجَ

ستاباره کښې چه تاقتل کړی نو اوزه (دَدې کلی نه) بيشکه څه دَستاخيرخواهانو نه يم پس اووتلوموسیٰ علیه السلام

مِنْهَا خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ ۫ قَالَ رَبِّ نَجِّنِیْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۱﴾

دَښارنه يريدونکې انتظارئې کولو(دَمدددالله)اوويئ وئيل اې ربه نجات راکړه ماته دَقوم ظالمانونه

﴿وَجَآءَ رَجُلٌ مِّنْ أَقْصَا ٱلْمَدِينَةِ﴾هر کله چه دَقبطی یقین اوشوچه پروني قتل موسی علیه السلام کړيدي نوفوراً اطلاع ئې فرعون ته اورسوله،فرعون خوداَول نه موسی علیه السلام ته غصه وو، نو غصه ئې نوره هم زیاته شوه اوخپل ارکان مملکت سره ئې مشوره اوکړه چه دَصبرحدتمام شونو لهذاموسی علیه السلام به ګرفتارکولې شی اوقتل کولې به شی،یعنی دَموسی علیه السلام دَقتل حکم جاری کړې شو،دَفرعون دکورنئ یوکس«دَتره خوئ»چه نوم دَهغه حزقیل یاشمعون یاشمعان دې،په سورة مؤمن ایت نمبر«۲۸»کښې هغه ته رجل مؤمن وئیلې شویدی هغه ډیرپه جلتئ سره موسی علیه السلام ته راغې،اوموسی علیه السلام ته ئې خبرورکړوچه فرعون اودَهغه وزیرانواومشیرانو ستا دَقتل فیصله کړیده،نولهذاته دَمصرنه اوځه اوهجرت اوکړه حضرت والدصاحب رحمه الله به فرمائیلوچه داکس په منزله دیوعالم وونوګویاچه ټول دکفرپه پارلمینټ کښې دغه یوعالم وو، اودَزمانې دَنبی دفاع ئې اوکړه،نوکله کله یوعالم یواځې په پارلمینټ کښې لوئی کاراوکړی.

﴿إِنَّ ٱلْمَلَأَ يَأْتَمِرُونَ﴾په لفظ دَ"ایتمار"کښې اشاره ده چه دَموسی علیه السلام دَقتل خلاف مشوره هیڅ چاهم ورنکړه،هریوکس به ډیرپه جوش اوجذبې سره دَموسی علیه السلام قتل خبره کوله،ځکه چه دوئی ډیرسخت غصه وو.

**فائده**:پدې ایت سره علماؤاستدلال کړیدې چه یومسلمان باندې دَبل مسلمان دَمال،جان حفاظت کول واجب دی اودغه شان دَمصلحت دینی په خاطریومسلمان ته خبررارسول په چغلخورئی کښې نه راځی.

﴿فَخَرَجَ مِنْهَا خَآئِفًا﴾"فاء"دَتعقیب مع الوصل دَپاره ده،مطلب دادې چه دَدې خبرې میلاویدلوسره فوراًموسی علیه السلام دَمصرنه اووتلو"خائفاًویترقب"دواړه حالین دی دَضمیر دَ"خرج"نه،یعنی موسی علیه السلام دَخوف اوانتظارپه حالت کښې دَمصرنه،اووتلو،خوف ورسره دَدې ووچه دَفرعون کسان راته په لاره کښې نوی ناست اوقتل بې نکړی اوانتظارئې دَدې کولوچه ورستوراپسې فرعون کسان رالیږی اوکه نه رالیږی؟؟ اوورسره ورسره موسی علیه السلام الله جل جلاله طرف ته متوجه شواودَظالمانونه،دَنجات دعائ اوغوختله.

وَلَمَّا تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ قَالَ عَسٰى رَبِّيٓ اَنْ يَّهْدِيَنِيْ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ﴿۲۲﴾

[1]اوكله چه روان شو شو موسی علیه السلام په طرف دَمدین اوئی وئیل قریبه ده چه ځما رب به ما بوځی په سمی لاري باندې

وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ وَجَدَ عَلَيْهِ اُمَّةً مِّنَ النَّاسِ يَسْقُوْنَ

اوكله چه اورسيدلو او بو دَمدين ته اوئی موندله هلته يوډله دخلقوچه اوبه ئی ورکولی څاروړو ته

وَوَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمُ امْرَاَتَيْنِ تَذُوْدٰنِ ۚ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ؕ

او اوئی لیدلی اخوا دَهغوئ نه دوه ښځې چه منع کړی وږځاروی خپل، ورته اووئیل موسی چه ستاسو څه مقصد دې.

قَالَتَا لَا نَسْقِيْ حَتّٰى يُصْدِرَ الرِّعَآءُ ۖ وَاَبُوْنَا شَيْخٌ كَبِيْرٌ ﴿۲۳﴾ فَسَقٰى

هغوئ اووئیل مونږ اوبه نه ورکوؤ تردې چه واپس شی داشپانه، او پلار زمونږ بوډا دې ډیر. نو اوبه ئی کړل څاروی

لَهُمَا ثُمَّ تَوَلّٰٓى اِلَى الظِّلِّ فَقَالَ رَبِّ اِنِّيْ لِمَآ اَنْزَلْتَ اِلَيَّ

ددهغه دوؤ ښځو بيا لاړو سوری ته نو اوئی وئیل اې ربه بیشکه څه هغی ته چه ته ئی راکوې ماته

مِنْ خَيْرٍ فَقِيْرٌ ﴿۲۴﴾

څه خیر، محتاج یم.

﴿وَلَمَّا تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ﴾ دَدې خائی نه دَواقعې دريم مقام دې ترایت نمبر (۲۹) پورې پدې کښې دَموسی علیه السلام دَبې سروسامانئ په حالت کښې مدین ته هجرت کول. دَحضرت شعیب علیه السلام بچیانو امداد کول، دَحضرت شعیب علیه السلام سره ملاقات کیدل دَهغه دَطرف نه تسلی میلاویدل او دَهغه سره مزدوری کول او بیا دَهغه دَبچئ سره نکاح کول دَدې ټولو ذکر دې

هرکله چه رجل مؤمن موسی علیه السلام ته دَفرعون ارادې او فیصلې خبر راوړو او موسی علیه السلام ته ئې مشوره ورکړه چه دَمصرنه هجرت ته اوکړه نو موسی علیه السلام دَهجرت دَپاره مدین غوره کړو، ځکه چه مدین مصرته هغه قریبه علاقه وه چه دَفرعون تسلط او حکوممت پکښې

[1]: واقعی دریم مقام.

نوو، اودغه شان دَاهل مدين سره دَموسی علیه السلام نسبي قرابت هم وو، ځکه چه اهل مدين دَحضرت ابراهيم علیه السلام اولادوو، اوداشهردَ مدين بن ابراهيمَ په نوم باندې اباد وو، او موسی علیه السلام هم دَابراهيم علیه السلام دَاولادنه وو، اودغه شان موسی علیه السلام ته معلومه وه چه مدين کښې پيغمبرانو کيږي نودَنبي دَمسکن په بنيادحضرت موسی علیه السلام دَهجرت دپاره مدين غوره کړو. ليکن حضرت موسی علیه السلام ته دَمدين دلارې صحيح پته نوه، اودَخوراک اوڅښکاک اسباب هم ورسره نه وو، اودَمصرنه مدين ته مسافت هم اته(۸) ورځې وو، پدې ټولو مشکلاتو کښې حضرت موسی علیه السلام دَالله تعالیٰ په ذات باندې توکل اوکړواودَمدين په طرف يوې لارې باندې روان شواودعائې اوکړه چه اې الله! ما دَمدين په برابرې لارې باندې روان کړې چه خه لاره خطانکړم ځکه چه مقصدرانه فوت نشي، اومفسرين فرمائي چه پدغه وخت کښې مدين ته درې(۳) لارې تللي وې دوه(۲) اوږدې غيرابادې لارې وې اويوه(۱) اباده درمياني لاروه، فرعون په موسی علیه السلام پسې خپل کسان دَغيرابادلاروباندې اوليږلواوخيال ئې داووچه مجرم کس په اباده لارباندې نه ځي، ليکن الله تعالیٰ موسی علیه السلام ته دَابادی اودرمياني لارې راهنمائي اوکړه، اودَخوراک دپاره موسی علیه السلام سره پدې سفرکښې هيڅ شې نه وؤ، بلکه داونوپه پاڼوباندې به ئې ګذاره کوله، اوقرطبي رحمه الله فرمائي چه دادَالله تعالیٰ دَطرف نه په موسی علیه السلام باندې اول ازمائښت وو.

﴿وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ ﴾ورود کله په معنیٰ دَدخول سره راځي اوکله په معنی دَوصول «رسيدلو» سره راځي، دلته په معنی دَرسيدلو، نوموسی علیه السلام اته(۸) ورځې سفراوکړومدين ته اورسيدلو، دَښهرنه بهردَاوبوکوهې ووچه دَهغې نه به دَمدين خلکوخپلې ګډې بيزې يعنی څاروی اوبه کولو، موسی علیه السلام چه هلته اورسيدلونواوکتل ئې چه دکوهي په غاړه دَخلکويولوئی جماعت خپل څاروی اوبه کوی.

﴿وَوَجَدَ مِن دُونِهِمُ ﴾يعنی دَدې خلکونه، لږلرې لاندې خاتې کښې دوه(۲) زنانه ډيرې په عاجزئي سره اوبوته منتظرې اولاړې دی، موسی علیه السلام ته پدې باندې ډيرتعجب اوشو، چه دَغيرت اومروت تقاضاداده چه زنانه اولاړې وی نوخلک زنانه رومبئ کوی، بلکه دَډيرتکليف خبره داوه چه دَدې زنانوڅاروو به په اوبوپسې زورکولواودوئي به حصاره ولو، نو تذودان صفت دَ امرأتين دې اومفعول ثاني دَ وجد دپاره نه دې، ځکه چه وجد دلته په معنی دَ لقي سره دې.

﴿قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ﴾حضرت موسیٰ علیہ السلام ته دزنانوپدې حالت باندې ډيرترس راغې اودخلکو په دې بې مروتئ اوبې غيرتئ باندې غصه راغله،نوزنانوته نيزدې شواوتپوس ئې ورنه اوکړوچه داڅه وجه ده؟چه تاسوخپل څاروی اوبوته نه پريدئی.خطب استعمال دَيولوئی کارپه اراده کښې کيږی،نوهرکله چه داعمل دډيرلوئی تعجب وونوځکه موسیٰ علیہ السلام لفظ دَخطب استعمال کړو،او خطب دلته په معنی دَمخطوب سره دې،نودَ﴿مَا خَطْبُكُمَا ﴾معنی ده مامخطوبكماومامطلوبكما يعنی ستاسوڅه مقصددې،ولې داڅاروی نه پريدئی.

﴿قَالَتَا لَا نَسْقِي حَتَّىٰ ﴾دې زنانه ؤموسیٰ علیہ السلام ته جواب ورکړوچه دَشرم اوحيااودَسړو سره دَاختلاط راتللودَوجې نه مونږهلته تللې نشو،اودوئی مونږته اوبه نه راکوی نوترڅوپورې چه ددوئی څارووابه نوی څښکلی نومونږخپل څاروی نشوپريخولې،اوکله چه دَدوئی څاروی اوبه اوڅکی نوبياچه کومې اوبه بچ شی هغه مونږراجمع کړواوخپلوڅاروته ئې ورکړو.اوهرکله چه دَموسیٰ علیہ السلام په ذهن کښې سوال راتللوچه ستاسوپلارياېل څوک نارينه ولې نه راځی،چه تاسوزنانه ئې راليږلی يئ؟نودوئی ورته دَهغې جواب ورکړوچه په نارينوکښې زمونږصرف يوپلاردې اوهغه هم ډيرزيات ضعيف اوکمزورې شويدې خپله هغه داکارنشی کولې.نودَ﴿شَيْخٌ كَبِيرٌ ﴾نه مرادحضرت شعيب علیہ السلام دې،چه دَمسئلې توحيددَوجې نه ټول قوم دَهغه سره مخالف شوې وو،اودومره سخت ضدئې ورسره شروع کړې وو چه نه ئې دَشعيب علیہ السلام بوډاوالی خيال ساتلواونه ئې دَهغه دَبچيانودَنزاکت خيال ساتلو.

﴿فَسَقَىٰ لَهُمَا ﴾ځنې رواياتوکښې دی چه په دې کوهی باندې به لوئی کاڼړې دوئی ايخودلوچه لس(۱۰)يادَلسو نه زياتوکسانواوچتولې شو،اوپدې کوهی باندې لګيدلې بوقه هم دومره وزنی وه چه کم ازکم لس(۱۰)کسانوبه رابهرکوله،موسیٰ علیہ السلام سرې لرې کړل اوپه يواځې باندې هغه کاڼړې لرې کړو،اوبوقه ئې رااويستله اودَدوئی څاروی ئې اوبه کړل،اوډيرسخت اوږې شوې وو،خودوئی ته ئې دَخپلې لوګې څه اظهاراونکړوبلکه دَکرمئ دَشدت دَوجې نه،سوری طرف ته لاړواوالله تعالیٰ ته ئې دعااوغوختله چه

﴿رَبِّ إِنِّي لِمَآ أَنزَلْتَ إِلَيَّ﴾ لما انزلت کښې لام په معنی د الی سره دې یعنی الی ماانزلت او انزلت په معنی د اعطیت سره دې اوماضی په معنی مضارع سره ده، او فقیر په معنی د فقیرله اوفقیرالیه سره دې. او من خیر بیان د ماانزلت دې، اومراد د خیر نه رزق دې یعنی موسی علیه السلام دعا اوغوختله چه اې الله اکوم رزق چه تاځما د پاره مقررکړیدې اوماته ئې راکوی هغې ته ځه محتاج یم، ډیروی اوکه لږوی، لوندوی اوکه اوچ وی، ځه ورته ضرورت مندیم. او دا تعریض دې د ځپلې لوګې الله تعالی ته، اوصریح اظهار د لوګې ئې اونکړو ځکه چه شائبه د جزعې، فزعې او د شکوې راتلله.

| |
|---|
| فَجَآءَتْهُ إِحْدٰىهُمَا تَمْشِيْ عَلَى اسْتِحْيَآءٍ ۫ قَالَتْ إِنَّ أَبِيْ يَدْعُوْكَ |
| نو راغله ورپسې یوه په هغو دوؤ جینکو کښې چه تلله په حیاء سره ډیرې سره هغې اووئیل بې شکه ځما پلار غواړی تا |
| لِيَجْزِيَكَ أَجْرَ مَا سَقَيْتَ لَنَا ۭ فَلَمَّا جَآءَهٗ وَقَصَّ |
| چه بدله کښې درکړی تاته اجر د هغې چه اوبه دې کړل څاروی زمونږ. نوکله چه راغې موسی شعیب علیه السلام ته او بیان ئې کړل |
| عَلَيْهِ الْقَصَصَ ۙ قَالَ لَا تَخَفْ ۫ نَجَوْتَ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۵﴾ قَالَتْ إِحْدٰىهُمَا |
| هغه ته حالات، شعیب علیه السلام اووئیل مه یریږه، نجات موندلې دې تا د قوم ظالمانو نه. اووئیل یوې د هغه دوؤ جینکو نه، |
| يٰٓأَبَتِ اسْتَأْجِرْهُ ۫ إِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِيْنُ ﴿۲۶﴾ |
| اې پلاره ځما مزدور او نیسه دې. بیشکه تولو نه غوره کس چه ته ئې په مزدورئ نیسې هغه دې چه قوی وی امانتګروی. |

﴿فَجَآءَتْهُ إِحْدٰىهُمَا﴾ یعنی دوئ د ځپل نورو ورځو په نسبت چه نن کورته وختی لاړې نو حضرت شعیب علیه السلام ترینه تپوس اوکړو چه تاسو نن ځنګه وختی راغلئ؟ نو دوئی ورته تول خبره د موسی علیه السلام بیان کړه، نو شعیب علیه السلام پوهه شو چه دا ځوبونیک صالح رحمدل انسان دې چه د دې مدین اوسیدونکې ندې، او حضرت شعیب علیه السلام ته د داسې انسان ډیرضرورت هم وو، نو د دې وجې نه ځپلې یوې بچئ ته ئې اووئیل چه لاړه شه اوهغه ته اووایه چه ځما پلار دې غواړی

اوهركله چه دلته دَزنانو ليږلونه مقصدصرف موسى عليه السلام ته دعوت وركول وواوهغه په يوې زنانه سره پوره كيدلونو ځكه شعيب عليه السلام خپله يوه بچۍ راواوليږله.

﴿تَمْشِي عَلَى ٱسْتِحْيَآءٍ ﴾ تمشي حال دي دَفاعل جاءت نه او على استحياء جارمجرور متعلق دى دَمحذوف سره چه كائنة دي اومتعلق سره دَمتعلق نه حال واقع شويدي دَضمير دَتمشي نه اوتنوين په استحياء كښې دَتفخيم اوتعظيم دَپاره دي اومقصودپدې سره دَهغې زنانه كمال عفت اوكمال حياءده چه دَدى په چال چلن، اورفتاركښې هم حياءوه، نازونه اواداګانې ئې نه كولې، اوچه موسى عليه السلام ته مخامخ شوه نوبياپه كښې هم حياوه، خپل مخ ئې پټ كړو او موسى عليه السلام ته ئې دعوت وركړو.

حضرت عمر رضي الله عنه نه مروى دى چه دې زنانه خپل مخ په لستونړى سره پټ كړو اوموسى عليه السلام ته ئې دعوت وركړو، اوپه لفظ دَعلى سره اشاره ده چه دَدې زنانه داحياوقتى نه وه بلكه دائمى وه اوپه حياءباندې كلكه وه، ځكه چه لفظ دَعلى دلالت په تمكن باندې كوى.

﴿قَالَتْ إِنَّ أَبِي يَدْعُوكَ لِيَجْزِيَكَ ﴾نودې زنانه دَخپل پلاردَطرف نه موسى عليه السلام ته دعوت وركړوچه ځماپلاردى غواړى﴿ لِيَجْزِيَكَ ﴾دادَتاكيددَپاره دي اومقصودپدې سره دَخپلې كورنۍ شرافت اوكرامت ظاهرول وو، ځكه چه دَاحسان بدله احسان وركول خوئې اوعادت دَشريفانودې. ﴿ فَلَمَّا جَآءَهُۥ ﴾ځنې رواياتوكښې دى چه كله دې زنانه موسى عليه السلام ته اوئيلوچه ځماپلارتاته دَدې نيكۍ بدله دركول غواړى نوموسى عليه السلام اراده اوكړه دَدې سره لاړنشى ځكه چه نيكى ئې دَالله تعالى دَپاره كړې وه، ليكن په قرائنوسره معلومه كړه چه داكورنۍ ډيرنيكان دى اوداورته معلومه وه چه مدين كښې پيغمبرشته دې نوسوچ ئې اوكړوچه كيدې شى چه داهم هغه كورنۍ وى، نودَحضرت شعيب عليه السلام سره دَملاقات په اراده راروان شو، موسى عليه السلام دَشعيب عليه السلام كورته اورسيدلو نوشعيب عليه السلام ورته دَهرڅه نه مخكښې طعام حاضر كړوموسى عليه السلام دَخوراک نه انكاراوكړو اوورته ئې اوئيل چه مونږداسې خلک يوچه خپل دين په دنياآوخپله نيكى په پيسونه خرڅوو، نوشعيب عليه السلام ورته اوئيل چه دااجرت اوبدله دَسقى نده بلكه زمونږعادت ميلمستياوركول دى نوموسى عليه السلام خوراک شروع كړو.

﴿وَقَصَّ عَلَيۡهِ ٱلۡقَصَصَ﴾موسیٰ علیه السلام شعیب علیه السلام ته خپله ټوله واقعه بیان کړه چه د مصرنه راغلم اووالي راغلم؟ نوشعیب علیه السلام ورته تسلی ورکړه ، بې غمه شه ستادعاالله تعالیٰ قبوله کړیده اوتاته د فرعونیانو ظالمانونه .نجات میلاوشویدې ځکه چه د هغوئ حکومت په مدین کښ نه وو.

﴿قَالَتۡ إِحۡدَىٰهُمَا﴾ د دې دواړوزنانه ؤنه یوې خپل پلارته مشوره ورکړه اوداهغه وه چه موسیٰ علیه السلام رابلنې پسې تللې وه، اوغالبًاداکشره وه نوم ئې صفوره وو، اوورستوئې بیانکاح هم د موسیٰ علیه السلام سره اوشو، نودې خپل پلارحضرت شعیب علیه السلام ته عرض اوکړوچه د دې ځاروود پاره به ته ملازم نیسی ځکه چه مونږلوئی شوي یواوته خپله ضعیف اوکمزورې ئې، نود ده نه بل مناسب کس نشی میلاویدلې ځکه چه په ملازم کښ کوم دوه(۲)بنیادی اوضروری صفتونه پکاردی هغه په ده کښ موجوددی (۱)یودکارقوت اوصلاحیت دې اودویم(۲)صفت امانت دې، دکمال فائدی حاصلولو د پاره دادواړه صفات ضروری دی ځکه چه قوت بغیرد امانت نه پکارنه راځی اوامانت بغیرد قوت نه فائده نه ورکوی. د قوت اندازه دی زنانه دکانړی اوبوقې نه لګولې وه چه د لس(۱۰)کسانو د طاقت کانړې اوبوقه حضرت موسیٰ علیه السلام یو اځې لرې کړې ووا وبوقه ئې راویتسلې وه اود امانت اندازه ئې د دینه لګولې وه چه کله موسیٰ علیه السلام د دې سره د شعیب علیه السلام ملاقات د پاره راتللونوده دی زنانه ته اوئیلوچه ته خمانه، ورستوراځه د ې د پاره چه ستاپه بدن باندې ځمانظراونه لګی.

**فائده**:ابن کثیر رحمه الله د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قول نقل کړیدې چه په عاموخلکو دیرزيات عقلمنددری(۳)کسان تیرشویدی(۱)حضرت ابوبکر رضی الله عنه چه په خپل عقل اوفراست سره ئې د ځان نه، ورستوحضرت عمر رضی الله عنه خلیفه کړو(۲)عزیزمصربه چه د یوسف علیه السلام په باره کښ وئیلی ووچه اکرمی مثواه (۳)د شعیب علیه السلام دابچئ چه د موسیٰ علیه السلام په باره کښ خپل پلارته مشوره ورکړه چه ﴿ٱسۡتَـٔۡجِرۡهُۖ إِنَّ خَيۡرَ مَنِ﴾.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | إِنِّيٓ | أُرِيدُ | أَنۡ | أُنكِحَكَ | إِحۡدَى | ٱبۡنَتَيَّ | هَٰتَيۡنِ | عَلَىٰٓ |

اوونیل شعیب علیه السلام بې شکه ځمااراده ده چه په نکاح کښ درکړم تاته یوه خپله لو د دې دوؤ لونړونه په شرط د دې

| |
|---|
| اَنۡ تَاۡجُرَنِیۡ ثَمٰنِیَ حِجَجٍ ۚ فَاِنۡ اَتۡمَمۡتَ عَشۡرًا فَمِنۡ عِنۡدِكَ ۚ وَمَاۤ اُرِيۡدُ |
| چه ته به مزدوری کوې څما اته کاله.اوکه پوره کړل تالس کاله نوستاد طرفه احسان دی اوخه نه غواړم |
| اَنۡ اَشُقَّ عَلَيۡكَ ؕ سَتَجِدُنِیۡۤ اِنۡ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰلِحِيۡنَ ﴿۲۷﴾ |
| چه سختی اوکړم په تا زړه چه ته به اومومې ماکه د الله ﷻ خوښه وی د نیکانو نه |

﴿قَالَ اِنِّیۡۤ اُرِيۡدُ﴾ هر کله چه شعیب علیه السلام ته دحضرت موسی علیه السلام دقوت، دیانت اوامانت پته اولګیدله نوخپله لورئې ورته په نکاح سره پیش کړه پدې شرط چه ته به څماملازمت کوې،حضرت شعیب علیه السلام په خپل کلام کښ داسې اووئیلوچه﴿اُرِيۡدُ اَنۡ اُنۡكِحَكَ﴾یعنی لفظ اراده ئې ذکرکړواو"انکحک"صیغه دمستقبل ئې ذکرکړه اوتعین دلورئې اونکړو.وجه دا ده چه دادشعیب علیه السلام دطرف نه وعده دنکاح(کوژدن غوندې)وه،اوعقدنکاح نه وؤځکه چه عقدنکاح کښ ایجاب اوقبول وی اوپه صیغې دماضی سره وی اوتعین پکښ دمنکوحې وی اوپدې ایت کښ دلیل دې پدې چه عادت دصالحانو دادې چه پخپله خپلې بچۍ دنکاح دپاره پیش کوی چه کله صالح کس اوینی لکه حضرت عمر رضی الله عنه خپله بچۍ حضرت حفصه رضی الله عنها په حضرت عثمان رضی الله عنه اوپه حضرت ابوبکرصدیق باندې پیش کړې وه.

﴿عَلٰۤى اَنۡ تَاۡجُرَنِیۡ﴾یعنی ته به څمااته(۸)کاله مزدوری کوې،په"علی"کښ دوه(۲)قوله دی،اکثرمفسرین فرمائی چه"علی"دلته دشرط دپاره دې اوپه نکاح کښ داسې شرطونه لګول چه دمقتضی دعقدخلاف نه وی جائزدی،لکه یوزنانه دیوسړی سره پدې شرط نکاح اوکړی چه یوکال پورې به ماته دقرآن تعلیم راکوې نوداشرط جائزدې.

فراوغیره حضرات فرمائی چه"علی"دعوض دپاره دې،نودایت مطلب دادې چه"علی ان تجعل ثوابی ان ترعی غنمی ثمانی سنین"یعنی ته به ماته دې عوض اوبدله داراکوې چه اته(۸)کاله به څمابیزې څروې،نودظاهردایت نه دامعلومیږی چه حضرت شعیب علیه السلام دخپلې لورمهرد موسی علیه السلام مزدوری دځان دپاره مقررکړه،نوپدې باندې اعتراض واردیږی چه مهردلورحق وودشعیب علیه السلام حق نه وو،نوځرنګه شعیب علیه السلام دامهرخپل حق اوګنړلو(۱)حضرت شاه انورشاه کشمیری رحمه الله ترینه جواب داکړیدې چه دابچۍ بالغه وه،دی په خپلې رضاسره خپل مهرخپل

پلارته هبه کړو،نومنافع خدمت دادرحقیقت دَدې مهروو،اودې پخپلې رضاسره پلارته اوبښلونوځکه حضرت شعیب علیه السلام داخپل حق اوګنړلواوزمونږپه شریعت کښې هم داجائزه ده چه یوبالغه زنانه په خپلې رضاسره خپل حق چاته ورکوی ورکولې شي.

(۲)داهم ممکنه ده چه دابیزې دَشعیب علیه السلام دَلورې اودَدغې بیزوخدمت مهردَدې وواوشعیب علیه السلام خان ته نسبت کول دَولایت دَوجې نه وی حقیقةً نه وی(۳)بعضې مفسرینو دا جواب کړیدې چه تاجرنی په معنی دَاجرت اغستلوسره دې اودَعوض اواجرت ورکولوپه معنیٰ سره ندې،نودَایت معنیٰ اومقصددادې چه حضرت شعیب علیه السلام موسی علیه السلام ته اوئیلوچه څه به خپل لورتاته په نکاح سره درکوم په مهرمعین سره اوته به څمابیزې څروی.دَهغې به ته څمانه، اجرت اخلې،.

﴿ثَمَٰنِيَ حِجَجٍ﴾اجرت کښې تعین دَمدت ضروری وې،بغیردَتعین دَمدت نه،اجرت فاسد دی نوځکه تعین دَمدت ئې اوکړو.﴿فَإِنْ أَتْمَمْتَ عَشْرًا﴾نواته(۸)کاله شرط وو،اولس(۱۰) کاله تفضل اوتبرع په طوروونودَ﴿فَمِنْ عِندِكَ﴾معنٰی ده تفضلاً منک لاالزامًامنی لک.﴿وَمَآ أُرِيدُ أَنْ أَشُقَّ عَلَيْكَ﴾یعنی په لس(۱۰)کالوپوره کولوباندې به دی نه مجبوره کوم،اونه به په تاباندې سخت کاراچوم.﴿سَتَجِدُنِيٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ﴾دائې تبرکًااواستعانةً اوئیلوچه ته به اوګورې ان شاءالله چه څه وعدې لره پوره کونکې اومعاملاتوکښې نرمی کونکې یم.

**فائده**:دَظاهردَآیت نه بعضې خلکواستدلال کړیدې چه منافع مطلقًادَمهرمقرر کیدلو صلاحیت لرې،برابره خبره ده چه منافع دَحروی،یادَعبدمتقوم وی یاغیرمتقوم. احنافومسلک دادې چه منافع په دوه(۲)شرطونوسره دَمهرجوړیدلوصلاحیت لرې(۱)منافع به متقوم وی،لکه بیزې څرول،دَخاوندغلام دَښځې خدمت کول،یعنی یوسړې دَښځې سره پدې باندې نکاح اوکړې چه څماغلام به ستایوکال خدمت کوی یعنی دَغلام خدمت دَښځې مهرمقررکړې شی،اوکچرته منافع متقوم نه وی نومهرهم نشی جوړیدلې لکه تعلیم قرآن شو.

(۲)دَمنافعومتقومودَپاره څه مانع نوی موجود،یعنی قلب موضوع نه لازمیږی اوکچرته قلب دَموضوع راتللونوبیابه دَغه شان منافع مهرنشی جوړیدلې،مثلًایوازادسړې دَیوزنانه سره

ددې په عوض نکاح اوکړی چه داخاوندبه دَدې ښځې یوکال پورې خدمت کوی. نودَازادسړی دَښځې منکوحې خدمت کول قلب موضوع ده ځکه چه په ښځې باندې دَخاوندخدمت ضروری دې. اودجمهوروانمو(شافعی، مالک، احمد)اصول اوقانون دادې چه کُلَّ ماجاز(۱)ثمنافی البیع(۲)اواجرة فی الاجارة من العین(۳)والدین(۴)والمال الموجل والقلیل والکثیر(۵)ومنافع الحر والعبدوغیرهاجازان تکون صداقًا(المغنی لابن قدامه)لیکن دَدونی مسلک دَمذکوره واقع دَ شعیب علیه السلام اوموسی علیه السلام نه، نه ثابتیږی.

**فائده** نمبر(۲): امام شافعی رحمه الله دَدې ایت مذکورنه استدلال کړیدې چه انعقاددَنکاح په غیردَلفظ دَ"نکاح" او"تزویج"نه په بل لفظ سره نه کیږی. لیکن استدلال دَدې مدعی دَپاره پدې ایت سره کول ځکه ضعیف دی چه تنصیص دَیولفظ مستلزم ندې دَنفی دَماعدادَپاره، اواحنافو مسلک دادې چه نکاح انعقادپه هرهغه لفظ سره کیږی چه وضع شوې وی دَتملیک اعیان اودَتملیک حالی دَپاره لکه لفظ دَنکاح، تزویج، بیع، هبه، تملیک وغیره شو. اوکوم لفظ چه دَتملیک المنافع اودَتملیک غیرحالی دَپاره وضع شوې وی نوپه هغې سره نکاح نه منعقدکیږی لکه لفظ دَ"اجارې"چه دَتملیک المنافع دَپاره وضع دې، یالفظ دَ"عاریة"چه دَتملیک غیرالحالی دَپاره وضع دې، البته دَامام کرخی رحمه الله مسلک دادې چه هرهغه لفظ چه وضع وی دَتملیک دَپاره مطلقًاتملیک الاعیان دَپاره وی یاتملیک المنافع دَپاره وی، تملیک حالی دَپاره وی یاغیرحالی دَپاره، پدې ټولوالفاظوسره نکاح منعقدکیږی. لیکن مسلک دده مخالف دې دَجمهورونه، اوغیرمفتیٰ به دې(والله اعلم).

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | ذٰلِكَ | بَيْنِيْ | وَبَيْنَكَ | ط | اَيَّمَا | الْاَجَلَيْنِ | قَضَيْتُ | | |
| اووئیل | موسی علیه السلام چه | داخمااوستامینځ | کښ | وعده | شوله کومه | دَدې | دواړونیټونه | چه | ماپوره کړه |
| فَلَا | عُدْوَانَ | عَلَيَّ | ط | وَاللّٰهُ | عَلٰى | مَا | نَقُوْلُ | وَكِيْلٌ | ﴿۲۸﴾ |
| نونه | به | وی | زیاتې | په | ما.اوالله تعالیٰ په | هغه | څه | چه | مونږوایوګواه دې |

﴿قَالَ ذٰلِكَ بَيْنِيْ﴾حضرت موسی علیه السلام دَحضرت شعیب علیه السلام سره معاهده اوکړه اوعقدئې قبول کړو. اوورسره ورسره ئې داهم ورته اوئیل چه﴿اَيَّمَا الْاَجَلَيْنِ﴾چه کچرته ماته(۸)کاله

مزدوری اوکړه اونوره مې بیانه کوله نوته به ماپه زیات وخت دپاره په مزدورئی نه مجبوره کوې اوکه لس(۱۰)کاله مې اوکړه نوځمابه ستاسره احسان وی اوپه نورزیات وخت باندې به مې نه مجبوره کوې.اودعقددخبروپه وخت کښې تعین دمنکوحې نه وؤشوې.لیکن چه کله عقدتمام کیدلونوبیاتعین دمنکوحی هم شعیب علیه السلام اوکړواوچونکه قرآن مجیددواقعې مقصودی حصې بیانوی اوغیرمقصودی نه ذکرکوی نودې وجې نه تعین دمنکوحی وغیره داتفصیلات قرآن مجیدنه دی ذکرکړی،نولهذادااشکال نه واردیږی چه تعین دمنکوحی نه بغیرڅرنګه عقدنکاح اوشو.اوبعضِ مفسرین فرمائی چه حضرت شعیب علیه السلام پدې الفاظوسره

چه﴿إِحْدَى ٱبْنَتَيَّ هَٰتَيْنِ﴾سره موسی علیه السلام ته په خپلودواړولونړوکښې اختیارورکړوچه پدې دواړوکښې ته دکومې سره غواړې،دهغې نکاح به څه ستاسره اوکړم نودعقدپه تمام کښې موسی علیه السلام کشره خوښه کړه اوبیادهغې سره نکاح اوکړواومفسرین فرمائی چه حضرت موسی علیه السلام دکشرې سره ځکه نکاح خوښ کړوچه داموسی علیه السلام پسې راغلې وه،موسی علیه السلام د دې چال،چلن،دخبرودانداز وغیره نه معلومه کړې وه چه داوبره باحیاء ده اوډیره سمجداره اوهوښیاره ده،په خلاف دمشرې نه،چه دهغې په باره کښې موسی علیه السلام ته هیڅ اندازه نه وه.

﴿وَٱللَّهُ عَلَىٰ مَا نَقُولُ وَكِيلٌ﴾ظاهره داده چه داقول دموسی علیه السلام دې اوهرکله چه په عقدباندې اشهاد،یعنی ګواه مقررکول پکاروی چه ددواړومتعاقدینوپه مینځ کښې ګواه وی،نوددوئ پدې خپل عقدباندې الله تعالی ګواه جوړکړو.

**فائده**:دواړوپیغمبرانو اکتفاپه اشهاددالله تعالی باندې اوکړه،اومخلوقاتوکښې ئې څوک په خپل عقدباندې ګواه جوړنکړو،نوپه عقداجاره کښې بالاتفاق اشهادشرط ندې،لیکن په عقدنکاح کښې دجمهوروپه مسلک اشهادشرط دې اوبغیرد ګواهانونه،نکاح صحیح ندې،اوکاسانی،دامام مالک رحمه الله نه نقل کړیدی چه صحت دنکاح دپاره صرف اعلان شرط دې اواشهادضروری ندې،لیکن دامام مالک رحمه الله په مسلک کښې تحقیق کولونه ورستو داسې معلومیږی چه دامام مالک رحمه الله دنفی دضرورت نه.مقصدمطلقانفی نه ده بلکه مقصدئې دادې چه کچرې دنکاح په وخت کښې ګواهان موجودنه وؤ.نونکاح دی اوکړې شی اونه دی مؤخرکوی،اواعلان اوتشهیردی اوکړی،اوکه په هغې موقعې باندې خلک اوګواهان

موجودووا وپه هغوئی باندې دکتسان شرط اولګولې شی چه تاسو به ګواهی نه ورکوئی نو:
امام مالک رحمه الله په مسلک دا نکاح بالکل ندې جائزاګرچه دَاحنافو په مسلک باندې جائزدې
امام مالک رحمه الله دَدې ایت نه هم استدلال کړیدې او ده په روایت دَترمذی سره هم استدلال
کړیدې چه نبی پاک ﷺ فرمائی "اعلنواالنکاح ولوبالدف" اودغه شان امام مالک رحمه الله فرمائی چه
نکاح عقدمعاوضه دې دَنوروعقودوپشان اوپه نوروعقودوکښ خو اشهادضروری ندې. نو
لهذاپه نکاح کښ هم اشهادضروری ندې جمهورچه اشهادضروری کوی په روایت دَترمذی
سره استدلال کړیدې چه نبی ﷺ ارشاددې "البغایااللاتی ینکحن انفسهنّ بغیربینة" چه بغیردګواهانو
نه نکاح کوونکو ته "بغایا" (زناکار) وئیلې شویدی.
دغه شان بیهقی دَحضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت نقل کړیدې (حاکم وغیره تصحیح هم کړیده)
فرمائی چه: قال رسول الله ﷺ لانکاح الابولی وشاهدی عدل، اودغه شان امام مالک رحمه الله په
موطاکښ دَحضرت عمر رضی الله عنه دَدورواقعه نقل کړیده چه حضرت عمر رضی الله عنه ته دَنکاح یوه معامله
راوړې شوه چه په هغې نکاح کښ ګواه یوسړې اویوه ښځه وه، نوحضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیلو
چه "هٰذانکاح السرولااجیزه" باقی دَامام مالک رحمه الله استدلال په ایت سره ځکه ضعیف دې چه
دَظاهردَایت نه معلومیږی چه دااشهادپه عقد اجاره باندې وو، نه په عقدنکاح باندې اوپه عقد
نکاح باندې ګواهان څوک وو؟ قرآن دَدینه خاموش دې اوکه بالفرض تسلیم کړې شی چه دا
اشهادپه عقدنکاح باندې هم وونوظاهره خبره ده چه "شرائع من قبلنا" باندې عمل کول هغه
وخت کیدې شی چه دَهغې په مقابله کښ زمونږپه شریعت کښ نص نه وی موجود اویا بلا
تردید اونکیراودَعذاب اوزجرپه موقعه نوی ذکراودلته خونص یعنی حدیث موجوددې اوداهم
ممکنه ده چه دَحضرت شعیب علیه السلام په قوم کښ څوک دَشهادت والانوې موجود، ځکه چه ټول
قوم دَهغه سخت دښمن وو، نودَعذراومبجوریئی دَوجې نه ئې اکتفاء په اشهاددَالله تعالیٰ باندې
کړې وی.
اوهرچه دې حدیث نواولاً هغه ضعیف دې ځکه چه مداردَهغې په عیسیٰ بن میمون باندې
دې، اوهغه ضعیف راوی دې، اوثانیاً په تقدیردَصحت سره اعلان په حضوردَشاهدنیوسره
حاصلیږی. نولهذااحدیث نه نفی دَاشهادنه راځی بلکه مؤید دې دَاشهاددَپاره، صاحب هدایه

داجواب کړيدي چه دَدې حديث نه وجوب دَاعلان او دَتشهير ثابتيږي، او دَاعلان شرطيت دَپاره دَنکاح نه ثابتيږي.

ملاعلي القاري رحمه الله په مرقاة شرح دَمشکوة کښ دَدې حديث مذکور "اعلنوا النکاح" په ذيل کښ تحقيقي کلام کړيدي خلاصه دَهغې داده چه دَحديث نه اعلان هم ثابت دې او "اشهاد" هم ثابت دې. نولهذا په اشتراط دَاعلان کښ خلاف نيشته دې اختلاف پديکښ دې چه دغه مشروط اعلان که په ضمن دَمجرد اشهاد کښ حاصل شي او په ګواهانو باندې پابنه دې دکتمان اولګولې شي چه تاسو به دَدې نکاح اظهار نه کوئی نو آيا داسې اشهاد صحيح دې او که ندې صحيح؟

نو دَاحنافو دَمسلک موافق داسې اشهاد صحيح دې او دَامام مالک رحمه الله په مسلک داسې اشهاد صحيح ندې، او کچرته اعلان بغير دَاشهاد نه راشي نو دَامام مالک رحمه الله په مسلک دا نکاح جائز دې او دَجمهورو په مسلک ندې جائز. نو خلاصه دَبحث داده چه اشهاد سره اعلان مستلزم دې او اعلان سره اشهاد ندې لازم، ځکه چه اشهاد خاص دې او اعلان عام دې نو هر اشهاد اعلان وی خامخا، او هر اعلان ضروری نده چه اشهاد وی لکه اعلان په حضور دَصبيان او غلامانو کښ (مرقاة).

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا | قَضٰى | مُوْسَى | الْاَجَلَ | وَسَارَ | بِاَهْلِهٖٓ | اٰنَسَ | مِنْ | جَانِبِ | الطُّوْرِ |
| [1]پس کله | چه پوره | کړه موسیٰ عليه السلام | نيته | اوروان شو | دَشپې دَخپلی ښځی سره | اوئی ليدلو | په طرف | دکوه | طور |
| نَارًا | ۚ | قَالَ | لِاَهْلِهِ | امْكُثُوْٓا | اِنِّيْٓ | اٰنَسْتُ | نَارًا | لَّعَلِّيْٓ | اٰتِيْكُمْ |
| اور، | اوئي | وئيل | خپلی ښځی ته | چه حصارشئ | دلته | بيشکه | ما اوليدلو | اور | کيديشی چه راوړم تاسوته |
| مِّنْهَا | بِخَبَرٍ | اَوْ | جَذْوَةٍ | مِّنَ النَّارِ | لَعَلَّكُمْ | تَصْطَلُوْنَ | ۲۹ | | |
| دَهغی نه | خبر دَلارې | يا راوړم | لمبه (سوې دَاور، دَپاره | دَدې | چه | تاسو ورته | ګرم شئ | | |

---

[1] خلورم مقام دَواقعی

﴿فَلَمَّا قَضَىٰ مُوسَى﴾ دَدې ایت نه دَواقعې څلورم(۴)مقام شروع کیږی ترایت نمبر(۳۵) پورې.پدیکښې دَموسی علیه السلام دَمدین نه واپس مصرته تلل،نبوت سره دَمعجزاتو . میلاویدل، دَهارون علیه السلام په حق کښې دَنبوت دعاقبلیدل،وغیره ذکردی﴿اَلْاَجَلَ﴾ دَدینه مراااته(۸)کال لازمی اودوه(۲)کاله اختیاری دی،دَحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه په بخاری شریف کښې مروی دی چه حضرت موسی علیه السلام لس(۱۰)کاله مزدوری کړې وه ځکه چه دَالله ﷺ رسول چه څه اوائی نوهغه کارکوی،اودغه شان دَپیغمبرانوشان دادې چه عمل په عزیمت اواکثرباندې کوی اودَنبی پاک ﷺ معمول هم داووچه عمل به ئې په اکثرباندې کولواوچه دَچانه به ئې څه واغستل نوبیابه ئې زیات ورکولو.

﴿وَسَارَ بِاَهْلِهٖٓ﴾ موسی علیه السلام څه وخت مدین کښې تیرولونه ورستودَخپلې بی بی سره دَخپلې مور،وروراوخورملاقات دَپاره مصرته روان شو،اوخیال ئې داووچه ډیروخت تیرشو دَفرعون نه به دَقبطی دَقتل والاخبره هیره شوی وی اوځه به خپل خپلوانوسره ملاقات اوکړم، اوموسی علیه السلام چه کله دَشعیب علیه السلام نه اجازت واغستلواوروانې دلونوشعیب علیه السلام ورله تحفه کښې څه بیزې هم ورکړې اوخنې روایاتوکښې دی چه دَبیزوسره ئې یوخادم هم ورکړو.او موسی علیه السلام دَخپل سفردَپاره دَعام آمدورفت لارې نه،علاوه بله لاره چه غیرآباده وه هغه ئې منتخب کړه،دَسفرپه دوران کښې یوه شپه موسی علیه السلام نه لاره ګډه وډه شوه،دَسختې تیارې سره سره سخته یخنی هم وه،اوباران سره سره واوره هم وه،بیزې هم یوطرف اوبل طرف ته ګډې وډې شوې،اودَموسی علیه السلام بی بی قریب الولادة هم وه،موسی علیه السلام سخت پریشانه ووچه اچانک ئې دکوه طورپه طرف رنړااولیدله چه حقیقت کښې نورووااوموسی علیه السلام پرې ګمان دَاور اوکړو.پدې ایت کښې دلیل دې پدې چه سړې خپله بی بی دَخان سره دګناه ځائې نه بغیرهرځائې ته بوتللې شی.

﴿قَالَ لِاَهْلِهِ﴾ موسی علیه السلام خپلې بی بی ته اوفرمائیلوچه تاسودلته انتظاراوکړئ مااوراوکتلونوځه زمه چه دَلارې خبرراوړم اوستاسودګرمیدلودَپاره دَاوربندوبست هم اوکړم، او"امکثوا"صیغه دَجمعې بناء برقول راجح دَتعظیم دَپاره ده،ځکه چه دَموسی علیه السلام بی بی دَ حضرت شعیب علیه السلام بچئ وه اودونی ته حکم دَ"مکث"کول محمول دی په عرف باندې چه عام

طورباندې په عرف کښې داسې الفاظ خلک په داسې مواضعو کښې استعماله وی، او دا مقصد نه دې چه د موسی علیه السلام بی بی چرته بل طرف ته تلله

﴿ لَّعَلِّيٓ ءَاتِيكُم ﴾ موسی علیه السلام د او رکتل په حرف "انّ" سره ذکرکړو چه د تاکید او تحقیق د پاره دې (۱) ځکه چه رنړا کتلو کښې موسی علیه السلام ته څه شک نو و (۲) او بل دا چه خپلې بی بی ته ئې پدې حالاتو کښې تسلی ورکوله، ځکه چه د سخت تکلیف سره مخامخ وو علاقه ئې هم خپله نوه، او مکان هم بالکل خوشې وو، نو الیق ورسره تاکیدوو نو ځکه ئې حرف تاکید راوړو، او د "اور" راوړل چونکه مترقب او امر مجهول وو، نو ځکه ئې په حرف ترجی یعنی "لعلّ" سره ذکرکړو او یائې تواضعًا حرف ترجی استعمال کړې دې.

﴿أَوْ جَذْوَةٍ﴾ "او" د مانعة الخلو د پاره دې او "جذوة" د سکروټې والاهغه لرګی ته وئیلې کیږی چه بغیر د شغلې نه، وی او بعض فرمائی چه "جذوة" غټ لرګی ته وائی برابره خبره ده چه "اور" ورکښې وی او یانوی، او د دې وجې نه د "جذوة" نه ورستو اضافه د "من النار" او شوه، چه "من" د لته بیانی دې او بیان ئې د "جذوة" او کړو. ﴿لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُونَ﴾ دا دلیل دې پدې چه داشپه د ژمی وه او دوئی ته یخنی شوې وه.

**فائده**: په سورة النحل کښې موسی علیه السلام اتیان په "سین" سره مصدر کړې شوې وو "ساتیکم" وئیلې شوی وو، چه دلالت په قرب باندې کوی، او دلته په "لعلّ" سره ذکرکړې شو چه دلالت په ترجی باندې کوی، نو د دې دواړو په مینځ کښې څه منافات نیشته دې، ځکه یو څیز زر او په جلتئ سره راوړل هم کله کله متیقن نوی بلکه مترجی وی.

| |
|---|
| فَلَمَّآ أَتَىٰهَا نُودِيَ مِن شَٰطِيِٕ ٱلْوَادِ ٱلْأَيْمَنِ فِي ٱلْبُقْعَةِ ٱلْمُبَٰرَكَةِ |
| نو کله چې راغې اورته اوازورته اوکړې شو د جانب د کندې نه چه ئې خی طرف وو، په توټه مبارکه کښې |
| مِنَ ٱلشَّجَرَةِ أَن يَٰمُوسَىٰٓ إِنِّيٓ أَنَا ٱللَّهُ رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۞ وَأَنْ أَلْقِ عَصَاكَ |
| د اونی نه، چه اې موسی! بیشکه څه صرف څه الله یم رب د ټول جهان یم او او غورځوه همساخپله. |

| |
|---|
| فَلَمَّا رَاٰهَا تَهۡتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ وَّلّٰى مُدۡبِرًا وَّلَمۡ يُعَقِّبۡ ؕ يٰمُوۡسٰٓى |
| نو كله ئې چه اوليدله همسا خوزيدله لكه دا د ماربچي دې نوروان شو په شا او راواپس نه شو (مونږ ورته اوويل) اې موسى |
| اَقۡبِلۡ وَلَا تَخَفۡ ؕ اِنَّكَ مِنَ الۡاٰمِنِيۡنَ ﴿۳۱﴾ اُسۡلُكۡ يَدَكَ فِىۡ جَيۡبِكَ تَخۡرُجۡ |
| رامخ كړه او مه يريږه، بيشكه ته دَامان موندونكونه ئې. داخل كړه لاس خپل په خپل گريبان كښ رابه اوځى |
| بَيۡضَآءَ مِنۡ غَيۡرِ سُوۡٓءٍ ۫ وَّاضۡمُمۡ اِلَيۡكَ جَنَاحَكَ مِنَ الرَّهۡبِ فَذٰنِكَ |
| تك سپين بې دَځه مرض نه، او اولگوه خپلى سينى سره وزر (لاس) خپل دَوجې دَيرې نه پس دا دواړه |
| بُرۡهَانٰنِ مِنۡ رَّبِّكَ اِلٰى فِرۡعَوۡنَ وَمَلَا۟ئِهٖ ؕ اِنَّهُمۡ كَانُوۡا قَوۡمًا فٰسِقِيۡنَ ﴿۳۲﴾ |
| دليلونه دى دَطرف دَرب ستا نه (پس لاړشه) فرعون ته، او سردارانو دَهغه ته بيشكه دوئ دى قوم فاسقان |

﴿فَلَمَّآ أَتٰىهَا نُودِىَ﴾ ضمير يا راجع دې "اور" ته او يا راجع دې "شجرې" يعنى ونې ته، په كومې "ونې" كښ چه موسى عليه السلام دا اور كتلې وو، ليكن اول احتمال زيات غوره دې او "من الشجرة" بدل اشتمال دې دَ "من شاطئ" نه او "الايمن" صفت دَ "شاطئ" دپاره دې او "الايمن" نه مراد ښې طرف دَحضرت موسى عليه السلام دې او چونكه پدې خطې دَزمكه كښ الله تعالى مختلف قسم ظاهرى او باطنى بركتونه ايخى دى نو ځكه ئې توصيف په "المباركة" سره او كړې شونو الله تعالى موسى عليه السلام ته خپل بابركت كلام شرف نصيب كولو دَپاره دَبابركت جانب (چه ښې طرف دې) او دَبابركت مقام انتخاب اوكړو.

بهرحال: موسى عليه السلام چه كله دَ "اور" "والاخائ" ته قريب راغلې نو په دغې بركت والاخائ كښ دَبركت والاطرف نه، دَ "اونې" نه ورته اواز راغلې چه ﴿أَن يّٰمُوسٰىٓ﴾ "ان" تفسيريه دې دا تفسير دَ "نودى" دې يعنى دا اواز ورته اوكړې شوچه اې موسى! زه الله يم چه دَټولو كائناتو رب، متصرف او كارسازيم، او موسى عليه السلام ته الله تعالى علم ضرورى او بديهى پدې وركړو چه هغه پوهه شوچه اواز كوونكې الله تعالى دې (والتفصيل قد مرّ فى سورة طه).

**فائده(۱)**: سورة طٰه کښې تفسیر دَنداء داسې ذکرشوې ووچه یاموسیٰ انّی اناربّک...الخ په سورة النمل کښې داسې ذکرشوې وو ان بورک من فی النّار اودلته داسې ذکرشوچه انّی انا الله ربّ العالمین نو دَدې په مینځ کښې څه منافات نیشته دې، صرف لفظی تغایردې، معنی اومقصد دَټولو یودې، په هرځائ کښې دَهغې مقام مناسب الفاظ سره دامقصداومعنی بیان کړې شویده امام رازی رحمه الله وغیره حضرات فرمائی چه الله تعالیٰ داټول کلامونه کړیدې لیکن په یوځائ کښې ټول نه دی ذکرشوی بلکه دَهرمقام سره دَهغې مناسب کلام ذکرکړې شویدې.

**فائده(۲)**: موسیٰ علیه السلام چه کوم کلام اونداء اوریدلې وه نوپدې اتفاق دې چه دابغیر دَ واسطې دَملک یعنی فرشتې نه وو، البته پدیکښې اختلاف دې چه داکلام لفظی حادث، مرکب دَصوت اودَحروفو نه وواوکه داکلام نفسی قدیم بلاصوت وحروف وو، نوبعض علماء ماتریدیه اول احتمال ته ذهاب کړیدې اوجمهورومتکلمینودویم احتمال ته ذهاب کړیدې تفصیل سره دَدلائلو په سورة طٰه کښې تیرشویدې.

﴿ وَأَنْ أَلْقِ عَصَاكَ﴾ داعطف دې په اَن یٰموسیٰ باندې اودَاولې معجزې ذکردې یعنی دَموسیٰ علیه السلام په لاس کښې عصاوه، الله تعالیٰ ورته حکم اوکړوچه داعصااوغورځوه اوسورة طٰه کښې تیرشویدی چه موسیٰ علیه السلام دَخپلې عصامتعدد فوائداوحکمتونه بیان کړل، نو الله تعالیٰ ورته حکم اوکړوچه دکومې عصاتادومره فوائدبیان کړل دااوس اوغورځوه نوموسیٰ علیه السلام وغورځوله نو﴿فَلَمَّا رَءَاهَا تَهْتَزُّ﴾ فاء فصیحیه ده دَدینه مخکښې عبارت مقدردې، تقدیر دَ عبارت دارنګې دې فالقاهافصارت ثُعباناًفاهتزّت یعنی موسیٰ علیه السلام عصا اوغورځوله نودَهغې نه اژدهاجوړه شوه اوتیزحرکت ئې شروع کړو، موسیٰ علیه السلام چه کله داحالت اوکتلوچه دامار باوجوددَخپلې غظیمې جثې داسې حرکت کوی لکه دَنری پشان، نوبتقاضابشریت موسیٰ علیه السلام اوویریدلو اوپشاروان شوچه مارطرف ته ئې بالکل نه کتلو. دَدینه معلومه شوه چه معجزه دَپیغمبرپه خپل اختیارکښې نه وی.

﴿ إِنَّكَ مِنَ ٱلْآمِنِينَ﴾ دَمن الأمنین نه مراد من المرسلین دی، یعنی داعصاچه اوس ورنه اژدهاجوړه شویده تاته هیڅ قسم تکلیف نشی دررسولې ځکه چه ته دَهغه خلکونه ئې چه

الله ﷻ ته ډيرقريب دى،چه انبياءكرام دى،دكمال قرب دوجې نه هغوئى دمخلوق ويرې اوضررنه په امن كښې وى.لكه په سورة النمل كښې دى"الى لايخاف لدىَّ المرسلين".

﴿ ٱسْلُكْ يَدَكَ فِى جَيْبِكَ ﴾دادويمې معجزې ذكردې،چه خپل لاس په خپل گريبان كښې دننه په ترخ كښې كيده چه واپس ئې رااوباسې نودابه رڼاكوى،اوتاته به څه تكليف يامرض هم نه وى،دَ﴿ مِنْ غَيْرِ سُوٓءٍ ﴾نه مرادتكليف اومرض دې لكه برص شو.په سورة طٰه كښې لفظ دَ"واضمم"ذكرشوې وو.اودلته دَ"اسلك"ذكرشو.فرق دادې چه"سلك"اول وى اوورستوبياضم وى.نوچونكه پدې سورة كښې دَموسى عليه السلام ابتدائى حالات دَنبوت وغيره ذكركيدلونومناسب ورسره"اسلك"ووا وپه سورة طٰه كښې مطلق احوال كيدلونومناسب ورسره"اضمم"وو.نوځكه هلته"ضم"اودلته دَ"سلك"لفظ استعمال شو.

﴿وَٱضْمُمْ إِلَيْكَ جَنَاحَكَ﴾دَدې ايت متعددتوجيهات شويدى ليكن دوه(۲)توجيهات پكښې زيات غوره اوراجع دى(۱)اوله توجيه داده چه داتتمه دَدويمې معجزې ده اومقصدئې دادې چه موسى عليه السلام ته الله ﷻ اوفرمائيلوچه كله ته خپل لاس دَگريبان نه رااوباسې او دارڼا كوى،اوته ترينه اوويريږې نوبيائې واپس ترخ كښې كيده اورااوباسه نودې به خپل اصل حالت ته واپس شوې وى نودَايت مقصددادې چه موسى عليه السلام اويريدلوچه څماد الاس چه رڼاكوى څه مرض راته لاحق شواوكه څه بل څه وجه ده،نوالله ﷻ ورته حكم اوكړوچه دالاس واپس هغه ځائى كښې كيده اوبيائې رااوباسه نوخپل اصل حالت ته به واپس شوې وى.نوموسى عليه السلام چه كله داعمل اوكړونومطمئن شوچه دامرض ندې بلكه معجزه ده(بحر).

اشكال واردیږى چه دَدې ايت دَسورة طٰه دَايت سره تعارض دې،ځكه چه هلته داسې وئيلى شوى ووچه:واضمم يدكَ الى جناحكَ(طٰه:۲۲)اودلته دى"واضمم اليكَ جناحكَ"نوپه سورة طٰه كښې"جناح"مضموم اليه وو،اودلته مضموم دې،نويوڅيزهم مضموم اوهم مضموم اليه،داتعارض دې؟نوجواب ترينه دادې چه دَ"جناح"اطلاق په پوره لاس باندې كيږى،برابره خبره ده كه هغه ښې لاس وى اوياچپ(گس)لاس وى،نوپه سورة طٰه كښې چه"جناح"مضموم ذكرشويدې دَهغې نه مراد ښې لاس دې يعنى خپل ښې لاس خپل ځان سره ضم كړه يعنى دَچپ

لاس په ترخ کښې کیده. او دلته چه جناح مضموم الیه ذکرشویدې دَدینه مراد چپ لاس دې، یعنې خپل چپ لاس ته نبې لاس ضم کړه (کشاف)

﴿مِنَ الرَّهْبِ﴾ اي لأجل الرهب، یعنې چې کله درته خوف لاحق شي نو بیاداسې کوه.

او بله توجیه بعضو مفسرینو دا ذکر کړیده چه واضمم الیک جناحک تمثیل دې او کنایه ده دَعدم خوف نه. ځکه چه کله مرغئ په سکون او اطمینان باندې ناسته وی نو خپل وزرې ئې راټولې کړی وی، نو ګویا چه الله جَلَّ جَلَالُهُ طرف نه. موسی علیه السلام ته اوئیلې شوچه: أسکن من الرهب ولا تخف (بحر) یعنې بالکل مطمئن شه مه ویریږه.

﴿فَذَانِكَ بُرْهَانَانِ﴾ برهان مضبوط دلیل او حجت قاطعه ته وئیلې کیږی دلته ورنه مراد. ید بیضاء او عصاء دی او تذکیر دَاسم اشارې دَرعایت دَخبردَوجې نه دې او ﴿مِن رَّبِّكَ﴾ جار مجرور متعلق دی دَ کائنان سره چه صفت دَ "برهانان" دَپاره دې ﴿إِلَىٰ فِرْعَوْنَ﴾ دا متعلق دې دَفعل محذوف سره چه اذهب دې، ای اذهب الی فرعون الخ یعنې دادواړه تاته دَالله جَلَّ جَلَالُهُ طرف نه واضح معجزې دی پدې سره لاړشه فرعون او دَهغه دَقوم مشرانو ته. ځکه چه هغوئی په فسق او نافرمانئ کښې انتهاء ته رسیدلی دی.

| |
|---|
| قَالَ رَبِّ إِنِّي قَتَلْتُ مِنْهُمْ نَفْسًا فَأَخَافُ أَن يَقْتُلُونِ ﴿٣٣﴾ وَأَخِي |
| اووئیل موسیٰ اې ربه څما! بیشکه ما قتل کړیدې دَدوئ نه یو کس نوځه یریږم چه دوئ به ما قتل کړی او وروَر څما |
| هَارُونُ هُوَ أَفْصَحُ مِنِّي لِسَانًا فَأَرْسِلْهُ مَعِيَ رِدْءًا يُصَدِّقُنِي ز |
| چه هارون دې هغه ډیرفصیح دې څمانه دَجهته دَژبې، پس اولیږه هغه ماسره مددګارچه تصدیق کوی څما. |
| إِنِّي أَخَافُ أَن يُكَذِّبُونِ ﴿٣٤﴾ قَالَ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ |
| بیشکه څه یریږم چه تکذیب به اوکړی فرعونیان څما. الله جَلَّ جَلَالُهُ اوورته اووئیل زرده چه قوی به کړم ستامټ |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِأَخِيكَ | وَنَجْعَلُ | لَكُمَا | سُلْطٰنًا | فَلَا | يَصِلُونَ | إِلَيْكُمَا | بِاٰيٰتِنَآ |

په وروړستاسره اودربه کړوتاسوته رعب نو دوئ به درنيزدې هم نه شي تاسو ته .په برکت دَ آياتونوزمونږ.

أَنْتُمَا وَمَنِ اتَّبَعَكُمَا الْغٰلِبُونَ ﴿۳۵﴾

تاسودواړه اوخوک چه ستاسواتباع کوی غالبه به وی.

﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي ﴾داجمله اګرچه په ظاهرکښ جمله خبريه ده ليکن معنًى انشائيه ده اومقصودپدې سره دَالله تعالیٰ نه دَحفظ وامان دعاده يعنی موسی علیه السلام ته چه کله دَ الله تعالی طرف نه منصب رسالت عطاء کړې شواوفرض منصبی هم ورته اوخودلې شوچه فرعون اودَهغه قوم ته دعوت ورکړه نودَموسی علیه السلام دَالله تعالیٰ په نصرت اوتائيدباندې يقين باوجودالله تعالیٰ نه ئې دَحفظ اوامان دعااوکړه،چه اې الله تعالیٰ ماد قبطيانو نه،قتل کړيدې،نوته ځماحفاظت اوکړې او دامعذرت يااستعفی دَمنصب رسالت نه،نه وو:المرادبهذاالخبرطلب الحفظ والتائيدلابلاغ الرسالة على اكمل وجه لاالاستعفاء من الارسال(روح).

﴿ وَأَخِي هٰرُونُ هُوَ أَفْصَحُ ﴾دادويمه دعاده په باره دَنبوت دَخپل رور هارون علیه السلام کښ،چه الله تعالیٰ!هارون چه ځماروردې اوځمانه زيات فصيح دې هغه ځمامعاون او مددګارجوړکړې اوهغه ته هم نبوت ورکړې چه ځماتصديق کوی اودَمنکرينودَشبهاتوجواب ورکوی.اوچونکه دَموسیٰ علیه السلام په ژبه کښ لکنت وواګرچه په دعاسره زائله شوې وولیکن بالکليه نه وو زائله شوې،نوځکه ئې اوئيلوچه﴿ هُوَ أَفْصَحُ﴾چه هارون علیه السلام ځمانه،زيات فصيح دې﴿ يُصَدِّقُنِي ﴾دَدې تصديق نه نفس تصديق ندې مرادچه هارون علیه السلام،موسیٰ علیه السلام ته وئيلې وې چه صدقتَ ځکه چه پدې تصديق کښ فصيح اوغيرفصيح برابردی،بلکه دَتصديق نه مراد دَموسیٰ علیه السلام دَطرف نه دکفارودَشبهاتوجوابات اودَهغوئی سره مجادله اودَموسیٰ علیه السلام دفاع کول دی.

﴿ قَالَ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ ﴾ دواړو دعاګانو دَقبوليت ذکردې بطورلف نشرغير مرتب. دَدويمې دعااجابت ذکراول اوشوځکه چه دادعادېره مقصوده وه او "شدالعضد" يعنى دَمټ کلکوالې کنايه ده دَمضبوطئ اوطاقت ورکولونه يعنى ستادَورورپه ذريعې سره مې تاته کلکوالې اومضبوطوالې درکړواوهغه مې هم ستاسره پيغمبرجوړ کړو.

﴿وَنَجْعَلُ لَكُمَا سُلْطَنًا ﴾دادويمې دعادَقبوليت ذکردې دَ"سلطانًا"نه مرادرعب اودبدبه ده يعنى تاسوته به داسې رعب اودبدبه درکړم چه فرعونيان به تاسوته نشى نيزدې کيدلې. او﴿فَلَا يَصِلُوْنَ﴾نه مرادرسيدل په تکليف سره دى يعنى تاسوبه ته څه تکليف اذيت نشى دررسولې او﴿ بِاٰيٰتِنَآ﴾جارمجروريامتعلق دى ده "اذهبا"محذوف سره يعنى "اذهبابآياتنا انتما ومن اتبعكما الغلبون" اويامتعلق دى دَ"نجعل"سره او "باء" سببيه ده (مدارک) يعنى تا سوته مونږرعب در کړې دې په سبب دَمعجزاتوسره، چه ستاسوپه لاس ظهور دَمعجزاتو کيږي. اويا "باء" سببيه ده اومتعلق دې دَ﴿ فَلَا يَصِلُوْنَ ﴾سره اى لايصلون اليكما بسبب اياتنا (مدارک).

| |
|---|
| فَلَمَّا جَآءَهُمْ مُّوْسٰى بِاٰيٰتِنَا بَيِّنٰتٍ قَالُوْا مَا هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ |
| پس[1] هرکله چه راغې فرعونيانو ته موسى عليه السلام په معجزوزمونږواضحوسره نو دوى اوويئيل ندې دامګرسحردې |
| مُّفْتَرًى وَّمَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِيْٓ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِيْنَ ۝ وَقَالَ مُوْسٰى |
| چه جوړشويدې په الله جل جلاله اونه دې اوريدلې مونږداخبرپه پلارانوزمونږمخکنوکښې.اواوويئيل موسى عليه السلام |
| رَبِّيْٓ اَعْلَمُ بِمَنْ جَآءَ بِالْهُدٰى مِنْ عِنْدِهٖ وَمَنْ تَكُوْنُ لَهٗ |
| خمارب زيات عالم دې په هغه چاچه راوړې ئى وى هدايت دَالله جل جلاله دَطرفه اوپه هغه چاچه وى هغه لپاره |

[1] دَواقعې پنځم مقام

| عَاقِبَةُ | الدَّارِ | ط | اِنَّهٗ | لَا | يُفْلِحُ | الظّٰلِمُوْنَ | ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ښه انجام | دَدنیا.بیشکه | | شان دادي چه | نه | کامیابي | مومي | ظلمن |

﴿ فَلَمَّا جَآءَهُم مُّوسَىٰ ﴾دَدی ایت نه دَواقعې پنځم مقام شروع کیږی.-رایت نمبر ۴۴ پورې،پدیکښ دَموسی علیه السلام فرعون ته دعوت ورکول،دَفرعون دَطرف نه تکبرانه سوالات اوبحث کول،دَموسی علیه السلام والا دعوت ردکول اودَفرعونیانوهلاک کیدل ذکردی.نوهرکله چه موسی علیه السلام اوهارون علیه السلام فرعون دربارته لاړو،اوهغوئی ته ئې دَخپل نبوت ذکراوکړو. بطوردلیل ئې ورته معجزات اوخودلوچه عصااویدبیضاء ووااوهغوئی ته دعوت ورکړو نوفرعون دَحضرت موسی علیه السلام دعوت په دوه(۲)طریقوسره ردکړو(۱)اول داچه﴿مَا هَـٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّفْتَرًى ﴾نوپدې"هٰذٰ"سره اشاره ده معجزاتوته،یعنی فرعون اوئیل چه تاکوم معجزات تاظاهرکړل دامعجزات نه دی بلکه دایوزبردست سحردې.او"مفتری"مقصددادې چه څرنګه نورانواع دَسحردروغ وی اوپه حقیقت باندې مبنی نه وی نودغه شان ستاداعمل هم دې

﴿وَمَا سَمِعْنَا بِهَـٰذَا ﴾دادویمه طریقه درد ده دَجانبه دَفرعون نه اوپدې"هذا"سره اشاره ده دعوت دَموسی علیه السلام ته،یعنی دکومې خبرې دعوت چه ته مونږته راکوې نوداخونوې خبره ده مونږدَخپلو مشرانو نه،نده اوریدلې.

﴿وَقَالَ مُوسَىٰ رَبِّيٓ ﴾داپنځم امردې چه ورستوپرې تفریع کیږی چه"قل ربی اعلم بمن جآء بالهدی"هرکله چه دوئ موسی علیه السلام ته ساحراومفتری اوئیلواوساحراومفتری خوګمراه وی نوځکه موسی علیه السلام دوئی ته جواب ورکړوچه دَدومره واضح معجزاتواودلائلوباوجودتاسوماته ساحراومفتری وایئ،اودَقطعی دلائلوپه مقابله کښ تاسومحض داوایئ چه"ماسمعنابهذا الخ"نودَدې مطلب دادې چه تاسومتعصب اوضدیان یئ نوځکه څه خپل حالت الله تعالیٰ ته سپارم،کچرې څه ساحر،مفتری اوګمراه وې نوالله تعالیٰ به ماته نبوت نه ووَرکړې،اوماسره به ئې دَحسن عاقبت وعده نوه کړې.

**فائده:** حضرت موسیٰ علیه السلام د هغوئی د قول په جواب کښ دا تصریح اونکړه چه ځکه ساحر او مفتری نه یم بلکه خه برحق پیغمبر او تاسو په باطل باندې یئ (۱) یو دَ دې وجې نه چه موسیٰ علیه السلام دَ دوئی دَ خبرونه، اندازه لګولې وه چه دوئی ډیر متعصب خلک دی کچرې تصریح ئې کړې وې نو دَ دوئی ضد او تعصب به نور هم زيات شوې وې، نو مناسب انداز پدې وخت کښ دغه وو چه موسیٰ علیه السلام اختيار کړو (۲) بل دَ دې وجې نه چه دَ موسیٰ علیه السلام دې خبرې ته اشاره مقصوده وه چه دا معجزات دومره واضح حجتونه او دلائل دی چه دَ معمولی عقل والا انسان هم پدې باندې پوهیږی چه دا دَ الله ﷻ دَ طرف نه دی، او سحر ندې، او دَ معمولی عقل والا انسان هم پدې نتیجه باندې رسیږی چه صحیح او صواب کوم دې او باطل څوک دې؟ او پدې باندې امر ثالث قل ربی اعلم من جاء بالهدی ومن هو فی ضلل مبین(۸۵). هم متفرع دې یعنی څرنګه جواب چه موسیٰ علیه السلام فرعون ته ورکړې وو هم دغه شان حکم نبی پاک ﷺ ته هم دې چه ته هم خپل قوم ته دارنګې جواب ورکړه.

﴿وَمَن تَكُونُ لَهُۥ عَٰقِبَةُ ٱلدَّارِ﴾ پدیکښ اجمالاً اشاره ده چه اخری فتح او کامرانی دَ حق پرستو خلکو وی او ﴿إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ کښ اشاره ده چه منکرین او باطل پرست خلکو انجام هلاکت دې.

| |
|---|
| وَقَالَ فِرْعَوْنُ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَأُ مَا عَلِمْتُ لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرِى ۖ فَأَوْقِدْ |
| او وئیل فرعون اې سردارانو .ندې معلوم ماته ستاسو لپاره بل اله غیرځمانه. نو او وربل کړه |
| لِى يَٰهَٰمَٰنُ عَلَى ٱلطِّينِ فَٱجْعَل لِّى صَرْحًا لَّعَلِّىٓ أَطَّلِعُ |
| ځما لپاره اې هامانه په خټی باندې (خختی جوړی کړه) بیا جوړ کړه ځما لپاره لوئ محل چه خه او ګورم |
| إِلَىٰٓ إِلَٰهِ مُوسَىٰ وَإِنِّى لَأَظُنُّهُۥ مِنَ ٱلْكَٰذِبِينَ ﴿٣٨﴾ وَٱسْتَكْبَرَ هُوَ وَجُنُودُهُۥ |
| خدائ دَ موسیٰ علیه السلام ته او بې شکه خه خامخا ګمان کوم پدې چه دَ دروغژنو نه دې تکبر او کړو فرعون او لښکرو دده |
| فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ وَظَنُّوٓا۟ أَنَّهُمْ إِلَيْنَا لَا يُرْجَعُونَ ﴿٣٩﴾ |
| په زمکه کښ په ناحقه او ګمان ئې او کړو چه دوئ به مونږ ته نه واپس کولې کیږی. |

﴿وَقَالَ فِرْعَوْنُ﴾هرکله چه فرعون يره اوخطره محسوسه کړه چه داقوم به دموسی علیه السلام دَدلائلو نه، متاثرشی، نوپه حقیقت باندې پرده اچولو دپاره تلبیسات او مغالطی شروع کړې. او دَقوم مشرانو ته مخاطب شواواوئ ونیلولو چه ﴿مَا عَلِمْتُ لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ﴾ یعنی ماته خوندې معلوم چه ستاسو دپاره خمانه علاوه بل معبودوی، نوفرعون پدې جملې سره نفی دَالوهیت دَغیرنه، اوکړواوخان دپاره ئې اثبات اوکړو، اوفرعون دلته نفی دَعلم اوکړه اوجزم ئې په نفی دَمعبود باندې اونکړوځکه چه فرعون په دې باندې عالم ووچه معبودحقیقی صرف اوصرف الله تعالیٰ دې لکه چه معلومیږی دَدې قول دَموسی علیه السلام نه چه ده ته ئې اوئیلوچه: لقدعلمتَ ماانزلَ هٰؤلاء الّاربّ السّموات والارض(بنی اسرائیل:۱۰۲)اوهرچه دی په سورة النّزعات ایت نمبر (۲۴)کښې چه فرعون خپل قوم ته اوئیلوچه"اناربّکم الاعلیٰ"چه هلته جزم کړې ووپه خپلې خدائی باندې سره دَاثبات دَبل خدائی نه، نودَدې دواړو اياتونوکښې تعارض نیشته دې ځکه چه عدم دَعلم مستلزم ندې عدم دَوجودلره، اودَابن عباس رضی الله عنه نه مروی دی چه دَفرعون دَدې دواړوخبروپه مینځ کښې څلویښت کاله مدت وو، یعنی څلویښت کاله اول ئې دااوئیلوچه"ما علمت لکم الخ"اوبیائې څلویښت کاله ورستواوئیل چه"اناربکم الاعلیٰ"بعضِ محققین فرمائی چه دَفرعون اوّلاًعقیده داوه چه"اله"اومعبودبل څوک نیشته دې سیواخمانه، او"اله"نه مراد خالق اومتصرف ندې مرادبلکه بادشاه اوذی سلطنت مراددې، نوځکه ئې دلته اوئیل چه"ما علمتُ لکم الخ"ځکه چه نفی دَعلم مستلزم ده نفی دَمعلوم لره، اودادَخواصودَعلوم فعلیونه دی، چه په انتفاء دَعلم سره انتفاءدَمعلوم راځی، ځکه چه علوم فعلیه لازم دی دَتحقق دَ معلوماتوسره(ابی سعود).

اوهرکله چه فرعون دعویٰ دَالوهیت اوکړه نوقوم فوراًاومنله ځکه چه دَفرعون قوم ډیر لوئی جاهلان وو، لکه سورة الزخرف ایت نمبر(۵۴)کښې دی.

﴿فَأَوْقِدْ لِي يَا هَامَانُ﴾فرعون خپل قوم ته دَمغالطې اوتلبیس دپاره اوئیلوچه څه تحقیق کوم چه موسی علیه السلام ریښتونې دې اوکه دروغژن دې نو"هامان"ته ئې اوئیلوچه پخې خښتې جوړې کړه اوبیادَهغوخښتونه لوئی تعمیراوکړه چه څه بره اسمان ته اوخیژم چه دَموسی علیه السلام

رب اوګورم هامان دفرعون وزیرو ،اودایوسرکاری لقب دې لکه څرنګه فرعون یوسرکاری لقب وو ،اومفسرین فرمائی چه دټولونه اول پخوخختوجوړونکې فرعون وو ،اوددې وجې نه چه دفرعون نه مخکښې دپخوخختورواج اوایجادنه وو ،ځکه فرعون لفظ د ﴿فَأَوْقِدْ لِي﴾ذکر کړو او اتخذلی لفظ ئې ذکرنکړو.

﴿فَاجْعَل لِّي صَرْحًا ﴾دمفسرینوپدیکښې اختلاف دې چه فرعون دامانړئې اوعمارت جوړکړې وواوکه نه؟ نوقرآن اوحدیث کښې ددې څه تصریح نیشته دې صرف تاریخی اواسرائیلی روایات دی،نواکثرعلماؤدغې اسرائیلی روایاتواعتبارندې کړې اوددې قائله دی چه دامحض دفرعون دطرف نه خپلوخلکومطمئن کولودپاره په موسی علیه السلام پورې استهزاء کوله اوداقصراومانړئې هغه نه وه جوړه کړې البته بعض علماؤددغې تاریخی روایاتو اعتبار کړې دې اودځنې قرائنونه ئې اندازه لګولې ده چه فرعون داقصرجوړکړې وو ،اوددې دتعمیردپاره پنځوس زره مستریانوخدمت اغستلې شوې وو ،مخ په زمکه باندې دومره لوئی تعمیر چاهم نه ووکړې اوددې پاسه سرته ختل دچادپاره هم په سهولت سره بغیرداسبابونه ممکن نه وو ، فرعون هغې ته اوختلواودائې اونیل چه مادموسی علیه السلام رب تالاش کړوخومیلاؤنشو ، اوپه ځنې روایاتوکښې دی چه فرعون چه کله محل ته اوختلونواسمان طرف ته ئې غشی اویشتلونوالله تعالی ورته غشی دوینودرنګ پشان سره واپس کړو،نوفرعون اوئیلوچه مادموسی علیه السلام رب قتل کړو(العیاذبالله)نوالله تعالی حضرت جبرئیل علیه السلام را اولیږلو دوزریوطرف باندې ئې داقصراووهلو ،نوداقصردرې(۳)ټکرې شواوغورزیدلوچه په هغې کښې یوه ټکره د فرعون په مزدورانوباندې رااوغورزیدله اویولاکهه(۱۰۰۰۰۰)مزدوران دهغې دلاندې مړه شولو ،لیکن غوره قول اول دې،لکه پدې دلالت کوی داقول دفرعون چه انی لاظنه لمن الکاذبین.

**فائده**:علامه زحیلی رحمه الله په تفسیر منیرکښې فرمائی چه فرعون خپلوخلکوته داسې دهوکه ورکړه چه کچرې بل خدائی موجودوی نوهغه به یوه مجسم اومحسوس هستی وی،اوهغه دپاره به اسمان مکان وی اوپه دې کښې به الله تعالی متمکن وی اودادوئی لوئی جهل ووچه خالق ئې په مخلوق قیاس کولو ،اوداعقیده نن صباهم دځنوخلکوده چه ځان ته ددیندارئې،اوداهل حدیث نسبت کوی او(العیاذبالله)الله تعالی دپاره جسم اومکان ثابتوی.

﴿وَٱسْتَكْبَرَ هُوَ﴾ دا دَانکار عن الحق دَپاره اسباب ذکر کیږی چه فرعونیانو کښې دوه (۲) لوئې مرضونه وو څکه هغوئی دَحق نه انکار کولو (۱) یو تکبر او بل (۲) انکار دَبعث او قیامت، یعنی فرعونیانو نورو خلکو او خاص طور باندې بنی اسرائیلو ته دَ ډیر حقارت په نظر کتلو ﴿بِغَيۡرِ ٱلۡحَقِّ﴾ دا قید دَمزید تقبیح دَپاره دې، څکه چه تکبر صرف دَالله ﷻ حق دې دَمخلوقاتو لوئی کول ناحق دی، لکه حدیث قدسی کښې دی: الكبرياء ردائي والعظمة ازاري ﴿وَظَنُّوٓاْ أَنَّهُمۡ﴾ دا دویم سبب دَانکار دَپاره دې.

| |
|---|
| فَأَخَذۡنَٰهُ وَجُنُودَهُۥ فَنَبَذۡنَٰهُمۡ فِي ٱلۡيَمِّۖ فَٱنظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ |
| پس اونیولو مونږ دې او لښکرې دَده لره پس او غورځول مونږ دوئ په دریاب کښې نو اوګوره څنګه وو انجام |
| ٱلظَّٰلِمِينَ ۝ وَجَعَلۡنَٰهُمۡ أَئِمَّةٗ يَدۡعُونَ إِلَى ٱلنَّارِۖ وَيَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ لَا يُنصَرُونَ ۝٤١ |
| دَظالمانو. او او ګرځولی وو مونږ دوئ پیشوایان چه رابلل به ئې خلق اور ته، او په ورځ دَقیامت مدد به اونکړې شی دَدوئ |
| وَأَتۡبَعۡنَٰهُمۡ فِي هَٰذِهِ ٱلدُّنۡيَا لَعۡنَةٗۖ وَيَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ هُم مِّنَ ٱلۡمَقۡبُوحِينَ ۝٤٢ |
| او لازم کړو مونږ دوئ سره په دَدې دنیا کښې لعنت، او په ورځ دَقیامت به دوئ بدحالو خلقو نه به وی |

﴿فَأَخَذۡنَٰهُ وَجُنُودَهُۥ﴾ دا فرعونیانو ته دَدنیوی عذاب ذکر دې او نبذ په اصل کښې ګیټئ (وړوکو کاڼو) غورځولو ته وئیلې کیږی، دَفرعون لښکر تقریباً په شپږ لاکھ (۶۰۰۰۰۰) افرادو باندې مشتمل وو. خو بیا هم دَهغوئ دَهلاکت نه تعبیر په نبذ سره کول تحقیراً دی، چه دَدوئی دومره مال، دولت، بادشاهی، لښکرې وغیره دَالله ﷻ دَقدرت سره دَهغه معمولی کاڼو او ګیټیو حیثیت نه وؤ، الله ﷻ په سمندر کښې داسې او غورځولو او هلاک ئې کړلو لکه چه یو سړې دَخپل لاس نه وړې ګیټئ او غورځوی.

﴿فَٱنظُرۡ كَيۡفَ كَانَ﴾ په دیکښې اشاره ده چه دهر ظالم آخری انجام ډیر بد وی، اګرچه الله ﷻ دَحکمت موافق څه وخته پورې دنیا کښې ورته مهلت ورکړی ﴿وَجَعَلۡنَٰهُمۡ أَئِمَّةٗ﴾ دا دوئی

دَاخرت حالت ذکرکيږی چه دنياکښ خودوئی دګمراهئ ليډران اومشران وو.دګمراه خلکو لوئی جماعت به په دوئی پسې وو،دَدوئی په حق کښ دَ زنده باد اودَدوئی دَمخالفو په باره کښ دَمرده بادنعرې وهلې.ازواوالدصاحب رحمه الله ليکن دَاخرت حال به ئې داوی چه څوک به ئې هم امدادنشی کولې،يوکارکن به ئې هم خدمت اومددته نه راځی.بلکه دادوستی اوتعلق به ئې په دشمنئ بدل شی.لکه سورة الزخرف ايت نمبر(۶۷)کښ دی.

﴿ وَأَتْبَعْنَٰهُمْ فِي هَٰذِهِ ﴾پديکښ دَدنيوی اواخروی دواړوعذابونوذکردې.يعنی په دنياکښ هميشه دَپاره په دوئی باندې لعنت وئيلې کيږی.دنياکښ هم دَالله تعالیٰ دَرحمت نه لرې وو اوپه اخرت کښ به هم ملعون وی.﴿ ٱلْمَقْبُوحِينَ ﴾دَقبح نه دې بدو ته ويلې کيږي مقبوح چې په بدحالت کښ مبتلا کړې شوې وي،یاورته بد وئيلی شوی وی يعنی قيامت په ورځ دوئ دَ الله تعالی رحمت نه لرې او لعنت کښ به مبتلا وي،او مخونه او شکلونه به يې انتهائی بد رنګه شوي وي،سترګې به ئې شنې او مخونه به ئې تک تور وی.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ | ءَاتَيْنَا | مُوسَى | ٱلْكِتَٰبَ | مِنۢ | بَعْدِ | مَآ | أَهْلَكْنَا | ٱلْقُرُونَ ٱلْأُولَىٰ |
| اويقيناورکړې | مونږموسی عليه السلام ته | | کتاب تورات | | اورستودَدينه | چه | هلاک کړل | مونږدلې مخکنئ |
| بَصَآئِرَ | لِلنَّاسِ | وَهُدًى | وَرَحْمَةً | لَّعَلَّهُمْ | يَتَذَكَّرُونَ ۝٤٣ | | | |

هغه تورات) چه دَ بصيرت خبرې وې پکښ دَخلقوليپاره اوهدايت وؤاورحمت وؤچه کيدې شی دوئ نصيحت قبول کړی

﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ ﴾دَدې ايت تعلق دَابتداء دَسورت﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْمُبِينِ ﴾سره دې.اوپديکښ اشاره ده ضرورت داعيه دَانزال قرآن ته.خلاصه ئې داده چه مخکښنيوقومونوته الله تعالیٰ انبياءکرام راليږلی ووهرپيغمبرخپل قوم ته دَالله تعالیٰ دَوحدانيت دعوت ورکړو،نوح عليه السلام خپل قوم ته دعوت ورکړو،دغه شان هود عليه السلام،صالح عليه السلام وغيره انبياء کراموخپل خپل امتونوته دَدين حق اوتوحيدالهی دعوت ورکړو،متمرداوسرکش قومونوچه کله دَخپلوپيغمبرانودعوت ردکړو،نوالله تعالیٰ هغوئی هلاک کړل.اوبياهرکله چه دَدغې انبياء کراموادیان اوتعليمات به په ختميدلوشواومونکی به څوک پاتې نشو نو

الله ﷻ به دخپل عظیم رحمت په باعث بل نبی رااولیږلوځکه چه دوحی تعلیمات ددنیانه ختمیدل مؤدی دی فساددډې نظام عالم لره،حتّی چه الله ﷻ موسی علیه السلام را اولیږلو اوهغه ته ئې دهغې زمانې دضرورت مطابق تورات شریف ورکړوچه دهغې په هرایت کښ نور بصیرت وو ،دمخلوقاتودپاره دهدایت ذریعه وه اودالله ﷻ دطرف نه لوئی رحمت وو ، موسی علیه السلام خپل امت ته دعوت ورکړوبنی اسرائیلو اکثریت دموسی علیه السلام دعوت قبول کړو ، اواکثروقبطیانو اودفرعون ملګروانکار اوکړو ، الله ﷻ فرعون سره دخپل متبعینوغرق کړو.

موسی علیه السلام دوفات نه ورستویهودیانودموسی علیه السلام اصل دین مسخ کړواودهغه تعلیمات په خپل اصل شکل وصورت کښ پاتې نشو،نوالله ﷻ داصل دین داحیاءدپاره نبی پاک ﷺ رااولیږلو،اوهغه ته ئې داواضح کتاب ورکړو،نوکه اهل عرب وغیره ددې قرآن اودپیغمبرنه،انکاراوکړی نوالله ﷻ به دوئی هم داسې ذلیل،رسوااوهلاک کړی لکه څرنګه مخکنی قومونه ئې هلاک کړی وو(روح)نودالقرون الاولی نه مرادقوم نوح علیه السلام،عاد،ثمود وغیره دی.

| |
|---|
| وَمَا كُنتَ بِجَانِبِ الْغَرْبِيِّ إِذْ قَضَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَى الْأَمْرَ وَمَا كُنتَ |
| اونه وې ته حاضر(اې پیغمبره)په طرف دمغرب کښ کله چه اوکړو مونږموسی ته حکم ده تللو فرعون ته اونه وې ته هلته [1] |
| مِنَ الشَّـٰهِدِينَ ﴿٤٤﴾ وَلَـٰكِنَّآ أَنشَأْنَا قُرُونًا فَتَطَاوَلَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ ۚ وَمَا كُنتَ |
| دحاضرینونه لیکن مونږپیداکړې نورې دلی نواوږده شوپه هغوئ عمرونه،اونه وې ته |
| ثَاوِيًا فِىٓ أَهْلِ مَدْيَنَ تَتْلُوا۟ عَلَيْهِمْ ءَايَـٰتِنَا ۙ وَلَـٰكِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ ﴿٤٥﴾ |
| اوسیدونکې په اهل مدین کښ چه لولې ته پدوئ(اهل مکه ؤ) آیاتونه زمونږ،لیکن مونږوولیږونکی(تالره) |

﴿وَمَا كُنتَ بِجَانِبِ الْغَرْبِيِّ﴾ ددې ځائې نه دسورت دویمه حصه شروع کیږی ترایت (۲۸) پورې چه پدیکښ اثبات دصدق دنبی پاک ﷺ دې،تخویف دنیوی،حکمت دارسال رسل صدق دقرآن،ترغیب الی القرآن،دلیل نقلی داهل کتابواودهغوئی صفات وغیره ذکرکیږی.نوددې

[1] دسورت دویمه حصه

ایت نه تر لعلّهم یتذکرون یعنی ایت نمبر(۴۲)پورې اثبات دَصدق دَنبی پاک ﷺ ذکردې، خلاصه ئې داده چه اې نبی ﷺ ته چه خپل امت ته دَتیرشووامتونو اودَحضرت موسی علیه السلام واقعات بالکل صحیح بیانه وی حالانکه نه ته په هغه وخت کښې موجودوې اونه دې واقعاتو په دوران کښې حاضروې، نو دادلیل دې پدې چه تاته دَالله ﷻ دَطرف نه، دَدې اخبارو په باره کښې وحی شویده اوته برحق پیغمبراونبی ئې.

﴿ بِجَانِبِ ٱلْغَرْبِيِّ ﴾ الغربی صفت دَمضاف دَپاره نه دې بلکه الغربی دَپاره موصوف محذوف دې، چه یا الجبل دې یعنی بجانب الجبل الغربی اویا الوادی محذوف دې یعنی بجانب الوادی الغربی، اومراددَدینه هغه مقام دې چه اول خلې الله ﷻ موسی علیه السلام سره همکلام شوې وو چه موسی علیه السلام دَمدین نه مصرته تللوچه ایت نمبر(۳۰)کښې تیرشویدی ﴿إِذْ قَضَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَى ﴾ مرادورنه موسی علیه السلام ته وحی کول اوفرعون ته دَتللوامرکول دی ﴿وَمَا كُنتَ مِنَ ٱلشَّٰهِدِينَ ﴾ دانفی علی سبیل العموم ده یعنی ته په هغه دوراوزمانه کښې موجودنه وی اودې نفی ته ضرورت ځکه راغلې چه کله کله یوکس په یوعلاقه کښې حاضروی خومخصوصې واقعې ته نه وی حاضر، نو اول نفی دَخصوص وه چه کوم وخت اوپه کوم ځائی کښې موسی علیه السلام ته نبوت ورکولې کیدلونوهغې موقعې ته، ته حاضرنه وې، اودویم نفی علی سبیل العموم ده چه په هغه دورکښې هم ته نه وې موجود، اوبعض علماء فرمائی چه اول نفی نه مراددادې چه کوه طورکښې په اول خلې چه موسی علیه السلام ته نبوت ورکولې کیدلونه وته نوې موجود اودویم نفی نه مراددادې چه کله په دویم خلې اویا(۷۰)کسان منتخب کړواوکوه طورته لاړونوته په هغوئی کښې نه وې، حتّی چه تادَدې تولوواقعاتومشاهده کړې وې، نومقصددادې چه په دغه مواقعو کښې حاضرنه وې اوبیاهم دَهغوئی صحیح حالات بیانوې نومعلومه شوه چه دَوحی په ذریعې سره بیانوې نوپیغمبرئې.

﴿وَلَٰكِنَّآ أَنشَأْنَا ﴾ یعنی هلته دَموسی علیه السلام په دورکښې خوبالکل نه وې موجودبلکه ستا اودَموسی علیه السلام په مینځ کښې ډیرې پیړئی اوصدئی تیرې شویدی، ډیرامتونه، مونږ پیدا کړیدی پدې مینځ کښې، اودَهغې نه ورستوموته مبعوث کړې، ځکه چه پدې دوران کښې سلسله

دوحی بنده وه،اوزمانه دفترت وه.دوحی تعلیمات ختمیدلو والاوو.نوضرورت پیده سوه چه یو رسول مونږ مبعوث کړو،نوته موږ اولیږلې نود فتطاول علیهم العمر نه ورسره فارسته ک مقدردي.

﴿وَمَا كُنتَ ثَاوِيًا﴾ثاویاً په معنی د مقیماً سره دې،او اهل مدین نه مراد شعیب علیه السلام اود هغه متبعین دی﴿ تَتْلُوا عَلَيْهِمْ ﴾پدې ضمیرکښ دوه(۲)احتمالات دی،اول احتمال چه زیات غوره اوراجح دې هغه دادې چه علیهم ضمیرمرجع اهل مکه دی.اودآیت مقصددادې چه ته چه اهل مکه ته په مدین کښ دموسی علیه السلام سره پیش راغلی واقعاتوخبرورکوې.داتول ته په طریقې دمعاینې اومشاهدې سره نه نقل کوې ځکه چه ته په اهل مدین کښ مقیم نه وې.بلکه ددې واقعاتوخبراوعلم تاته په ذریعې دوحی سره شویدې.

دویم احتمال دادې چه علیهم کښ ضمیر اهل مدین ته راجع دې،اودتلاوت نه مرادقرائت دشاګرددې په استاذباندې(قراة التلمیذعلی الشیخ)اودآیت مقصددادې چه ته په مدین کښ مقیم نه وې چه په هغوئی باندې دې داواقعات لوستلې وې اودهغوئی نه.دې ایزده کړې وې

﴿وَلَٰكِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ ﴾یعنی لیکن مونږته پیغمبرلیږلې ئې اودوحی په ذریعې سره تاته د دې ټولو واقعاتوخبردرکولې کیږی.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا | كُنْتَ | بِجَانِبِ | الطُّوْرِ | اِذْ | نَادَيْنَا | وَلٰكِنْ | رَّحْمَةً |

اونه وې ته په طرف دکوه طورکښ کله چه اوازوکړومونږموسیٰ ته لیکن لیږلې ئی مونږته اې محمدﷺ رحمت

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ | رَّبِّكَ | لِتُنْذِرَ | قَوْمًا | مَّآ | اَتٰىهُمْ | مِّنْ | نَّذِيْرٍ | مِّنْ | قَبْلِكَ | لَعَلَّهُمْ |

دطرفه درب خپل چه ته اویره وې داسی قوم چه ندې راغلې دوئ ته هیڅ یرونکې مخکښ ستانه کیدې شی

يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۴۶﴾

چه دوئ نصیحت قبول کړی.

﴿وَمَا كُنتَ بِجَانِبِ ٱلطُّورِ﴾ د دېنه مراد هغه وخت دې چه كله موسى عليه السلام ته كتاب وركولې

كېدلو ، او موسى عليه السلام كوه طورته تللې وو او د﴿إِذْ نَادَيْنَا﴾ نه مراد حضرت موسى عليه السلام ته نداده ،

چې الله تعالى ورته كړې وه چې يموسى اني انا الله رب العالمين (طه)

﴿وَلَٰكِن رَّحْمَةً مِّن رَّبِّكَ﴾ رحمة منصوب دې او مفعول ثانى د فعل مقدر د پاره تقدير

د عبارت داسې دې ولكن ارسلناك رحمة يعنى ته پدې ټولو مواقعو كښې موجود نه وې ، ليكن

بيا هم ستا د طرف نه صحيح واقعات بيانيدلو وجه داده چه ته مونږ د خلكو د پاره رحمت

او پيغمبر ليږلې ئې ، او د وحى په ذريعې سره مونږ تاته د دې ټولو واقعاتو خبر دركوو (ابن كثير)

﴿لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّآ أَتَىٰهُم﴾ قوم نه مراد دلته اهل مكه او عرب دى او﴿ مِّن قَبْلِكَ ﴾

كښې من زائده دې د پاره د تعليل ذكر شويدې ، چه دلالت كوى په قرب د قبليت باندې يعنى لږه

زمانه مخكښې چه هغه زمانه د فترت ده چه مشتمله وه په (۵۵۰) كالونو باندې ، نو د آيت

مقصد دادې چه ستا نه لږه زمانه مخكښې چه زمانه د فترت ده په هغې كښې اهل مكه او عرب ته

پيغمبر نه وو راغلې نو د دې وجې نه مونږ ته مبعوث كړې چه دوى ته د الله ﷻ د عذاب نه ويره

وركړې او بعض فرمائى چه﴿ مِّن قَبْلِكَ ﴾ په خپلې معنى سره دې او اهل مكه ته د نبى پاک ﷺ نه

مخكښې تر حضرت اسماعيل عليه السلام پورې بل پيغمبر نه وو راغلې ، حضرت موسى عليه السلام او حضرت

عيسى عليه السلام صرف د بنى اسرائيلو د پاره وو.

| |
|---|
| وَلَوْلَآ أَن تُصِيبَهُم مُّصِيبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ فَيَقُولُوا۟ |
| او كچرته نه وې داخبره چه كله او رسيږى دوى ته تكليف عذاب په سبب د هغه گناهونو چه مخكښې ليږلى دى لاسونو د دوى نو وائى به |
| رَبَّنَا لَوْلَآ أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ ءَايَٰتِكَ وَنَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۝ |
| اې ربه زمونږ ولې نه راليږلو تا مونږ ته رسول چې مونږ به اتباع كړې وې ستا د آياتونو او وې مونږ د مؤمنانو نه |

﴿وَلَوْلَآ أَن تُصِيبَهُم مُّصِيبَةٌ﴾ د اتخويف دنيوى دې او حكمت ذكر كيږى د ارسال رسل د پاره ، چه

الله ﷻ انسانانو ته رسولان ولې ليږلى دى؟ او منكرينو د دوئى ته بغير د ارسال رسل نه عذاب

ولې نه ورکوی.نوخلاصه ئې داده چه ارسال دَرسل کښې حکمت دفع دَعذرده.کچرې انبیاءکرام، الله ﷻ نه وې لیږلې نومنکرینوبه عذرکولوچه کچرې مونږته پیغمبرراغلې وې نومونږبه ضرورایمان راوړې وو.اواوس چه هرکله چه دوئی ته پیغمبران راغلل اوبیاهم دوئی ایمان رانه وړونوعذرختم شواودَالله ﷻ دَطرف نه دَعذاب مستحق شو.اول﴿ وَلَوۡلَآ ﴾امتناعیه ده اوجواب ئې په اخیرکښې محذوف دې چه"لماارسلناالیهم"دې،یعنی کچرې داعذرنه وې نومونږ پیغمبران نه وې لیږلې خوچونکه داعذرموجودوې نوځکه انبیاءکرام مواولیږلو.او﴿ فَيَقُولُواْ رَبَّنَا ﴾عطف دې په﴿ أَن تُصِيبَهُم مُّصِيبَةٌ ﴾باندې اوپه﴿ لَوۡلَآ أَرۡسَلۡتَ ﴾کښې"لولا"تحضیضیه دې او﴿ فَنَتَّبِعَ ءَايَٰتِكَ ﴾ورله محضض اوباعث علی التحضیض دې.

**فائده**:پدې ایت کښې دوه(۲)اسبابه دَارسال رسل دَپاره ذکرشو،یوسبب قریب اوسبب اصلی دې،اوبل سبب بعیددې،سبب قریب دَدوئی قول دې چه ذکرشویدې پدې قول سره چه﴿ فَيَقُولُواْ رَبَّنَا ﴾اوسبب بعیدهغه دوئی ته دَدوئی دَبدعملونوسزاورکول دی،لیکن دلته سبب بعیداول ذکرکړې شواوسبب قریب مؤخرذکرکړې شواوپه سبب بعیدباندې عطف کړې شو،دَدوه(۲)وجوهاتونه(۱)دَوجې دکمال عنایت اوشفقت نه،چه الله ﷻ دابالکل نه خوه خوی چه خپلوبنده ته دې بلاوجه تکلیف اورسیږی اوهغه ته دې بلاوجه سزامیلاؤشی(۲)پدیکښې اشاره ده چه هریومستقل سبب دې دَارسال دَپاره،اوصرف دانده چه"قول"سبب دې،بلکه دَ"قول"نه بغیرهم الله ﷻ دوئی ته عقوبت نه ورکوی،ترڅوچه اتمام حجت ئې پرې نوی کړې. (کشاف بتغیر).

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا | جَآءَهُمُ | ٱلۡحَقُّ | مِنۡ | عِندِنَا | قَالُواْ | لَوۡلَآ | أُوتِيَ | مِثۡلَ |
| پس هرکله چه راغې دوئ ته حق زمونږدَطرفه نودوئ وئیل ولې نه دې ورکړې شوې دی پیغمبرته په شان | | | | | | | | |
| مَآ | أُوتِيَ | مُوسَىٰٓۚ | | أَوَلَمۡ | يَكۡفُرُواْ | بِمَآ | أُوتِيَ | |
| دهغه کتاب چه ورکړې شوې وُموسیٰ ته (په یوځل)آیاکفرنه وُکړې دوئی په هغه کتاب چه ورکړې شوې وُ | | | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُوْسٰى | مِنْ | قَبْلُ ۚ | قَالُوْا | سِحْرٰنِ | تَظٰهَرَا |
| موسیٰ ته.مخکښ ددینه . | | وئیلی وو دوئ چه | دادواړه سحرونه | دی يوبل سره | موافق دی. |
| وَقَالُوْٓا | اِنَّا | بِكُلٍّ | | كٰفِرُوْنَ | ۴۸ |
| او وئیلی وو | دوئ بې | شکه مونږ | په | دواړو کفرکونکی | یو. |

﴿ فَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ ﴾ داشکوی ده یعنی الله ﷻ دکمال عنایت اوشفقت په بنیادخلکوته نبی پاک ﷺسره دقرآن نه رااولیږلونودوئی دایمان راوړلوپه ځائې معاندانه اوتعصبانه سوالات شروع کړل چه کچرې داقرآن دالله ﷻ دطرف نازل شوې کتاب وی نوبیادتورات پشان په یووارې ولې نه نازلیدلو،اوداسوال اواعتراض کوونکی یایهودیان وو،اویاکفارمکه ووخوپه مشورې دیهودیانوسره ئې دااعتراض کړې وو.

﴿ اَوَلَمْ يَكْفُرُوْا بِمَآ اُوْتِيَ ﴾داجواب شکوی ده،خلاصه ئې داده چه ددوئی داسوال تعنتًااومعاندأدې،اوطلب دحق دپاره نه دې،ځکه چه دقرآن نه مخکښ الله ﷻتورات یوځلې سره نازل کړې ووخوبیاهم معاندینوترینه انکارکړې وو.

﴿قَالُوْا سِحْرَانِ﴾په مرجع دضمیرد ﴿قَالُوْا ﴾کښ متعدداحتمالات اواقوال دی(۱)یوقول دادې چه ددې مرجع کفارمکه دی اومقصودپدې سره ددې اثبات دې چه دکفارمکه داسوال تعنتًادې ځکه چه یوطرف ته خودوئی داخبره کوی چه قرآن مجیددتورات پشان یووارولې نه دې نازل شوې؟اوبل طرف ته دتورات اوقرآن ددواړوپه باره کښ وائی چه دادواړه(قرآن اوتورات)جادودی چه دیوبل تائیدکوی،نومعلومه شوه چه تورات هم ددوئی په نیزمعیاردحق نه وو،ورنه بیابه دوئی دتورات په باره کښ داسې خبرې نه کولې،بلکه مقصودددوئی په قرآن باندې متعصبانه سوالات کول دی.اوددې تائیدپه روایت دکلبی سره کیږی چه قریش مکه یووفددیهودیانو یوعالم ته اولیږلواودهغه نه ئې دنبی پاک ﷺپه باره کښ تپوسونه اوکړل نوهغه یهودی عالم ورته اوئیل چه دابالکل برحق نبی دې ځکه زمونږپه تورات کښ دآخری پیغمبرکوم صفات ذکرشویدی هغه په ده کښ موجوددی.نوکله چه داوفدواپس راغلې

اوخپلو مشرانو ته ئې دَهغه يهودی عالم جواب واورولو نو قريش غصه شول اودائې اوئيل چه ﴿سِحْرَانِ تَظَاهَرَا﴾ چه دا قرآن او تورات دواړه سحردی دَيو بل سره امداد کوی

(۲) دويم احتمال دادې چه مرجع دَ قالوا فرعون اودَهغه قوم اوهغه بنی اسرائيل دی چه کافران وو او سحران نه مراد موسیٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام دی اودوئی ته سحران وئيل مبالغة دی او په يو قرائت کښې ساحران هم راغليدی او دا جمله مستانفه ده چه په سوال دَسائل کښې واقع شويده اوهغه سوال ناشی دې دَماقبل جملې نه،ځکه چه هرکله چه اونيلې شوچه﴿ أَوَلَمْ يَكْفُرُوا ﴾نو ګويا چه سائل سوال اوکړو چه:ماکانَ کفرهم به؟چه ددوئی کفر څه وو؟نو جواب اوشو چه هغه دَدوئ داوينا وه﴿قَالُوا سِحْرَانِ تَظَاهَرَا﴾.

(۳) بعض فرمائی چه ضمير کفارمکه ته راجع دې اودَ سحران نه مراد نبی پاک ﷺ او موسیٰ عليه السلام دی. ﴿وَقَالُوٓا إِنَّا بِكُلٍّ كَٰفِرُونَ﴾ دا تصريح ده دَدوئی په خپل کفرباندې،دَماقبل نه ضمناً دَدوئی کفر معلوميدلو نو اوس ئې پرې تصريح اوکړه.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | فَأْتُوا | بِكِتَٰبٍ | مِّنْ | عِندِ | ٱللَّهِ | هُوَ | أَهْدَىٰ | مِنْهُمَآ |
| ته ورته اووايه نوراوړئ تاسو يو کتاب دَطرفه دَالله جل جلاله نه چه هغه زيات دَهدايت والاوی ددی دواړو نه | | | | | | | | |
| أَتَّبِعْهُ | إِن | كُنتُمْ | صَٰدِقِينَ ﴿٤٩﴾ | فَإِن | لَّمْ | يَسْتَجِيبُوا | لَكَ | فَٱعْلَمْ أَنَّمَا |
| څه به ئی اتباع اوکړم کچرته يئ تاسو رښتنی.پس که دوئ قبول نکړی ستاداخبره نوپوهه چه بيشکه | | | | | | | | |
| يَتَّبِعُونَ | أَهْوَآءَهُمْ ۚ | وَمَنْ | أَضَلُّ | مِمَّنِ | ٱتَّبَعَ | هَوَىٰهُ | بِغَيْرِ | |
| دوئ اتباع کوی دَخپلوخواهشاتو.اوڅوک دې زيات ګمراه د هغه چانه چه اتباع اوکړی دَخپل خواهش بغير | | | | | | | | |
| هُدًى | مِّنَ | ٱللَّهِ ۚ | إِنَّ | ٱللَّهَ | لَا | يَهْدِى | ٱلْقَوْمَ | ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥٠﴾ |
| دهدايته | دَطرفه | دَالله جل جلاله بې | شکه | الله جل جلاله | هدايت | نه | کوی | قوم ظالمانو ته |

• ﴿فَأْتُوا﴾ داهم جواب دې دَدوئی دَشکوې نه،چه قرآن اوتورات ته تاسوسحروایئ نوتسوددینه ښه کتاب اوزیات هدایت والاکتاب دَالله ﷻ دَطرف نه راوړئ ﴿إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ﴾ داشرط دَتبکیت اوتهکم دَپاره دې ﴿فَإِن لَّمْ يَسْتَجِيبُواْ لَكَ﴾ دابیان دَعجز دَدوئی دې ودلته داسې اونه وئیلې شوچه فان لم یفعلوا یعنی نفی دَفعل ذکرنه شوه.بلکه نفی دَاستجابت ذکرشوه دَپاره دکمال عجز دَدوئی.خکه چه هرکله دوئی په قبول دَاستجابت باندې قدرنه شونوپه قبول دَفعل باندې په طریق اولی سره قادرنه دی اوبعض مفسرین فرمائی چه مفعول دَاستجابت دَپاره الایمان والتوحید محذوف دې اوتقدیردَعبارت داسې دې چه فان لم یستجیبوالک الی الایمان والتوحید یعنی کچرې دوئی ستادعوت دَ ایمان اوتوحید قبول نکړی نو ﴿فَٱعْلَمْ أَنَّمَا يَتَّبِعُونَ﴾ یعنی ته پدې پوهه شه چه دوئی دَخپل نفسانی خواهشاتواتباع کوی اودهغې غلامان دی لیکن اول احتمال زیات غوره دې.

﴿وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنِ﴾ استفهام انکاری دې یعنی ددې انسان نه بل لوئی گمراه نیشته دې چه دَخپل خواهش غلام جوړشی اودَهغې اتباع کوی اوتقیدپه بغیرهدی من الله سره دَپاره دَزیادت تقریراوزیادت تشنیع دی،اوداقیداحترازی ندې،اوبعض فرمائی چه داقیداحترازی دې خکه چه دَخواهش اتباع کله کله موافق دَحق سره وی.لکه په جائزمحل کښې خواهش پوره کول،کمااشاراليه فی الحديث المشهور.

| وَلَقَدْ | وَصَّلْنَا | لَهُمُ | الْقَوْلَ | لَعَلَّهُمْ | يَتَذَكَّرُونَ ﴿٥١﴾ | الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوبیشا پرله | پسی | مونږرالیږلې | دې دوئ ته قرآن | چه کیدیشی | دوئ نصیحت قبول کړی | هغه کسان |

| اٰتَيْنٰهُمُ | الْكِتٰبَ | مِنْ | قَبْلِهٖ | هُمْ | بِهٖ | يُؤْمِنُوْنَ ﴿٥٢﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چه ورکړیدې | مونږدوئ ته | کتاب | مخکښې | دقرآن نه | هغوئ پدی | قرآن ایمان راوړی |

﴿وَلَقَدْ وَصَّلْنَا لَهُمُ ٱلْقَوْلَ﴾ داترغیب الی القرآن دې او وصل نه مرادپې درپې دَیوبل سره پیوست نازله ول دی او قول نه مرادقرآن دې نودَایت مطلب دادې چه داقرآن اودَدې مضامین

وعد، وعيد، امثال، قصص وغيره مونږاهل مكه ته پې درپې اويوبل سره پيوست على حسب الحكمت نازل كړيدى اودا مسئله توحيد موورته په مختلفو جهاتو سره واضحه كړه، دې دپاره چه دوئى نصيحت قبول كړى او ايمان راوړى.

﴿ٱلَّذِينَ ءَاتَيۡنَٰهُمُ﴾ دادليل نقلى دې دعلماؤ داهل كتابو نه، چه اهل كتابو كښې كوم انصاف پسند علماء دى هغوئى هم پدې قرآن باندې ايمان راوړيدې اوكماحقه پدې قرآن باندې عمل كوى، لكه حضرت عبد الله بن سلام ﷺ اودهغوئى رفقاء شو، يادغه شان دحبشه والانصارى چه دحضرت جعفر ﷺ په لاس ئې ايمان قبول كړې وو، نوضميرپه بِهٖ كښې راجع دې قرآن ته، اويا راجع دې نبى پاك ﷺ ته، يعنى دا اهل كتاب په نبى پاك ﷺ باندې ايمان راوړى خكه چه دنبى پاك ﷺ اوصاف دوئى ته په مخكينو كتابونو كښې بيان شوى وو او بعضِ فرمائى چه ضميردَ بِهٖ راجع دې الكتاب ته اودا يت مقصد دادې چه دوئى په خپل كتاب باندې ايمان لرونكى دى، ليكن اول احتمال زيات غوره دې.

| |
|---|
| وَإِذَا يُتۡلَىٰ عَلَيۡهِمۡ قَالُوٓاْ ءَامَنَّا بِهِۦٓ إِنَّهُ ٱلۡحَقُّ مِن رَّبِّنَآ |
| اوكله چه اولوستلې شي پدوئ قرآن وائى مونږ ايمان راوړيدې پدى قرآن بيشكه داحق كتاب دې زمونږدرب دطرفه، |
| إِنَّا كُنَّا مِن قَبۡلِهِۦ مُسۡلِمِينَ ۝٥٣ أُوْلَٰٓئِكَ يُؤۡتَوۡنَ أَجۡرَهُم مَّرَّتَيۡنِ |
| بيشكه مونږووڅخكښې دنازليدلودونه مسلمانان.دې كسانوته وركولې كيږى به اجردوئ دوه چنده |
| بِمَا صَبَرُواْ وَيَدۡرَءُونَ بِٱلۡحَسَنَةِ ٱلسَّيِّئَةَ وَمِمَّا رَزَقۡنَٰهُمۡ |
| په سبب دصبردوئ.اودفع كوى دوئ په نيكئ سره گناه اودهغه مال نه چه مونږورته وركړيدې |
| يُنفِقُونَ ۝٥٤ وَإِذَا سَمِعُواْ ٱللَّغۡوَ أَعۡرَضُواْ عَنۡهُ وَقَالُواْ |
| خرچ كوى په لاره دالله ﷻ كښې اوكله چه واورى بيكاره خبرى اعراض اوكړى دهغې نه اووائى بيكاره خبروكونكوته، |
| لَنَآ أَعۡمَٰلُنَا وَلَكُمۡ أَعۡمَٰلُكُمۡ سَلَٰمٌ عَلَيۡكُمۡ لَا نَبۡتَغِي ٱلۡجَٰهِلِينَ ۝٥٥ |
| مونږته به زمونږدعملونوبدله ميلاويږى اوتاسوته ستاسودعملونو.سلام دى وى په تاسو. نه غواړومونږ دجاهلانو سره بحث ومباحثه |

﴿وَإِذَا يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ﴾ دا داهل کتابو مؤمنانو اوصاف ذکرکیږی یعنی کله چه دوئی ته قرآن تلاوت اوکړې شی نو دوئی فوراً وائی چه مونږ پدې قرآن ایمان راوړیدې، دا زمونږ د رب د طرف نه برحق کتاب دې او مونږ پدې قرآن اودَده په مضامینو باندې دَده دَنزول نه مخکښې ایمان راوړې دې.

﴿أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ﴾ پدې ایت کښې درې (۳) صفتونه داهل کتابو مؤمنینو ذکرکیږی (۱) صبر په تکالیفو باندې (۲) دفع دَسیئه په حسنه سره (۳) انفاق اوپه تعین دَ مرتین کښې متعدد اقوال دی (۱) بعض علماء فرمائی چه هرکله دوئی دَنزول دَقرآن اودَبعثت دَنبی پاک ﷺ نه مخکښې هم په نبی پاک ﷺ اوقرآن باندې ایمان لرلو اودَبعثت اونزول نه ورستونې هم ایمان لرلو اوپه ایمان باندې ثابت قدم پاتې شونو دَدې وجې نه دَدوه (۲) اجرین مستحق شو. یو اجردَقبل البعثت اودَقبل النزول ایمان، او دویم اجر دَبعد البعثت اودَبعد النزول ایمان.

(۲) بعض فرمائی چه دوه (۲) اجرونه دَدې وجې نه دی چه مشرکینو به دوئی ته ایذا اوتکلیف رسولو دوئی به صفح اواعراض کولو نو یو اجر دَایمان او دویم اجر دَصفح اواعراض دی (۳) لیکن زیات غوره قول دادې (دا قول دَجمهورودې) چه اهل کتاب مؤمنینو اولاً ایمان په خپل نبی اوخپل کتاب باندې وو. اوبیا چه دَنبی پاک ﷺ بعثت اوشونو ایمان ئې په نبی پاک ﷺ اوقرآن باندې راوړلو، نو ایمان ئې مرتین وونو ځکه دَدوه (۲) اجرونو مستحق شو او دَدې تائید په روایت دَابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه سره کیږی چه ذکرکړیدې امام بخاری رحمه الله په کتاب العلم او کتاب الجهاد کښې فرمائی چه: انّ رسول الله قال ثلاثة یؤتون اجرهم مرّتین رجلٌ من اهل الکتاب آمن بنبیّهٖ ثمّ آمن بی وعبدمملوک ادّی حقّ الله وحقّ موالیه ورجل کانت له امة فادّبها فاحسن تادیبها ثمّ اعتقها فتزوّجها یعنی درې (۳) قسمه کسانو ته دوه (۲) اجرونه میلاویږی. یو داهل کتابونه هغه کس چه په خپل نبی باندې ایمان وی اوبیا په ما باندې ایمان راوړی. دویم هغه غلام چه دَالله ﷻ دَحق اداکولو سره سره دَخپل مولی اومالک حق هم اداکوی. اودریم هغه کس چه دَهغه دَپاره وینزه وی اودې هغې ته صحیح علم ورکړی. بیائې ازاده کړی اونکاح ورسره اوکړی.

اومحدثين فرمائی چه دادري(۳)کسان اودَدوئی دادري(۳)افعال بطورحصرنه دی ذکربلکه ذکرئې دَوجې دَعموم اوغلبې نه د،چه اکثرازمنوکښ عمومی طورباندې دادري (۳)قسمه خلک اودادري(۳)قسمه افعال موجودوی.بلکه مراددینه هرهغه افعال دی چه په هغې کښ تزاحم وی،لکه په حديث دَترمذی وغيره کښ دی چه حضرت عائشهﷺفرمائی چه قال رسول اللهﷺالذی يقرأالقرآن وهوماهربه مع السفرة الكرام ا لبررة، والذی يقرؤه(قال هشام)وهو شديد عليه فله اجران(ترمذی).

﴿ بِمَا صَبَرُواْ ﴾مراددَصبرنه استقامت علی الدين اوصبرپه تکاليفواوايذاءباندې دې

﴿وَيَدۡرَءُونَ بِٱلۡحَسَنَةِ ﴾دَالحسنة نه مرادتوبه اطاعت اوعمل صالح.حلم اوامربالمعروف. اودَخيرکارتول ورنه مرادکيدې شی،اودَالسّيئة نه مرادذنوب.معاصی.جهل دجاهل. منکر اوشرکارتول ورنه مرادکيدې شی.بهرحال مقصودپدې سره دَدوئی دَمکارم اخلاق بيان دې حضرت تهانوی رحمه اللهفرمائی چه پديکښ اشاره ده چه دَدوئی زړونه دَحب جاه نه خالی دی

﴿وَمِمَّا رَزَقۡنَٰهُمۡ ﴾هرکله چه ماقبل کښ دَدوئی دَايمان اودَاطاعت بدنيه ذکراوشو.نوپدې ايت کښ دَاطاعت ماليه ذکرکيږی اومرادپه﴿يُنفِقُونَ ﴾سره انفاق دې په اموردَخيرکښ لکه چه داتقاضاده دَمقام دَمدحی اوپديکښ اشاره ده چه دَدوئی زړونه دَحب مال نه خالی دی اوداشامل دې ټولوانواعودَانفاق ته فرضی دی یاواجبه دی یامستحبه دی.

﴿وَإِذَا سَمِعُواْ ٱللَّغۡوَ ﴾ پديکښ مزيدنورصفات دَدوئی ذکرکيږی.لغو هرقبيح قول اوعمل ته وئيلې کيږی لکه کنځل،غيبت،غزل وغيره شو،اودغه شان هرهغه قول اوعمل ته هم وئيلې کيږی چه څه دينی اودنيوی منفعت پکښ نه وی﴿أَعۡرَضُواْ عَنۡهُ ﴾اعراض دلغوې نه.دادې چه دَلغوې(کنځلو)جواب نه ورکوی،دَلغوی په مجلسونوکښ شرکت نه کوی.لکه مجلس دَغيبت،مجلس دَغزلوو غيره شو.

﴿لَنَآ أَعۡمَٰلُنَا وَلَكُمۡ ﴾دامقاطعه ده دَهغوئی سره يعنی دَاهل لغو سره دوئی مقاطعه کوی چه زمونږدَپاره زمونږدين اوعملونه دی اوستاسودَپاره ستاسودين اوعملونه دی زمونږنه به

دزمونږ عملونو په باره کښې تپوس کیږي اوستاسونه به ستاسو دعملونو تپوس کیږي ﴿سَلٰمٌ عَلَيۡكُمۡ﴾ داسلام متارکت دي چه زمونږ دستاسو سره نور تعلق ختم شو. اوبعض فرمائی چه سلام په معنی دسلامتیا اوامن سره دي. یعنی زمونږ د طرف نه دي په تاسو سلامتیا وی. که تاسو هرڅه وایئ خو مونږ تاسو ته جواب نه درکوو. نو پدې احتمال دا ایت بیامنسوخ دي په ایت القتال سره. لیکن اول احتمال زیات غوره دي ﴿لَا نَبۡتَغِي ٱلۡجَٰهِلِينَ﴾ داعلت دی دمتارکت دپاره ذکر کیږي. یعنی مونږ ته ستاسو مجلسونه خوښ نه دی او مونږ تاسو سره کیناستل نه خوښوو. اویادامعنی ده چه مونږ دجاهلانو طریقې اوعادتونه نه غواړو چې بحث ومباحثه درسره شروع کړو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّكَ | لَا | تَهۡدِي | مَنۡ | أَحۡبَبۡتَ | وَلَٰكِنَّ | ٱللَّهَ | يَهۡدِي |

بی شکه ته اې پیغمبره هدایت نه شی کولې هغه چاته چه ستاخوښ وی لیکن الله ﷻ هدایت کوی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَن | يَشَآءُۚ | وَهُوَ | أَعۡلَمُ | بِٱلۡمُهۡتَدِينَ ۝٥٦ | وَقَالُوٓاْ | إِن | نَّتَّبِعِ |

چاته ئی چه خوښه شی. اوهغه زیات عالم دي په هدایت موندونکو. اووائی دمکی مشرکان که چرته مونږ اتباع اوکړه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ٱلۡهُدَىٰ | مَعَكَ | نُتَخَطَّفۡ | مِنۡ | أَرۡضِنَآۚ | أَوَلَمۡ | نُمَكِّن | لَّهُمۡ | حَرَمًا |

دهدایت تاسره. نو اوبه تختولې شو دخپل زمکی نه خلق به مو اغواکړي آیامونږ ځائ ندې ورکړیدې دوئ ته حرم

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ءَامِنٗا | يُجۡبَىٰٓ | إِلَيۡهِ | ثَمَرَٰتُ | كُلِّ | شَيۡءٖ | رِّزۡقٗا | مِّن | لَّدُنَّا | وَلَٰكِنَّ | أَكۡثَرَهُمۡ |

چه امن والادې راچلوې شی هغه ته میوی دهرڅیزچه رزق دې زمونږ دطرفه لیکن اکثر ددوئ نه

لَا يَعۡلَمُونَ ۝٥٧

نه پوهیږی پدې نعمت.

﴿إِنَّكَ لَا تَهۡدِي﴾ دا متعلق دي د ﴿وَلَقَدۡ وَصَّلۡنَا لَهُمُ﴾ سره او تسلی ده نبی پاک ﷺ ته. یعنی داهل مکه دنصیحت اوهدایت حاصلولو دپاره مونږ مسلسل ایاتونه نازل کړیدی اوای

پیغمبره؛تاهم دوئی ته په دعوت او تبلیغ کښې څه کمی نه دې راویستلې او ستا محبت او شفقت هم ددوئی سره ډیردې، خو دې باوجود کچرې یو کس ایمان نه راوړی نو ته خفګان او پریشانی مه کوه ځکه چه څوک اسلام کښې داخلول ستا په قدرت کښې نه دی.

**شان نزول**: دَبخاری، مسلم وغیره محدثینو تولو پدې اتفاق دې چه دا ایت دَابوطالب په باره کښې نازل شویدې، لکه امام بخاری رحمه الله دَحضرت مسیب رضی الله عنه نه روایت نقل کړیدې فرمائی چه: لَمّاحضرتْ اباطالبِ الوفاةُ جآءهُ رسول الله ﷺ فوجدعندهُ اباجهلٍ وعبدالله بن ابی امیّة بن المغیرة فقال ای عمّ، قُل لااله الّاالله، کلمةً اُحاجّ لکَ بها عندالله فقال ابوجهل وعبدالله بن ابی امیة اترغب عن ملّة عبدالمطلب فلم یزل رسول الله ﷺ یعرضهاعلیه وَیعیدانه بتلک المقالة حتّی قال ابوطالب آخرماکلّمهم علی ملّة عبدالمطلب وابٰی ان یّقول لااله الّاالله، قالَ قال رسول الله ﷺ والله لاستغفرنّ لکَ مالم اُنهَ عنکَ فانزل الله، ماکان للنّبیّ والذین آمنوااِن یّستغفروا للمشرکین وانزل الله فی ابی طالب فقال لرسول الله ﷺ انّکَ لاتهدی من احببتَ ولکنّ الله یهدی من یّشآء (بخاری کتاب التفسیر).

نو دَدې ایت کریمه او حدیث نه معلومه شوه چه دَابوطالب وفات دکفر په حالت کښې شویدې او دا قول دَجمهورو او دَاکثر اهل السنة والجماعة دې بعض حضرات دَابوطالب دَایمان قائله دی او استدلال ئې کړیدې په روایت دَابن اسحاق سره چه ذکر کړیدې هغه په خپل کتاب سیرت ابن هشام کښې په سند دَعباس بن عبدالله بن معبدبن عباس عن بعضِ اهله سره، فرمائی چه: فلمّاتقاربَ من ابی طالب الموتُ قال نظرالعبّاس الیه یحرّکُ شفتیهِ قالَ فاصغٰی الیهِ بأذنهِ قال فقال یاابن اخی والله لقدقال اخی الکلمة الّتی امرتّه ان یّقولها قال فقال رسول الله ﷺ لم اسمع (سیرت ابن هشام ج۱) یعنی هرکله چه ابوطالب ته مرګ نزدې شو نو حضرت عباس رضی الله عنه اوکتلو چه ده شونډې خوزولې، نو حضرت عباس رضی الله عنه ورته غوږ نزدې کړو، نو حضرت عباس رضی الله عنه نبی پاک ﷺ ته عرض اوکړو چه اې وراره اُخماپه الله ﷺ باندې قسم: چه څما ورور هغه کلمه وائی چه دکومې کلمې ورته تا حکم کړې وو، نبی پاک ﷺ او فرمائیلو چه ما نده اوریدلې.

دغه شان علامه اسماعیل حقی حنفی رحمه الله (المتوفی سنه ۱۱۲۷) په خپل تفسیر کښې فرمائی: وقدجآء فی بعضِ الرّوایاتِ انّ النبیّ ﷺ لمّاعادمن حجّة الوداع احیَ الله له ابویهِ وعمّه

قآمنوابه(روح البیان ج۷)یعنی دَحجة الوداع نه واپس کیدلوپه موقع کښې الله ﷻدَنبی پاک ﷺمور، پلاراوتره(ابوطالب)ژونه دی کړی وواودوئی په نبی ﷺباندې ایمان راوړې وولیکن لیکن جمهوراهل سنة والجماعة دَنصوص اواحادیثوصریحه اوصحیحه دَوجې نه،دَدې قائل دی چه دَابوطالب مرګ دکفرپه حالت کښې شویدې.کچرې دَایمان په حالت کښې ورته مرګ راغلې وې یائې ورستوایمان متحقق شوې وې نونبی پاک ﷺبه دَهغه دَپاره مغفرت غوختلونه،نه وومنع کړې شوې،دغه شان په روایت دَبخاری شریف کښې دی چه ابن عباس ﷺ دَنبی پاک ﷺنه تپوس اوکړوچه یارسول الله!ابوطالب خوستاډیرخدمت کړې وودَدښمنانوئه ئې ستاحفاظت کړې وو،دَدې به هغه ته څه فائده میلاؤشی،نبی پاک ﷺورته اوفرمائیلوچه دَدې فائده هغه ته داده چه دَقیامت په ورځ به تولونه،اسان عذاب ده ته وی چه صرف به دَپړکو(ښنګرو)پورې به په اورکوی لیکن دَهغې اثربه دَده دَماغوته رسیږی،اوکچرې څه نوې نودې به دَجهنم په لاندې طبقه کښې وې اودغه شان په بخاری شریف کښې یوبل روایت دَابن عباس ﷺنه مروی دې فرمائی:قال رسول الله ﷺانّ اهونَ اهل النّارعذاباًابوطالب وهومتنعّل بنعلین یغلی منهمادماغه(بخاری).

نوددې تولونصوصواوروایاتوپه بنیاداهل السنة والجماعة دَابوطالب دکفرقائله دی،او روایت دَابن اسحاق یاچه کوم روایاتوته علامه حقی اشاره کړیده تول ضعیف دی(والله اعلم) البته اهل سنة والجماعة دَدې قائله دی چه ابوطالب کافرکیدلوباوجودهغه ته بد،ردوئیل دَهغه سپکاوې کول دَهغه په باره کښې دَعام کفاروپشان خبرې کول وغیره جائزنه دی،علامه الوسی ﷺفرمائی:ثم انه علی القول بعدم اسلامه لاینبغی سبه والتکلم فیه بفضول الکلام،فان ذلک ممایتاذی به العلویون بل لایبعدان یکون ممایتاذی به النبی ﷺ الذی نطقت الایة بناءً علی هذه الروایات بحبه ایاه(روح المعانی).

﴿ إِنَّكَ لَا تَهْدِي ﴾دَدې نفی هدایت نه مرادنفی دَقدرت ده په ادخال فی الاسلام باندې،چه په عاموالفاظوکښې ورته تعبیرپه ایصال الی المطلوب سره کیږی.یعنی داستاپه قدرت اواختیارکښې نه ده چه ستاخوښ وی هغه به په اسلام کښې داخله وې بلکه دادَالله ﷻقدرت اواختیاردې اونفی دَ-دلالت علی مایوصل الی المطلوب-نده چه عام الفاظوکښې ورته تعبیرپه

"اراءة الطريق" لاري خودلو، سره کیږي ځکه چه هغه دَنبی پاکﷺ ذمه داری ده. نو دعوت او تبلیغ او دَحقې لارې وضاحت دَنبیﷺ کاردې او دَهغه ذمه داری ده نو ځکه په سورة الشوری ایت نمبر(۲۵) کښې دی "وانک لتهدی الی صراط مستقیم" او په اسلام کښې ځوک داخلول او دَ هدایت توفیق ورکول دَپیغمبر په اختیار کښې نه دی بلکه دالله ﷻ په اختیار کښې دی چه پدې کښې مراد دې نو ځکه دلته نفی دَنبی پاکﷺ نه اوشوه

﴿وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ﴾ داعلت دَ"لاتهدی" دَپاره دې یعنی هدایت ستا په اختیار کښې ځکه ندې چه تاته داعلم نیشته دې چه مستعد او قابل دَتوفیق دَپاره دَهدایت ځوک دی داعلم صرف او صرف الله ﷻ سره دې نو پدیکښې رد په شرک فی التصرف اوفی العلم دواړو باندې راغلې ﴿وَقَالُوا إِن نَّتَّبِعِ الْهُدَىٰ﴾ دادویمه شکویٰ ده خلاصه دې داده چه بعضِ مشرکینو نبی پاکﷺ ته داوئیلو چه مونږ ته ښه پته ده چه ته بالکل برحق نبی ئې لیکن مونږ په تا باندې ایمان ځکه نشو راوړې چه ټول عرب زمونږ مخالف کیږی او مونږ باندې به حمله اوکړی او دَمکې نه به موبهر کړی او زمونږ تعداد ډیر کم دې.

﴿أَوَلَمْ نُمَكِّن لَّهُمْ﴾ داجواب شکویٰ ده په اول وجه سره خلاصه ئې داده چه دَدوئی داعذر ځکه غلط دې چه دوئی خپله ګوری چه ټول عرب په خپل مینځ کښې قتل مقاتلې کوی لیکن دَشرک باوجوددوئی ته الله ﷻ په حرم شریف کښې دَامن والاتهکانه ورکړیده او دَدنیا هرخطې نه ورته میوې رارسوی، نو هرکله چه دوئی دَحرم پاک په برکت سره محفوظ ومامون دی باوجود دَدې چه مشرکان دی، نو که دوئی ایمان راوړی نو دَحرمت ایمان دَوجې به نوربه هم په سکون او اطمینان شی.

علامه قرطبی رحمه الله دَدې یوبل تفسیر دَیحیی بن سلام نه نقل کړیدې چه الله ﷻ فرمائی چه تاسو ځما په حرم کښې په امن سره پاتې کیږئ، ځما رزق خورئ او عبادت دَبل چاکوئ او ځمانه نه ویریګئ، تاسو دومره نه پوهیږئ چه دَچاپه ځائی کښې ژوندتیره وې، دَچا رزق خورې دَهغه دَنافرمانئ نه، ځان بچه کول پکاردی او دَهغه نه ویره پکارده او که دَهغه چانه ویره پکارده چه نه ټهکانه درکولې شی اونه رزق درکولې شی؟

| |
|---|
| وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ بَطِرَتْ مَعِيشَتَهَا ۚ فَتِلْكَ مَسٰكِنُهُمْ |
| او ډېرهلاک کړيدي مونږکلي چه ناز ئې کولو په خپل معيشت .نودغه دي کورونه ددوئ |
| لَمْ تُسْكَنْ مِّنْۢ بَعْدِهِمْ إِلَّا قَلِيلًا ۖ وَكُنَّا نَحْنُ الْوٰرِثِينَ ﴿۵۸﴾ |
| چه ستوګنه پکښې نده کړې شوې ورستودډوئ نه مګرلږ،چه مسافرپکښې دمه کړې وي،اووږمونږوارثان دهغي |

﴿وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ﴾داجواب شکوي ده په دويمې وجې سره اوتخويف دنيوي ذکرکيږي.خلاصه ئې داده چه اصل دخوف اوويرې والاخيزکفراوشرک دې چه داسبب دتباهئ اوهلاکت دې،تاسودنوروکافرقومونوپه حالت باندې نظرواچوئی چه ډېردعيش وعشرت والاژوندئي تيرولو ،الله ﷻ څرنګه هلاک کړيدی،ستاسوسره نزدې دهغوئ علاقې ورانې اوغيرابادي پرتې دی که تاسوهم پدې خپل شرک باندې مصريئ اوتوحيدنه منئ نوالله ﷻ به تاسوهم هلاک کړي.

﴿ إِلَّا قَلِيلًا﴾ددې په مستثنى منه کښې دوه(۲)احتمالات دی(۱)يواحتمال دادې چه مستثنى منه ددې دپاره سکنى مصدردې چه په هغې دلالت کړيدې﴿ لَمْ تُسْكَن ﴾نومعنى ئې داده چه لم تسکن الاسکنى قليلاً يعنى پدغه علاقوکښې ډېرلږوخت دپاره اوسيدل کيږی چه څوک مسافرراشي اوياڅوک په لاره باندې تيريږی نودلږوخت دپاره اودريږی:اى لم يسکنها الاالمسافرومارالطريق(بحر،کبير).

(۲)دويم احتمال دادې چه دا استثناء دمساکن نه ده،نومعنى ئې داده چه فتلك مساكنهم لم تُسكن مِّن بعدهم الاّقليلاًمنهاسکن يعنى اکثرددې مساکنونه،خراب اوويران دی څوک پکښې نه اوسيږی ډيرکم مساکن داسې دی چه په هغې کښې خلك اوسيږی(قرطبى،بحر).علامه زمخشرى فرمائى چه ممکنه ده چه دهلاك شووقومونودګناهونودنحوست دوجې نه داعلاقه داوسيدلوقابله نه وی اوچه څوك هم ورته راځى نولږه مده پس هغه هم ختميږی اووفات کيږی.

﴿وَكُنَّا نَحۡنُ ٱلۡوَٰرِثِينَ﴾ دلته دَوارثت نه مراد یامجرد انتقال دي دَهغوئی نه یعنی مالك حقیقی دَهرځیزالله ﷻ دي، خولږ مدت دَمنفعت دَپاره الله ﷻ دَخپلې خیزونو ظاهری مالکان انسانان جوړکړیدی، نو الله ﷻ فرمائی چه دَدوئی دَمعاصیو دَوجې نه مادَدوئی نه دَدغې علاقې ظاهری تصرف واپس واغستلو. دوئی ټول مې هلاك کړل، اویادَوراثت نه مراد الحاق دَدغې علاقې دي دَخپل اصل حالت سره یعنی دا زمکه او علاقه چه په ابتداءکښې څرنګې وه هغه شان مې کړه، چې هغ خوك پکښې نه اوسیږی، او شړه پرته ده.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهۡلِكَ ٱلۡقُرَىٰ حَتَّىٰ يَبۡعَثَ فِيٓ أُمِّهَا رَسُولٗا يَتۡلُواْ عَلَيۡهِمۡ | | | | | | | | |
| اوندي رب ستاهلاکونکي دکلوتردې چه ولیږی په مرکزی ښاردهغې کښې رسول چه لولی پدوئ | | | | | | | | |
| ءَايَٰتِنَاۚ وَمَا كُنَّا مُهۡلِكِي ٱلۡقُرَىٰٓ إِلَّا وَأَهۡلُهَا ظَٰلِمُونَ ﴿٥٩﴾ وَمَآ أُوتِيتُم | | | | | | | | |
| آیاتونه زمونږ، اونه یومونږهلاکونکی دکلومګراهل دَهغې ظالمان وی،اوهغه څه چه درکړې شویدي تاسونه | | | | | | | | |
| مِّن شَيۡءٖ فَمَتَٰعُ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا وَزِينَتُهَاۚ وَمَا عِندَ ٱللَّهِ | | | | | | | | |
| هرځیزچه وی نوهغه معمولی نفع دَژوندددنیاده اودَهغې ښائست دي اوهغه څه چې الله ﷻ سره دی | | | | | | | | |
| خَيۡرٞ | وَأَبۡقَىٰٓۚ | أَفَلَا | تَعۡقِلُونَ ﴿٦٠﴾ | | | | | |
| زیات | غوره | دی | اوزیات | پاتې | کیدونکی | دي، | آیاتاسوعقل | نه لرئ |

﴿وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهۡلِكَ ٱلۡقُرَىٰ﴾ پدیکښې دَتخویف سره سره دَالله ﷻ عادت اوسنت ذکرکیږی، چه یوقوم الله ﷻ ترهغه وخته پورې نه هلاك کوی ترڅوپورې چه دَعلاقې لوئی اومرکزی ښهرکښې رسول نه وی مبعوث کړې، چه هغه خلکوته دَالله ﷻ پیغام واوره وی، نو کچرې خلك انکاراوکړی اونافرمانی شروع کړی نوبیادَطرف نه، عذاب راځی.

﴿حَتَّىٰ يَبۡعَثَ فِيٓ أُمِّهَا﴾ "ام" اصل کښې مورته وئیلې کیږی، خوچونکه مور دَحیوان دَتخلیق دَپاره اصل او اساس دي نودَدې وجې نه دَ "ام" اطلاق عموماً په اصل او اساس باندې کیږی.

اوپه امّها کښې ضمير﴿ٱلْقُرَىٰ﴾ته راجع دې نودَدې وجې نه،مرادترينه ام القرىٰ دي،اودَ ام القرىٰ اطلاق په مکې معظمې باندې کيږي،ځکه چه ټوله زمکه دَدې نه خوره کړې شويده، لکه سورة ال عمران انّ اوّل بيتٍ وُضعَ للنّاس کښې ذکردي،ليکن کله کله دَقرينې دَوجې نه ئې اطلاق په لوئی،اومرکزی شهرباندې هم کيږي،اومرکزی شهرته ام القرىٰ دَوجې نه وئيلې شی چه ټولې ملحقه قرئې په احکاماتوکښې دَمرکزی شهرتابع دی اواحکاماتودَپاره اصل دغه شهروی،نودلته هم دَغوره قول مطابق ام القرىٰ نه مرادمرکزی اولوئی شهردې اودَبعث دَ رسول دَپاره تخصيص دَمرکزي شهرکيږي چه دَدې اهل اشراف وی(خازن) لکه چه سياق دکلام پدې دلالت کوی،اګرچه بعضِ مفسرين فرمائی چه دَ ام القرىٰ نه مراددلته هم مکه مکرمه ده او﴿ رَسُولًا﴾نه مراد نبی پاک ﷺ دې،اودَايت مقصددادې چه الله ﷻ فرمائی چه تراوسه پورې مې مشرکين عرب ځکه نه هلاک کړلوچه مکې مکرمې ته نبی پاک ﷺ نه وومبعوث شوې، اواوس چه نبی پاک ﷺ مبعوث شواودوئی دَايمان نه انکاراوکړونو اوس ئې دَهلاکت وخت راغليدې.

﴿وَمَآ أُوتِيتُم مِّن شَيْءٍ﴾داپه دريمې وجې سره دَشکوې جواب ذکرکيږي اوترغيب ورکولې کيږي ايمان ته،خلاصه ئې داده چه دَمخلوق دَيرې اودَهغوئی دَتکليف رسولودَخوف نه ايمان مه پريدئی،ځکه چه دَدنياعيش اوعشرت اوخوشحالئ هميشه دَپاره نه دی خامخاختميږی، دغه شان دَدنياتکليفونه هم هميشه دَپاره نه دی دَايمان په خاطرپه دنياکښې لږ تکليف برداشت کول دَسعادت ابدی،اخروی ذريعه ګرځيږی،چه لږتکليف برداشت کړئی هميشه دَپاره خوشحالئ به حاصلې کړئی اوکچرې ددې لږتکليف نه اوويريدلئ،اوايمان موپريخودلونوبيا به هميشه دَپاره په تکليف کښې وئی.﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾استفهام دَزجراوتوبيخ دَپاره دې چه آيادومره عقل نه لرئی پدې نه پوهيږئی چه لږتکليف اوهميشه خوشحالی ښه ده اوکه لږه خوشحالی اوهميشه دَپاره تکليف ښه دې؟

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَفَمَنْ | وَّعَدْنٰهُ | وَعْدًا | حَسَنًا | فَهُوَ | لَاقِيْهِ |

آیاهغه څوک چه وعده کړې وی مونږهغه سره وعده ښائسته‌وعده دجنت‌اوهغه موندونکی وی دهغې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَمَنْ | مَّتَّعْنٰهُ | مَتَاعَ | الْحَيٰوةِ | الدُّنْيَا | ثُمَّ | هُوَ | يَوْمَ | الْقِيٰمَةِ |

کیدیشی دې پشان د هغه کس چه نفع ورکړې وی مونږهغه ته نفع دژونددنیاییابه وی په ورځ دقیمت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنَ | الْمُحْضَرِيْنَ ﴿٦١﴾ | وَيَوْمَ | يُنَادِيْهِمْ | فَيَقُوْلُ | اَيْنَ |

دحاضرکړې شوؤنه جهنم ته‌اوپه هغه ورځ چه اوازبه اوکړی دوئ ته الله جل جلاله نووړنه به وائی کوم ځائ دی

شُرَكَآءِيَ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴿٦٢﴾

شریکان ځماهغه چه تاسوپری گمان دخدائی کولو.

﴿ أَفَمَن وَعَدْنَٰهُ ﴾پدیکښ فرق بیانیږی دَدنیاپرستواودَنیکانوپه مینځ کښ اواستفهام دَپاره دَانکاردې.خلاصه داده چه یوهغه مؤمن دې چی دَهغه سره الله جل جلاله دَجنت دَدائمی نعمتونووعده کړیده اوهغه نعمتونه به خامخاهغه ته میلاویږی،اوبل هغه مشرک دې چه دَایمان نه محروم دې لیکن دَدنیادَیوخوورخوفانی عیش وعشرتونوکښ دې،اواخرت کښ به دائمی عذاب ته حاضرکړې شی اودائمی عذاب کښ به مبتلاکړې شی آیادادواړه برابرکیدې شی؟.

﴿ ثُمَّ هُوَ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ثُمَّ دَتراخی زمان دَپاره هم ده اودَتراخی دَحال دَتمتع،دَپاره هم کیدې شی،او﴿مِنَ ٱلْمُحْضَرِينَ ﴾نه مراد محضرین بالنار دی.اوالفظ تغلیباًدکفارودَپاره استعمالیږی،ځکه چه کفاربه دَقیامت په ورځ جهنم ته په زبردستئ سره حاضرولې شی اوپه خپلې رضااوشوق سره په جهنم ته نه ځی لکه څرنګه مؤمنان به په شوق سره جنت ته ځی

﴿وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ ﴾داتخویف اخروی دې او﴿شُرَكَآءِىَ﴾نه مرادتول معبودان غیرالله مراددی،چه مشرکینوپه هغوئی باندې دکارسازاوشفیع ګمان کولو.اودااستفهام اوسوال به

دَالله ﷻ دَطرف نه دَپاره دَتوبیخ اوتبکیت دَدوئی وی. یعنی الله ﷻ به دَقیامت په ورځ دَدوئی دَحسرت اضافه کولو دَپاره دَدوئی نه سوال اوکړی چه ستاسو هغه معبودان څه شو چه ستاسو پرې داعقیده جوړه وه چه دوئی به زمونږ سفارشان وی اودالله ﷻ دَعذاب نه به مونږ ته خلاصی راکوی

قَالَ الَّذِيْنَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ

وبه وائی هغه کسان یعنی متبوعین چه ثابته شویده په هغوئ فیصله دعذاب. اې ربه زمونږ دا اتباع هغه

الَّذِيْنَ اَغْوَيْنَا ۚ اَغْوَيْنٰهُمْ كَمَا غَوَيْنَا ۚ تَبَرَّاْنَآ اِلَيْكَ ز

خلق دی چه مونږ گمراه کړیدی. مونږ گمراه کړی وؤ دوئ څکه چه مونږ گمراه وؤ. بیزاره یو مونږ ستا په مخکښې د دوئ نه.

مَا كَانُوْٓا اِيَّانَا يَعْبُدُوْنَ ﴿۶۳﴾

نه وؤ دوئ چه زمونږ عبادت ئې کولو (زمونږ په مرضئ)

﴿قَالَ ٱلَّذِينَ حَقَّ﴾ پدې ایت کښې دَدوئی یعنی اتباع کفارو او دَمتبوعینو دَیو بل نه تبری او بیزارئ ذکر کیږی او هر کله چه ماقبل سوال دَپاره دَتبکیت وو او اتباع به په دغې سوال سره خاموش پاتې شی نو دا متبوعین به دا خیال اوکړې چه کیدې شی چه عنقریب دوئی دا اوائی چه دې مشرانو مونږ گمراه کړی یو، نو ځکه دا متبوعین به دَهغوئی دَخبرې نه اول جواب ورکړی او داهم ممکنه ده چه دَعابدانو دَطرف نه اعتذار او عذر پیش کړې شی چه یارب هٰؤلاء اضلّونا نو دا مشران به خپله تبریه ظاهره کړی او دا جواب اوبه ورکړی ربّنا هٰؤلاء خلاصه دجواب داده چه دوئی ته ښه پته وه چه مونږ گمراه یو مونږ دوئی ته صرف دَباطل دعوت ورکړو دوئی قبول کړو نو دَدوئی گمراهی په خپل اختیار سره وه مونږ پرې جبر نه وو کړې. لکه څرنگه دوئی ته انبیاء کرام راغلی وو دَحق لارې دعوت ئې ورته ورکړې وو. او دوئی ئې په ایمان باندې مجبوره کولې نه شو دغه شان مونږ هم دوئی په کفر باندې نه دی مجبوره کړی نو

﴿قَالَ ٱلَّذِينَ حَقَّ﴾ نه مراد رؤساء او مشران دکفارو دی او ﴿ٱلَّذِينَ﴾ موصول او ﴿حَقَّ عَلَيۡهِمُ ٱلۡقَوۡلُ﴾ ورله صله ده. او مراد پدې سره فیصله دَعذاب ده او دا مضمون دَصلې یعنی فیصله دَعذاب

اګرچه متبوعینو او اتباعو ټولو ته شامل دي لیکن تخصیص دَرؤسآؤ او مشرانو ځکه اوشو چه دوئی په کفر کښې او په استحقاق دَعذاب کښې اصل دی (روح المعانی).

﴿أَغْوَيْنَآ﴾ دا تسلیم دَاضلال دې اجمالاً. یعنی هاؤ بالکل مونږ دوئی ګمراه کړیدی

﴿أَغْوَيْنَٰهُمْ كَمَا غَوَيْنَا﴾ دا تفصیل دې او کاف په ﴿كَمَا﴾ کښې دَپاره دَعلت دې او دا علت دې دَماقبل دَپاره مقصد دا دي، چه چونکه مونږ په خپله ګمراه وو نو دوئی مو هم ګمراه کړل ځکه چه ګمراه او کافر خوچا ته سمه لاره نه ښائی، او یا کاف دَپاره دَتشبیه دې نو مقصد ئې دا دې چه لکه څرنګه مونږ په خپل اختیار سره ګمراه شوی وو، نو دغه شان دوئی هم په خپل اختیار سره ګمراهی اختیار کړیده. ﴿تَبَرَّأْنَآ إِلَيْكَ﴾ منهم ورسره محذوف دې یعنی مونږ تا ته دَدوئی نه خپله بیزاری ظاهره وو، چه په مونږ باندې دَدوئی دَوجې نه څه ملامتیا نیشته دې.

﴿مَا كَانُوٓا۟ إِيَّانَا يَعْبُدُونَ﴾ یعنی دوئی جبراً زمونږ اطاعت او عبادت نه دې کړې بلکه دوئی دَخپلو خواهشاتو اتباع کړیده او ګمراه شویدی.

| وَقِيلَ | ادْعُوا۟ | شُرَكَآءَكُمْ | فَدَعَوْهُمْ | فَلَمْ | يَسْتَجِيبُوا۟ | لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او اوبه وئیلې شی راوغواړئ شریکان خپل. | | | نو دوئ به نی راوغواړی | | نو جواب به ورنه کړی | دوئ ته |
| وَرَأَوُا۟ | الْعَذَابَ | ۚ | لَوْ | أَنَّهُمْ | كَانُوا۟ | يَهْتَدُونَ ۝ |
| او اوبه وینی عذاب | (وائی به) | | افسوس چه | مونږ به | سمه لار | تللې |

﴿وَقِيلَ ادْعُوا۟ شُرَكَآءَكُمْ﴾ دا دویم سوال دې دکفارونه، او دا سوال به دوئی ته تهدید او دَدوئی دَزیات تحقیر دَپاره وی. یعنی دا به ورته اوئیلې شی چه خپل معبودان راوبلئ کوم باندې چه تاسو دَسفارشیانو او دکارساز ګمان کولو چه ستاسو امداد او کړی او دَعذاب نه خو خلاص کړی.

﴿فَدَعَوۡهُمۡ﴾ نودوئی به ورته اوازونه اوکړی. اودَدوئی دابلنه به دشدت حیرت اودَ اهوالونه وی،ورنه حقیقةً دَدوئی نه به بلنه نه وی طلب کړې شوی﴿فَلَمۡ يَسۡتَجِيبُواْ لَهُمۡ﴾ استجابت نه مرادقولی اوعملی دواړه دی یعنی نه به ورته په ژبه باندې څه جواب ورکړی اونه به دَدوئی څه امداداونصرت اوکړی قولی اجابت به خوځکه نشی کولې چه دَقیامت په ورځ به هرکس په خپل شغل کښې وی بل څوک به ورنه هیروی،اوعملی اجابت نه کول خوظاهردی چه دَدوئی په امداداونصرت باندې به قدرت نه لری.

﴿وَرَأَوُاْ ٱلۡعَذَابَ﴾په دې وخت کښې به دوئی ته عذاب موعودهم مستحضرکړې شی،اودوئی به ئې په خپلوسترګوباندې اوګوری.﴿لَوۡ أَنَّهُمۡ كَانُواْ﴾لو ياتمنائيه دې اوددينه مخکښې فعل تمنی محذوف دې ای تمنوالوانهم كانوايهتدون یعنی دوئی به تمناکوی چه کاش مونږهدایت یافته وې اویالو شرطيه دې اوجواب دَلو محذوف دې چه لم يروُالعذاب دې،یعنی کچرې مونږپه هدایت باندې وې نوداعذاب به مونه کتلې،اوبعضِ فرمائی چه﴿يَهۡتَدُونَ﴾په معنی دَيعلمون سره دې اوجواب محذوف دَلو مادعوهم دې،یعنی دوئی به وائی کچرې مونږته پته اوعلم وې چه دوئی زمونږامدادنشی کولې نومونږبه دَدوئی عبادت نه وې کړې.

| |
|---|
| وَيَوۡمَ يُنَادِيهِمۡ فَيَقُولُ مَاذَآ أَجَبۡتُمُ ٱلۡمُرۡسَلِينَ ﴿٦٥﴾ فَعَمِيَتۡ |
| اوپه هغه ورځ چه اوازاوکړی دوئ ته الله جل جلاله نوورته وائی به څه جواب ورکړې وؤتاسورسولانوته ،نو ګډې وډې به شي |
| عَلَيۡهِمُ ٱلۡأَنۢبَآءُ يَوۡمَئِذٖ فَهُمۡ لَا يَتَسَآءَلُونَ ﴿٦٦﴾ فَأَمَّا مَنۡ تَابَ |
| دوئ نه خبرې پدغه ورځ نودوئ به تپوس نه شي کولې دَیوبل نه.نوچاچه توبه اوباسله |
| وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحٗا فَعَسَىٰٓ أَن يَكُونَ مِنَ ٱلۡمُفۡلِحِينَ ﴿٦٧﴾ |
| اوایمان ئی راوړواوعمل ئی اوکړونیک نوقریبه ده چه شی دې دکامیابی موندونکونه |

﴿وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ﴾ دادريم سوال دې زجراًاوتوبيخاًپه باره دَاتّباع دَرسولانوكښې.اول دواړه سوالونه توبيخاًدَشرک په باره کښې وواوداسوال توبيخ دَپاره دې په باره دَعدم اجابت دَدعوت دَرسولانوکښې.يعنې انبياءکرام اورسولان تاسوته راغلي وواودَتوحيددعوت ئې درکړې وو.تاسوهغوئي ته څه جواب ورکړې وو.دَهغوئي خبره موقولاًاوعملاًمنلې وه اوکه نه؟﴿فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ الْأَنبَاءُ﴾ انبآءنه مراددَدوئي نه طلب کړې شوي دلائل اودوئي هغه غلط عذرونه اوحيلې اوبهانې دي چه دوئي دَانبياءکرامودَاتباع نه کولودَپاره بيانه ولي او فعميت عليهم الانبآء په اصل کښې فعمواعن الانباء دې،اومرادپه عمي سره عدم اهتداء يعنې هيريدل او په خبرو کښې ګډوډيدل دي،بيادَمبالغې دَپاره قلب اوکړې شواونسبت دَعمي انبآء ته اوکړې شواودغه شان پدې قلب کښې اشاره ده دېته چه په دنياکښې کوم عذرونه اووجوهات بيانه ولې شي هغه عارضي وي،اودَبيروني تاثراتونتيجه وي.نودَقيامت په ورځ به دَغه خارجي اوعارضي تاثرات به ختم شي،اوهيڅ حيله به هم دوئي ته کارورنکړي نوګوياچه دوئي نه به داخبرونه ړانده شي اودوئي ته به نښي رارسيدلې.﴿فَهُمْ لَا يَتَسَاءَلُونَ﴾يعنې دَډيرهيبت دَوجې نه به ورنه هرڅه هيرشي اودَيوبل نه به تپوس هم نشي کولې.

﴿فَأَمَّا مَن تَابَ وَآمَنَ﴾دابشارت ذکرکيږي مؤمنانوته چه څوک دَشرک نه توبه اوباسي اوايمان راوړي اونيک عمل يعنې خپل عمل دَسنت موافق کړي نودغه کس کامياب دې.نوفلاح الله ﷻ مرتبه کړه په درې اموروباندې(۱)توبه عن الشرک(۲) آمن يعنې دَتوحيدسره سره خپل نورعقائدصحيح کول(۳) وَعَمِلَ صَالِحًا يعنې سنت موافق عمل کول.

اوحقيقت دَتوبې دادې چه(۱)ندامت بالقلب وي(۲)ترک دَمعصيت في الحال وي(۳)عزم په عدم عودفي المآل وي(۴)که قضاءدَمافات ممکن وي نودَهغه قضاءاګرځول دي(۵)اوکچرې دَدغې جرم تعلق دَحقوق العبادسره وي نودَهغه انسان نه هم معافي غوختل دي دَچاحق تلفي چه کړې شويده.﴿فَعَسَىٰ أَن يَكُونَ﴾ عسى په کلام دَکرام کښې دَتحقيق دَپاره وي

نو الله ﷻ اکرام الاکرمین، دي، نو دَدې وجې نه عسیٰ[1] په کلام الهی کښې دَتحقیق او وجوب دَپاره دي

| |
|---|
| وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَيَخْتَارُ ۗ مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ ۗ سُبْحٰنَ اللّٰهِ |
| [1] اورب ستا پیدا کوی څه ئی چه خوښه شی اوغوره کوی ئې.نشته دې دوئ لره«بتانولره» اختیار.پاک دې الله ﷻ |
| وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۶۸﴾ وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ |
| اولوئ دې دَهغی نه چه دوئ ورسره شریکوی.اورب ستا پوهه دې په هغه څه چه پټوی ئی سینې دَدوئ |
| وَمَا يُعْلِنُوْنَ ﴿۶۹﴾ |
| او څه چه ښکاره کوی. |

﴿وَرَبُّكَ يَخْلُقُ﴾ دا دَسورت دریمه اواخری حصه ده چه په دیکښې اکثر دلائل عقلیه اونقلیه په توحیدباندې ذکرکیږی.یعنی پنځه عقلی دلیلونه په توحیدباندې ذکرکیږی.بیاتخویف اخروی اوبیادلیل نقلی ذکرکیږی اوامورمتفرعه ذکرکیږی دااول دَلیل عقلی دې په توحیدباندې،یعنی دَټول کائنات خالق متصرف اومختارصرف اوصرف الله ﷻ دې، مخلوقاتو کښې الله ﷻ چاته هم دَتصرف اختیارنه دې ورکړې.

اکثرمفسرین فرمائی چه﴿يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ﴾نه دَتکوینی امورواختیاردې مثلاً څوک ئې سړې پیداکړوڅوک ئې زنانه،څوک ئې انسان پیداکړواوڅوک ئې حیوان اودَ﴿وَيَخْتَارُ﴾نه مرادتشریعی امورواختیاردې مثلاچاته ئې دَنیکئ اودَاطاعت توفیق ورکړواوڅوک ئې ګمراه کړو.یعنی الله ﷻ په امورتکوینیه اوتشریعیه دواړوکښې تن تنهادې څوک ورسره شریک نیشته دې نودا صریح ردّدې په معتزلواوخوارجوباندې،اوپه هغه خلکوباندې چه اولیآءته خدائی تصرف ثابتوی،اوبعضِ مفسرین فرمائی چه دَیخلق مایشآء نه دَتکوینی امور

[1] دَسورت دریمه حصه

واختیارمراددي،اودَ"ویختار"نه مرادمختاره کول دَپاره دَنبوت دی،اوداجواب دي دَمشرکینو دَهغې خبرې چه دوئی به ونیل چه"لولانزّل هذاالقرآن علی رجل من القریتین عظیم".

﴿مَا كَانَ لَهُمُ ٱلْخِيَرَةُ﴾دلته واوعاطفه رانه وړې شوڅکه چه دابیان دَ"یختار"دي. نودَآیت معنی داده چه اختیارمندبل څوک نه دي سیوادَالله ﷻ نه.ځکه چه الله ﷻ په خپلو افعالوپه حکمت باندې عالم دې(مدارک).

﴿ٱلْخِيَرَةُ﴾کښې الف لام دَعهددَپاره دې اومرادپدې سره مخصوص امورچه هغه غیر اختیاري اوغیرداخل تحت قدرت دَعبددی هغه مراددی اواختیاري اوکسبي امور،ورنه ندی مرادنولهذاداآیت دَجبریه دَپاره هم مستدل نه ګرځی(محاسن التاویل).﴿سُبْحَٰنَ ٱللَّهِ﴾داتفریع ده په ماقبل دلیل باندې.

﴿وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ﴾دادویم دلیل عقلی دې چه عالم الغیب صرف اوصرف الله ﷻ دې ځکه چه علم دَهغه محیط دې په هرڅه باندې ځرګنددې که پټ دې نومعلومه شوه چه عبادت لائق صرف الله ﷻ دې،اودَ﴿مَا تُكِنُّ﴾نه مرادعقائدباطله اوعداوت دَنبی پاک ﷺ سره وغیره ټول خفیه اموردی،اوهرکله چه علم دَمخفی مستلزم نه ووعلم جلی لره ځکه چه کله کله دَدې علم جلی دَپاره مانع"بعد"یا"شور"یااختلاط داصواتواوګرځی اوصرف خفاء دهغې دَپاره مانع نه وی نوځکه دَ﴿مَا تُكِنُّ﴾نه ورستو﴿وَمَا يُعْلِنُونَ﴾مستقل ذکرشو.

| |
|---|
| وَهُوَ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ لَهُ الْحَمْدُ فِي الْاُوْلٰى وَالْاٰخِرَةِ ز |
| اوهم هغه الله دې نشته دې بل څوک لائق دَعبادت مګردې دې،صرف ده لره صفتونه دَخدائي توب دی په دنیاکښې اوآخرت کښې |
| وَلَهُ الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۞ قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ |
| اوده لره دې حکم اوخاص ده ته به تاسوواپس کولې کیږئ ته اووایه خبرراکړئ ماته کچرته اوګرځوی الله ﷻ په تاسو |

| |
|---|
| الَّيۡلَ سَرۡمَدًا اِلٰى يَوۡمِ الۡقِيٰمَةِ مَنۡ اِلٰهٌ غَيۡرُ اللّٰهِ يَاۡتِيۡكُمۡ بِضِيَآءٍ ؕ |
| شپه همیشه تروږمې دقیامته،نوڅوک دي اله غیرداللهﷻنه چه راولي په تاسورڼا. |
| اَفَلَا تَسۡمَعُوۡنَ ﴿۷۱﴾ |
| آیاتاسونه اورئ |

﴿ وَهُوَ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ﴾داثمره ذکرکیږی دَماقبل دواړودلیلونواوپدې ایت کښې څلورکلمات دَتوحیدذکردی(۱)﴿ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ﴾،چه داتوحیددَالوهیت دې،۲﴿لَهُ الۡحَمۡدُ ﴾داتوحید دَصفاتودې،یعنی دنیااوآخرت کښې صفات دکارسازئی اللهﷻلره ثابت دی،۳﴿وَلَهُ الۡحُكۡمُ ﴾چه داتوحیدفی القدروالقضاء دې،یعنی تقدیراوقضاء محض دَاللهﷻدَطرف نه ده حکم صرف دَاللهﷻچلیږی دَحاجت روائی اومشکل کشائی فیصلواختیارصرف اوصرف دَاللهﷻسره دې،۴﴿وَاِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ ﴾،داتوحیدفی الجزاء والحساب دې یعنی ستاسوواپس کیدل صرف اوصرف اللهﷻته دی،اوهغه به مطیع ته دَاطاعت اجرورکوی اومسئ ته به دَبدعملونو سزاورکړی(کچرې خوبښه شي نومعاف به ئې کړی).

﴿ قُلۡ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ ﴾دادریم دلیل عقلی دې اودااعترافی دې،یعنی علی سبیل الاعتراف من الخصم دې،ځکه چه دَخصم نه تپوس کړې شویدې اوهغه سکوت کړیدې نودَهغه سکوت په منزله دَاقراراواعتراف دې اوپدې دلیل کښې یوه نمونه دَاختیاردَاللهﷻذکرشویده چه شپه اوورځ دَاللهﷻپه قبضه اواختیارکښې دی خلاصه دلیل داده چه کچرې اللهﷻاوغواړی چه ترقیامته پورې دې شپه وی،ورځ دې نه راځی نودَاللهﷻنه علاوه بل څوك داسې واکداره اختیارمندشته دې چه ستاسودَرڼابندوبست اوکړی،اوتاسوته ورځ جوړه کړی،نوهرکله چه تاسودَدې اقرارکوئی چه بل څوك واکدارنیشته دې نوبیاولې شرك کوئی.﴿ اَفَلَا تَسۡمَعُوۡنَ ﴾دَدې سماع نه،سماع نافع اوسماع قبول مراده ده.

| |
|---|
| قُلۡ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيۡكُمُ النَّهَارَ سَرۡمَدًا اِلٰى يَوۡمِ الۡقِيٰمَةِ |
| نه اووایه خبرراکړئ ماته کچرته اوګرځوی اللهﷻپه تاسوورځ همیشه تروږمې دَقیامته. |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللهِ يَأْتِيْكُمْ بِلَيْلٍ تَسْكُنُوْنَ فِيْهِ ؕ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ۞ | | | | | | | | | |
| نوڅوک دي اله غيردَالله جَلّ جَلَالُهٗ چه راولي تاسوته شپه چه ارام اوکړئ په هغې کښ.آياتاسونه وينئ | | | | | | | | | |
| وَمِنْ رَّحْمَتِهٖ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ | | | | | | | | | |
| اودَمهربانئ دَالله جَلّ جَلَالُهٗ داده چه ګرځولی ئی ده ستاسولپاره شپه تياره اوورځ رڼاچې ارام اوکړئ په هغې کښ | | | | | | | | | |
| وَلِتَبْتَغُوْا | مِنْ | فَضْلِهٖ | وَلَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُوْنَ ۞ | | | | | |
| اوتالاش | کړئ | دَ رزق | دَالله جَلّ جَلَالُهٗ | اوچه | تاسوشکراداکړئ | | | | |

﴿ قُلْ اَرَءَيْتُمْ ﴾داڅلورم دليل عقلي دي اوداهم على سبيل الاعتراف من الخصم دي يعنی کچري الله جَلّ جَلَالُهٗ ترقيامته پورې ورځ اوګده کړي نوبل داسې څوک واکداري شته دي چه ستاسودَارام دَپاره شپه راولي؟نوهرکله چه تاسوهم دَدې اعتراف کوئی نوبياولې شرک کوئی

فائده نمبر(۱)هرکله چه شپه مقدمه ده په ورځ باندې طبعًانودَدې وجې نه ذکراُهم مقدمه شوه اوکه څوک اشکال اوکړی چه دشپې دَذکرسره سکون اوارام منفعت ذکرشو،نودَحسن تقابل تقاضاداوه چه دَورځې سره په هغې کښ دَتصرفات فی المعاش منافع ذکرشوې وې لکه څرنګه په نوروآياتونوکښ دی،حالانکه دلته صرف ضياء منفعت ذکرشو؟جواب داکړې شويدې چه منفعت ضياء متضمن اومستلزم دې منافع کثيرولره ځکه چه ډيرکارونه داسې دی چه په شپه کښ نه کيږي اوپه ورځ کښ په سهولت سره کيږی نودَدې وجې نه ذکردَ ضياء اوشواوکه بياڅوک اشکال اوکړی چه دَحسن تقابل دَرعايت دَپاره به دَشپې سره منفعت دَ ظلام اودَ مظلم ذکرشوې وې؟نوجواب داکړې شويدې چه ظلمت کښ هغه فوائد او منافع نيشته دې کومې چه په ضياء کښ دی نودَدې وجې نه تقابلاًدَدې ذکراونشو.اودويم جواب دادې چه اجل اولوئی غرض دَشپې نه هغه سکون اوارام کول دی،نودَدې وجې نه دَشپې په منافعوکښ صرف داذکرشو،په خلاف دَورځې نه چه طلب دَمعاش دَهغې بعضِ منافع دی نوددې وجې نه دَورځ په منافعوکښ يوجامعې لفظ ذکرشوچه مستلزم دې ټولو منافعو او فوائدولره.

**فائده** نمبر(۲)په اول ايت کښې استداومت اوداوګدوالي دشپې ذکروؤاودشپې اوريدل کيږي اوليدل کتل کمزوري وي نودې وجې نه دهغې سره ذکردَ﴿ أَفَلَا تَسْمَعُونَ ﴾اوشواوپه دويم کښې دَورځ دَدوام ذکردې،اوپه ورځ کښې ليدل،کتل زيات کيږي داوريدلونه نودې وجې نه دهغې سره دَ﴿أَفَلَا تُبْصِرُونَ﴾ذکراوشواوصاحب دَروح المعاني فرمائي چه په تقديم دَ﴿أَفَلَا تَسْمَعُونَ ﴾کښې اشاره ده چه نص اونقل مقدم دې په عقل اوقياس باندې.

﴿ وَمِن رَّحْمَتِهِ﴾داپنځم دليل عقلي دې يعنی الله ﷻمحض په خپل فضل وکرم سره ستاسودپاره شپه اوورځ پيداکړيدی دَشپې تاسوارام کوئی اودَورځې تاسوروزی اورزق تالاش کوئی دادَالله ﷻدَطرف نه په تاسوباندې لوئی انعامات دی،ددې انعاماتوشکراداکول په تاسوباندې ضروری دی اودَالله ﷻشکراداکول دادی چه دَهغه دَوحدانيت اقراراوکړې شی اودهغه دَحکم اطاعت اوکړې شی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيَوْمَ | يُنَادِيهِمْ | فَيَقُولُ | أَيْنَ | شُرَكَآءِيَ | الَّذِينَ | كُنتُمْ |
| اوپه هغه ورځ چه آوازاوکړی دوئ ته الله ﷻ،نوورته اوبه وائی کوم ځائ دی شريکان خماهغه چه تاسوپرې | | | | | | |
| تَزْعُمُونَ ﴿٧٤﴾ وَنَزَعْنَا | مِنْ | كُلِّ | أُمَّةٍ | شَهِيدًا | فَقُلْنَا | هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ |
| ګمان دَخدائی کولو.اوموبه راوباسودَهرامت نه ګواهی کونکې نوموبه ورته اووايو،راوړئ دليل خپل | | | | | | |
| فَعَلِمُوٓا | أَنَّ | الْحَقَّ | لِلَّهِ | وَضَلَّ | عَنْهُم | مَّا كَانُوا |
| نودوئ به پوهه شی چه حق دَ الوهيت الله ﷻلره دې اوهير به شی دَدوئ نه هغه(دروغ)چه دوئ | | | | | | |
| يَفْتَرُونَ ﴿٧٥﴾ | | | | | | |
| جوړول(چه داخدايان دی). | | | | | | |

﴿وَيَوۡمَ يُنَادِيهِمۡ﴾ داتخويف اخروى دې يعنى قيامت په ورځ به دمشركينونه به الله ﷻ تپوس اوكړى چه تاسوپه چاباندې ګمان كولوچه داكارسازدى اودالله ﷻ سره شريك دى هغه شركاءچرته دى؟ستاسوامدادولې نه كوى؟
اوتكراردَدې تخويف اوزجراوشودَپاره ددې چه اشعاراوتنبيه راشى پدې چه شرك دَالله ﷻ دغضب لويه ذريعه ده لكه څرنګه توحيددَالله ﷻ دَرضالويه ذريعه ده.اويادا واجه ده چه په اول زجركښ اشاره وه فساددَرائ دَدوئى ته اوپدې كښ دَدې خبرې ذكردې چه دَدوئى شرك كول بلاسنده اوبلادليله دى.

﴿وَنَزَعۡنَا مِن كُلِّ أُمَّةٖ﴾ نزعنا په معنى دَ"اخرجنا"او"اظهرنا"سره دې صيغه دَماضى دَپاره دتحقق اوتيقن ده او﴿شَهِيدٗا﴾نه مرادنبي اوپيغمبردى چه دَهرامت نبى به بيان اوګواهى وركوى چه ماخپل امت ته تبليغ كړې وو،اوامت چه نبى ته كوم جواب وركړې وى نبى به دَهغې متعلق ګواهى وركوى اودغه شان ذكرپه سورة النسآء ايت نمبر(۴۱)دې.

﴿فَقُلۡنَا هَاتُواْ﴾يعنى مشركينوته به توبيخاً الله ﷻ اوفرمائى چه كوم تاسوپه دنياكښ شرك كولو،اودَالله ﷻ نه سيوابل چاته موالوهيت اوصفت دكارسازئى ثابته ولونواوس په هغې باندې دليل پيش كړئى.﴿فَعَلِمُوٓاْ أَنَّ ٱلۡحَقَّ﴾يعنى دوئى ته به عين اليقين حاصل شى چه كوم دلائل الله تعالى پيش كول هغه حق وؤاو دَالوهيت اوعبادت مستحق ذات صرف اوصرف الله ﷻ دې،خوك ورسره هم شريك نيشته دې نوځكه به دوئى خاموش پاتې شى اوخپل باطل عقيدې باندې به څه دليل نشى پيش كولې.﴿وَضَلَّ عَنۡهُم﴾تولې من ګهرت شركيه قصې چه دَخپل ځان نه نې جوړې كړيدى هغه تولې به ورنه هيرې شى،اوتولې ارزوګانې به نې خاورو سره خاورې شى.

| |
|---|
| إِنَّ قَٰرُونَ كَانَ مِن قَوۡمِ مُوسَىٰ فَبَغَىٰ عَلَيۡهِمۡۖ وَءَاتَيۡنَٰهُ مِنَ ٱلۡكُنُوزِ |
| بيشكه قارون وؤدَقوم دَموسى عليه السلام نه نوتكبرئى اوكړوپه بنى اسرائيلو.اووركړې وې مونږده ته دَخزانونه |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَآ | إِنَّ | مَفَاتِحَهُ | لَتَنُوٓأُ | بِالْعُصْبَةِ | أُولِي الْقُوَّةِ | إِذْ | قَالَ | لَهُ | قَوْمُهُ |
| دومره | چه | چابیانی دهغې | درنی وې | په داسی ډلی | چه قوت والابه وه | کله چه | اوونیل | ده ته | قوم دده |
| لَا | تَفْرَحْ | إِنَّ | اللَّهَ | لَا | يُحِبُّ | الْفَرِحِينَ ﴿٧٦﴾ | | | |
| مکوه | تکبر | بیشکه | الله | نه | خوښه | وی | تکبرکونکی. | | |

﴿إِنَّ قَـٰرُونَ كَانَ مِن قَوْمِ مُوسَىٰ﴾ داد تخویف دنیوي نمونه ده اومتعلق دې د آیت نمبر(۲۰)﴿وَمَآ أُوتِيتُم مِّن شَيْءٍ فَمَتَـٰعُ﴾ سره اودې تعلیم ورکولې کیږي چه په دنیا باندې فخرغرورکول ندي پکار ځکه چه د الله تعالیٰ د عذاب نه یوانسان ته دهغه اودولت، دهغه نوکران خادمان هیڅ څوك اوهیڅ څیزنجات اوخلاصې نشي ورکولې، سیوا د ایمان نه د قارون واقعه د دې د پاره یوه نمونه ده چه دده رسره ډیرزیات مال دولت وو، نوکران خادمان وو، تکبر اوشرك ئې کولو د الله تعالیٰ حق ئې نه اداکولونو الله تعالیٰ د مال سره هلاك کړو، د هغه مال، نوکران هیڅ څیزئې پکاررانغلو.

**مختصرواقعه قارون**: قرآن مجیدکښې د قارون متعلق تفصیلی واقعه نده ذکرشوې قران مجیدکښې د قارون متعلق صرف دومره ذکردی، چه دې بني اسرائیلي وو، کثیرالمال ووتکبر، ظلم، اوشرك وکفرئې کولو الله تعالیٰ دې په زمکه کښې دننه ژوندې خخ کړوالبته ځنې احادیثو اوتاریخې روایاتوکښې دده متعلق تفصیل موجوددې، دهغې مستنده حصه مختصراندازکښې دلته پیش کوو، اکثرمؤرخین اومفسرین فرمائی چه قارون د موسی علیه السلام د تره ځوې وو، د موسی علیه السلام پلار عمران بن قاهت اود قارون پلاریصهربن قاهت دواړه سکه رونړه ووالبته ابن اسحاق رحمه الله فرمائی چه قارون د موسیٰ علیه السلام تره کیدلوځکه چه یصهربن قاهث د یوې زنانه سره نکاح اوکړوچه دهغې نه عمران بن یصهراوقارون بن یصهرپیداشو، نوپدې اعتبارسره قارون دموسیٰ علیه السلام سکه تره کیدلو. لیکن اول قول زیات غوره دې اوپدې جزم کړیدې ابن جریرطبری رحمه الله وغیره حضراتو.

حضرت قتادة رحمه الله فرمائی چه د حضرت موسی علیه السلام اوهارون علیه السلام نه ورستوزیات اعلم بالتورات قارون وو، ډیرخوش اوازه وواود ډیرخوش اوازنی د وجې نه په ده ته منورونیلې

کیدلو ،لیکن دې په حقیقت کښې منافق وو او مفسرینو دَده دکفر اونفاق وجه دا لیکلې ده چه دَده دَموسی علیه السلام او هارون علیه السلام سره سخت حسد کولو.

ده ته الله ﷻ ډیر زیات مال ورکړې وولکه چه الله ﷻ فرمائی چه وآتینٰه من الکنوز الخ یعنی دومره ډیر مال الله ﷻ ور کړې وو چه دَخزانو چابیانې په یو (۱) کس یا دوه (۲) دَپاره اوچتول ممکن نه وو ،بلکه دَپهلوانانو یو جماعت په دا چابیانې اوچتولې څنې روایاتو کښې دي چه دَده دَخزانو چاپیانې به په څلویښت (۴۰) یا شپیته (۶۰) خچرو باندې به بارکولې شوې ،دَدې مال دوجې نه پده کښې ډیرغروراو تکبر ووه متکبرانه لباس به ئې اچولو ،چال چلن کښې ئې لوئی وه ،دکفرسره سره په کمزوروخلکو باندې ظلم کول ،غریبانو ته دَحقارت په نظر کتل دده عادت گرځیدلې وو ،موسی علیه السلام او دَهغه دَقوم بزرگانو ده ته نصیحت او کړو چه لاتفرح انّ الله لایحبّ الفرحین یعنی پدې دنیا ډیرمه نازمه کوه الله ﷻ داسې خلك نه خوښوي اودَدې مال په ذریعې سره خپل اخرت جوړ کړه ،دَغربآؤ اوفقیرانو امداد او کړه ،الله ﷻ هیره ول دَهغه دا احکاماتو خلاف کول سخت ناشکري ده ،لهذا دَالله ﷻ دَناشکرئی نه ځان بچ کړه اوځرنگه چه هغه تاسره احسان کړیدې دغه شان ته هم دَالله ﷻ دَمخلوقاتو سره احسان اوکړه.

قارون باندې دَموسی علیه السلام دَې وعظ اونصیحت اثر اونه کړو بلکه نورزیات تکبرئې اوکړو اوموسی علیه السلام ته ئې په جواب کښې اوئیلو چه انّمآ اوتیتُه علٰی علمٍ من عندی یعنی دا مال ماته دَالله ﷻ دَطرف نه احسانًانه دې راکړې شوې بلکه استحقاقًا دې ،یعنی دا ځما حق دې چه په ما کښې ډیر کمالات دی دا مال دَهغې کمالاتو صله ده.

موسی علیه السلام مسلسل خپل وعظ اونصیحت ده ته کولو ،یوه ورځ موسی علیه السلام دَبنی اسرائیلو یو مجمعې ته وعظ اونصیحت کولو چه قارون دَخپل نوکرانو دَیو جماعت سره ډیرد نیوي شان وشوکت سره تیرشو ،اوځنې تاریخي روایاتو کښې دی چه قارون پدغه وخت کښې په یو سپین ،خچرباندې ناست وو ،په هغې باندې دَریشموزین وو ،دده سره پدغه شان وشوکت سره درې سوه (۳۰۰) زنانه او ډیرتعداد کښې سړی هم په اسونوباندې ناست وو ،اودَدې لعین مقصد دا ووچه حضرت موسی علیه السلام ته الله ﷻ دینی منصب اونبوت ورکړیدې چه دهغې دَوجې نه دَخلکو مجمعې ده ته ناستې وې نو ځماسره هم مال شته دې څه هم خلك ځان سره جمع کولې شم ،نوده دَمال په ذریعې سره موسی علیه السلام مغلوب کول غوختلو ،بني اسرائیلو چه کله

دقارون داشان وشوکت اوکتلونوختي کسان دده نه ډیرمتاثره شواوداتمنائي اوکړه چه کاش داسې دولت مونږته هم نصیب شوې وې لکه څرنګه چه قارون سره دې.نواهل علمو دوئی ته نصیحت اوکړوچه ددې دنیوی عیش وعشرت تمنااوخواهش مه کوئی بهرحال چه کله دقارون تکبراوغروردحدنه زیات شونوالله ﷻ په عذاب کښ مبتلاکړواوپه زمکه کښ ئې ژوندې خخ کړو.

اومفسرینودقارون دهلاکت په باره کښ دهغه دتکبریوه واقعه ذکرکړیده چه کله موسي علیه السلام ته دزکوٰة حکم نازل شونوموسی علیه السلام بنی اسرائیلوته اوخصوصاًقارون ته دزکاة اداکولوحکم اوکړوقارون په ظاهرکښ راضی شولیکن باطنًادالله ﷻ حکم منلوته تیارنه وو،نوددې وجې نه قارون خلك اوخاص طورباندې سرمایه داران ئې راجمع کړل اوهغوئی ته ئې اوئیلوچه موسی علیه السلام تراوسه پورې مونږتاسوته مختلف حکمونه کولواومونږ تاسومنلو،اوس هغه زمونږستاسومالونه قبضه کول غواړي نوستاسوڅه رائې ده؟ ټولوورته اوئیل چه ته زمونږمشرئې ستاچه څه حکم وی مونږ په هغه منوقارون اوئیل چه تاسویوه بدکاره زنانه ماته رااوغواړئ،هغه زنانه راوبستلې شوه،قارون هغې ته پیسې ورکړې چه ته به موسی علیه السلام باندې سرعام دزناالزام اولګوه اوهغه زنانه راضی شوه.بیائې بنی اسرائیل راجمع کړل اوموسی علیه السلام ته ئې دعوت ورکړوچه دبنی اسرائیل دامشران وائی چه مونږته وعظ اونصیحت اوکړه،موسی علیه السلام وعظ اونصیحت شروع کړوچه په هغې کښ دزنادحدپه باره کښ هم حکم ووچه زانی محصن به رجم کولې شي نوقارون موسی علیه السلام ته اوئیل چه داحکم دعاموخلکو دپاره دې یاستادپاره هم دې موسی علیه السلام ورته اوفرمائیلوچه دهرچادپاره دې،قارون اوئیلوچه ددې چه ددې خلکوستاپه باره کښ شکایت دې چه (العیاذبالله) تاهم زنا کړیده،اوزنانه ئې رااوغوختله،موسی علیه السلام زنانه ته قسم ورکړوچه صحیح صحیح رشتیاخبره اوکړه. زنانه ورته اوئیل چه صحیح خبره داده چه قارون ماته پیسې راکړیدي چه ته په موسی علیه السلام باندې تهمت اولګوه.

موسی علیه السلام په سجده کښ پریوتلواوقارون ته ئې بددعااوکړه الله ﷻ ورته اوفرمائیلوچه ته زمکې ته څه حکم کوې هغه به منې،موسی علیه السلام زمکې ته حکم اوکړوچه قارون اونیسه،زمکې قارون اونیولواوخخول ئې شروع کړو،قارون موسی علیه السلام ته فریاداوکړوچه آئنده دپاره به څه نه کوم خواوس مې معاف کړه موسی علیه السلام زمکې ته مسلسل حکم کولوچه

خخ ئې کړه،قارون موسیٰ علیہ السلام ته اوئیل چه ته څماماال قبضه کول غواړې خکه ماسره داکارکوې،موسیٰ علیہ السلام زمکې ته حکم اوکړوچه دده ټول مال راجمع کړه اوده په سرنې کیده،نوالله تعالیٰ قارون په زمکه کښ ژوندې خخ کړواومال ئې په سرباندې دې اوترقیامته پورې به دغه شان په زمکه کښ دننه خخیږي.

په حدیث کښ دی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمائی چه:قال رسول الله ﷺ بینما رجل یجرازاره اذخسف به فهویتجلجل فی الارض الی یوم القیٰمة(بخاري)اوډقارون دخسف واقعه کله شوې وه؟ نوپدې باندې داکثرمؤرخینواتفاق دې چه داورستودغرق دفرعون نه،شوې وه خواختلاف پدیکښ دې چه په وادی تیه کښ شوې وه که دهغې نه مخکښ واقع شوې وه،نوبعضِ مؤرخین وائي چه داواقعه په وادي تیه کښ راغلې وه لیکن صاحب د"المختصرفی اخبارالبشر"دصنیع نه داسې معلومیږي چه داواقعه دوادی تیه نه وړاندې شوې وه(والله اعلم).

﴿إِنَّ قَٰرُونَ﴾لفظ"قارون"غیرمنصرف دې دوجې دعجمه اوعلمیت نه﴿كَانَ مِن قَوْمِ مُوسَىٰ﴾ نودغوره اومشهورقول مطابق قارون دموسیٰ علیہ السلام دتره څوئی وو﴿فَبَغَىٰ عَلَيْهِمْ﴾ دالفظ شامل دې،کفر،نفاق،ظلم تکبراوحسدټولوته﴿وَءَاتَيْنَٰهُ مِنَ ٱلْكُنُوزِ﴾داسبب دبغی دې او"کنوز"جمع د"کنز"ده،اموال مدفونه(خزانې)ته وئیلې کیږی اوشرعاًکله کله دَدې اطلاق په هغه جمع کړې شوی مال باندې هم کیږی چه زکاة ترینه نه اداءکیږی،نوچونکه قارون هم دخپل مال نه زکاة نه اداکولو،ددې وجې نه دده په مال باندې اطلاق دکنزاوشواوبعضِ حضرات فرمائی چه"کنوز"نه مرادخپله حقیقی معنٰی ده اودقارون دپاره دخزانونه علاوه ښکاره مال هم ډیرزیات وو.

﴿مَآ إِنَّ مَفَاتِحَهُۥ﴾"ما"موصوله ده او"انّ"سره دخپل معمولاتوصله د"ما"دپاره ده اوپه مذهب دبصریانوباندې صله مصدره کیدې شی په "انّ"سره اګرچه دکوفیانوپه مسلك باندې داجائز نده او"مفاتح"جمع دمفتاح ده چابیانو(کنجیانو)ته وئیلې کیږی،دلته ترینه اکثرحضرات فرمائی چه مجازی معنٰی مراده ده یعنی خزانې نوذکرد"مفاتح"اومرادترینه"خزائن"دی اویاپکښ مجازفی الحذف دې ای مفاتح صنادیقه(روح المعانی).

اوبعض حضرات فرمائي چه خپله حقيقي معنى يعنى كنجيانې تنه مراددى،په بعض اسرائيلى رواياتوكښې دى چه دقارون دخزانوكنجيانې به په درې سوه(۳۰۰)خچروباندې به اوړلې كيدلې،ليكن داقول ضعيف دې.

﴿ لَتَنُوٓأُ بِٱلۡعُصۡبَةِ ﴾ تنوء د"ناء ينوء"نه معنى ئې ده درنيدل يعنى يوڅيزاوبوج ډيردروندوى چه دهغې دوجې نه يوكس تيټ روان وى او"عصبة"امام راغب فرمائي چه ددې اطلاق په جماعت كثيره باندې كيږى په غيردتعين دعددخاص نه،اونورائمه لغت فرمائي چه ددې اطلاق په يومعين عددباندې كيږى اوهغه معين عددڅومره دې؟ نوپديكښې اختلاف دې،بعض حضرات فرمائي چه ددې اطلاق درې(۳)نه ترلسو(۱۰)پورې عددباندې كيږى بعض فرمائي چه دپنځلس(۱۵)نه ترڅلويښتوپورې باندې كيږى،بعض فرمائي چه ترلسو(۱۰)نه، ترڅلويښتوپورې اوبعض فرمائي چه ترأويا(۷۰)پورې عددباندې ددې اطلاق كيږى،بهرحال دلته ترينه مراددقارون دمال كثرت اظهاردې،او﴿أُوْلِي ٱلۡقُوَّةِ﴾نه مراددادې چه دده دخزانويادهغې دچابيانودپاره به چه كوم جماعت مختص وونوهغه به هم ديوعاموخلكو جماعت نه وو،بلكه صاحب قوة(پهلوانانو)جماعت به وو،دغه كنجيانې ياخزانې اوچتول دعام سړى كارنه وو،اودابنځه الفاظ كنوز،مفاتح،تنوء،عصبه اواولى القوة دده دمال كثرت ظاهرولودپاره دى،يعنى پديكښې اشاره ده چه دده مال ډيرزيات اودشمارنه بهروو.

﴿لَا تَفۡرَحۡ﴾ فرح خوشحالى ته وئيلې كيږى چه يوانسان ته دلذت عاجله په سبب حاصله شي،اولذت عاجله دوجې نه فرح اوخوشحالى راتلل يوفطرى امردې،نولهذامقصودنفى دنفس فرح اودخوشحالئ نه ده بلكه دهغې خوشحالئ اودفرح نفى مقصودده چه هغه سبب دشرك،تكبراودسركشئ گرځى،اوقاضى بيضاوى رحمه الله فرمائي چه"والفرح بالدنيامذموم مطلقاً"ليكن غالباً چه دقاضى رحمه الله مقصدبه ددينه اظهاردفرح وى نه نفس فرح،ځكه چه اظهاردفرح علامهٔ ده دمحبت ددنيااوذريعه دغفلت ده دزوال دنيانه چه داغفلت سبب گرځى جرائت على المعاصى دپاره،اودنسيان من لقاء الله عزوجل دپاره(اللهم حب الينالقائك اللهم عافنا).

وَابْتَغِ فِيمَآ اٰتٰىكَ اللّٰهُ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ وَلَا تَنْسَ نَصِيْبَكَ مِنَ الدُّنْيَا

اوطلب كړه په هغه دولت چې دركړيدې تاته الله ﷻ كوردآخرت. اومه هيروه حصه خپله ددنيانه

وَاَحْسِنْ كَمَآ اَحْسَنَ اللّٰهُ اِلَيْكَ وَلَا تَبْغِ الْفَسَادَ فِي الْاَرْضِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

اواحسان كوه (خلقوسره) لكه چه احسان كړيدې الله ﷻ تاسره اومه طلب كوه فسادپه زمكه كښې بې شكه الله ﷻ

لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۷۷﴾ قَالَ اِنَّمَآ اُوْتِيْتُهٗ عَلٰى عِلْمٍ عِنْدِيْ ؕ

نه خوښه وى فسادكونكى.قارون اووئيل چه بيشكه ماته راكړې شويدې دامال پوجه دعلم چه ماسره دې.

اَوَلَمْ يَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَهْلَكَ مِنْ قَبْلِهٖ مِنَ الْقُرُوْنِ مَنْ هُوَ اَشَدُّ

آياده ته نه وه پته چه بيشكه الله ﷻ يقيناهلاک كړيدى مخكښې دده نه داسې ډلې چه هغوئ زيات سخت وو

مِنْهُ قُوَّةً وَّاَكْثَرُ جَمْعًا ؕ وَلَا يُسْئَلُ عَنْ ذُنُوْبِهِمُ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۷۸﴾

ده نه په قوت كښې اوزيات جمع كونكى وؤدمال.اوسوال به نشى كولې دمجرمانونه په باره دګناهونودهغوئ كښې.

﴿ وَٱبْتَغِ فِيمَآ ءَاتَىٰكَ ٱللَّهُ ﴾دايوه جامعه جمله ده چه پدې سره اشاره ده ټول جوانبو دتوحيد،عقيده اخرت.اوامتثال بالطاعات ته يعنى قوم ده ته اوئيلوچه كوم مال دولت الله ﷻ تاته دركړيدې دهغې شكريه اداء كړه،اودنيوى نعمت شكريه اداكول داوى چه نعمت دالله ﷻ په اطاعت كښې صرف كړې شى،دغرباء فقراؤامدادپه هغې سره اوكړې شى دتكبر،غرور،ظلم،اوكفروشرك نه ځان بچ كړې شى اوپه ﴿ٱلدَّارَ ٱلْأَخِرَةَ﴾كښې اشاره ده عقيدى دآخرت ته﴿وَلَا تَنسَ نَصِيبَكَ﴾برخه دانسان ددنيانه،داده چه نيك عمل دآخرت دپاره اوكړى،ژوند دالله ﷻ مرضى مطابق تير كړى،خپل مال كښې دالله ﷻ حقوق اداكړى،خپل صحت،قوت اوځوانى دالله ﷻ دين دپاره خرچ كړى لكه په حديث كښې دى اغتنم خمسا قبل خمس.....الخ.

﴿وَأَحْسِن كَمَآ أَحْسَنَ ٱللَّهُ إِلَيْكَ﴾ كاف كچرې دپاره دتشبيه شى نو دا تشبيه په مطلق احسان كښې ده او تشبيه په جميع احوالو داحسان كښې نه ده مراد څكه چه دالله ﷻ د احساناتو نظير او مثل نيشته دې او يا كاف دپاره دتعليل دې يعنى الله ﷻ تاسره احسان كړيدې ددې وجې نه ته هم دالله ﷻ د مخلوقاتو سره احسان كوه اى لاجل احسانه سبحانه اليك(روح)﴿وَلَا تَبْغِ ٱلْفَسَادَ﴾ مراد ترينه ظلم، كفر او شرك دې.

﴿قَالَ إِنَّمَآ أُوتِيتُهُۥ﴾ قارون ددې نصيحت په جواب كښې ډير متكبرانه جواب وركړو او ډير په سركشئ سره ئې ددوئى نصيحت رد كړو چه څماسره كوم مال او دولت دې دا دالله ﷻ احسان نه دې بلكه څما استحقاق دې او ما په خپلو كمالاتو سره گټلې دې ﴿عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِيٓ﴾ جار مجرور يا متعلق دى د كائن مقدر سره او دا ظرف مستقر په موضع د حال كښې دې د ضمير مرفوع د اوتيته نه او مقصود پيدې سره اشاره ده علت داستحقاق او ايتاء د مال ته: اى انما اوتيته كائنا على علم(روح) او يا ظرف لغو دې او متعلق دې د ﴿أُوتِيتُهُۥ﴾ سره او على په معنى د لام اجليه سره دې اى اوتيته لاجل علم(روح) يعنى دا مال ماته څما د علم په وجه راكړې شوې دې. او علم نه مراد بعض فرمائى چه علم د تورات مراد دې بعض فرمائى چه علم د كيميا مراد دې چه دده سره دكيمياعلم وو ليكن غوره توجيه داده چه علم د تجارت او طريقې دكسب مراد دى.

﴿أَوَلَمْ يَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ﴾ دا تنبيه ده په خطاء د قارون باندې او په يعلم كښې د علم نه مراد علم د تورات دې، يعنى دې خو د تورات تلاوت كوى نو آيا تورات كښې ده ته ددې خبر علم نه دې شوې چه الله ﷻ ډير طاقتور خلك دده نه مخكښې هلاك كړيدى او يا د علم نه مراد علم بالمشاهده دې، چه هغه هلاكت د فرعون وو. نو د آيت مطلب دادې چه آيا ده په خپلو سترگو نه دى كتلى چه الله ﷻ فرعون چه هغه دده نه ډير طاقتور وو څرنگه هلاك كړو او قوة عام دې حسى وى او كه معنوى، حسى نه مراد افرادي قوت دې او معنوى نه مراد اسباب او وسائل دى. نو ددې رد خلاصه داده چه الله ﷻ چاچاته مال، دولت وركوى دا د هغه كس استحقاق نه وى كچرې استحقاق وې نو بيا به الله ﷻ د هغه مال هلاك كولو لې؟ او دده نه به ئې مال واپس ولې

اغستلو؟نومعلومه شوه چه الله ﷻ چاته مال ورکړی نوپدې مال کښې دصاحب مال ازمائش او امتحان اغستل مقصود دوی.

﴿ وَلَا يُسْـَٔلُ عَن ذُنُوبِهِمُ ﴾دقیامت په ورځ دمجرمانونه تپوس کیدل یانه کیدلو متعلق تفصیل په سورة الحجرایت نمبر(۹۲)کښې تیرشویدی،چه دقیامت په ورځ باندې به پوښتنه او سوال دهرچانه کیږی،اوپدې ایت کښې اوپه سورة الرحمان کښې چه کوم نفی دپوښتنې نه راغلیده نوددینه(۱)مرادنفی دسوال دپاره داستعلام ده اوتوبیخ اوملامتیادپاره به پوښتنه کیږی،اویا(۲)داچه دنفس گناه په باره کښې به پوښتنه اوسوال نه کیږی لکه چه دلته اوپه سورة الرحمان کښې دی اودگناه دسبب تپوس به کیږی چه داگناه دې ولې کوو؟لکه چه دهغې ذکرپه سورة الحجرکښې دې اویا(۳)داچه موقف دحشرډیردی اوورځ ډیره اوگده ده نوپه ځینې مواقفوکښې به تپوس کیږی اوپه ځینوکښې به نه کیږی.

| |
|---|
| فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ فِى زِينَتِهِۦ ۖ قَالَ ٱلَّذِينَ يُرِيدُونَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا يَٰلَيْتَ |
| نوراااوتلوقارون په قوم خپل په زینت خپل سره، نواووئیلوهغه خلقو چه غوښتلوئی ژوندددنیاهائې ارمان |
| لَنَا مِثْلَ مَآ أُوتِىَ قَٰرُونُ إِنَّهُۥ لَذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ﴿٧٩﴾ |
| چه وې زمونږ سره دومره مال چه ورکړې شویدې قارون ته،بیشکه دې خاونددحصې لوئی دې |
| وَقَالَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ وَيْلَكُمْ ثَوَابُ ٱللَّهِ خَيْرٌ لِّمَنْ ءَامَنَ |
| اواووئیل هغوخلقوچه ورکړې شوې وُهغوئ ته علم،غرق شئ ثواب دالله ﷻ غوره دې دهغه چالپاره چه ایمان ئې راوړې وی |
| وَعَمِلَ صَٰلِحًا ۚ وَلَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ٱلصَّٰبِرُونَ ﴿٨٠﴾ فَخَسَفْنَا بِهِۦ وَبِدَارِهِ |
| اوعمل ئې کړې وی نیک او نه ورکولې کیږی توفیق ددې مګرصبرکونکوته نوژوندې ځغ کړومونږقارون اوکورددهٔیعنی خزانو سره |
| ٱلْأَرْضَ فَمَا كَانَ لَهُۥ مِن فِئَةٍ يَنصُرُونَهُۥ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُنتَصِرِينَ ﴿٨١﴾ |
| په زمکه کښې نونه وه ده لره هیڅ ډله چه مددئې کړې وې دده ماسوی دالله ﷻ نه اونه وُددې دبدل اخستونکونه |

﴿ فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ ﴾پدې آیاتونو کښې دقارون دعملي تکبرذکردې،لکه څرنګه تیرآیت کښې دهغه دمتکبرانه خبروذکروو.یعنې یوه ورځ موسی علیه السلام خپل قوم ته وعظ کولونوقارون ډیرپه دنیوی شان وشوکت سره تیرشو،قیمتي لباس،قیمتي سواری اودنوکرانو،خادمانو اوډیرسازوسامان سره نمودارشو﴿قَالَ ٱلَّذِينَ ﴾ددینه مرادکمزوری مسلمانان دي،یعنې کمزوروروسلمانانوچه کله قارون پدې حالت کښې اولیدلونوتمنائې اوکړه چه کاش چه مونږسره هم دومره مال،دولت وې لکه څرنګه چه قارون سره دې،څکه دې خوډیرښه قسمت اولوئي برخې والادې اوداتمنادذوئی دحرص په بنیادوه،درضاعلی الکفریادترجیح المال علی الایمان په بنیادباندې نه وه،نوددې وجې کفرنه لازمیږی اوکومه تمناچه درضاعلی الکفریاترجیح الدنیاعلی الایمان په بنیادوی هغه مستلزمه ده کفرلره.لکه ډیرخلك وائي چه آخرت سره او ایمان سره به بیاګوروخوچه پیسې میلاؤشی داکفریه کلمات دي.

﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ ﴾ ددنیاپرستودا خبرې چه کله اهل علموواوریدلې نوهغوئي ته ئې زجراواوئیلوچه اې بیوقوفو!تاسوددنیاتمناکوئی حالانکه دایمان اودعمل صالح اجروثواب ډیرغوره دې،اودنیااوددې داسبابوالله تعالی سره هیڅ اعتبارنیشته دې،نودثواب الله نه مرادهغه اجراونعمتونه دي چه الله تعالی دیومؤمن سره دهغې وعده کړیده.

﴿ وَلَا يُلَقَّىٰهَآ ﴾تقلیه معنی تعلیم او توفیق ده،یا القا اوالهام ده،اوضمیرمنصوب راجع دې داهل علمومذکورې مقولې ته چې هغه ویلکم ثواب...ده اوضمیر دمؤنث ورته دالکلمة او المقالة په اعتبار سره راجع شوېدې،یعنې دداسې خبرې توفیق صبرکونکوله ورکولې کیږي او هغوئ ته ددې الهام او القاء کیږي.

﴿ فَخَسَفْنَا بِهِۦ ﴾داذکردعذاب دې چه دتکبراولوئی کولودوجې نه الله تعالی قارون ته داسزاورکړه چه په زمکه کښې ئې خخ کړو﴿وَبِدَارِهِ ٱلْأَرْضَ﴾د"دار"نه مرادټولې خزانې اواسباب دي﴿فَمَا كَانَ لَهُۥ مِن فِئَةٍ ﴾ یعنې دقارون سره یولوئی جماعت دخادمانواونکرانووچه قارون په هغوئی باندې ډیرنازاوفخرکولوخوچه کله دالله تعالی عذاب راغې نوبیاورسره هیڅ .

مدد اونکړې شو ﴿وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُنتَصِرِينَ﴾ دا په جواب د ﴿عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِىٓ﴾ کښې دې يعنې دعذاب نه دبچاؤ د پاره ده ته خپله هنرمندي او کمالاتو هم څه کار اونه کړو.

| |
|---|
| وَأَصْبَحَ الَّذِينَ تَمَنَّوْا مَكَانَهُ بِالْأَمْسِ يَقُولُونَ وَيْكَأَنَّ اللَّهَ يَبْسُطُ |
| او اوګرځيدل هغه خلق چه تمنائي کوله مرتبې دقارون. پرون وئيل ئې تعجب دې بشکه چه الله ﷻ فراخه وي |
| الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَيَقْدِرُ ۖ لَوْلَا أَنْ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا |
| رزق چانه ئې چه خوښه شي د بندګانو خپلو نه او تنګه وي رزق. کچرته احسان نه وې کړي الله ﷻ په مونږ باندې د ايمان |
| لَخَسَفَ بِنَا ۖ وَيْكَأَنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ ﴿٨٢﴾ تِلْكَ الدَّارُ الْآخِرَةُ نَجْعَلُهَا |
| نوزونه دې به ئې ښخ کړې وو مونږ. تعجب دې چه بيشکه نه کامياببږي کافران. دا کور د آخرة چه دې ګرځوو مونږ دا |
| لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا ۚ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ ﴿٨٣﴾ |
| لپاره دهغو چه اراده نه لري دلوئي په زمکه کښې او نه دفساد، او ښه انجام لپاره د پرهيزګارانو دې |

﴿وَأَصْبَحَ ٱلَّذِينَ تَمَنَّوْا﴾ پدې آيت کښې د کمزورو مسلمانانو دقارون دحالت نه دعبرت اخستلو ذکر دې، او "مکان" نه مراد منزلت او مرتبه ده او "الامس" نه مراد خپله حقيقي معنى نه ده مراد، بلکه مجاز متعارف ترينه مراد دې چه اطلاق دَدې په عرف کښې په ماضي قريب باندې کيږي نو مطلب دا دې چه کوم خلکو دَده دمال او دولت پشان ځان دپاره هم تمنا کوله نو چه کله دقارون انجام او کتلو نو په خپلو خبرو باندې پښيمانه شو او دائي اوئيلو چه ﴿وَيْكَأَنَّ ٱللَّهَ يَبْسُطُ﴾ يعنې د رزق فراختيا او تنګستيا د الله ﷻ په اختيار کښې ده او پديکښې د الله ﷻ خپل حکمتونه دي چه څوک مالداره جوړ کړي او څوک غريب او محض مالداري سبب د کرامت او قربت عند الله نه دې، او لفظ "وي" په نيز د خليل او سيبويه اسم فعل دې معنى ئې ده "اعجب" يعنې څه عجيب ده او خليل دا هم وائي چه عرب لفظ "وي" په موقعه دندامت او پښيمانتيا کښې هم ذکر کوي. لکه څرنګه زمونږ په معاشره کښې چه کله څوک ډير تعجب کوي نو هم "وي" لفظ وائي او چه پښيمانه شي نو بيا هم "وي" وائي، او "کأن" اګرچه دتشبيه دپاره دی خو دلته دتشبيه دمعنى نه عاري

اوخالي دي اود تحقيق د پاره دې «بحر»اوكسائي وغيره حضرات فرمائي چه ويك په اصل كښې ويلك دې چه كلمه د تحزن اوتحسيرده.نو پدې احتمال كاف په موضع د جركښې مضاف اليه دې اود حضرت ابن عباس رضي الله عنه اوابو عبيده فرمائي چه ويكان په معنى د الم تر او الم تعلم سره دي«بحر»

﴿لَوْلَآ أَن مَّنَّ ٱللَّهُ عَلَيْنَا﴾ من نه مراد احسان د توفيق د ايمان دې اواتباع د موسى عليه السلام ده اوحفاظت د هغه اخلاق رذيله نه دې كوم چه په قارون كښې وويعنى كچرې الله جل جلاله په مونږباندې احسان نه وې كړې اومونږ ايمان نه وې راوړې اود موسى عليه السلام اتباع مونږ نه وې اختيار كړې اود قارون پشان سركشى مونږ اختيار كړې وې نونن به زمونږ هم هغه انجام ووكوم چه د قارون دې يعنى په زمكه كښې به خښ كړې شوى وو. ﴿وَيْكَأَنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلْكَٰفِرُونَ﴾ غوره قول دادې چه داهم د هغوئى كلام دې اود ماقبل كلام د تاكيد د پاره دې اوبعض فرمائي چه دادالله جل جلاله كلام دې اود دوئى د خبرې تصديق ورسره مقصوددې

﴿تِلْكَ ٱلدَّارُ ٱلْأٓخِرَةُ﴾ داپه اخيركښې تفريعات په واقعې دموسى عليه السلام باندې او بشارتونه ذكركيږى يعنى د اخرت راحت اوسكون هغه خلكوته ميلاويږى چه تكبراوسركشى نه كوى اوتقوىٰ اختياره وى.كچرې په لوئى اوتكبراوفسادسره ميلاويدلې نوفرعون اوقارون ته به ميلاؤشوې وه نو تلك مبتداده اوتفخيم شان اوتعظيم د پاره راوړلې شويده او ﴿ٱلدَّارُ ٱلْأٓخِرَةُ﴾ صفت د مبتداد پاره دې اوتوصيف دمبتداپه اسم جامداومشتقى دواړوسره كيږى «عندالجمهور»اوخبرئې داورستوجمله ﴿نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ﴾ ده.اودابه اخيركښې شپږهغه امورهم ذكركيږى چه د نبى پاك ﷺ اود موسى عليه السلام د حالاتومماثلت ترينه ظاهريږى.داپه هغې كښې امراول دې.چه موسى عليه السلام په مقابله كښې سركش.ظالمان اومتكبرخلك وونو الله جل جلاله هغوئى هلاك كړل دغه شان د نبى پاك ﷺ په مقابله كښې هم سركش ظالمان اومتكبرخلك دى دوئى به هم الله جل جلاله هلاك كړى

﴿وَٱلْعَٰقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ﴾ يعنى حسن اوانجام د متقيانو د پاره خاص دې.يعنى هرهغه كس چه خپل ځان د علو.تكبراوفسادنه.بچ كوى.مصلح مؤمن وى الله جل جلاله ده ته حسن عاقبت نصيب

کوی اوحضرت تهانوی رحمه الله فرمائي چه د ﴿وَٱلۡعَٰقِبَةُ﴾ نه مراد کمال حسن عاقبت دې، نو کچرې علو او فساد حد کفر ته رسيدلې وی نو بيا خو هيڅ تردد او شك په دې کښې نيشته دې چه د کافرانجام ډير بد وی او د حسن عاقبت (چه جنت دې) د هغې نه دې محروم وی او که علو او فساد حد کفر ته نه وی رسيدلې نو بيا هم د کمال حسن عاقبت د پاره مانع دې.

**فائده**: په دې ايت کښې ﴿لَا يُرِيدُونَ عُلُوّٗا فِي ٱلۡأَرۡضِ وَلَا فَسَادٗا﴾ کښې علو مقدم کړې شوې په فساد باندې په دې کښې اشاره ده چه عموماً د متعدی ګناهونو د پاره سبب تکبر ګرځی بلکه د اکثرو ګناهونو جرړ او بنياد تکبر دې، د خليفه راشد عمر بن عبد العزيز رحمه الله په باره کښې منقول دی چه د وفات په وخت کښې د هغه په ژبه باندې دا ايت جاری وو (اللهمّ انانسئلك حسن العاقبة).

| |
|---|
| مَن جَآءَ بِٱلۡحَسَنَةِ فَلَهُۥ خَيۡرٞ مِّنۡهَاۖ وَمَن جَآءَ بِٱلسَّيِّئَةِ فَلَا يُجۡزَى |
| څوک چه راوړی نيکی نوده لره به زيات اجروی د هغی نه او څوک چه راوړی ګناه نو بدله نه ورکولې کيږی |
| ٱلَّذِينَ عَمِلُواْ ٱلسَّيِّـَٔاتِ إِلَّا مَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴿٨٤﴾ |
| هغو کسانو ته چه کړی ئی وی ګناهونه مګر د هغی عملونو چه دوئ به کولو |

﴿مَن جَآءَ بِٱلۡحَسَنَةِ﴾ په دې کښې مؤمنانو ته بشارت، او فاسقانو ته، کافرانو ته تخويف ذکر کيږی، يعنی د نيك عمل بدله د اصل نيکی نه ډيره زياته ورکولې شی. او خيريت په اعتبار د ذات، وصف او قدر تولو سره مراد دې، او د بدئی په باره کښې د الله تعالی قانون دا دې چه د بد عمل بدله د عمل مطابق ورکوی. او که څوك اشکال اوکړی چه دا قانون او قاعده منقوضه ده په عذاب ابدی سره چه کافر او مشرك د پاره عذاب ابدی دې حالانکه مدت د کفر دده ابدی نه وو بلکه لږ وخت وو (۱) نو جواب بعض حضراتو داسې کړيدې چه ګناه کښې عظمت او غير عظمت په اعتبار د معصی سره دې يعنی کتلې به شی چه د کوم ذات نافرمانی کولې شې هغه څومره عظيم دې نو د هغې په اعتبار سره په ګناه کښې هم عظمت راځی، نو هر کله چه کفر او شرك د هغه ذات نافرمانی کول وو چه د هغه عظمت غير متناهی دې نو لهذا دا ګناه هم غير متناهی شونو ځکه د دې سزا به هم غير متناهی وی. البته د کفر او شرك نه کم معصيت د الله تعالی کول دا هم عظيم

معصيت دې دَهغې سزاهم غيرمتناهي کيدل پکاردي مګردَايمان په برکت سره الله ﷻ دَهغې سزاغيرمتناهي نده مقررکړې.

(۲) امام رازی رحمه الله جواب کړيدې چه چونکه دکافرنيت اوعزم داووچې کچرې ده ته ابدی ژوندميلاؤشي نوبيابه هم دې کفرکوی نوځکه الله ﷻ ده ته عذاب ابدی ورکوی (۳) بعضو جواب داسې کړيدې چه کفرکه قولی وی ياعملی مستلزم دې نقص لره په الله ﷻ کښې. اوالله ﷻ دَعيب نه پاك دې په پاکئ ازليه ابديه سره. نوهرکله چه يوکافريامشرك دَالله ﷻ کفريادَهغه سره شرك کوی نوګوياچه دې دَالله ﷻ دَصفت کماليه ازليه ابديه نفی کوی او الله ﷻ لره عيب ابديه ثابته وی نوځکه الله ﷻ ده ته تعذيب ابدی ورکوی.

(۴) داهم ممکنه ده چه دکفراوتعذيب ابدی په مينځ کښې مماثلت په اعتباردکيفيت سره وی ځکه چه دکفراوشرك نه لوئی جرم بل نيشته دې اوتعذيب ابدی نه لوئی بل تعذيب نيشته دې (۵) غوره جواب دادې چه دکفراوتعذيب ابدی په مينځ کښې مماثلت منصوصی دې الله ﷻ دکفرمماثل جزااوبدله تعذيب ابدی بيان کړيده نولهذامونږبه پرې ايمان راوړواومونږ دَدې مکلف يواګرچه دامماثلت زمونږپه عقل کښې نه راځی اوډيرجرمونه داسې دی چه دَهغې جرم اودَهغې دپاره مقرکړې شوی سزامماثلت زمونږپه عقل کښې نه راځی، لکه زنا، شرب الخمر، قذف محصن وغيره دَدې دَپاره الله ﷻ حدوداوسزاګانې مقررکړيدی خوزمونږپه عقل کښې دَدې مماثلت نه راځی.

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِیْ فَرَضَ عَلَیْكَ الْقُرْاٰنَ لَرَآدُّكَ اِلٰی مَعَادٍ ؕ قُلْ |
| بيشکه هغه الله ﷻ چه فرض نازل کړيدې په تاقرآن، خامخاواپس کونکې دې تالره ځائ دَوعدې مکې ته اووايه |
| رَّبِّیْۤ اَعْلَمُ مَنْ جَآءَ بِالْهُدٰی وَمَنْ هُوَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ﴿۸۵﴾ |
| رب ځمانه خبردې په هغه چاچه راتله ئې کړيدی په هدايت اوپه هغه چاچه هغه په ګمراهئ ښکاره کښې دې |
| وَمَا كُنْتَ تَرْجُوْۤا اَنْ یُّلْقٰۤی اِلَیْكَ الْكِتٰبُ اِلَّا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ |
| اونه وې ته چه داميدی لرلوچه نازل به شی تاته کتاب مګر مهربانې ده (په تا) دَطرفه دَرب ستانه |

فَلَا تَكُونَنَّ ظَهِيرًا لِّلْكٰفِرِينَ ﴿۸۶﴾

نو هرګز ته مه کیږه مددګار د کافرانو

﴿إِنَّ الَّذِي فَرَضَ عَلَيْكَ﴾ په دې ایت کښې دوه (۲) تفریعات دی. دا اوله تفریع ده چه متفرع ده په ایت نمبر (۷) اِنَّا رَادُّوهُ اِلَيْكِ باندې. او یاد موسی علیه السلام د مدین نه مصر ته په واپسئ باندې متفرع دې یعنی لکه څرنګه چه موسی علیه السلام د مور نه جدا کړې شوې وو او بیا الله جل جلاله خپلې مور ته واپس کړو نو دغه شان تا به الله جل جلاله خپل وطن مکې ته واپس کړی او یاد اچه موسی علیه السلام خپل وطن نه مدین ته هجرت کړې وو بیا الله جل جلاله په عزت او اکرام سره خپل وطن مصر ته واپس کړو نو دغه شان تا به هم الله جل جلاله خپل وطن ته په عزت او احترام سره واپس کړی او غوره قول دادې چه د معاد نه مراد دلته مکه معظمه ده ځکه چه د ابن عباس رضی الله عنه نه په سند صحیحه سره منقول دی چه کله نبی پاک ﷺ په غار ثور کښې درې (۳) شپې اوکړې او بیا مدینې ته اووتلو نو په هغه لاره روان شو کومه لاره چه غیر معروفه وه ځکه چه مشرکین د نبی پاک ﷺ تعاقب کولو. چه کله نبی پاک ﷺ جحفه مقام ته اورسیدلو نو نبی پاک ﷺ د مکې اصل او معروفه لاره اوکتله نو نبی پاک ﷺ ته مکه رایاده شوله نو حضرت جبرئیل علیه السلام راغې د الله جل جلاله د طرف نه ئې دا ایت راوړو او فرض یا په معنی د نزل سره دې او یا په معنی د اوجب سره دې. ای اوجب علیك تلاوته وتبلیغه والعمل بمافیه (مدارك) یعنی کوم ذات چې په تا د قرآن تبلیغ واجب کړې دې او په دې کښې اشاره ده چه د قرآن مجید تلاوت د هغې تبلیغ او د هغې په تعلیماتو باندې عمل په دشمن باندې د فتح او د نصرت الهی ذریعه ګرځی.

﴿قُل رَّبِّي أَعْلَمُ﴾ دا په ایت نمبر (۳۷) باندې تفریع ده یعنی څرنګه چه فرعون او د هغه قوم په موسی علیه السلام باندې طعن کړې وو. موسی علیه السلام د هغوئی د معاندانه طعن او کلام په جواب کښې چه کوم طرز او رویه اختیار کړې وه د هغې حکم نبی پاک ﷺ ته هم ورکولې کیږی چه ته هم علم الله جل جلاله ته اوسپاره ځکه چه دا ډیر معاندین دی

﴿وَمَا كُنتَ تَرْجُوا﴾ په دې ایت کښې هم دوه (۲) تفریعات دی یوه تفریع په ایت نمبر (۷) باندې ده یعنی لکه څرنګه چه د موسی علیه السلام مور چه کله موسی علیه السلام په صندوق کښې بند کړو او دریاب

ته نې اوغورځولو .دَهغې په وهم اوګمان کښې هم نه وه چه موسی علیه السلام به بچ شي اوده ته به منصب رسالت عطاء کړې شي.خو الله ﷻ ورسره وعده کړې وه چه وجاعلوه من المرسلین نودغه شان ستاپه خیال کښې هم نه وه چه تاته به منصب رسالت میلاویږي اودقرآن مجیدپه شان عظیم الشان کتاب به په تاباندې نازلیږي.لیکن الله ﷻ محض په خپل رحمت سره تاته دامنصب عطاء کړو اوداامرپه منزله دَعلت دې دَامرثانی﴿ لَرَآدُّكَ إِلَىٰ مَعَادٍ ﴾دَپاره ځکه چه نبی پاک ﷺ ډیرپه پې سروسامانۍ په حالت کښې دَمکې نه راوتلې ووا ومشرکین ډیرپه شان وشوکت کښې وو .نو الله ﷻ نبی پاک ﷺ ته تسلی ورکړه چه ته اګرچه دَبې سروسامانۍ په حالت کښې نې اوکافران ډیرپه طاقت کښې دی،خلاف توقع الله ﷻ به تاته طاقت درکړی ستاامداداونصرت به اوکړې اوفاتحانه اندازکښې به تامکې ته داخل کړې لکه څرنګه الله ﷻ تاته خلاف توقع نبوت اورسالت درکړو.

﴿ فَلَا تَكُونَنَّ ظَهِيرًا ﴾داپنځم امردې اوتفریع ده په ایت نمبر(۱۷)فلن اکون ظهیراً للمجرمین باندې.یعنی موسی علیه السلام وعده کړې وه چه ځه به دَمجرمانواعانت اوامداد نه کوم.نواې پیغمبره!ته هم دکفارومعاونت اوموافقت مه کوه اومقصودپدې سره دکفارو درخواستونه علی وجه الابلغ والاوکد مستردکول دی ځکه چه کفاروبه نبی ﷺ ته باربار درخواست کولوچه داخپل دین پریږده اوزمونږطریقه اختیارکړه څه چه ته غوارې مونږبه تاته هغه درکړواونبی پاک ﷺ خوهسې هم دَدوئی دادرخواست نه منلوخوبیاهم الله ﷻ دوئی دمایوسه کولودَپاره نبی ﷺ ته دامذکوره خطاب اوکړواوقانون دادې چه دَچاسره نفرت وی اودَهغه سره خبرې کول نه غوارې نوخبرې دَخپل محبوب سره اوکړې شی اوواوره ولې شي هغه بل کس ته،نودلته هم الله ﷻ ظاهراًخطاب نبی ﷺ ته اوکړوخوحقیقتًامقصودکافران دی اوهغوئی ته داوئیل دی چه داپیغمبرهرګزستاسوموافقت نه کوی(روح،بیان القرآن)

وَلَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ آيَاتِ اللَّهِ بَعْدَ إِذْ أُنزِلَتْ إِلَيْكَ وَادْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ

اوهرګزدې منع نه کړي کفارتادآیاتونودَالله ﷻ نه پس ددې نه چې نازل کړې شول تاته اورابله خلق دخپل رب عبادت طرف ته

| |
|---|
| وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿٨٧﴾ وَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ۘ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ |
| او هرګزمه کيږه ته دمشرکانونه اومه بله د الله جل جلاله سره اله بل. نشته دي لائق دعبادت بل څوک مګرالله دي. |
| كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ ۭ لَهُ الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿٨٨﴾ |
| هرڅيزفانی کيدونکي دي مګرذات د الله، ده لره حکم دي نافذدي حکم دده،اوهغه ته به واپس کولې کيږئ تاسو |

﴿وَلَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ﴾ داتشجيع ده نبی پاک ﷺ ته په دعوت باندې. چه داکفاربه تاپه مختلف دهوکوسره ددعوت اوتبليغ نه منع کوی ليکن ته ددوئی خبره اونه منې اوپه دعوت اوتبليغ کښې مداهنت اونه کړې﴿وَٱدْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ﴾دلته عبادة لفظ مقدردې يعنی وادع الی عبادة ربك ﴿وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ﴾داخطاب اګرچه ظاهرأنبی ﷺ ته دي ليکن مقصودبالخطاب امت دې، ځکه چه دنبی پاک ﷺ نه مداهنت فی التبليغ يا(نعوذبالله) کفر اوشرک کول محال دی﴿وَلَا تَدْعُ مَعَ ٱللَّهِ﴾داشپږم امردې اومتفرع دې په ايت نمبر(۷۰) باندې.

اوګوياچه داټول سورت خلاصه اودواقعاتوثمره ده يعنی ددې سورت ددلائلونه معلومه شوه چه خالق،مالك،متصرف،مختاركل اوعالم الغيب صرف د الله جل جلاله ذات دې،لهذاتاسوبل چاته کارساز،حاجت روا،مشکل کشااومتصرف حقيقی مه واېئ،اودغه شان ددې سورت دواقعاتونه معلومه شوه چه حضرت موسی عليه السلام تکاليف،مصائب وغيره برداشت کړی ووهغه صرف اوصرف ددې دعوت دپاره وو.

پدې ايت کښې شپږقسمه شرک باندې ردکړې شويدې(۱)شرک فی الدعاء(۲)شرک فی العبادت،ددې دواړوردپه﴿وَلَا تَدْعُ مَعَ ٱللَّهِ﴾کښې راغلې دې(۳)شرک فی الالوهيت (۴)شرک فی التصرف ددې دواړوردبه﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾کښې راغلې دې(۵)شرک فی الصفات دهغې ردپه ﴿كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُۥ﴾کښې دې(۶)شرک فی الحکم دهغې ردپه﴿لَهُ ٱلْحُكْمُ﴾سره راغلې،اوپه اخيرکښې اثبات دعقيدې دبعث بعدالموت ده،چه مقصودپدې سره توحيدفی

الحساب دي يعنى اخرت كښ بدله وركول،حساب،كتاب كول صرف دَالله ﷻ په قبضه اواختيار كښ دى

* كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ: دَ شئ دري(۳)اطلاقات دي يو(۱)اطلاق حقيقى دې چه هرموجود فى الخارج ته اونيلې شى كه هغه واجب وى يا ممكن،جوهروى ياعرض دويم(۲)اطلاق ئې عرفى دې چه هرممكن ته اونيلې شى،جوهروى اوكه عرض(۳)دريم اطلاق ئې خصوصى دې چه دَ شئ اطلاق صرف په اعمالو(اعراضو)باندې اوكړې شى،اودغه شان دَ هالك هم دري(۳)معانى دى يوه(۱)معنى ئې ده هلاك كيدونكې،فناءكيدونكې،دويمه(۲)معنىٰ ئې ده محتاج يعنى چه دَاصل په اعتبارسره معدوم وى اوپه خپل وجودكښ محتاجه وى واجب الوجودته اودريمه(۳)معنى ئې ده بې فائدې،غيرمقبول اوغيرمعتبراو وجه دَراجح قول مطابق اودَاكثرومفسرينوپه مسلك،مرادترينه ذات دَالله ﷻ دې اوياترينه مرادرضادَالله ﷻ ده.

دَدې جملې معانى محتمله ډيرې دى خومعانى مذهوبه(چه كوموته مفسرينوذهاب كړيدې)اوصحيحه څلور(۴)دى(۱)اوله معنى داده چه شئ په خپلې حقيقى معنى باندې حمل كړې شى چه هرموجودفى الخارج باندې دَدې اطلاق اوكړې شى كه واجب وى ياممكن اووجهه نه مرادذات دَالله ﷻ دې نومعنى به ئې داشى چه هرڅيزختميدونكې اوفناءكيدونكې دې سيوادَذات دَالله ﷻ نه،نوپدې صورت كښ استثناء متصله ده ځكه چه په ذات دَالله ﷻ باندې اطلاق دَ شئ په مذكوره معنى سره كيدې شى،نومستثنى په مستثنى منه كښ داخل ووخوپدې توجيه اعتراض واردېږى چه دَدې ايت نه معلومېږى چه هرڅه به فناكيږى كه جنت دې كه دوزخ دې ياارواح وغيره دى حالانكه پدې باندې فناءنه راځى؟نوبعضو(۱)ترينه جواب داكړيدې چه ټولوممكناتوباندې به الله ﷻ وخت دَپاره فناءراولى،اودامذكوره څيزونه به هم څه وخت دَپاره به فناءكيږى اگرچه دغه فنابه دائمى نه وى بلكه لږې مدې دَپاره به وى اوهغه مدت دَمابين دَنفختين دې چه دَدوه(۲)نفخوپه مينځ كښ وخت كښ به الله ﷻ هرڅه فناءكړى،تن تنهادَالله ﷻ ذات به باقى پاتې وى(۲)بعضوترينه داجواب كړيدې چه دلته حصرحقيقى نه دې مرادبلكه حصراضافى مراددې،اومطلب دادې چه كوم څيزونه دَفناء دپاره دى هغه به فناءكيږى ليكن داجواب ډيرضعيف دې وجه دَضعف ئې اظهره ده.

(۳) صحیح جواب ددې دپاره دادې چه ﴿ كُلُّ شَيْءٍ ﴾ کښې استغراق حقیقی دې هرڅيزته شامل دې لیکن دنورو نصوصو دوجې نه اته (۸) څیزونه ترینه مستثنی دی چه دهغې مجموعه مفسرینو په دې شعر کښې ذکر کړیده:

ثمانية حكم البقاء يعمها — من الخلق والباقون في حيز العدم

هي العرش والكرسي ونار وجنة — وعجب وارواح وكذا اللوح والقلم

یعنی دمخلوقاتو نه اته (۸) قسمه مخلوق دی چه دوئی به باقی وی اونور به ختمیږی اوفنا به پرې راځی (۱) عرش (۲) کرسئ (۳) اور دجهنم (۴) جنة اودهغې نعیم (۵) دملاهډوکې (۲) روحونه (۷) لوح (۸) قلم.

دویمه معنی داده چه ﴿ كُلُّ شَيْءٍ ﴾ نه مراد موجود فی الخارج شي او ﴿ هَالِكٌ ﴾ نه مراد محتاج شی او استثناء پدې صورت کښې هم متصله ده. نو معنی به ئې داشی چه هر موجود فی الخارج محتاج دې سیوا دالله ﷻ نه. چه هغه محتاج الیه دې. صمد اوبې نیازه ذات دې (۳) دریمه معنی داده چه د ﴿ كُلُّ شَيْءٍ ﴾ نه مراد ممکنات شی او "هالك" په معنی دمحتاج سره شی او استثناء پدې صورت کښې منقطعه ده معنی ئې داده چه هر ممکن په خپل ذات کښې محتاج دې غیرته واجب الوجود ته، سیوا دالله ﷻ د ذات نه. ځکه چه هغه واجب الوجود دې.

(۴) څلورمه معنی چه امام بخاری رحمه الله غوره کړیده هغه داده چه ﴿ كُلُّ شَيْءٍ ﴾ نه مراد اعمال شی او "باطل" په معنی دبې فائدې، غیر معتبر او غیر مقبول سره شی، او ﴿ وَجْهَهُ ﴾ نه مراد رضا دالله ﷻ شی، نو معنی به ئې داشی چه هرعمل لغو، غیر معتبر او غیر مقبول دې سیوا دهغې عمل نه چه دالله ﷻ د رضا دپاره اوکړې شی.

﴿ لَهُ الْحُكْمُ ﴾ داتوحید فی القدر والقضاء دې یعنی حکم صرف دالله ﷻ دې څه کیږی اوڅه واقع کیږی ټول دالله ﷻ تصرفات دی، څوك ورسره پدیکښې شریك نه دې. ﴿ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ داعقیده دبعث بعد الموت ده او پدیکښې اشاره ده توحید فی الحساب ته. یعنی څرنگه چه په

دنیاکښې تصرف کوونکې ذات صرف الله جل جلاله دې. څوك ورسره شريك نه دې دغه شان قيامت په ورځ به فيصله هم دَ الله جل جلاله په اختيار کښې وی مخلوقاتو ته به دخپلو اعمالو بدله ورکوی

اللهم وفقنالماتحب وترضى واجعل هذاالسعی مشکوراً.

| رکوعاتها (۷) | سورة العنکبوت مکیة | آیاتها (۶۹) |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (۲۹) وحسب النزول (۸۵)**

سورت عنکبوت مکی سورت دې،ترتیب قرآنی کښ نهه ویشتم (۲۹) نمبر او په ترتیب نزولی کښ پنځه اتیایم (۸۵) نمبر سورت دې .دَسورت الروم نه ورستو اوَ سورت المطففین نه مخکښ نازل شویدې.زمانه دَ نزول ئې دور متوسط دَ مکی دې،او بعض حضرات فرمائي چه اول یولس آیاتونه (یعنی "ولیعلمن المنافقین" پورې) مدنی دی او بقیه سورت مکی دې.

دا سورت په ۲۹ آیاتونو ،۷ رکوعاتو ،او ۱۹۸۱ کلماتو ،۴۵۹۵ حروفو باندې مشتمل دې.

**ربط اسمی**:دَماقبل سورت سره ربط اسمی دادې چه ماقبل سورت کښ تشجیع وه په واقعی د موسی ﷺ سره نو پدی سورت کښ ذکر دی چه دین دَپاره قربانی کونکو او محنت کوونکو ولا دښمنان به داسی کمزوری وی،او دا سی زر به نیست ونابود شی لکه دَ عنکبوت کور.

(۲) په سورت قصص کښ دَدی ذکر ووچه برکات ورکونکې ذات صرف الله ﷻ دې،او ددی پاره موسی ﷺ ډیر تکالیف برداشت کړې وو،الله ﷻ دهغه ټول دښمنان هلاک کړل ،پدی سورت کښ ذکر دی چه دَغیر الله نه مدد غوختل او غیر الله ته برکا ت دهنده وئیل داسی دی لکه دَعنکبوت کور چه هوا ګانو په ذریعه سره دَورانیدلونه بچ کیږی،نودغه شان غیر الله نه دَبل چا امداد کولې شي او نه خپله ځان دالله ﷻ عذاب نه بچ کوې شي.

**ربط معنوی** ربط معنوي د ماقبل سره په وجوها تو سره دې.(۱) په سورة القصص کښ دَدی ذکر وو چه د مسئله توحیددَ وجی نه ،ای پیغمبرهٔ ﷺ په تاباندې تکالیف او مصائب راځي لکه څرنګه په موسی ﷺ باندې راغلي وو ،پدی سورت کښ دَدی ذکر دې چه په اهل ایمانو باندې به هم مصائب او تکالیف راځی(جواهر)

(۲) سورت القصص کښ د فرعونیا نو دَمظالمو ذکر وو چه" ان فرعون علا في الارض الخ" نو پدی سورت کښ امت محمدیه ﷺ ته تسلی ورکولې کیږی او د صبر واستقامت تعلیم ورکولې کیږی

چه تاسو باندې به د ایمان دوجی نه ازمیښتونه او تکالیف راځی خو ستا سونه وړاندې امتونو باندې کوم تکالیف راغلی وؤ هغه ډیر سخت وؤ نو هغوئي صبر واستقامت کړې وؤ نو لهذا تاسو هم صبر واستقامت ،اختیار کړئی (روح)

(۳)دغه شان ماقبل سورت کښ تشجیع وه په واقعی دموسیٰ ﷺ سره ،پدی سور ت کښ تشجیع ورکولې کیږې په واقعی د حضرت نوح ﷺ ،ابراهیم ﷺ وغیره سره ،

دعوه سورت: ددی سورت دری دعوه دي،(۱)یوه دعوه عمومی ده چه ،اثبات توحید دې،دوه ۲ دعوه خصوصی دي.(۱)مؤمنانو باندې به از میښت راځی،(۲)منکرینو ته دالله ﷻ دَ عذاب نه نجات نشي میلاویدلې.

**اجمالي خلاصه**:دَسوت د مضامیو اجمالي خلاصه داده چه دری/۳ دعوه ذکر کیږې ،دوه ۲ خصوصې او یوه عمومي اول دوه/۲ خصوصې دعوه دی.(۱) چه مؤمنانو باندې از میښت راځی،چه د دی ذکر په آیا ت نمبر ۲ کښ دې،(۲) منکرین زمونږ دَ عذاب نه نشي بچ کیدلې چه د دی ذکر په ایت نمبر ۴ کښ دې.نهه۹ واقعات ذکر کیږی چه هغی کښ دری واقعات په اولی دعوه باندې مرتب دی او شپږ۶ واقعات په دویمی دعوه باندې مرتب دی،دسورت مینځ کښ عمومی دعوه ذکر کیږی،په هغی باندې دلائل عقلیه ،چه دوه/۲ پکښ علی سبیل الاعتراف من الخصم دی،ذکر کیږې او یو دلیل نقلي او یو دلیل وحي هم ذکر کیږی ،او څه تخویفات او بشارتونه هم ذکر کیږی.

**تفصلی خلاصه**: تفصل ئی دادې چه ایت نمبر ۲ کښ ذکر د اولی دعویې کیږې او ایت نمبر ۳ کښ حکمت د ابتلا ذکر کیږې،په آیت نمبر ۴ کښ دویمه دعوې ذکر ده او دایت نمبر ۵ نه تر ایت نمبر ۱۳ پورې د اولی دعوه سره متعلق بشارتونه تخویفات او دری قسمه ابتلاا ذکر دی،(۱)ابتلا د جانبه د نفس نه راځی نو لهذا د نفس خلاف مجاهده کوئي چه دیته تهذیب الاخلاق وئیلې شی ،ددی ذکر په آیت نمبر ۷ کښ دی(۲) ابتلا د جانبه مشرکانو والدینونه ده یعنی د کور نئي نه به ابتلا راځي او والدینو سره حسن سلوک تعلیم سره سره د توحید په باره کښ د هغوئ دخبری اطاعت نه کولو تعلیم دې چه دیته "تدبیر المنزل " نوم ور کولې شې ،چه د دی ذکر په آیت نمبر ۸ کښ دې(۳) ابتلا د جانبه د عامو مشرکانو ،چه عام مشرکان به هم تاسو ته اذیت او تکالیف درکوي،تاسوبه د هغوئي د اذیت دَوجه نه خپله نظریه نه پریدئ،دیته سیاست مدنیه وئیلې کیږی چه دَ دی ذکر په ایت نمبر ۱۲ کښ دی.

دآیت نمبر ۱۴ نه تر ۳۵ پورې درې ۳ واقعات ذکر کیږي .چه مرتب دي په اولی دعوه باندې واقعه دنوح علیه السلام ذکر کیږي په آیت نمبر ۱۵ ، ۱۴ کښې.چه نوح علیه السلام نهه نیم سوه ۹۵۰ کاله د توحید د پاره تکالیف او از میښتونه برداشت کړي وؤ.نو اې مؤمنانو په تاسو باندې به هم تکالیف راځي .د آیت نمبر ۱۶ نه ۲۷ پورې دویمه واقعه ذکر کیږي چه د حضرت ابراهم علیه السلام واقعه ده .چه دمسئله توحید د پاره حضرت ابرهیم علیه السلام اور ته هم غورځولی شوې وؤ دآیت نمبر ۲۸ نه تر ۳۵ پورې دریمه واقعه د حضرت لوط علیه السلام ذکر کیږي چه دمسئله توحید په خاطر حضرت لوط علیه السلام سخت سخت اذیتونه برداشت کړیدي.دهغه دمیلمنو بې عزتی شوې وه

د آیت نمبر ۳۶ نه تر ۴۰ پورې شپږ واقعات ذکر کیږي.چه مرتبې دي په دویمه.دعوه باندې.واقعه دشعیب علیه السلام ،دقوم عاد ،قوم ثمود ،واقعه دقارون ،دفرعون او دهامان .چه دا ټول منکرین دالله جل جلاله دعذاب نه .ندې بچ شوې.

په آیت نمبر ۴۱.نه تر ۴۳ کښې عمومی دعوه ذکر کیږي په طریقه د تمثیل سره .او په آیت نمبر ۴۴کښې دلیل عقلي دې په مسئلې توحید باندې،په آیت نمبر ۴۵ کښې دلیل نقلي سره دامر مصلح ذکرکیږي.په آیت نمبر ۴۶ کښې د طریقه د دعوت ورکولو تعلیم ورکولې کیږي سره ددلیل نقلي دمؤمینینو سابقینو نه. په آیت نمبر ۴۷ نه تر ۴۹ کښې اثبات رسالت دې.ایت نمبر ۵۰.۵۱ کښې شکوی سره دجواب شکوه ذکر کیږي .په آیت نمبر۵۲ کښې نتیجه ددلائیلو ذکر کیږي.آیت نمبر ۵۳نه تر ۵۵ کښې زجرونه دې په استعجال عذاب باندې،دآیت نمبر ۵۶ نه تر ۶۰ پورې ترغیب الي الهجرة ذکر کیږي

په آیت نمبر ۶۱ کښې دلیل عقلي اعترافي ذکر کیږي .په ایت نمبر ۶۲ کښې دلیل عقلي محضه په عمومي دعوي باندې ذکر کیږي،په آیت نمبر ۶۳ کښې څلورم دلیل عقلي اعترافي ذکر کیږي.دآیت ۶۴تا ۶۸ پورې زجر ونه دې،او آیت نمبر ۶۹ دابتدا دسورت سره متعلق دې،او بشارت دې هغه چاته چه په ازمائش کښې صبر او استقامت اختیار کړي. (تمت).

الٓمّٓ ﴿۱﴾ اَحَسِبَ النَّاسُ اَنْ يُّتْرَكُوْٓا اَنْ يَّقُوْلُوْٓا اٰمَنَّا وَهُمْ

ت: آياگمان كوى خلق (مؤمنان) چه پرى به ښودلى شى دوىٔ صرف پدى خبره چه وائى مونږ ايمان راؤړيدي اودوىٔ به

لَا يُفْتَنُوْنَ ﴿۲﴾ وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ

وانه ازميلي شى. اويقيناً ازميلى وؤمونږ هغه خلق چه ددوىٔ نه مخكښ وؤ. نوخامخا ښكاره به كړي الله جل جلاله

الَّذِيْنَ صَدَقُوْا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكٰذِبِيْنَ ﴿۳﴾ اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ

هغه كسان چه رښتنى دى اوخامخا ښكاره به كړي دروغژن. آياگمان كوى هغه كسان چه عملونه كوى بد

اَنْ يَّسْبِقُوْنَا ؕ سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿۴﴾ مَنْ كَانَ يَرْجُوْا لِقَآءَ اللّٰهِ فَاِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ

چه بچ به شى زمونږ دعذاب نه. بد دي هغه چه دوىٔ فيصله كوى څوك چه اميدلرى دملاقات دالله جل جلاله نو بيشكه نيټه دملاقات دالله جل جلاله

لَاٰتٍ ؕ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۵﴾ وَمَنْ جَاهَدَ فَاِنَّمَا يُجَاهِدُ

راتلونكى ده. اوالله جل جلاله ښه اوريدونكي دي ښه عالم دي. اوڅوك چه مجاهده كوى نو بيشكه دي مجاهده كوى

لِنَفْسِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَغَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۶﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

دنفع دځپل ځان لپاره. بيشكه الله جل جلاله بى پرواه دي دخلقونه اوهغه كسان چه ايمان ئى راوړيدي اوعملونه ئى كړيدي نيك

لَنُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَحْسَنَ الَّذِيْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۷﴾

نوخامخالرى به كړومونږ ددوىٔ نه ګناهونه ددوىٔ اوخامخابدله به ورته وركړو ښائسته بدله دهغى عملونو چه دوىٔ كول

• الٓمّٓ دا د مقطعاتو قرآنيه ؤنه دي چه تفصيل ئى په ابتدا دَسورة البقرى كښ تيردي. • اَحَسِبَ النَّاسُ • دا دَسورة اوله دعوه ده، يعنى دَمؤمنانو آياداګمان دي چه دوىٔ به صرف په دومره قدرى خبرى پريښودلې شى چه وائى مونږ ايمان راؤړيدې. اونور مصائب به پرى نه راځى؟ استفهام انكارى دې، يعني داخيال دَدوىٔ غلط دې په ژبى سره دعوه كول دومره كافى ندى امتحان اوابتلاء ته دى هم تيارشى، په حديث كښ راغليدى چې اشدّالنّاس بلاءً الانبياء ثمّ الصّالحون ثم الامثل فالامثل (ابن كثير) يعني دَټولو خلقونه سخت امتحان دَانبياؤدې بيا دَصالحينو. بيا درجه

په درجه دَهغه خلقودې چې دَهغوسره مشابهت لري اودَانسان امتحان دَده دَدين اوايمان په حيثيت اخستلی کيږی،څوک چه څومره په ايمان کښې مضبوط وي په هغه اندازه ئی امتحان هم سخت وي.نوپدې اعتبار دَ"الناس" نه مراد مؤمنان دی.اوددی تائيد په هغوروایاتو سره هم کيږی چه ددی ايت شان نزول کښې ذکر کړې شويدې لکه ابن عمرؓ نه مروی دی چه د ايات دهغه مؤمنانو په باره کښې نازل شويدې چه د مکی نه ئې هجرت کولو مدينی ته،اوکفاروا ونيولواوسخت تکليفونه ئې ورته اورسولو. او بعض حضرات فرمائي چه د"الناس"نه مراد منافقين دی يعنی دَ منافقينو دا خيال غلط دی چه مونږ په ژبې سره "امنا"ونيلوسره به خلاص شوخو اول قول زيات راجح دی. ﴿وَهُمْ لَا يُفْتَنُونَ﴾ دا جمله په موضع د حال کښې ده.او افتنان په دوه/۲ قسمه دی (۱) افتننان په امور تکوينيه سره .لکه جانی ،مالی اور ذهنی تکليف رسيدل (۲)افتنان په امور په شرعيه سره لکه مونځ جهاد ،هجرت وغيره شو.دا ايات دواړه انواعوته شامل دی.

﴿وَلَقَدْ فَتَنَّا ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾دا تسلی ده مؤمنانو ته او داجمله په موضع دَحال کښې ده د"الناس"نه او علت د انکار دپاره دې چه دوئي دی دا گمان څکه نه کوی چه الله ﷻ سنت په دی جاری دې چه امتحانات خامخااولی اومرادپه "الذين من قبلهم"سره انبيا کرام سابقين او دِهغوئي متبوعين دی يعني نورو امتونومسلمانانوباندی هم داسی مصائب تيرشويدی،هغوئ صبرکړيدې اوپخپل دين اوپه اتباع دَنبی باندې مضبوط پاتی شويدی کقوله تعالی:وکاين من نبيٍ قاتل معه الخ (آل عمران ايت نمبر ۱۴۷).په بخاری،ابوداؤد وغيره کښې دَحضرت خباب بن الارت ؓ نه روايت دې چې مونږحضور ﷺ خدمت کښې شکايت اوکړوچه مونږته دمشرکانودَطرفه سخت اذيتونه رااورسيدل،زمونږلپاره دَالله ﷻ نه مدد ولی نه غواړی؟مونږ ته دعاولې نه کوې؟ نوحضور ﷺ اوفرمائيل:چه ستاسونه مخکښې به يومسلمان اونيولي شوپه زمکه کښې به ئی په ولاړه خخ کړو بيابه ئی دَهغه په سرآره راکاگله اودوه ټوټې به ئی کړو اودَبعضوپه بدنونوبه ئی دَاوسپني گمنزي راکاگلې چه غوښه به ئی ورسره توئ شوه،خوباوجود دَدی هغه به دَخپل دين نه .نه منع کيدلو﴿فَلَيَعْلَمَنَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ﴾حکمت دې دَابتلاء يعني چه صادق اوکاذب پته اولگی،علم نه دلته مراد تميزراوستل اوجداجدا کول

دی،یابمعنی دَاظهاردې.یعني الله ﷻ دواړه ښکاره کړې، نو استدلال د معتزله وُ په حدوث د علم د الله ﷻ صحيح نه دې باقی تفصيل په سورت بقره(۱۴۳) کښې تير وؤ﴿أَمْ حَسِبَ ٱلَّذِينَ يَعْمَلُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِ﴾ دادويمه دعوه ده چه منکران دَعذاب الهی نه نشي بچ کيدلي.سيئات نه مرادکفراوشرك دې،او جمع په اعتبار د تعدد متصيفنو سره ده.او يا دسيئات نه مراد شرك دی سره دَ نور ګناهونولکه مسلمانانو او انبياکرامو ته تکليف رسول او هغوئي پورې توقی کول'اي الشرك والمعاصي فان العمل يعم افعال القلوب والجوارح(روح)﴿أَن يَسْبِقُونَا﴾ای يُعجزونا يعنی دکافرانوداګمان دې چه دوئ به مونږعاجزه کړې دَدوئ نه په انتقام اخستلواودَدوئ دَبدعملونوبدلی ورکولوطاقت به نه لرلو؟ داخوډيره غلطه فيصله ده.

﴿مَن كَانَ يَرْجُواْ لِقَآءَ ٱللَّهِ﴾پدی آياتونوکښې داولی دعوی سره متعلق بشارتونه اوتخويفات دی﴿يَرْجُوا﴾بمعنیٰ دَيخافُ سره دې،او﴿لِقَآء﴾نه مرادموت حساب،جزاء دی.المعنی:من كان يخافُ الموت فليعمل عملاًصالحاً فانّه لابدّ ان ياتيه (قرطبی)يعني هغه څوك چه دَموت نه ېريږی نوعمل صالح دی اوکړې چه مرګ خامخاراتلونکې دې او يا"يرجو" په معنی ده يعتقد سره دې او"لقا"نه مرادبعث بعدالموت دې،او"جزاء"ورله مقدره ده.ای من كان يعتقد على البعث فليصبر على البلايا يعنی چه څوك د بعث بعدالموت عقيده لری نوپه بلايا او تکليفاتو سره دې صبر کوی بعض وائی مضاف مقدردې ای من كان يخافُ ملاقاة عقاب الله تعالى.يا"رجا"پخپله معنی دې او﴿لِقَآءَ ٱللَّهِ﴾نه مراد دَالله ﷻ رؤيت اومشاهده کول دی، کمايليقُ بشانهِ،په قيامت کښې(روح)﴿فَإِنَّ أَجَلَ ٱللَّهِ لَءَاتٍ﴾يعنی دَالله ﷻ مقررشوې وخت په باره دَقيامت کښې خامخاراتلونکې دې.او دا جمله اسميه قائمقام دَ جزا ده او اصل جمله جزائيه محذوف ده،چه هغه فليعمل عملا صالحا يا فليصبر على البلايا، وغيره دې.او دا مذکوره جمله فان اجل الله الخ صلاحيت دَ جزا نه لري ځکه چه شرط قيد وي د جزا دَپاره نو کچرې دا مذکوره جمله جزا شې نو دَدايت مطلب به داشي چه قيامت به هله راځي چه تاسوئي اميد لرئ،حالانکه قيامت راتلل دچا دَ اميد او اعتقاد سره مقيد نه دی. ﴿وَمَن جَٰهَدَ فَإِنَّمَا يُجَٰهِدُ لِنَفْسِهِۦٓ﴾ دَدی ايت نه مختلف انواع د افتنان

او په هغی کښ د کامیابئ طریقی ذکر کیږي نو دااول قسم افتنان دي چه انسان ته دخپل نفس نه پیش کیږي په نفس کښ بی صبري .عدم استقامت او دخواهشات اتباع جذبه وي دهغی دپاره دتهذیب الاخلاق ضرورت دي .نو ځکه الله ﷻ فرمائي چه تاسو مجاهده کوئي دنفس سره.نفس په صبر علی البلایاو الطاعات باندي اماده کوئ او دخواهشات داتباع نه ئي بچ کوئي ،دیته تهذیب الاخلاق وئیلي کیږي نو لهذا د جهاد نه مراد دلته جهاد مع النفس دي او قتال مع الکفار نه دي مراد ،ځکه چه داآیت مکی دي . او فرضیت دقتال په مدینه کښ شوي وؤ. اوددی وجی نه حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائي چه ان الرجل لیجاهد وماضرب یوما من الدهر بسیف(ابن کثیر) ﴿فَإِنَّمَا يُجَٰهِدُ لِنَفۡسِهِۦٓ﴾ یعني ستاسو د مجاهدی فائده الله ﷻ ته نه رسی،خالص تاسو ته فائده رسی،او داحصر اضافی دي.په نسبت سره الله ﷻ ته دي.اوحصر حقیقي نه دي.ځکه کله کله دیو انسان دَ مجاهدی فائده بل انسان ته هم رسی.لکه دَ اولاد نیک عمل فائده والد ینونه ته رسیږی .﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَغَنِيٌّ عَنِ ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾ دا په منزله د علت دي دَ ماقبل دپاره .یعنی الله ﷻ مستغنی دي او عبادتونو حکم دَالله ﷻ انسان سره احسان دي ﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾ بشارت ذکر کیږي د جهاد مع النفس کوونکو دَپاره .نو دَ عملوا الصلحات نه مراد پدی ایت کښ صبر علی التکالیف والبلایا دی

﴿لَنُكَفِّرَنَّ عَنۡهُمۡ سَيِّـَٔاتِهِمۡ﴾ تکفیر کنایه ده د مغفرت نه او اسقاط د عذاب نه په اخرت کښ نو کافر چي ایمان راوړي نو دایمان په برکت سره ئي کفر او شرک معاف شی اوچي مؤمن وی ،گناه ترینه اوشی نو دنورو نیک اعمال په برکت سره الله ﷻ ورته معافی اوکړي.لکه په حدیث د مسلم او ترمذی کښ دي.الصلاة الي الصلاة کفارة لما بینهما مالم تؤت الکبائر والجمعة الی الجمعة الخ---او کچری گناه کبیره ورنه اوشی نو الله ﷻ د توبی توفیق ورکړي.او معافي ورته اوکړی.﴿وَلَنَجۡزِيَنَّهُمۡ أَحۡسَنَ ٱلَّذِي كَانُواْ يَعۡمَلُونَ﴾.داکنایه ده د ادخال دجنت نه .یعني ددی نیک عمل په وجی سره به ئي الله ﷻ جنت ته داخل کړي .او ظاهره داده چه احسن صفت د جزا ده پاره دي .یعني د دوئي د عملونو داسی بدله به ورکړو چه هغه بدله به احسنه وي اؤ بدله احسن تضعیفي اجر دي یعني د یوی نیکني په بدله کښ

لس: ۱۰ گنا اجر ورکوی، او اجر حسن هغه اجر دې، چه یو نیکۍ په بدله کښې یو اجر میلاؤ شي
اويا "احسن" صفت ده عمل د پاره دې او اسم تفضيل يا په معنی د صفت يعنی حسن سره دې او دا مطلب ندې چه د عمل احسن بدله به ورکولې شی او د حسن بدله به نشي ورکولې بلکه هرنيک عمل الله ﷻ خو ته عمل احسن دې، او يا اسم تفضيل په خپلې معنی سره دې او دا د قبيلې د تنبيه علي الادني بالاعلي نه دې يعني هر کله چه الله ﷻ د احسن بدله ورکولې شی نو حسن خو په طريقه اولی سره ورکولې شی او، ورکوني (جمل). او حضرت شيخ رحمه الله فرمانې چه د "احسن" نه مراد عمل هجرت دې چه د هغی ذکر ماقبل کښې اشارةً شويدې، او هجرت په هغی دور کښې د نور اعمالو په اعتبار سره عمل احسن وؤ، او په ايت کښې د مفهوم مخالف اعتبار ندې کړې شوې، يعنې د عمل حسن جزا او بدلی ته تعرض ندې کړې شوی.
نو د ايت مطلب دا شو چې مونږ به دوئي ته دَ دوئي د بهترين عمل چه هجرت دې د هغی بدله کښې به خامخا ورکوؤ. او باقي د نورو اعمال حسنه نو دهغی د ثواب ذکر دلته ندې کړې شوې.

| |
|---|
| وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا ۖ وَإِنْ جَاهَدَاكَ لِتُشْرِكَ |
| اوکلك امرکړيدې مونږ انسان ته دَمور پلار سره دَ ښه سلوك، اوکچرته دواړه کوشش کوی په تا چه ته شريك اوګرځوه |
| بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا ۚ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ |
| ماسره هغه معبودان چه نشته دې تاته په الوهيت دَهغی علم، نوخبره مه منه دَدواړو، خاص ماته واپس راتلل دی، |
| فَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٨﴾ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ |
| نوخه به خبرکړم تاسو په هغه عملونو چه تاسو کول او هغه کسان چه ايمان ئې راوړيدې او عملونه ئې کړې وی نيك |
| لَنُدْخِلَنَّهُمْ فِي الصَّالِحِينَ ﴿٩﴾ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ |
| نو خامخا داخل به ئې کړو مونږ په جماعت دَنيکانو کښې او بعض دَخلقو نه هغه دی چه وائې مونږ ايمان راوړيدې په الله ﷻ |

فَإِذَآ أُوذِيَ فِي اللّٰهِ جَعَلَ فِتْنَةَ النَّاسِ كَعَذَابِ اللّٰهِ

خو چه كله تكليف ورنه اورسولې شي په وجه دايمان راوړلو په الله ﷻ.نو او گرځوي فتنې دخلقو په شان دعذاب دالله ﷻ

وَلَئِنْ جَآءَ نَصْرٌ مِّنْ رَّبِّكَ لَيَقُولُنَّ إِنَّا كُنَّا مَعَكُمْ ۚ أَوَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَعْلَمَ بِمَا

او قسم دي كه چرته راشي مدد د طرفه درب ستانه نو وائي بيشكه مونږ تاسو سره يو.آيا نه دي الله ﷻ ښه خبر په هغه څه چه

فِي صُدُورِ الْعٰلَمِينَ ۞ وَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِينَ اٰمَنُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْمُنٰفِقِينَ ⑪

په سينو دخلقو كښې دی او خامخا ښكاره به كړي الله ﷻ مؤمنان او خامخا ښكاره به كړي منافقان.

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ اٰمَنُوا اتَّبِعُوا سَبِيلَنَا وَلْنَحْمِلْ خَطٰيٰكُمْ ۖ وَمَا هُمْ

او وائي كافران مؤمنانو ته اتباع او كړئ زمونږ دلارې او مونږ به بار كړو گناهونه ستاسو.حال دا چه نه به وي دوئ

بِحٰمِلِينَ مِنْ خَطٰيٰهُمْ مِّنْ شَيْءٍ ۖ إِنَّهُمْ لَكٰذِبُونَ ۞ وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ وَأَثْقَالًا

بار ونكي دگناهونو ددوئ نه هيڅ څيز.بيشكه دوئ خامخا دروغژن دي.او خامخا بار وي به بوجونه خپل دگناهونو او نور بوجونه

مَّعَ أَثْقَالِهِمْ ۫ وَلَيُسْئَلُنَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَمَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ⑬

دخپلو بوجونو سره.او خامخا به تپوس به ورنه او كړي شي دقيامت په ورځ دهغه څه چه دوئ دروغ جوړول

﴿وَوَصَّيْنَا الْإِنْسٰنَ بِوٰلِدَيْهِ﴾ دا دويم قسم افتنان او په هغې كښې د كاميابۍ د طريقې ذكر دی چه ديته تدبير المنزل وائي.خلاصه ئي دا ده چه كله يو انسان ته د توحيد او دين په باره كښې ازمائش د خپل كورنئ د طرف نه وی.دخپل مورپلار دطرف نه وی.نو دمور او پلار په باره كښې اگر چه تاكيدی حكم دې داحسان خو كچرې مور او پلار يو كس د شرك او بې دينئ باندې مجبور كوی نو پدې معامله كښې د هغوئي اتباع جائزه نده .او نورو امورو كښې دهغوئي اتباع او دهغوئي سره حسن سلوک كول واجب دی .اگر چه هغوئي كافر ولې نه وی. او دا آيت دحضرت سعدبن وقاص رضي الله عنه باره كښې نازل دې.دې دخپلې مورډيرخدمت گزاروؤ.ايمان ئې راوړو مورئې مشركه وه ورته ئې اووئيل خه خبره شوی بمه چه تاايمان راوړيدې.ترڅو چه تا په محمد ﷺ باندې كفرنه وی مرې ترهغې به خه دچښ لاندې آرام نه كوم

اونه به څه خورم اونه به څه څکم،تردی چه مړه به شمه.خلق به تاپپیغوردرکوی چه اې دَمورقاتله څوورځی تیری شوي،سعدﷺ ورته اووئیل اې مورې که ستاسل(۱۰۰)روحونه شی یویوبه اوځی لیکن څه خپل دین نه پریدم،که خوښه دی خوراك څکاك کوه که نه وی نومکوه،مورئی پوهه شوه چه دې ایمان نه نه آوړی نوخوراك ئی شروع کړو(روح.قرطبی)

"وصینا" په معنی دحکم تاکید سره دې او "احسانا"یا مفعول مطلق دې د "وصینا" دپاره په اعتبار دَ موصوف مقدره سره ،یعنی وصیناالانسان ایصاء حسنا"او حمل د حسنا په ایصاء باندې یا مبالغتا دې او یا مجازفي الحذف دې .اي ذا حسن او د امذهب دَ بصریانو دې او په مذهب د کوفیانو باندې عمل ورکول مصدرمحذوف ته جائزدی نو هغوئي په مذهب "حسنا" مفعول به دې د مصدر محذوف د پاره چه مضاف دې "والدیه" ته نو تقدیر د عبارت دا سی دی وصینا الانسان بایتاء والدیه حسناو دا هم ممکنه ده په مذهب د کوفیانو باندې چه حسنا مفعول مطلق شی د فعل محذوف د پاره چه احسن دې .

﴿وَإِن جَٰهَدَاكَ لِتُشْرِكَ﴾دلته "قلنا" مقدر دې اي قلنا ان جاهدك ځکه چه دا جمله خبریه ده او ماقبل جمله انشائیه وه او عطف د جملی خبرئي په انشائیه باندې مستحسن ندې،نو ځکه "قلنا"ورسره مقدردی.

﴿مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ﴾ضمیر په به کښ راجع دې"شریک" او "اشراک"ته او شرک ته ندې راجع ځکه چه علم او دلیل په شرک باندې هر مخاطب ته شته دې،البته علم او دلیل په شریک او په اشراک باندې نیشته دې ،مالیس‌به‌اي‌باشراکه(جلالین)

که څوک اشکال اوکړي چه نفي د علم مستلزم نده نفي د وجود شی لره نوکیدلې شي چه شریک موجود وي اګر چه علم او دلیل پری نوی حاصل شوې،نو ددینه متعدد جوابات کړې شویدې .صاحب د جلالین ترینه جواب کړیدې چه موافقة للواقع یعني دا قید د نفس الامرد موافقت د پاره ذکر کړې شویدې ،چه نفس الامر او واقعه کښ هم بل "اله" نیشته دې نو ځکه پری ستاسو علم نیشته دې ، یعني څرنګه چه په خارج کښ ستاسو علم او دلیل منتفي دې هم دغه شان په نفس الامر کښ د غیر الله جود هم منتفي دې،دویم جواب ترینه داکړې شویدې چه نفي د علم کنایه ده دَنفي د معلوم نه نو دمالیس به علم نه مرادمالیس لک اله دې یعني

ستاسو د پاره بل اله نيشته او ددی وجه نه علامه زمخشری فرمائي چه لا يصح ان يكون إلها ولا يستقيم (كشاف)او پدی كښ اشاره ده چه نفي ده شرک او اثبات د توحيد د بديهيتو بلكه دفطرت انساني نه، دې.يعني خپل رب باندې علم راتلل بديهي دی كچری.رب او اله وی نو خامخابه پری علم هم وی. او دريم جواب ترينه د اهم كيديشي چه علم نه مراد دلته دليل اني دې ځكه چه د خالق د پاره لم او علت نوی نو لهذا د هغه دپاره دليل لمي هم نشي راتللې نو خامخا به اثبات دخالق دَ پاره دليل اني وئيلي كيږی،او دځومره مخلوقات چه دې دا ټول مخلوقات دالله دی او دلائل دی په وجود دَ الله باندې نو كچری بل اله وی نو خامخا دهغه د پاره مخلوق به وې اودلائل به وې،په وجود دهغه باندې ،نو هر كله چه مخلوق د بل اله د پاره نيشته دې نو معلومه شوه چه بل اله هم نيشته نوګوياچه نفی دَ دليل "اني" مستلزمه ده نفي دَ وجود "اله"لره ﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾دابشارت اخروی دې مؤمنانوته او متعلق دې دَ دويم افتنان سره ﴿لَنُدۡخِلَنَّهُمۡ فِى ٱلصَّـٰلِحِينَ﴾يعنى كه اولادپه ناحقه خبره كښ دخپلووالدينوخبره نه منی،نودَاولادوحشربه ئې دَصالحانوسره كيږی دَوالدينوسره به نه كيږی اګرچه خلک دغه شان انسان ته مفسد او غير صالح وائي،او دَ دَه حشر به ځكه دَ صالحينو سره كيږي چه دَ ده محبت دَ صالحينو سره عقلي او شرعي دی اووالدين چه كافروي نو د هغوئي سره محبت صرف طبعي وي او په دی حديث: المرأ مع من احب الخ كښ عقلی او شرعی محبت مراد دې طبعی محبت ندې مراد نولهذا كچری دَيونيک انسان دَخپلو كافر والدينو سره طبعی محبت وی نو حشر به ئې بيا هم دَنيكانوخلكو سره كيږی او،والدينو سره به ئې نه كيږی.

**فائده**: صالحين د صلاح نه دې او صلاح ضد د فساد دې،او مقصددادې چه په هغه كښ څه قسم خرابي او خلل نه وی،نه اعتقادی،نه عملي او اخلاقی او مراتب دَدی غير متناهي دی اعلی مرتبه په انبيائيوكښ ده او بيا په نورو مسلمانانو كښ على حسب التفاوت موجود وی.

﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَقُولُ﴾ داذكر ددريم افتنان دې چه دعاموخلكو د طرف نه وی ،چه د هغی د پاره دَ كاميابي ذريعه اوطريقه سياست مدينه دې او دغه شان پديكښ زجردې منافقينو ته ،خلاصهٔ ئې دا ده چه د دين او د حق د وجی نه به كله كله ستاسو مخالفت عام خلک هم كوی او د عامو خلكو د طرف نه به تاسو ته تكليفونه رسيږی،بد ،ردبه درته وئيلې شي خو تاسو به

صبر او استقامت کوئي د الله د دین د پاره به تکلیفو نه برداشت کوئي او کتمان حق به د خلکو دویرې اومخالفت د وجې نه به نه کوئي .لکه څرنګه د الله د ویرې نه بیان د حق کوئ. او دا دمنافق علامه ده چه دَ خلکو نه داسې سخت ویریږي لکه څرنګه چه یومسلمان دالله عذاب نه ویریږي،او دمعاشرې د فساد لویه ذریعه دا ده چه به هغې کښې کتمان حق راشي کما اشاره اليه في حديث ورد في فاطمة مخزويته كمال قال حين اشتشفع اسامة،إنما اهلك الذين قبلكم انهم كانو اذاسرق فيهم الشريف تركوه واذا سرق فيهم الضعيف اقاموا عليه الحد الخ(بخاري باب الشفاعة) ﴿ءَامَنَّا بِٱللَّهِ﴾ یعني صرف په ژبه باندې دا وائي چه مونږ ایمان راوړې دې خو چه کله د الله په لاره کښې تکلیف پرې راشې نو بیا ایمان پریدی.﴿جَعَلَ فِتۡنَةَ ٱلنَّاسِ﴾قرینه نه مراد تکالیف او مخالفت دی او كعذاب الله نه مراد منزله عذاب الله دې یعني د خلکو د دنیوی اذیتونو او تکلیفونو نه دومره سخت ویریږی لکه څنګه چه دالله داخروي عذاب نه مومن ویره وکوئې

﴿فَإِذَآ أُوذِيَ فِي ٱللَّهِ﴾فی سببیه ده ای لاجله عزّوجل(روح) مرادورنه دَالله لاره ده یعنی چه مشرکان ورته په ایمان راؤړوعذاب اواذیت ورکړې

﴿وَلَئِن جَآءَ نَصۡرٞ مِّن رَّبِّكَ ﴾یعنی کچرته مؤمنانوته فتح اوشی اومالِ غنیمت ورته میلاؤشي نوبیاوائی چه مونږهم تاسوسره شریك یوپه غنیمت کښې ځکه چه مونږهم مؤمنان یو﴿إِنَّا كُنَّا مَعَكُمۡ﴾ غوره قول دا دې چه معیت په دین کښې مراد دې یعنی دین په اشاعت کښې مونږ هم ستاسو ملګری یو او یا ترینه مراد معیت دې په قتال کښې یعنی په قتال کښې درسره یو .﴿أَوَلَيۡسَ ٱللَّهُ بِأَعۡلَمَ ﴾دا په دوئ رد دې چه آیاالله ستاسودَزړونوپه کیفیاتو باندې عالم ندې

﴿وَلَيَعۡلَمَنَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾دامؤمنانوته بشارت اومنافقینو ته تخویف دې.اوحکمت دَابتلاذکرکیږي،چه دَتکلیف په وخت کښې کوم کس په خپل دین باندې مضبوط پاتی شې هغه حقیقي مؤمن دې اور مراد په ''علم''سره مجازات یعني بدله ورکول دی .یا تمیز راوستل اوښکاره کول مراد دی ﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾پدې ایت کښې دَکفارونه شکوه او تخویف اخروی دې او دَهغوئي دَ دهوکی ورکولو او دحق د پټولو ترغیب ورکو ذکر دې چه کافران مومنانوته وائي چه

زمونږ اتباع اوکئ او زمونږ خبره امنئ او کچری دَ دی څه گناه وی نو زمونږ په غاړه به وی.لکه نن صبا دا حالت به مسلمانانو کښې هم شروع شویدې چه بل مسلمان ته دَ حق پېټولو او دگناه ترغیب ورکولو په وخت کښې وائی چه گناه یئ څما په غاړه دې ﴿لِلَّذِينَ ءَامَنُوا﴾ لام په للذين کښې دَپاره دَ تبلیغ دې چه یعنی کفارو مؤمنان مخاطب کړو،او هغوئ ته ئی ترغیب او تبلیغ اوکړو.﴿اتَّبِعُوا سَبِيلَنَا﴾ مراد ترینه کفر او شرک او نور گناهونه دی چه دوئ کولو ﴿وَلْنَحْمِلْ خَطَيَكُمْ﴾امر به معنې دا جزا سره دې او شرط ورله محذوف دی تقدیر عبارت دا سی دې ان اتبعتم سبيلنا نحمل خطاياكم(روح ،زاد المسير)یعنی تاسو زمونږ دَ دین اتباع اوکړئ او زمونږ خبره اومنئ کچری پدی باندې څه مواخذه وه او گناه وؤ نو هغه به مونږ په خپله غاړه واخلو.او دوئي خپله مواخذه په صیغه دا مر سره ذکر کړه یعنی "نحمل"اپه جزم|سره صیغه دَامرده .اگر چه مراد ترینه اخبار دې خو هر کله چه په صورت د امر کښې مبالغه ډیره وه نوځکه ئې صیغه دَ امر ذکر کړه.وانما امروبانفسهم بالحمل عاطفين له على الامر بالاتباع للمبالغة فى تعليق الحمل بالاتباع(روح)هر کله چه دَ دوئي قول "ولنحمل خطاياكم"په معنی دَ خبره سره وو نو الله جل جلاله دَ دوئي دَ قول په رد کښې او فرمائیلو چه ﴿وَمَا هُم بِحَٰمِلِينَ مِنْ خَطَٰيَٰهُم مِّن شَيْءٍ﴾ من بیانیه دې او په من شئ کښې من زائده دې.دَ پاره دَاستغراق د نفی دپاره دې ،یعنی دوئي دَبل چا دگناهونو نه هیڅ شی هم نشی پورته کولې.دوئي دروغژن دی.او که څوک اشکال اوکړې چه "کاذب"وئیلې کیږی المخبر عن الشي لاعلى ماهو عليه او دا تعریف په دوئي باندې نه صادق کیږی ځکه چه دلته دوئ خپل ځانونه د هغه شې ضامن گرځي چه دوئ دَ هغی په پوره کولو باندې قادر ندي،په علم دَالله تعالى کښې ،یعنی دَالله تعالى په علم کښې داده چه دوئی دَدی ضمانت په پوره کولو باندې قادرندې او دَالله تعالى په علم کښې کچری یو کس دَیوکار په پوره کولو باندې قادر نوی نو هغه ته کاذب نشې وئیلی کیدلې نه په حین د ضمان کښې نه په حین دَ عجز کښې.نو جواب دا دې چې دوئ ته "کاذبين"تشبيها وئيلې شویدې.لکه څرنگه چه خبر دَمخبر عنه سره موافق نوی په نفس الامر کښې نو دغه شان دَدوئ ضمان هم په نفس الامر کښې دَ دوئ دَایفا سره موافق ندي.(۲) دویم جواب ترینه دا دې چه دا کذب راجع ندي دیته چه دوئی"حاملين ندي"بلکه کاذبين ورته پدی اعتبار سره وئيلې شویدې چه دوئ بالکل ضمان نه اخلی ،یعنی په ژبی سره خو

اقرار دوعدې دضمان کوې خوپه زړه ئې ددې مخالف دی خلاصه د جواب دا ده که چرې يو کس وعده دضمان اوکړي خو ضمان متحقق شوی نوی نو ده ته کاذب نشي وئيلي کيدلي خو کچرې وعده دضمان اوکړي او ضمان نه کوي نو ده ته بيا کاذب وئيلي کيږي (روح)ليکن غوره جواب دا دی (۳) چه دا جمله ''اتبعوسبيلناولنحمل خطاياكم'' اګر چه لفظا انشاده ليکن معنی اخبار دي او صدق اوکذب لکه څرنګه کلام ته په اعتبار دمنطوق سره راجع کيږي نو دغه شان مدلول التزامي ته هم راجع کيږي﴿ وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ ﴾دارددي په طريقه ابلغ سره د هغوئ په قول باندې چه ''ولنحمل خطاياكم''دي خلاصه داده چه دبل چا بوج اوګناه به څرنګه او چټ کړي دوئ به په خپله د خپلو ګناهونو دلاندې پراته وی.نو داثقالهمنه مراد دد وئ خپل ګناهونو دی.لکه شرک اوفسق فجور شو او تعبير ترينه په''اثقال'' سره اشاره ده چه د دې ګناهونو وبال به ډير سخت وی او داهم ممکنه ده چه الله ﷻ په قيامت په ورځ به دغی اعمالوته چه اعراض دي وجود ورکړي او په دوئ باندې به ئې بوج کړي﴿ وَأَثْقَالًا مَّعَ أَثْقَالِهِمْ ﴾ددينه مراد ګناه د تضليل او د دعوت ورکولو د ګمراهي ته مراد دی چه دوئې د کومو خلکو دګمراهي دپاره سبب ګرځيدلي وي يا ئې چاته دګناه دعوت ورکړيدي د هغی ګناه به هم ورباندې بوج کړيشي ،داسی ذکر په سورت نحل ايت نمبر ۲۵کښ دی او په حديث صحيح کښ دي من دعا الي ضلالة كان عليه من الاثم مثل اثم من اتبعه الي يوم القيامة من غير ان ينقص من اثامهم شيئا(ابن کثير)او په بل روايت کښ دي من سن سنة فعليه وزرها ووزر من عمل بها من غير ان ينقص من وزره شئ ﴿وَلَيُسْـَٔلُنَّ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ﴾دا سوال به توبيخا او تفريعا وي

| |
|---|
| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦ فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا ط |
| اويقينامونږليږلي وونوح عليه السلام خپل قوم ته نوتير کړي ئې ووپه هغوئ کښ زرکاله مګرپنځوس کاله کم. |
| فَأَخَذَهُمُ ٱلطُّوفَانُ وَهُمْ ظَـٰلِمُونَ ﴿١٤﴾ فَأَنجَيْنَـٰهُ وَأَصْحَـٰبَ ٱلسَّفِينَةِ |
| پس اونيول هغوئ طوفان اودوئ ظلم کونکی وو،پخپل ځان،پس مونږنجات ورکړونوح عليه السلام ته اوخاوندانودکشتئ ته |
| وَجَعَلْنَـٰهَآ ءَايَةً لِّلْعَـٰلَمِينَ ﴿١٥﴾ وَإِبْرَٰهِيمَ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ |
| اوګرځوله مونږدغه کشتئ نشانه دعبرت لپاره دخلقواوليږلي وومونږابراهيم عليه السلام کله ئې چه اووئيل خپل قوم ته |

اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوْهُ ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝

عبادت کوئ د الله ﷻ او دهغه نه اویریږئ.داستاسو لپاره غوره ده که تاسو پوهیږئ.

اِنَّمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا وَّتَخْلُقُوْنَ اِفْكًا ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ تَعْبُدُوْنَ

بی شکه تاسو عبادت کوئ ماسوی د الله ﷻ نه دبتانو او جوړه وئ دروغ.بیشکه هغه معبودان چه عبادت یې کوئ تاسو

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَا يَمْلِكُوْنَ لَكُمْ رِزْقًا فَابْتَغُوْا عِنْدَ اللّٰهِ الرِّزْقَ وَاعْبُدُوْهُ

ماسوی د الله ﷻ نه ندی مالکان ستاسو لپاره درزق نو طلب کړئ الله ﷻ سره رزق او عبادت کوئ دهغه

وَاشْكُرُوْا لَهٗ ؕ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝ وَاِنْ تُكَذِّبُوْا فَقَدْ كَذَّبَ اُمَمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ؕ

او شکریې اداکوئ،خاص هغه ته به واپس کیږئ، اوکچرته تکذیب کوئ تاسو نو یقیناً تکذیب کړي وو ډیرامتونو مخکښې ستاسو نه.

وَمَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ۝

اوندی په ذمه د رسول مګر رسول ښکاره دی

﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ﴾ دا اوله قصه ده اود اولي دعوی سره متعلق ده،یعنی مؤمنانوباندی به مصائب راځی لکه نوح ﷺ خپل قوم ته د توحید دعوت ورکړو د توحید په خاطرئی نهه نیم سوه کاله د قوم تکلیفونه برداشت کړل،نو تاسو به هم صبر کوئ.﴿فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ﴾ نهه نیم سوه(۹۵۰)کاله ئی د دعوت تبلیغ عمر دې،پوره عمرباره کښې ئی مختلف اقوال دی،ابن عباس ﷺ نه منقول دی چه په څلویښتم کال مبعوث شوي وو،نهه نیم سوه کاله په دعوت تبلیغ کښې لګیاوو،د طوفان نه وروسته شپیته(۶۰)کاله نورهم ژوندي وو،پدی حساب سره ئی ټول عمر(۱۰۵۰)کاله شو بعض وائی(۱۲۵۰)کاله وو،بعض وائی(۱۴۵۰)کاله وو دی نه علاوه نوراقوال هم دی(روح)تفصیلی واقعه په سورة الاعراف او هود کښې تیره شویده

**فائده**: دلته داسی او نه وئیلې شو چه فلبث فیهم تسعمائة وخمسین سنة(نهه نیم سو ه کاله)یو(۱)ده دی وجی نه چه پدی کښې مذکور عبارت کښې اختصار دې او دویم(۲)د دی وجی نه چه مقصود پدی سره مؤمنانو ته تسلي ورکول دی چه نوح علیه السلام خپل قوم نه لوئی

تکالیف تر ډېر وخت پورې رسیدلو او هغه صبر کولونو غټ عدد ذکر کړې شو او بیا ترینه استثنا اوکړې شوه دَ عظمت شان او د مبالغی په تکلیف رسیدلو او صبر کولو دَ نوح علیه السلام کښې

**فائده نمبر۲** دَمستثنی منه سره تمیز "سنة"ذکر شو او دَمستثنی سره ''عاما''ذکر شو.یوه نکته پکښې داده چه تفنن في العبارت والکلمات دَبلاغت حصه ده او دیمه نکته پکښې داده چه سنةعموما اطلاق په هغو کالونو باندې کیږې چه په تکالیفو کښې تیر شي ،او دَ عاما اطلاق په هغو کیږي چه په فراخی کښې تیر شي نو پدیکښې اشاره ده چه نهنیم سوه کاله حضرت نوح علیه السلام مسلسل په مشقت او تکالیفو کښې تیر کړې وو صرف پنځوس کاله په راحت کښې وو

﴿فَأَخَذَهُمُ ٱلطُّوفَانُ﴾ دا ضمنأ دَدویمی دعوی سره متعلق دې یعنی دا منکران هم زمونږ دَعذاب نه نشی بچ کیدلی لکه چه قوم نوح دَنافرمانئ نه منع نشول نو طوفان ورباندې راغې چه په هغی کښې ماسوئ دَیوځومتبعینونه هیڅ څوك هم بچ نشول.﴿وَأَصۡحَٰبَ ٱلسَّفِينَةِ﴾ یعنی څوك چه دَ نوح ﷺ سره په کشتئ کښې سواره وو،اولاد اومتبوعین چه ټول اتیا(۸۰) یا(۷۸)وو. ﴿وَجَعَلۡنَٰهَا﴾ ضمیر یا سفینی ته راجع دې یعنی دا مونږ دَقدرت اوعبرت ټولوخلقولپاره اوګرځوله،ډیروخته پورې دَجودی په غرولاړه وه،یا ضمیر قصی دَنوح ﷺ ته راجع دې.

﴿وَإِبۡرَٰهِيمَ إِذۡ قَالَ﴾ دا دویمه واقعه دا چه دا اولی دعوه سره متعلق ده.خلاصه ئې دا ده ه ابراهیم علیه السلام خپل قوم ته دَتوحید دعوت ورکړو،قوم او دَهغوئ بادشاه نمرود دَطرف نه بلکه دَپلار د طرف نه هم ابراهیم علیه السلام ته مسلسل تکلیفونه او اذیتونه رسیدلو.خو ابراهیم علیه السلام په ټولو تکالیفو باندې صبر او استقامت اختیار کړو. ''ابراهیم''منصوب دې ځکه چه مفعول دې دَ ''اذکر''مقدر دَپاره او ''اذقال لقومه''بدل اشتمال دی دَ ''ابراهیم''ته او یا ''ابراهیم''عطف دې په ''نوحا''باندې اود ''ارسلنا'' تحت واقع شویدې ،او اذقال لقومه الخ ظرف دې دَ ارسال د پاره .نو مطلب دا دې چه ابراهیم علیه السلام خپل قوم ته په هغه وخت کښې وعظ اونصیحت اوکړو چه کله دَ هغه عقل کمال ته اورسیدلو دَنظر اوفکر طاقت ئې کامل شونو خپل قوم ته ئې اوفرمائیل

چه﴿ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ ﴾دا په معنی دَوحدوالله سره دي يعنی صرف د الله ﷻ عبادت کوئي او هغه سره بل څوک مه شريک کوئی اي اخلصوا له العبادة(ابن کثير)په ديکښې اشاره ده اثبات د توحيد ته ﴿وَٱتَّقُوهُ ﴾په ديکښې اشاره د نفی ده غيرالله ته او بعض فرمائي چه ''اعبدوالله''کښې اشاره ده اتيان ته په واجباتو باندي او''اتقوه'' کښې اشاره د د اجتناب ته د محرماتو نه(کبير)﴿ذَٰلِكُمۡ خَيۡرٞ لَّكُمۡ ﴾پديکښې اشاره ده فوائد دَتوحيد ته اجمالا يعني دَتوحيد په ذريعی سره انسان د دنيوی ،اخروی خيرونو نه مالامال ګرځي او دَدنيوی اخروي شر نه محفوظ کيږي.او''خير''اسم تفضيل دي.مفضل عليه ورله هغه دي چه دَ دی کفارو په زعم او ګمان کښې وؤ چه دوئ به وئيلو چه مونږ دَدی بتانو عبادت ځکه کوو چه دا به مونږ ته خير راورسوی اويا ورله مفضل عليه هغه ټول اشيا دی چه په هغی کښې خير موجود دي.نو''خير''دَتوحيد دهر قسم خيرنه غوره خيردي.اي من کل شي فيه خير او مما انتم عليه علي تقدير الخيرية فيه علي زعمکم(روح)او يا''خير''صفتي دي معنی دَ تفضيل پکښې نده معتبره.﴿إِن كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ﴾پديکښې اشاره ده چه دَخير او شر دَتميز دَپاره علم شرط دي﴿إِنَّمَا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوۡثَٰنٗا ﴾ پديکښې رد اوبطلان دَشرک دي په دري طريقو سره (۱)اوثانا:يعني تاسوچه پری ګمان دآلهو کوئي داخوستاسو دَلاس جوړکړي شوي بتان اوشکلونه دی او''اوثانا''ذوالحال موخر دي.او''من دون الله'' ورله حال مقدم دي.حال ذوالحال دامفعول دَ''تعبدون'' دَپاره دی ﴿وَتَخۡلُقُونَ إِفۡكًا ﴾(۲)دويمه طريقه دَرد ده يعنی دوئي په الوهيت باندي تاسو سره څه دليل هم نيشته ټولې دَدروغو قصې ورته تاسو جوړې کړيدي.لکه نن صبا هم ډير مبتدعين دَبزرګانو په باره کښې دَدروغو قصې جوړه وي يا﴿وَتَخۡلُقُونَ إِفۡكًا ﴾په معنی دَتکذبون کذباسره دي؛ای وتکذبون کذباً(روح)يعنی دَدوئ الوهيت څه دليل هم تاسوسره نشته دي مکمل دروغ وايئ چه آلهه ورته وايئ اوشفعاء عندالله ورته وايئ

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ دا دريمه طرقه دَرد ده.يعنی ستاسو دامعبودان

باطله ستاسو دبنيادي ضرورت چه رزق دې د هغې دپوره كولو قدرت نه لري.نو نورحوائج به درله څنګه پوره كړي،بس روزي خپله د الله ﷻ نه أوغواړئ صرف دهغه عبادت كوئ،دهغه دنعمتونو شكراداكوئ، ستاسو رجوع به هم هغه ته كيږي

﴿لَا يَمْلِكُونَ لَكُمْ رِزْقًا﴾ "رزق" يا مصدر دې په خپلې معنى سره او يا په معنى داسم مفعول سره دې.او"رزقا"نكره ده چه تحت النفي واقع شويده نو مفيده دعموم ده نو اول اعتبار سره ني معنى داده چه دوئى مالكان ندي چه څه شي تاسوته درزق نه دركړي.اي لايملكون ان يرزقونكم شيأمن الرزق(بحر)اوپه دويم احتمال سره معنى ئى دا ده چې دوئى تا سوته خواركه دركولو باندې قادر ندي.أي لايملكون لكم ايتاء رزق ولا تحصيله(بحر)او بعض فرمائي چه تنكير د پاره دتحقير دې يعنى معمولى رزق او لږ شې مالكان هم ندي(روح)اوهر كله چه"رزق" سبب ظاهرى دبقااو قوام د عالم ده نو د دى وجى نه تخصيص درزق اوشو ﴿فَٱبْتَغُواْ عِندَ ٱللَّهِ ٱلرِّزْقَ﴾ دلته رزق معرفه ذكر شو دپاره دكمال استغراق ،معنى ني دا ده چې هر قسم رزق د الله ﷻ نه طلب كوئ،ځكه چه هغه دهر قسم رزق مالک دې .او كه څوک اشكال اوكړي چه ماقبل كښې يو احتمال دا ذكر شوې وو چه تنكير په "رزقا" كښې دتحقير دپاره دې.او قانون دادې چه النكرة اذا اعيدت معرفة كانت الثانية عين الاولى.نو دايت مطلب به داشي چه صرف معمولى او حقير رزق د الله ﷻ نه طلب كوئ ځكه چه هغه صرف دحقيررزق مالک دې،نو جواب ترينه دادې چه اول احتمال په بنياد خو بالكل اعتراض نه وارديږي ځكه چه هلته عموم دنفى او استغراق دنفى درزق وو.او دلته عموم د اثبات درزق او استغراق داثبات درزق دې.اودويم احتمال په بنياد صاحب دروح المعانى جواب دا كړې دې چه دا قانون اكثرى دې كلي نه دې،نو لهذا دا موضع دهغې مواضعو نه نه دې چه ثاني عين اولى وى.﴿وَٱعْبُدُوهُ وَٱشْكُرُواْ لَهُۥٓ﴾هر كله چه عبادت او شكر د نعمت ذريعه او وسيله دحصول مقاصد دپاره ګرزځى چه د الله ﷻ رضا او ديدار دې نوځكه ددى حكم وركړې شو .يعنى ستاسو رجوع الله ته كيږى نو ددى وجى نه الله ﷻ په عبادت او شكر سره راضي كړئ﴿وَإِن تُكَذِّبُواْ﴾ ددى آيت نه تر آيت نمبر۲۳ پورى ،پديكښې

دوه احتمالات دی، یو احتمال دا دي چه دا د ابرهیم ﷺقول شي.نو پدی احتمال "وان تكذبو" په اصل كښ"تكذبونی" دی او جزا ورله مقدره ده چه "فلاتضرونی"دي يعني ابراهيم عليه السلام خپل قوم ته اوئيلو چه كچري تاسو ځما تكذيب كوئي نو داماته څه ضرر نه رسوي،ځكه چه ستاسو نه مخكښ نورو امتونو خپل پيغمبرانو تكذيب كړي وؤ.لكه قوم دَ نوح عليه السلام .قوم هود ،قوم صالح عليهم السلام وغيره انبياكرامو ته هم ضرر نوؤ رسيدلي بلكه مكذبينو ته نقصان ميلاؤ شوي وؤ.اور عذاب الهی پری راغلي وؤ.او يا داجمله معترضه ده او دالله تعالى قول دي .چه خطاب كړي اهل مكه ته او تسلى ده حضور صلي الله عليه وسلم ته چه اي اهل مكه كه تاسو دَدی پيغمبر تكذيب كوئی نو ده ته تاسوڅه ضرر نشي رسولي بلكه دَدی تكذيب نقصان خپله تاسوته ميلاويكي.لكه څرنګه مخكښ قومونوته ميلاؤ شوي وؤ.

| |
|---|
| اَوَلَمْ يَرَوْا كَيْفَ يُبْدِئُ اللّٰهُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ |
| آيادوئ نه گوری چه څنګه اول خل پيدا كړيدي الله ﷻ خلق بيابه ئی دويم خل پيدا كوي.بی شكه داپه الله ﷻ باندي |
| يَسِيْرٌ ﴿۱۹﴾ قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ بَدَاَ الْخَلْقَ |
| اسان دی.ته ورته اووايه اوګرځئ په زمكه كښ پس اوګورئ چه څنګه اول خل پيدا كړيدي الله خلق |
| ثُمَّ اللّٰهُ يُنْشِئُ النَّشْاَةَ الْاٰخِرَةَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۰﴾ يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ |
| بيابه الله ﷻ پيدا كړي پيداكول په دويم خل.بی شكه الله ﷻ په هرڅيزباندی قادردي.عذاب وركوي چاته ئی چه خوښه شی |
| وَيَرْحَمُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاِلَيْهِ تُقْلَبُوْنَ ﴿۲۱﴾ وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ |
| اورحم كوی چاته ئی چه خوښه شی.اوخاص هغه ته به تاسو وا پس بوتلي شئ.اونه ئی تاسو عاجزه كونكی الله ﷻ ره په زمكه كښ |
| وَلَا فِي السَّمَآءِ ۫ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۲۲﴾ وَالَّذِيْنَ |
| اونه په اسمان كښ.اونشته دي ستاسولپاره ماسِوٰی دَالله ﷻ نه هيڅ څوك نه دوست اونه مددګار.اوهغه كسان |

كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَلِقَآئِهٖٓ اُولٰٓئِكَ يَئِسُوْا مِنْ رَّحْمَتِيْ وَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ

چه كفرئې كړيدې په آياتونو دالله او په ملاقات دهغه،نو دا كسان نا اميده دي خما د رحمت نه او دا كسان هم دوئ ته به وي

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۲۳﴾ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوا اقْتُلُوْهُ اَوْ حَرِّقُوْهُ

عذاب دردناك،پس نه وو جواب دقوم دابراهيم عليه السلام مگر دا چه وئيل ئې قتل كړئ ابراهيم عليه السلام يائې اوسوزوئې

فَاَنْجٰىهُ اللّٰهُ مِنَ النَّارِ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۲۴﴾

نو نجات ورته وركړو الله تعالىٰ داورنه،بې شكه په دې نجات دابراهيم عليه السلام كښې خامخا دلائل دقدرت دې دهغه قوم لپاره چه ايمان لري.

وَقَالَ اِنَّمَا اتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا ۙ مَّوَدَّةَ بَيْنِكُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ

او وئيل ابراهيم بې شكه تاسو نيولى دي ماسوىٰ دالله نه بتان،لپاره ددوستئ ستاسو مينځ كښې په ژوند ددنيا كښې.

ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ وَّيَلْعَنُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا ؗ وَّمَاْوٰىكُمُ

بيابه په ورځ دقيامت بيزاره به شي بعض ستاسو دبعض نورونه او لعنت به كوي بعض ستاسو په بعضو.او ځكانه به ستاسو

النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۲۵﴾ ۞ فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ ۘ وَقَالَ

اور دجهنم وي او نه به وي ستاسو لپاره هيڅ څوك دمدد كونكو نه،نو ايمان يرې راوړو لوط،او وئيل ابراهيم عليه السلام

اِنِّيْ مُهَاجِرٌ اِلٰى رَبِّيْ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۲۶﴾ وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ

بې شكه څه هجرت كونكې يم خپل رب ته،بيشكه هغه غالب دې حكمت والا دې،او وركړو مونږ ابراهيم عليه السلام ته اسحاق

وَيَعْقُوْبَ وَجَعَلْنَا فِيْ ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ وَاٰتَيْنٰهُ اَجْرَهٗ فِي الدُّنْيَا ۚ

او يعقوب او اوگرځول مونږ په اولاد دابراهيم كښې نبوت او كتاب او وركړو مونږ هغه ته اجر دده په دنيا كښې.

وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۲۷﴾

او بې شكه دې به په آخرة كښې خامخا د جماعت دنيكانو نه وي

﴿أَوَلَمْ يَرَوْا كَيْفَ يُبْدِئُ اللَّهُ الْخَلْقَ﴾زجردې منکرينو دَبعث بعدالموت ته او هر کله چه ماقبل آيتونو کښ اول اثبات دَ توحيد او بيا په "ماعلى الرسول"سره اثبات دَرسالت اوشو نوپدى آيت کښ اثبات دَبعث بعدالموت کيږي په دليل انفسي سره اواستفهام دَپاره دَانکار دې او "واو"دَپاره دَعطف دې معطوف عليه ورله مقدر ده چه"لم ينظرو"نو تقدير دَعبارت داسې دې"الم ينظروا ولم يروا"او مراد په رؤيت سره رؤيت قلبى او علمى دى نودآيت مقصد دادې چه آيادوئ غورنه کوى او په دى نه پوهيږى چه الله ﷻ څنګه پخپل قدرت کامله سره مخلوق دَعدم نه وجودته راوستلو،چه ابتداء د منى قطره وه بيا مضغه بيا علقه او بيا ئې باهر دنيا ته راوستلو دغه شان ئې په دوباره پيداکولوهم قادردې.چه انسان ئې بې دَنمونې نه اول ځلى پيداکړيدې نودويم ځل ئې هم پيداکولې شې داکارالله ﷻ ته ډيرآسان دې﴿ثُمَّ يُعِيدُهُ﴾دا عطف دې په "الم يروا" باندې اوجمله مستانفه ده او عطف په'كيف يبدالله'باندې ندې لکه څرنګه بعض خلکو ګمان کړې دې،څکه کچرى دا عطف په "كيف"باندې شي نو دَ"الم يروا"ماتحت به شي،حالانکه دا صحيح نه دى،څکه که دررؤيت نه مراد رؤيت بصرى شي نو اعادى رؤيت بالکل ممکن ندې .اوکه دَرؤيت نه مراد رؤيت قلبي او علمي شي نو څکه ندې صحيح چه مقصود دلته ثبوت دَاعادى دې په قياس سره احوال د.مبدا باندې .نوکچرى اعاده اول نه معلوم وي نوبيا خو تحصيل د حاصل راځي نو دَدى وجى نه دا جمله مستانفه ده عطف ده په"الم يروا" باندې ﴿قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ﴾ دا دليل افاقى دې په بعث بعد الموت باندې .يعنى دَخپل ځان نه علاوه دَنورومخلوقاتوپه پيدائش کښ غوراوکړئ دَالله ﷻ په زمکه کښ اوګرځئ،سترګى وغړوئ چه الله ﷻ څنګه مخلوقات پيداکړيدې.دغه الله ﷻ به ئې دوباره بياهم پيداکوى. ﴿يُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ﴾ داتخويف او ترغيب دې يعنى ورستودَپيداکولونه به چاته چه ئې خوښه شي عذاب بهٔ هم ورکوى چه هغه منکرين دى اوچاته ئې چه خوښه شى نورحم به پرى اوکړې چه اقرارکونکى دى په بعث او هرکله چه مقصود اصلى پدى ايتونوکښ تخويف ووُ منکرينو دَبعث نه نودَدى وجى ذکر دَعذاب مقدم شو ﴿وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ﴾پديکښ اشاره دعدم تدبير ته دَبچ کيدلو دَعذاب نه يعنى منکرين دَالله ﷻ دَعذاب نه دَبچ کيدلو څه بدبير هم نشى کولې .يعنى چاته چه الله ﷻ

عذاب ورکوی نوهغه دالله ﷻ نه چرته خلاصیدلی نشي.نه په زمکه کښ پټیدلې شي نه په آسمان کښ اونه ورسره څوك مددکولې شي.﴿فَانظُرُوا كَيْفَ بَدَأَ الْخَلْقَ﴾ددینه مراد عام حیوانات .نباتات وغیره دی.اوهرکله چې دا دلیل افاقی دې او ماقبل دلیل انفسي وؤ اوخپل ځان کښ سوچ اوفکر ورستودخپل پیدائش نه کیږی یعنی مستقبل کښ کیږی نو ځکه هلته صیغه د مضارع یعنی''یبدئ'' ذکر شو 'ودا دلیل افاقی دې اودخپل ځان نه علاوه با قی څیزونو کښ فکرپه اول پیدا کړې شوې څیزونه.کښ هم کیدیشی یعنی انسان نه مخکښ چه کوم څیزونه پیدا کړې شویدې په هغی کښ هم سوچ اوفکرکیدیشی او دهغی په احوالو باندې غور کیدی شي نوځکه دماضي صیغه ''بدا''ذکر شوه.

**فائده**.قیاس تقاضا دا ده چه داسی وئیلې شوې وې کیف بدأ الله الخلق ثم ینشئ النشأة ځکه چه اولا د فعل سره فاعل ظاهرا ذکر کیږی او ثانیا ورته داعاده دضمیر کیږی.دلته اولا اسم ضمیر او ثانیا اسم ظاهر ذکر شو.وجه داده چه مقصود اصلی ددی دلائلو نه اثبات دبعث دې نود''نشا''سره اسم د الله تعالی ذکر شو دپاره دتفهیم اوتعظیم اودپاره ددلالت په کمال قدرت باندې او چونکه ماقبل آیتونو کښ ذکر دالله تعالی شوې وؤ،نوددی وجی نه ''بدا''کښ اکتفا په ضمیر اوشوه.

﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ﴾وعیدشدیده دې کافرانوته چه دوئ به دقیامت په ورځ دالله ﷻ درحمت نه نااُمیده وی اودوئ لره به درناك عذاب وی.﴿فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ﴾یعنی دابراهیم ﷺ دتبلیغ جواب قوم داورکړوچې یوبل ته ئی اووئیل چه یائی قتل کړئ یائی اورکښ اُوسوځوئ،نواُورکښ ئی واچولومګرالله ﷻ ورته اورګل ګلزارکړو،سورة الانبیاء کښ ئی واقعه تفصیلاً تیره ده.﴿فَمَا كَانَ جَوَابَ﴾دحضرت ابراهیم ﷺدناصحانه دعوت په مقابله کښ قوم دحضرت ابراهیم ﷺدقتل اوسوزولو مشوره اوکړه.اوکه څوك اشکال اوکړې چه دحضرت ابراهیم ﷺقتل یااور کښ سوزول خو جواب دهغه دخبر ندې نو څرنګه ورباندې په قرآن کښ اطلاق دجواب اوشو.نوامام رازی رحمه الله ترینه دوه جوابونه کړیدې(۱)دا چه دابراهیم ﷺقوم ډیر متکبر او معاندوؤ.اوکلام د متکبر په دسی محل کښ اګر چه جواب نوی خو جواب شمارلې شی.لکه یو سړې دخپل دښمن استاذی(قاصد) ته اوائی

چه ستاد خبری جواب صرف توره ده (توپک وز دي) یعني مطلب داوی چه زه تاسره نوری خبرې کول نه غوارم او مقابله درسره کوم نو دا ابراهیم ﷺ قوم هم ډیر معاند او متکبر وؤ نو ابراهیم ﷺ ته ئی دهمکی اودمقابلی چلینج ورکړو (۲) دادي چه غیر جواب په معرض دجواب کښې ذکر شو، پدیکښې اشاره ده چه دوئی سره بالکل جواب نوؤ، په خلاف دهغه کس نه چه هغه دجواب ورکولونه خاموش شي نوهلته امکان وی چه کیدیشي دی کس سره ددی خبری جواب وی، خودې دغی خبري ته عدم التفات دوجی نه جواب ورکول نه غواړي خو چه کله جواب ورکړی اوجواب غیر وی نوپته اولګي چه دې کس سره ددی خبری جواب اصلا نشته نو دلته هم چه کله دقوم خبره چه جواب نوو، په معرض د جواب کښې ذکر شوه نومعلومه شوه چه دوئ سره اصلا جواب نوؤ. ﴿ٱقۡتُلُوهُ أَوۡ حَرِّقُوهُ﴾ "او" په معنی د بل سره دې او تحریق کښې چونکه قتل په اذیت شدیده سره وي نو ددی وجی نه دا مستقل ذکر شو او ترقي پکښې او شوه او صاحب دروح المعاني فرمائي چه قتل "نه مراد په توری یا په بل آله سره قتل کوول دی اوتحریق نه مراد قتل په اور سره دې نو لهذا "او" تنویع دپاره دي. نور تفصیل په سورت الانبیا کښې تیر شویدې

﴿وَقَالَ إِنَّمَا ٱتَّخَذۡتُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ﴾ یعني کله چې ابراهیم ﷺ ته اورنه نجات میلاؤشو صحیح سالم راووتلونوقوم ته ئی بیادعوت ورکړودتوحید، ﴿مَّوَدَّةَ﴾ مفعول له دې د ﴿ٱتَّخَذۡتُم﴾ یعني تاسودابتان معبودان نیولي دي لپاره د دوستئ قائمولو په مینځ ستاسو کښې، یعني چه پارټی موجوړه شي، دعام خلکومزاج لکه څرنګه دې چې د یوی پارټی خلک او د یوی نظرئی خلک یو بل سره محبت کوی یادامعنیٰ ده چه تاسویوبل سره محبت پوجه دوئ معبودان نیولي دی حقیقت کښې موڅه نظریه نشته دې، لکه یوسړی یوکس سره محبت ساتی هغه چه کوم کارکوی نودي هم کوی نودغه شان تاسود خپلو متبوعنیو سره د محبت د وجی نه د دی بتانو عبادت کوئ (روح وغیره).

﴿ثُمَّ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ﴾ یعني دنیاکښې خوتاسویوه پارټی یئ خوآخرت کښې به بیاپه یوبل لعنت کوئ دوستئ به موپه دشمنې سر بدله شي لکه سورت اعراف ایت نمبر ۳۸ اونورو سورتونو کښې ذکر دی، اوټکانه به موجهنم وي، ﴿فَـَٔامَنَ لَهُۥ لُوطٞ﴾ لوط علیه السلام د ابراهیم علیه السلام

وراره وؤ. اول دَشروع نه مؤمن وؤ. ځکه چه انبیا کرام قبل النبوت دګناه کبیره او شرک ،کذب نه معصوم وي نولهذا دَ"امن"نه مراد "اظهر ایمانه" دی او یاترینه مراد تابع کیدل دی،یعنی دَابراهیم علیه السلام تابع شو خپل ځان ئی ابراهیم علیه السلام خدمت ته وقف کړو. ﴿وَقَالَ إِنِّي مُهَاجِرٌ﴾قائل داکثرو په نیزابراهیمﷺ دي.﴿إِلَىٰ رَبِّي﴾ای الی الجهة التی امرنی ربی بالهجرة الیها(روح)یعنی هغه طرف ته هجرت کوم،کوم طرف ته چه ماته رب امرکړیدي،یاهغه ځائ ته هجرت کوم چه رب په عبادت کښ ماته مانع نه وي.﴿إِنَّهُ هُوَ الْعَزِيزُ﴾الله غالب دي ماته به دَدشمن نه نجات راکوی، ﴿الْحَكِيمُ﴾دي ماته به هغه امرکوی چې ماته پکښ خیروی.روایت دي چه ابراهیمﷺ دَلوطﷺ اوبی بی ساری سره دکوفی دَیوښار،کوثی،نه حران ته هجرت اوکړو،بیادَدغه ځائ نه شام ته،بیاابراهیمﷺ فلسطین ته لاړواولوطﷺ سدوم ته لاړو،دَابراهیمﷺ عمرپدغه وخت کښ(۷۵)کاله وؤ(روح المعانی).

﴿وَوَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ﴾یعنی اسحاقﷺ په شان ځوی موورته ورکړواودَهغه نه یعقوبﷺ پیداشوچه دَبنی اسرائیلونیکه وؤ،ټول انبیاء دَده په نسب کښ پیداشول اوکتابونه پری نازل شول ﴿وَآتَيْنَاهُ أَجْرَهُ فِي الدُّنْيَا﴾اجردنیوی نه مرادنجات دي دَاورنه،اودَملك جبّارنه،او اولاد صالحه دی.اودغه شان ذکرخیردي چه دَهرمذهب والاخلق ئی تعریف کوی.﴿وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ﴾ دا تخصیص بعد التعمیم دي یعنی په آخرت کښ به ئی شمارپه هغه کاملونیکوکاروکښ کیږی چه په اعلی درجاتوبه فائزوی.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلُوطًا | إِذْ | قَالَ | لِقَوْمِهِ | إِنَّكُمْ | لَتَأْتُونَ | الْفَاحِشَةَ | مَا سَبَقَكُمْ بِهَا | |
| اولیږلي وؤمونږلوط کله ئی چه اووئیل خپل قوم ته،بیشکه تاسوراتله کوئ قبیح کارته،نه دي کړي مخکښ ستاسونه داکار | | | | | | | | |
| مِنْ | أَحَدٍ | مِنَ | الْعَالَمِينَ ⑱ | أَئِنَّكُمْ | لَتَأْتُونَ | الرِّجَالَ | وَتَقْطَعُونَ | السَّبِيلَ |
| هیڅ | چا په | خلقوکښ | آیاتاسوراتله | کوئ | سړوته | اولوټ | کوئ | لارې داکی کوئ |

وَتَأْتُوْنَ فِيْ نَادِيْكُمُ الْمُنْكَرَ ۗ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوا ائْتِنَا

اوراتله كوئ په خپلومجلسونوكښ بې حياكارونه،پس نه وؤجواب دقوم دده مګردا چه وئيل ئې

بِعَذَابِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۲۹﴾ قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ عَلَى الْقَوْمِ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۳۰﴾

راوړه مونږته عذاب دالله ﷻ كچرته ئې ته درشتنونه. اووئيل لوط ﷺ اې ربه خمامدداوكړه خما په قوم مفسدانوباندې.

وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَآ اِبْرٰهِيْمَ بِالْبُشْرٰى ۙ قَالُوْٓا اِنَّا مُهْلِكُوْٓا اَهْلِ

اوكله چه راوړو فرشتو زمونږابراهيم ﷺ ته زيرې اووئيل هغوئ چه بيشكه مونږهلاكونكې يواهل

هٰذِهِ الْقَرْيَةِ ۚ اِنَّ اَهْلَهَا كَانُوْا ظٰلِمِيْنَ ﴿۳۱﴾ قَالَ اِنَّ فِيْهَا لُوْطًا ۗ

ددې كلې بې شكه دي كلي ولا دي ظالمان اووئيل ابراهيم ﷺ بيشكه پدې كښ لوط ﷺ دې.

قَالُوْا نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَنْ فِيْهَا ۫ لَنُنَجِّيَنَّهٗ وَاَهْلَهٗٓ اِلَّا امْرَاَتَهٗ ۫

هغوئ ورته اووئيل مونږښه خبريو په هغه چاچه پدې كښ دي، خامخانجات به وركړومونږلوط ته او اهل دده ته مګرښځه دده، ده

كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۳۲﴾ وَلَمَّآ اَنْ جَآءَتْ رُسُلُنَا لُوْطًا سِيْٓءَ

دباقې پاتې كيدونكونه په عذاب كښ،اوكله چه راغلې فرشتې زمونږلوط ﷺ ته نوخفه شودهغوئ

بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا وَّقَالُوْا لَا تَخَفْ وَلَا تَحْزَنْ

په راتلواوتنګ يې شوپه هغوئ زړه،اوفرشتوورته اووئيل مه يريږه په ځان اومه خفه كيږه

اِنَّا مُنَجُّوْكَ وَاَهْلَكَ اِلَّا امْرَاَتَكَ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۳۳﴾ اِنَّا

په مونږبيشكه مونږنجات دركونكې يوتاته او اهل ستانه مګرښځه ستا،ده هغه دپاتې كيدونكونه په عذاب كښ بيشكه

مُنْزِلُوْنَ عَلٰٓى اَهْلِ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۳۴﴾

مونږنازلونكې يوپه اهل ددې كلي عذاب دآسمان نه په سبب ددې چه دوئ بدكارې كوې.

وَلَقَدْ تَّرَكْنَا مِنْهَآ ءَايَةًۢ بَيِّنَةً لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ۝

او يقيناً مونږ پريښې ده د هغې کلي نه نخه واضحه لپاره د داسې قوم چه عقل لري.

﴿وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِۦٓ﴾ دا دريمه قصه ده د اولى دعوې سره متعلق ده ﴿لَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ﴾ يعنى انتهائى قبيح کار کوئ چه ستاسو نه مخکښ چاندې کړې، مراد ورنه لواطت دې ﴿مَا سَبَقَكُم بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِّنَ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ پديکښ اشاره ده کمال قبح د لواطت ته چه ټول عالم د دې په قبح باندې متفق دی، طبع سليم د دېنه نفرت کوی، حتى چه حيوانات هم ترينه نفرت کوی.

فائده: علما فرمائي چه خنزير نجس العين دې، يوه عقلى وجه د نجاست دا هم ده چه دی ديوث دې، د ده د زنانه سره که بل څوک بدکاري کوی نو دې پرې نه خفه کيږې خو کچرى د ده سره څوک بدکاري کوي نو دې خفه کيږى، نو هغه انسان د خنزير نه هم بدتر دې چه څوک ورسره بدکاري کوى او دې نه خفه کيږې.

﴿أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ ٱلرِّجَالَ﴾ دا تفصيل د "فاحشة" د ﴿وَتَقْطَعُونَ ٱلسَّبِيلَ﴾ د دی ايت څو معانى کړې شويدې يوه دا معنى ده چې په لاره کښ مسافر ر انيسئ او دغه بى حياکار ورسره کوئ نو خلق پدغو لارو نه راځى (۲) يا دا معنىٰ ده چې خلق لوټ کوئ او قتل کوئ (۳) بعض وائى قطع السبيل نه مراد قطع د نسل ده، چه د ښځو نه اعراض کوئ او رجالُ ته اتيان کوئ (روح).

﴿وَتَأْتُونَ فِى نَادِيكُمُ ٱلْمُنكَرَ﴾ پديکښ اشاره ده د قوم لوط نورو بدو کارونه ته، په روايت ده ترمذى کښ دى چه ام هانى رضى الله عنها فرمائى چه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د دی ايت په باره کښ تپوس اوکړو چه د دی څه مطلب دی، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه "يخذفون اهل الطريق ويسخرون منهم وذلك المنكر الذي كانوا يأتونه" يعنى دوئ به په لارو کښ ناست وو، مسافر به ئې په کاڼو ويشتو او په هغو پورى به ئې ټوقې کولې. امام بغوى رحمه الله نقل کړې چه قوم لوط به د مسافرو په لارو کښ ناست وو، پيالـه کښ به ورسره واړه واړه کاڼې وو، کوم مسافر به چه تيريدلو نو دوئى به پدى کاڼو باندې ويشتلو چه د چا کاڼى به په هغه مسافر باندې اولګيدلو نو هغه به د هغه مسافر نه سامان واخستلو، او بدفعلى به ئې ورسره اوکړه او مفسرينو ليکلى دی چه

په دونی کښ دَ کفر نه علاوه لس قسمه گناهونه موجود وو.(۱) نارینو سره بدکاری (۲)بربنه گرځیدل.(۳)گیری خرئیل اوؤئیلی شویدي چه دَ گیری خرئیل عمل دَ ټولونه اول قوم لوط کړي وو،او وجه ئي داده چه په وړکوالی کښ به دیوکس سره بدکاري اوشوه نو چه کله به لوئ شو اوگیره به ئی راغله نو بیا به ورته چا توجه نه ورکوله.نو شیطان دوئی ته دَ گیری خرئیلو مشوره ورکړه او طریقه ئي ورته اوخودله.چه تاسو خپلی گیری خرئي نو بیابه خلک توجه درکوی نودوئ گیری خریل شروع کړل.(۴)کانړی ویشتل(۵)داکه کول(۶)سرعام تیزونه اچول(۷)شپیلئ وهل (۸)نکریزي لگول(۹)توقی مسخرې کول او(۱۰) شطرنج او نردکول،بعضو پکښ داهم وئیلي دی چه دوئی به په یوبل باندې توکی (لاړی) اچولی.اوبعضومفسرینو لکلی دی (۱۲)چه دوئ به ژاولی جولی یعنی "مضع العلك" او بعضو پکښ کونترو لبول هم ذکر کړي دی.(حازن وغیره) ﴿فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ﴾لوط ﷺ ته قوم جواب ورکړوچه مونږدابدفعلي نه پریدوکچرته ته صادق ئی چه پدی فعلِ بدپوجه په مونږعذابِ الهی راځی نوهغه عذاب دی په مونږراشی،لوط ﷺ چه دَدوئ نه نااُمیده شولونودَالله ﷻ نه ئی دَدوئ دَهلاکت درخواست اوکړو،دَلوط ﷺ په دعافرشتوته دَدغی بستئ دَتباه کولوحکم اوشو،فرشتې اول دَابراهیم ﷺ خواته راغلې،اول ئی هغه ته دَخوی(اسحاق)دَپیداکیدلواودَلمسی (یعقوب ﷺ) زیرې ورکړو،کمافی سورة هود(۷۱)فبشرنا ها باسحاق ومن وراء اسحاق یعقوب،بیائی ورته اطلاع ورکړه چه مونږبستی دَقومِ لوط یعنی سدوم تباه کولولپاره ځو،ځکه چې دغه خلق دَخپل بدفعل نه نه منع کیږي.

او که اشکال اوکړې شي چه دَدی ایت تعارض دې دَ ایت نمبر ۸۲دَ سورت الاعراف اوایت نمبر۵۶ سورت نمل سره ځکه چه هلته دوئ جواب په حصر سره دَ لوط علیه السلام دَ خپلی علاقی نه اخراج ذکر شویدې ،او دلته جواب په حصر سره مطالبی دَ عذاب سره ذکرشو نو جواب ترینه دا شویدې چه دَلوط علیه السلام قوم اول مطالبه دَعذاب اوکړه ،او بیائی حضرت لوط علیه السلام ته دَ علاقی نه دَ ویستلووهمکی ورکړه،نو دلته ذکر اول ځیز دی چه مطالبه دَ عذاب ده او په نورو سورتونو کښ ذکر دَ دویم ځیز دې چه دَ علاقی نه ویستلودهمکی ده ،نو لهذا تعارض نیشته دې او قرینه په دی تقدیم او تاخیر

باندې (چه مطالبه دَ عذاب اول وه.او دَ علاقی نه دَاخراج دهمكي ورستو وه)قرينه عقليه ده ،چه مضمون دَ كلام دې څكه چه دَ وعظ او نصيحت په مواقعو كښې اوّل دَ منكرينودَ طرف نه استهزا او مطالبه دَ نبی نه شويده،او بيائی پيغمبر ته تكليف رسولی دې.او هغه ئی دَ علاقی نه په ويستلو باندې مجبور كړيدې.او بعض خلكو داجواب كړيدې چه په دواړو مواضعو كښې حصر اضافی دې چه كله لوط عليه السلام دوئ دَ الله دَ عذاب نه اويره ول نو دوئي دَ ځان په باره كښې دا جواب وركړوچه عذاب دی راشی.او دَ لوط عليه السلام دَ وعظ او نصيحت په مقابله كښې د هغه دَپاره ئی اخراج جواب وركړو.او بعض حضرات فرمائي چه دَ اخراج جواب دَرؤساءدقوم دې.اومطالبی جواب دَ عامو خلكو دی.﴿ قَالَ رَبِّ ٱنصُرۡنِي﴾ مراد دَ نصرت نه انزال دَ عذاب موعوده دې.اوحضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه دَ انبياءكرامو دابددعاګانی دحلم او كرم او دَهغوئي دَ اخلاق عظيمه سره مخالف ندې څكه چه دا بددعاګانې ورستو دَاذيتونو دَ هغوی اودَمايوسئ دَايمان دهغوئ نه ،دی.

﴿وَلَمَّا جَآءَتۡ رُسُلُنَآ﴾ پديكښې ذكر دَ قبوليت دَ دعا دَ حضرت لوط عليه السلام دې.

﴿بِٱلۡبُشۡرَىٰ ﴾ مرادترينه زيرې دې په ولد سره چه اسحاق عليه السلام دې ،او په لمسی سره چه يعقوب عليه السلام دې .لكه دَ دی ذكر په سورت هود ايت نمبر ۷۱دې اوياترينه زيرې وركول دی په نصرت دَ لوط عليه السلام سره."هي بشارة بولده اسحاق وبنافلته يعقوب ،وبنصره لوط علي قومه واهلاكهم(بحر)﴿ إِنَّا مُهۡلِكُوٓاْ أَهۡلِ هَٰذِهِ ٱلۡقَرۡيَةِ ﴾دا دويم بشارت وضاحت دې ،چه مونږ دا قريه يعني سدوم والا خلک هلاک كوؤ.﴿إِنَّ أَهۡلَهَا كَانُواْ ظَٰلِمِينَ ﴾.پديكښې تعليل دَ هلاكت ته اشاره ده او دلته داسی اونه وئيلې شو "وهم ظالمون" لكه په واقعه دَ نوح عليه السلام كښې وئيلی شوی وؤ،څكه چه مقصود پدی سره اشاره ده چه دوئ ټول پدی عمل باندې متفق او راضی وؤ.او څوک پكښې هم مخالف يا ددی بد عمل نه بچ نه وؤ.او بعض حضرات فرمائي چه پديكښې اشاره ديته ده چه دا بدعمل دَ دوئ نه ايجاد شوې وؤ.او دوئ په دی باندې مصر وؤ.(كشاف+روح)

﴿قَالَ إِنَّ فِيهَا لُوطٗا ﴾مقصددَابراهيم ﷺ تعجب دې چه الله ﷻ خوداسی قوم نه

هلاكوى چه پيغمبرپكښى موجودوي نودوئ څنګه هلاكيږي،آيادده په موجودګئ كښى به پرى عذاب راځى اوكه دهغه دوتلونه ورستوبه هلاكيږي نوفرشتو ورته اوئيلو چه مونږدهغه باره كښى خبريوهغه اواهل ته بئ نجات وركړو،دده دوتلونه ورستوبه پرى عذاب راځى او ياداكلام دحضرت ابراهيم عليه السلام نه علي سبيل التفجع والتحزن صادر شويدي ،دوجى دكمال شفقت او محبت نه لوط عليه السلام سره لكه په سورت ال عمران كښى د امراءة عمران قول ذكر شويدي چه رب اني وضعتها انثى نودغه شان حضرت ابراهيم عليه السلام هم على سبيل التفجع اوئيل چه هلته خو خماوراره لوط عليه السلام هم دي نوفرشتو ورته اول دهغه متعلق دخپل علم اظهار اوكړو چه مونږ ته پته ده چه لوط عليه السلام هلته دي،اوبيائي دهغه اودهغه اهل ته دنجات وركولو خبروركړو.بعض وائى چه مقصد د ابراهيم عليه السلام په قوم باندي تاخير د عذاب پاره درخواست دي .په دى اميد چه دا قوم به ايمان راوړى او علت ئي د تاخير د پاره وجود د لوط عليه السلام ذكر كړو لكه په سورة هود ايت نمبر ۷۵.۷۴ كښى دى.نو پدى اعتبار د فرشتو جواب پدى ځائي كښى اجمالى ذكر شويدي ،او تفصيلى جواب ئي په سورة هود ايت نمبر۷۶كښى ذكر دي،اوبعض فرمائى چه ﴿إِنَّ فِيهَا لُوطًا﴾اعتراض دي په فرشتوچه تاسووايئ چه﴿إِنَّ أَهْلَهَا كَانُوا ظَالِمِينَ﴾ حالانكه دى كښى لوط عليه السلام هم دي هغه خوظالم ندي(روح).

﴿وَلَمَّآ أَن جَآءَتْ﴾فرشى چه كله ابراهيم عليه السلام سر د خبرو،ترونه فارغه شوي نولوط عليه السلام ته راغلي او چونكه د دوئي صورتونه د انسانانو وؤ،اوډيرخائسته وؤ،نولوط عليه السلام د دوئي په راتلو باندي پريشانه شو،ځكه چه دخپل قوم عادت ورته ښه معلوم وؤ.او"ان"په دى ځائى كښى زائد دي دپاره د تاكيد د ترتيب د يوفعل په بل باندي،يعنى پديكښى اشاره ده چه خفګان دلوط عليه السلام متصل وؤ د راتللو د فرشتو سره.

﴿وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا﴾"ذرع"كنايه ده دطاقت نه نو مطلب دا دي چه لوط عليه السلام ددى ملائكو چه انسانى صورت كښى راغلي وي،دحفاظت په باره كښى پريشان شو چه ددوئ حفاظت به څه تدبير كوم.لوط عليه السلام د دى طاقت نه عاجزه وؤ.

﴿وَقَالُواْ لَا تَخَفۡ وَلَا تَحۡزَنۡ﴾ "خوف" هغي كيفيت او حالت ونيلې كيږي چه دَ تكليف دَ واقع كيدلونه اول وي، او "حزن" هغي ته ونيلې كيږي چه دَ تكليف دَ واقع كيدلو په وخت كښې يا دَتكليف دَ واقع كيدلونه ورستو وي لكه يومجرم ته سزا اورولونه مخكښې هغه ته چه كوم تكليف وي هغي ته خوف ونيلې كيږي، او چه كله ورته سزا واورولې شي، دهغي دَ وجې نه كوم پريشاني او تكليف وي هغي ته حزن ونيلې شي، نو لوط عليه السلام ته فرشتو اوئيل چه ته په دې مه ويريږه چه دوئې به په مونږ باندې قدرت حاصل كړي او مه دا غم كوه چه دوئ به زمونږ قصد اوكړي، يعنې دوئ مونږ طرف ته راتلې هم نشي . او بعض حضرات فرمائي چه نفي دَ خوف ئي دَ خپل ځان په اعتبار سره كړيده چه زمونږ په باره كښې مه ويريږه او نفي دَ حزن دَ قوم په اعتبار سره كړيده چه مونږ اوس ستاددې قوم سره څه كونكې يو په هغې مه غمژن كيږه.

﴿رِجۡزٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ﴾ "رجز" خپله اصلي معنى بې قرارى ده دلته ترينه مراد سخت عذاب دې او دغه عذاب په صورت دصيحې كښې، كاڼرو باران اوزمكې الته كيدلوكښې وؤ. تفصيل په سورة هود كښې تير شوې دې.

| |
|---|
| وَإِلَىٰ مَدۡيَنَ أَخَاهُمۡ شُعَيۡبٗا فَقَالَ يَٰقَوۡمِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ وَٱرۡجُواْ |
| او ليږلې وؤمونږ اهل دَمدين ته ورور دَ دوئ شعيب ﷺ، پس هغه اوونيل اې قومه خما عبادت كوئ دَ الله ﷻ او اوويريږئ |
| ٱلۡيَوۡمَ ٱلۡأٓخِرَ وَلَا تَعۡثَوۡاْ فِي ٱلۡأَرۡضِ مُفۡسِدِينَ ۝ فَكَذَّبُوهُ فَأَخَذَتۡهُمُ |
| دَعذاب دَورځې دَآخرة نه او مه ګرځئ په زمكه كښې فسادكونكې، پس تكذيب ئې اوكړو دَشعيب ﷺ نو اونيول هغوئ لره |
| ٱلرَّجۡفَةُ فَأَصۡبَحُواْ فِي دَارِهِمۡ جَٰثِمِينَ ۝ وَعَادٗا وَثَمُودَاْ |
| زلزلې نو اوګرځيدل په كورونوخپلوكښې پرمخې مړه پراته وؤ، او هلاك كړيدې مونږعاديان اوثموديان. |
| وَقَد تَّبَيَّنَ لَكُم مِّن مَّسَٰكِنِهِمۡ وَزَيَّنَ لَهُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ أَعۡمَٰلَهُمۡ |
| او يقيناً واضحه شويدې تاسو ته هلاكت دَهغوى، دَكورونو دَهغوئ نه، او ښائسته كړې وؤ دوئ ته شيطان بد عملونه دَدوئ |

فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ وَكَانُوْا مُسْتَبْصِرِيْنَ ۝٣٨ وَقَارُوْنَ وَفِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ

نومنع كړې ئې وؤدسمې لارې نه اووؤ دوئ شبه هوښياران.اوهلاك كړي وؤمونږقارون اوفرعون اوهمان.

وَلَقَدْ جَآءَهُمْ مُّوْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ فَاسْتَكْبَرُوْا فِى الْاَرْضِ وَمَا كَانُوْا سٰبِقِيْنَ ۝٣٩

اويقيناراغلې وؤدوئ ته موسى عليه السلام په واضحو معجزوسره نوتكبرئې اوكړوپه زمكه كښې اونه وؤ.دوئ بچ كيدونكي زمونږنه.

فَكُلًّا اَخَذْنَا بِذَنْۢبِهٖ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا ۚ

نوهريوئې نيولې وؤمونږ په سبب دګناه خپل.نوبعضې ددوئ نه هغه وؤچه ليږلې وؤمونږپه هغه باران دګانړو.

وَمِنْهُمْ مَّنْ اَخَذَتْهُ الصَّيْحَةُ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ خَسَفْنَا بِهِ الْاَرْضَ ۚ وَمِنْهُمْ

اوبعضې هغه وؤچه اونيول هغوئ چغې دجبرئيل،اوبعضې هغه وؤچه ژوندي موخخ كړل په زمكه كښې.اوبعضې ددوئ نه

مَّنْ اَغْرَقْنَا ۚ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ۝٤٠

هغه وؤچه مونږغرق كړل.اونه وؤالله تعالى چه ظلم ئې پرې كړې وؤليكن هغوئ پخپلوځانوپخپله ظلم كولو.

﴿وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا﴾داخلورمه قصه ده ددويمې دعوى سره متعلق ده،چه دمشركانوداخيال باطل دې چه زمونږدګرفت نه به بچ شي،قوم شعيب چه طاقتوراوتجارتي قوم وؤ،چې دشعيب عليه السلام تكذيب ئې اوكړونوعذاب مووربانديې نازل كړو او وَإِلَىٰ مَدْيَنَ متعلق دې د " ارسلنا"مقدره سره او هر كله چه د قوم نوح ،قوم ابراهيم عليه السلام او قوم لوط عليه السلام دپاره مخصوص اسم نوو نوددې وجې نه ئې دهغې قومونو د واقعاتو په بيان كښې دپيغمبر نوم،قوم ته مضاف كړې شويدې اوقوم شعيب عليه السلام دپاره مخصوص نوم موجود دې نو ددې وجې نه اولا د هغې قوم نوم ذكر شو چې مدين دې دپاره دتعين او اضافت ورته د"اخا"اوكړې شو. ﴿وَٱرْجُوا۟ ٱلْيَوْمَ ٱلْـَٔاخِرَ﴾يامضاف مقدردې اى وارجوثوابَ يوم الاخرداّخرت دثواب اميد اوساتئ.يا"رجا"په معنى دخوف دې يعنى اويريږئ دعذاب ورځې دقيامت نه كچرته دالله تعالى عبادت مو اونكړو﴿فَكَذَّبُوهُ﴾حضرت شيخ رحمه الله

فرمائي چه تکذيب نه مراد نفس تکذيب ندې مراد .خکه چه نفس تکذيب خو ابتداء کښې موجود وو .دهغې وجې نه هلاکت نوؤراغلې بلکه مراد ترينه "اصرار على التكذيب" دې .نو "فكذبوه" معنى ده "اَصِرُّوْ عَلَى الْتَكْذِيبِ" او "رجفة" نه مراد يا زلزله ده چې فرشې په چيغه سره راغلې وه او ياترينه فرشتې اواز او چيغه مراد ده چه سبب د رجفې او زلزلې دپاره وو .باقي تفسير په هود ،اعراف کښې تيردې

﴿وَعَادًا وَثَمُودَا﴾ اى واهلكناعاداًوثمودَ .داپنځمه .شپږمه قصه ده ،دواړه د دويمې دعوې سره متعلق دى ،چه دادواړه قومونه هم زمونږ دعذاب نه بچ نه شول ددوئ تباه شوى کنډرات ستاسو لپاره دعبرت نشانى دى ،﴿وَكَانُواْ مُسْتَبْصِرِينَ﴾ يعنى عقل مندوؤ .حق باطل مينځ کښې ئې تميزکولې شوليکن ددې باوجودشيطان دهوکه کړل دسمې لارې نه ئې واړه ول يعنى عقل پکښې وؤ خودين په باره کښې ئې شيطانى ونفسانى خواهشاتوته ترجيح ورکړه نوځان ئې هلاک کړولهذا دا اعتراض نه واردېږى چه دى کفاروته په بل ځائې کښې صفت "لا يعقلون" کړې شويدې اودلته ورته "مستبصرين" اوئيلې شو .داخو تعارض دې نوجواب ترينه هم دادې چه ددنيا په باره کښې ډير هوښيار وؤ ،خو ددين په باره کښې ئې دعقل نه کار وانخستو او شيطان دهوکه کړل ،يادامعنى چه کتونکى وؤچه عذاب راباندى راتلونکې دې ليکن بياهم دضدپوجه دکفرنه نه منع کيدل حتى چه هلاك شول.

﴿وَقَـٰرُونَ وَفِرْعَوْنَ وَهَـٰمَـٰنَ﴾ دا اومه ،اتمه ،نهمه ،واقعه ده ،داهم ددويمې دعوى سره متعلق دې ،چه دوئ ته موسى ﷺ واضحې معجزې پيش کړې ليکن دوئ د دولت اوحکومت په نشه کښې مست وؤ دموسى ﷺ تکذيب ئې اوکړو ،درې واړه الله ﷻ هلاك کړل ،

﴿وَمَا كَانُواْ سَـٰبِقِينَ﴾ اى فائتين يعنى زمونږ دعذاب نه بچ کيدونکى نه وؤ ،يادامعنى چه دوئ سابق فى الكفرنه وؤبلکه ددوئ نه مخکښې هم ډيروخلقوکفرکړې وؤچه پدغه وجه مونږ هلاك کړې وؤ (قرطبى ،بحر) ﴿فَكُلًّا أَخَذْنَا بِذَنبِهِۦ﴾ "كلا" منصوب دې دقبيلې د "مااضمر عامله على شريطة التفسير" نه دې اي فاخذنا كلّا اخذنا بذنبه الخ يعنى

هريو مودَ دوئ نه په مناسبي سزاسره اونيولو ﴿فَمِنۡهُم مَّنۡ أَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِ حَاصِبًا ﴾مراددينه قوم عاددي،چه تيزى هواعذاب ورباندى راغلي وؤ،كانړى به ئى اوچتول پدوئ به ئى ورو ول،بالاخردومره تيزه شوه چه خلق به ئى اوچتول وريځو پورى به ئى رسول،پرمخى به ئى راغورځول،كقوله تعالى:تنزعُ النّاس كانّهم اعجازنخلٍ منقعرٍ(قمر:۲۰)بعضِ وائى دينه قوم لوط مراد دي چه باران دكانړوپرى شوي وؤ ليكن ابن كثيرﷺ دَدى ترديدكړيدى اوابن عباس﷜ته منسوب قول ته ئى منقطع وئيلى دى﴿وَمِنۡهُم مَّنۡ أَخَذَتۡهُ ٱلصَّيۡحَةُ ﴾دينه مرادقوم ثمود دي،﴿وَمِنۡهُم مَّنۡ خَسَفۡنَا ﴾قارون ورنه مراددي،﴿وَمِنۡهُم مَّنۡ أَغۡرَقۡنَا ﴾فرعون ورنه مراد دي،دى ټولوباندي الله ﷻ ظلم نه وؤكړي بلكه پخپلوځانونوئى ظلم اوكړوچه دَانبياؤتكذيب ئى اوكړو اوهلاك شول.

مَثَلُ الَّذِينَ اتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ أَوْلِيَاءَ كَمَثَلِ الْعَنكَبُوتِ اتَّخَذَتْ بَيْتًا ۖ وَإِنَّ أَوْهَنَ

مثال دَهغوچه نيولي ئى دي ماسوى دَالله ﷻ نورخدايان په شان دَجولاګى دى،چه جوړكړي كور،اوبيشكه ډيركمزوري

الْبُيُوتِ لَبَيْتُ الْعَنكَبُوتِ ۖ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴿٤١﴾ إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا

په كورونوكښ يقيناً چى كوردَجولاګى دي،افسوس چه دوئ پوهيدلي،بيشكه الله ﷻ ته معلوم دي هغه چه

يَدْعُونَ مِن دُونِهِ مِن شَيْءٍ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٤٢﴾ وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ

عبادت ئى كوى دوئ ماسوى دَهغه نه هرڅيزچه وى،اوالله ﷻ ډير غالب دي حكيم دي،اودغه مثالونه

نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۖ وَمَا يَعْقِلُهَا إِلَّا الْعَالِمُونَ ﴿٤٣﴾ خَلَقَ اللَّهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ

بيانوو ئى مونږخلقوته،اونه پوهيږى پدى مګرعالمان،پيداكړيدي الله ﷻ اسمانونه اوزمكه لپاره دَاظهاردَحق.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٤﴾

بى شكه پدى كښ خامخادليل دَتوحيددي مؤمنانولپاره.

﴿مَثَلُ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا﴾ هر کله چه ماقبل کښې دَهلاک شوؤ قومونو تذکره اوشوه نو اس پدې آیت کښې دَسورة مرکزی دعوه ذکر کیږی، چه دَالله ﷻ نه ماسویٰ هیڅ څوك هم کارسازحاجت روامشکل کشانشته دې، دادعوه په یونهایت واضحه انداز سره بیان شویده. او دا مثال صورت دَتمثیل کښې دې او تشبیه په عدم نفع او په ضعف کښې ده. یعنی کوموخلقو چه دَالله ﷻ نه ماسویٰ بتان خدایان نیولی دی، دهغوئ نه دَنفع امیدساتي کارسازورته وائی داداسی دی لکه عنکبوت چه خان له کورجوړکړي چه په کورونوکښې کمزوري کوردې په معمولي هواسره وران شي، نه گرمی دفع کولې شی نه سړخی، نه پکښې باران نه حفاظت وی نه دَنورَنه، دغه شان دَدوئ معبودان دی چه هیڅ نفع نشی ورکولې، ﴿كَمَثَلِ ٱلۡعَنكَبُوتِ﴾ "عنکبوت" جولا ته وئیلې کیږی "واو" او "تا" پکښې زائد دی خکه چه جمع ئې "عناکیب" راځی. او دَدی مختلف اقسام دی ځنی هغه دی چه هغه زمکه کښې دننه سوری کوی او خان له کور جوړه وی. او ځنی هغه دی چه جالی جوړه وي. دلته ترینه مراد هغه قسم دی چه خان له جالی جوړه وی. ﴿ٱتَّخَذَتۡ بَيۡتٗا﴾ پدیکښې اشاره ده چه دَجولا په جالی باندې اطلاق دَ بیت حقیقتاً ندې، ځکه چه ماده "اتخاذ" په هغه ځائی کښې استعمالیږی چه دَ کوم شی نه ·خبار ورکولې کیږی هغه په حقیقت کښې هغه څیزنوی بلکه دَهغه خیال پری کولې شی نو عنکبوت په خپلی جالی باندې خیال دَ بیت یعنی دَ کور کوی خودا په حقیقت کښې کور ندې، خکه چه دَ کور په ذریعی سره کورولا دَ یخنئ گرمی وغیره تکالیفونه خان بچ ئوی، او عنکبوت دَ خپلی چالی په ذریعی سره دَغه مذکوره امورونه حفاظت دَخان نشی کولې. نودغه شان مشرکین هم دَخان دَپاره یو دین جوړه وي، دَشرک والا او دین نتیجه او شایه دا وی چه سړی پری دَ دنیوی اخروې تولو تکالیفونه محفوظ شی، خو دَشرکی دین په ذریعی سره چرته هم انسان دَتکالیفونه ،نشی بچ کیدلې ﴿وَإِنَّ أَوۡهَنَ ٱلۡبُيُوتِ﴾ پدیکښې اشاره ده وجه دشبهه ته چه لکه څرنگه چه عنکبوت جالی ډیری کمزوری وي او څه خاص فوائد پری نه مرتب کیږی سوا لږشان معمولی فائدی نه چه کله کله پکښې مچ یا ماشی گیرشی او عنکبوت ئې او خوري. نو دغه شان مشرکینو ته هم خپل معبودان باطله څه فائده نشی رسولې سوا دَدینه چه کله کله لږه غوندې دنیوی فائده ترینه واخلی. لکه دَ دی شرکه په

ذریعې سره دَنورو مشرکینو نه دنیوي عزت او پیسې واخلي
او حضرت والد صاحب رحمه الله فرمائی چه دادقبیلې دَتشبیه المرکب بالمرکب نه ده.ځکه چه مشبه هم مرکبه او مشبه به هم،په جانب دَ مشبه به کښې امور متعدده دی او دَهغی نه هئیت انتزاع کړې شویدې،حالت دَعابدانو دې او دَ هغوئی عبادت او بل حالت دَ معبودانودې او جانب دَ مشبه به کښې حالت عنکبوت دې کور جوړول دَهغه دی او محنت او مشقت دی.وجه دَ شبه په دواړو کښې عدم انتفاع ده.نودآیت مقصددادې چه دَ مشرکینو مثال دَ خپلو معبودان باطلو سره داسې دې لکه مثال دَ عنکبوت دَ خپل کورسره نوځرنګه چه عنکبوت دَخپل کور نه فائده نشي اخستلې سوا دَلړشان فائدې نه نو دغه شان مشرکین دَخپلو معبودان باطلو نه هم فائده نشي اخستلې سوا دلړشان فائدې نه.
فائده: دلته دَ مشرکانو دَ شرک تشبیه دَ نسج دَعنکبوت سره ورنکړې شوه،دَدوه۲ وجوهاتو نه (۱) ځکه چه عنکبوت ته پدې نسج کښې فائده ده بغیر دَفوت کولودَمقصوداعظم نه،په خلاف دَمشرکانو ځکه چه اتخاذ دَ اوثانو کښې اګرچه هغوی نه فائده قلیله شته دی خوسردَفوت کولودَ مقصوداعظم نه چه فائده دَآخرت ده.
(۲)دغه شان "نسج" بذات خود امر مفید دی لیکن اتخاذ دَبیت دَدینه امرباطل دی همه دغه شان نفس وجود دَ اوثانو وغیره مفید امر دی چه دلائل اوګرځولې شي په وجود او قدرت دَ الله ﷻ باندې لیکن اتخاذ دَ اولیاء او معبودان جوړول باطل دی،نو ځکه تشبیه مرکبه اختیار کړې شوه.

﴿لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ﴾"لو"شرطیه دی،او دا جمله شرطیه ده او جواب شرط محذوف دې چه "لعلموا انَّ مثلهم"دې. یعنی که دوئ پوهیدلې په څه نوپدې به پوهه شوی وؤ چه زمونږمثال هم داسې دې اوبعضې فرمائی چه "لو" تمنائیه دې یعنی کاش چه پوهیدلې ﴿إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يَدْعُونَ﴾"ما"موصوله دې،﴿مِن دُونِهِ﴾کښې من بیانیه دې او﴿مِن شَيْءٍ﴾کښې زائده دې لپاره دَتاکیدهرمعبودکه ذی روح وی که غیرذی روح، نو دا زجر او تهدید دې په عبادت دَ غیر الله باندې یعنی دوئ چه دکوموبتانوعبادت کوی الله ﷻ پرې عالم دې. الله ﷻ عزیزیعنی قادردی په اهلاك دَدوئ لیکن حکیم دې مهلت ئې ورته ورکړیدې.

ډېرخاص حكمت په بنياد ،بعض وائي چه﴿مَا يَدْعُونَ﴾كښې مانافيه ده. اودا ترقي ده په تمثيل كښې ځكه چه ماقبل كښې مثال دَ عنكبوت په جالې سره وؤ اوس پكښې ترقي شوه چه دَدوئ معبودان ماسوى الله ليس بشي دى نومطلب دادې چه الله عالم دې چه دَدوئ معبودان ليس بشئ دى .هيڅ حقيقت ئې نشته دې ،اوالله ﷻ عزيزحكيم دې،نوعاقل لپاره څنګه مناسب ده چه دَقادرحكيم ذات عبادت پرېدى اودَبې حقيقته څيزونوعبادت كوى(كبير،روح)

**فائده** دَعنكبوت دَقتل كولو په باره كښې مفسرينو نه روايات مختلف مروى دى،بعض روايات په باره دَجواز دَقتل او بعض په عدم جواز باندې دلالت كوي.خودواړو فريقينو روايات ضعيف بلكه موضوعى دى البته دَعنكبوت دَجالو نه كور او كمرى صفا ساتلو په باره كښې دَ حضرت على رضي الله عنه يو اثر دې چه فرمائي "طهروا بيوتكم من العنكبوت فان تركه في البيوت يورث الفقر(روح) پدى اثر باندې هم اګرچه محدثينو كلام كړې دى خو البته تائيد په دى سره كيږى چه خپل ځايونه اوكورونه صفا ساتل مسنون او مستحب دى.

﴿وَتِلْكَ ٱلْأَمْثَٰلُ﴾داجواب دَ اعتراض دې چه الله ﷻ په ذباب،عنكبوت وغيره سره مثالونه ولې بيانوى دا خو ډېر حقير څيزونه دى؟؟نو جواب ترينه اوشو چه مونږدَتوضيح دَممثل لپاره دغه مثالونه خلقوته بيانوؤ چه دَشرك دَحقيقت نه خبرشى،﴿وَمَا يَعْقِلُهَآ إِلَّا ٱلْعَٰلِمُونَ﴾يعنى تطبيق دَمثال باندې هغه خلق پوهيږى چه پوهه دى،جابر ﷺنه روايت دې چې نبى كريم ﷺ داآيت تلاوت كړوبيانئى اوفرمائيل چه عالم هغه دې چه دَالله ﷻ معرفت ورته حاصل وي،دَالله ﷻ اطاعت كوى اونافرمانى نه اجتناب كوى(روح). ﴿خَلَقَ ٱللَّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ﴾ دااول دليلِ عقلي دې په توحيد .﴿بِٱلْحَقِّ﴾ اى لاظهارالحق،يعنى الله ﷻ اسمانونه اوزمكى عبث اوبې مقصده ندى پيداكړې،بلكه دَحق دَظاهره ولولپاره ئې پيداكړيدې چه معبود برحق صرف او صرف الله تعالى دې.﴿إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ﴾تخصيص دَمؤمنانودَوجې دَ انتفاع دَ دوئ نه .دې يعنى پدى دلائلوسره نفع اوفائده صرف مؤمنان اخلى.

| |
|---|
| اُتْلُ مَآ اُوْحِيَ اِلَيْكَ مِنَ الْكِتٰبِ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى |
| تلاوت کوه ته اي محمده! دهغې چه وحی کړې شویده تاته دکتاب اوپابندی کوه دمونځ. بې شکه مونځ منع کول کوی |
| عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُوْنَ ۞ |
| دقبیح نه اودناروانه. اوخامخاذکر(قرآن)دالله ﷻ دیرلوئ دی، اوالله ﷻ پوهیږی په هغه چه تاسونی کوئ. |

﴿اُتْلُ مَآ اُوْحِيَ اِلَيْكَ مِنَ الْكِتٰبِ﴾دادلیل وحی دي په توحید، او مراد په تلاوت سره تلاوت په طریقی دَ تبلیغ مراد دي. چه دامسئله دَتوحید تاته دَوحی په ذریعه نازله شویده، پدی وجه دَدی قرآن تلاوت کوه اومسئله توحیدورنه بیانوه، ﴿وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ﴾دا امر مصلح دي چه دَ دی مسئله توحید په بیانولو سره تاته دَمخالفینو دَطرف نه اذیتونه او تکلیفونه هم رسی نو دَهغې اثر کم کولو دَپاره مونځ کوه.

که څوک اشکال اوکړي چه نبی علیه السلام نه "عدم اقامت صلوة"متصور نه دي،نو نبی علیه السلام ته حکم کوتحصیل دَحاصل دي،او دغه شان دَ"اقامة صلوة"دپاره علت ذکرشو چه"تنهی عن الفحشاء الخ"حالانکه دَپیغمبر صلی الله علیه وسلم نه خو فحشاءاو منکر متصورنه وؤ.نو علامه الوسی رحمه الله ترینه جواب دا کړي دي"چه امر کول نبی علیه السلام ته په یو کار ،تقاضا دَدی نه کوي چه هغه عمل به پیغمبر کښ موجود وي،بلکه کله کله په ظاهر کښ کښ امر نبی علیه السلام ته وی لیکن حقیقتا امر امت ته وي.نوګویا چه نبی علیه السلام ته په ظاهرا امر دَپاره دَتبلیغ دَاقامت مونځ اوشو ،نو مقصد ئې دا شو چه ته دوئ ته یعنی امت ته، دَمونځ امر کوه ځکه چه دامونځ به دوئ لره منع کوي دَفحشاءاو منکرنه. کانه قیل وصل لهم ان الصلوة تنهی عن الفحشاء والمنکر(روح)اودغه شان دَ مونځ دَاقامت نه مقصد صرف منع دَفحشاءاو منکر نه ،نده بلکه نور هم ډیر مقاصد دی چه ذکر ئې په احادیثو کښ راغلې دي،او تنصیص په یو مقصد مستلزم ندي نفی دَنورو مقاصدولره.نولهذا دَمونځ نه کولو دَپاره دابهانه جوړول چه څه فحشاءاو منکر نه کوم نو دَمونځ کولو ضرورت هم ماته نیشته دي،عذر باطل دي ﴿اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ

﴿ٱلۡفَحۡشَآءِ وَٱلۡمُنكَرِ﴾مونځ انسان دَفحش اومنكركارنه منع كوى.فحشاء كښ زنا،لواطت،بى پردګى،كنزل،ګانى وغيره داخل دي.منكر دَنكير نه دې هغه كارته وائى چه نكير پري راغلې وي او دَشريعت اوعقل نه خلاف وي،ظلم كول،حق تلفى.دهوكه.رسوماتِ فاسده وغيره ټول پكښ داخل دى.

مونځ دګناهونونه منع كولومعنى اومطلب (١)يادادې چه مونځ تقاضه اومطالبه دَدى كوى چه سونځ كونكې دي دګناه نه منع شى،نو دَ "ان الصلوة تزينهى"معنې ده چه "ان الصلوة تقتضى المنع عن الفحشاء والمنكر"ځكه چه دَمونځ هريوذكراوهرركن دَدى مقتضى دې چې مونځ كونكې دَاللهﷻ په درباركښ دخپل عبوديت،اطاعت،تذلل اودَاللهﷻ دَالوهيت،ربوبيت اظهاراواقراراوكړې نومونځ نه ورستودَمسجدنه بهردې هم په خپل اقرارقائم وي،اودَمعاصيؤارتكاب دَى نه كوى،دَمعاصيؤارتكاب دَاللهﷻ دَشان بى ادبى هم ده اودَمونځ كونكى په افعالوكښ تناقض هم پيداكوى،په مذكورمختصربيان سره دامشهور اشكال حل كيږى چه ډيرمونځ كونكى مونځ كوى اوبياهم دګناه نه نه منع كيږى،ځكه مونځ مطالبه اوامردَمنع كيدلوكوى،دى سره دانده لازمه چه منع دى شى،لكه اللهﷻ پخپله هم دَفحشاء اومنكراتُ نه منع كوى،كقوله تعالى:اِنَّ الله يامرُبالعدل والاحسانِ وايتائ ذى القربىٰ وينهىٰ عن الفحشاء والمنكروالبغى(نحل:٩٠)ليكن دَدى باوجود بعض خلق نه منع كيږى حالانكه منع كول دَاللهﷻ زيات اهم دى دَمنع كولودَمونځ نه(٢)بعض وائى منع كول په طريقى دَتسبب سره دې،يعنى اللهﷻ په مونځ كښ داسى خاصيت اوتاثيراينبې دې چه مونځ كونكې دَدى وجى سره دګناهونونه بچ كيږى،خوپه شرط دَدى چه دَمونځ دَ فرائضو،واجباتودَسنتو او ادابورعايت اوكړې شي لكه څرنګه چه يوطبيب مريض ته دوائى وركړې چه دَيومرض علاج پرى كيږى،دَهغې دوائى خپل مقرره وخت(كورس)وى اومخصوص پرهيزئى هم وى.نودوائى هله اثركوى چې مريض بدپرهيزى اونكړې اوپوره دوائى اوخورى،دغه شان يقيناًمونځ هم دَروحانى امراضولرى كولولپاره علاج دې خوچه كاملى طريقى سره،خشوع خضوع سره وى،صرف كته كيدلو پورته كيدلوسره دغه اثارئى نه ظاهريږى،بلكه كوم مونځ چې غفلت سره اوشى نوهغه مردودوى.داسې زااونغښتلى شى لكه زړه جامه.اودَمونځ ګزارپه مخ اوويشتلې شى.خيرى ورته كوى چه اللهﷻ دى تاداسى ضائع كړې لكه څه دى چې ضائع

کړم.غرض دا چه دګناه نه منع کول هغه مونځ کوی چې کامل او مقبول مونځ وی.او دګناه نه منع کیدل دَمونځ دقبلیدلو علامه ګرځولی شویده،یو صحابی ﷺ فرمائی چې ځوك دامعلومول غواړی چه آیاځما مونځ قبول دې اوکه نه،نودي دی اوګوری چې دګناه نه منع دې نو مونځ ئی قبول دي اوکه ګناه نه منع نه وي مونځ ئی ندې قبول،ځومره قدری چه ګناه نه منع دې نودومره قدری دَده مونځ قبول دې،په یوروایت کښ چه حضور ﷺ فرمائی:من لم تنهه صلاته عن الفحشاء والمنکر فلاصلاة له،یعنی کوم مونځ چه مونځ کونکې دګناه نه منع نه کړي نو دَده مونځ قبول ندې،په یوروایت کښ دی داسی مونځ دَالله ﷻ نه لری والي پیدا کوی.دغه شاذ نوراحادیث هم دی باب کښ راغلیدی.(۳)او بعض حضراتو دا سی جواب کړیدې چه "خبر"په معنی انشا سره دې نو "ان الصلوة تنهی"په معنی دَ"لَیَنْتَهِ الْمُصَلِّيَ عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ" سره دې (قرطبی) (۴)اوصاحب دَجلالین داسی جواب کړیدې چه "اي من شانها ذلك مادام المرأفيها"مطلب ئي دا دې چه منع کول دَمونځ دَفحشاء او منکر نه مقید دی.دَحالت دَمونځ سره یعنی چه مونځ کوونکې ځوپوری مونځ کوي نو هغه مونځ دې دَفحشا او منکر نه بچ کوي،خودا جواب ضعیف دې ځکه چه ایت کښ قرینه په تقید باندې نشته دې او دغه شان په روایاتو کښ هم دَ مونځ عمومي اثر دابیان شویدې چه مونځ دَبدکارونونه،منع کول کوي،لکه په روایت دَ ابن کثیر کښ دي چه"عن ابي هريرة قال جاء الرجل الى النبي صلى الله عليه وسلم فقال ان فلانا يصلي بالليل فاذا اصبح سرق،فقال عليه السلام انه سينهاه ماتقول (ابن کثیر)

﴿وَلَذِكْرُ اللّٰهِ أَكْبَرُ﴾ دا د مونځ کولو یوبله فائده ذکر کیږی،چه مونځ دَ الله ﷻ په ذکر او په تلاوت دَقرآن باندې مشتمل دې،او دَالله ﷻ ذکر انسان دَپاره ذریعه دَتقرب الی الله ګرځي،نو دَدی وجی نه دا ډیر لوئی عمل دې،او "اکبر"اسم تفضیل دې،مفضل علیه ورله یاهغه ذکر دَ الله تعالي دې چه خارج في الصلوة دې نو مطلب دا دې چه ذکر او تلاوت په مانځه کښ دَثواب په اعتبار سره ډیر زیات دې دَهغه ذکر او تلاوت نه چه خارج فی الصلوت دې ځکه چه په مونځ کښ دَیو حرف په تلاوت باندې سل ۱۰۰ نیکئ میلاویږي.او یاورله مفضل علیه کل شي دې او دَ"ذکر الله"نه مراد مطلق ذکر دَ الله تعالی

دي خواه كه په مانځه كښ وي ياغير مانځه كښ وي،او پديكښ به اشاره شي دَفحشاءاو منكر نه دَبچ كيدلو يو بل عمل ته،چه څرنګه انسان په مونځ كښ دَفحشاءاو منكرنه بچ كيږى دغه شان په ذكر دَ الله جلّ جلاله سره هم بچ كيږى،او ذكر دَ الله تعالى دَهر څه نه لوئى عمل دي،لكه ډير احاديث پدى باندې دال دى،معاذبن جبل رضي الله عنه فرمائي:ماعمل ادمى عملاً انجىٰ له مِن عذاب الله تعالى من ذكرالله تعالى(روح المعانى)يعنى دَالله تعالى دَعذاب نه نجات ميلاويدلو لپاره دَالله تعالى دَذكرنه زيات نجات وركونكې بل عمل نشته دې،څكه الله تعالى فرمائى چې﴿وَلَذِكْرُ ٱللَّهِ أَكْبَرُ﴾دغه شان په رايت دَ ابودرداء رضي الله عنه كښ دي فرمائي چه: أَلاَ أُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرِ أَعْمَالِكُمْ وَأَزْكَاهَا عِنْدَ مَلِيكِكُمْ وَأَرْفَعِهَا فِي دَرَجَاتِكُمْ وَخَيْرٌ لَكُمْ مِنْ إِنْفَاقِ الذَّهَبِ وَالْوَرِقِ وَخَيْرٌ لَكُمْ مِنْ أَنْ تَلْقَوْا عَدُوَّكُمْ فَتَضْرِبُوا أَعْنَاقَهُمْ وَيَضْرِبُوا أَعْنَاقَكُمْ. قَالُوا بَلَى. قَالَ ذِكْرُ اللَّهِ تَعَالَى (ترمذي)دينه علاوه نورهم احاديث دَذكرپه افضليت كښ راغليدى،امام طبرى او صاحب روح المعانى دَابن عباس رضي الله عنه،ابن مسعود رضي الله عنه،ابن عمر رضي الله عنه،مجاهد رحمه الله نه نقل كړيدې چې معنى دَ﴿وَلَذِكْرُ ٱللَّهِ أَكْبَرُ﴾داده چې دَالله يادول انسان لره زيات لوئ دى دَانسان يادولونه الله لره،"عن ابن عباس :ذكرالله اياكم اكبر من ذكركم اياه (طبري) نو هركله چه مونځ مشتمل دې په ذكر دَ الله تعالى باندې هم اعتقادا هم فعلا هم قولا او هم حالا .نو الله تعالى هم دَانسان ذكر كوي او دَهغه تعريف كوي لقوله تعالى:فاذكرونى اذكركم.او الله تعالى تعريف كول دَ يو انسان ډيرلوئ خبره ده

﴿وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُونَ﴾يعنى الله تعالى ته ذاكراوغيرذاكر دواړه معلوم دى،نوهريوته بدله وركوى.

| |
|---|
| وَلَا تُجَٰدِلُوٓاْ أَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ إِلَّا بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ إِلَّا ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ |
| اوجګړه مكوئ دَاهل كتابوسره مګرپه هغه طريقى سره چه هغه ډيره ښه ده،مګرهغه چه ظالمان دى |
| مِنْهُمْ وَقُولُوٓاْ ءَامَنَّا بِٱلَّذِىٓ أُنزِلَ إِلَيْنَا وَأُنزِلَ إِلَيْكُمْ |
| دَدوئ نه نوقتال ورسره كوئ،اووايئ چه مونږايمان راوړيدې په هغه كتاب چه نازل شويدې مونږته اونازل شويدې تاسوته |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاِلٰهُنَا | وَاِلٰهُكُمْ | وَاحِدٌ | وَّنَحْنُ | لَهٗ | مُسْلِمُوْنَ | ﴿۴۶﴾وَكَذٰلِكَ |
| اواِله زمون اواِله ستاسو يو دي اومونږ ټول هغه ته تابع يو، اوهم دغه شان لكه چه په نورو انبياؤ مونازل كړيدي كتابونه | | | | | | |

اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ فَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَمِنْ هٰٓؤُلَآءِ

نازل كړيدي مونږ تاته قرآن، پس هغه خلق چه وركړيدي مونږ هغوئ ته كتاب ايمان راوړي پدي قرآن، اوبعض ددی اهلِ مكه نه

مَنْ يُّؤْمِنُ بِهٖ وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا الْكٰفِرُوْنَ ﴿۴۷﴾وَمَا كُنْتَ تَتْلُوْا

هغه دي چه ايمان راوړي پدی قرآن، اوانكارنه كوی زمونږ دآياتونه مګر كافران. اونه وې ته اي محمده ﷺ چه لوستلې دې شو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | قَبْلِهٖ | مِنْ | كِتٰبٍ | وَّلَا | تَخُطُّهٗ | بِيَمِيْنِكَ اِذًا |

مخكښ دنبوت نه څه كتاب اونه تاليكلې شوكتاب پخپل خی لاس،كچرته لوستل ليكل دی كولې شول نوبيابه

لَّارْتَابَ الْمُبْطِلُوْنَ ﴿۴۸﴾بَلْ هُوَ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ فِيْ صُدُوْرِ الَّذِيْنَ اُوْتُوا

خامخاشك كولو باطلوخلقو.بلكه داقرآن آياتونه دی واضح په سينو دهغه خلقوكښ چه وركړې شويدي ورنه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْعِلْمَ | وَمَا | يَجْحَدُ | بِاٰيٰتِنَآ | اِلَّا | الظّٰلِمُوْنَ | ﴿۴۹﴾ |
| علم يعنی | مؤمنان | اوانكارنكوی | زمونږ | دآياتونو | نه | مګر ظالمان |

﴿وَلَا تُجَادِلُوٓا أَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ﴾ هر كله چه ماقبل ايت كښ حكم د تبليغ اوشو "اتل ما اوحي"نو اوس پدی ايت كښ طريقه دَ تبليغ ذكر كيږی. اودَبحث مباحثی نوبت راشی نو په نرمئ طريقی ورسره خبری كوه،غصه اوشورشغب ورسره مكوه،﴿إِلَّا بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ﴾ای بالخصلة التی هی احسن.لكه سورة النحل كښ الله ﷻ فرمائی:ادفع باللتی هی احسن.﴿إِلَّا ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مِنْهُمْ﴾غوره قول داد ي چه استثناء متصله ده،او مقصد دادي چی دكفارو او اهل كتابو كچری دَدين په باره كښ څه اعتراضات وی نو هغه په احسن طريقی سره دفع كړئ او په نبی طريقی ورسره بحث مباحثه اوكړئ مګر هغه كسانو سره بحث مه كوئ چه ضديان اور

متعصب دی ځکه چه متعصب انسان سره په بحث کولو کښې فائده نیشته دې،نو دَهغوئ سره قتال اوکړئ الا الذين ظلموا منهم بالافراط في الاعتداء والعناد (ابي سعود)اودا ايت دليل دې پدې چه قتال نه مخکښې کفاروته دعوت ورکول پکار دی. ﴿وَقُولُوٓاْ ءَامَنَّا بِٱلَّذِيٓ ﴾دا دَ ﴿وَلَا تُجَٰدِلُوٓاْ ﴾سره متعلق دې دَاحسن طريقي بيان دې چه اهل کتابوته داسې اووايه چه لکه څنګه مونږ ايمان په هغه آسمانی کتاب هم راوړيدې چه مونږته نازل دې اودغه شان په هغه کتاب موهم راوړيدې چه تاسوته نازل دې،حضرت موسیٰ اوعيسى عليهماالسلام باندې چه احکام اوکتابونه نازل دی هغه حق دی(اګرچه دغه اسمانی کتابونه په اصلی صورت کښې ستاسوپه لاسونوکښې باقی ندی)﴿وَإِلَٰهُنَا وَإِلَٰهُكُمۡ وَٰحِدٞ ﴾يعنی زمونږاوستاسومعبودهم يودې،مونږ صرف دَهغه فرمانبرداريو ،ديکښې تعريض دې چه تاسودَالله ﷻ نه ماسویٰ احباراورهبان هم معبودان نيولی دی،لهذاتاسوهم صرف دَالله تابع شئ اودَهغه آخرى رسول باندې ايمان راوړئ.

﴿وَكَذَٰلِكَ أَنزَلۡنَآ إِلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ ﴾ ·کاف· دَ پاره دَبيان کمال دې او داترغيب دې اتباع دقرآن ته چې لکه څرنګه مونږستانه مخکښې انبياؤباندې کتابونه نازل کړې وؤدغه شان مونږتاباندې هم کامل قرآن نازل کريدې،نودَدينه دَانکارڅه وجه نشته دې،﴿فَٱلَّذِينَ ءَاتَيۡنَٰهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ ﴾ دليل نقلی دې په توحيد او په صدق دَ قران باندې يعنی اهل کتابوکښې بعضِ منصف داسې دی چه دی قرآن باندې هم ايمان راوړی پخپلوکتابونوکښې ئې دَدی صفات موندلی دی،لکه عبدالله بن سلام ﷺ ،او دهغه ملګري شول.﴿وَمِنۡ هَٰٓؤُلَآءِ ﴾يعنی دَعربونه يادَاهل مکه ؤنه هم بعضِ داسې دی چه داکتاب برحق منی ايمان پرې راوړی، انکارترينه صرف هغه کوی چه دَضداوعنادپوجه دَحق نه انکارکوی،﴿وَمَا كُنتَ تَتۡلُواْ مِن قَبۡلِهِۦ مِن كِتَٰبٖ ﴾پديکښې اثبات دَنبوت او صدق دَقرآن ذکرکيږی،"من کتاب"کښې "من"زائده دې دَپاره دَتاکيد دې او﴿مِن قَبۡلِهِۦ ﴾ کښې ضميرراجع دې نزول دَقرآن ته،يعنی دَنزول دَقرآن نه قبل نه

تاڅه کتاب لوستلې شوا ونه دي ليکل کولې شول، اُمّي وي، دَاُمیَ کس داسی فصيح بليغ قرآن لوستل دَدی دليل دې چه دادَده کلام ندې بلکه دَالله ﷻ دَطرفه وحی ده ﴿بِيَمِينِكَ﴾ دا تاکيد دي، لکه نظرت بعيني او دغه شان پديکښې اشاره ده ،ادابو دکتابت ته .چه ليکل په ښی لاس سره پکار دي، ﴿إِذًا لَّارْتَابَ﴾ يعنی کچرته ليکل لوستل دې کولې شول نومشرکانوبه داشك او اعتراض کولې شوچه کيديشی ده دادَمخکښې کتابونونه ازده کړي وی.نو اوس خودوئ ته داشك مناسب ندې.

**فائده**:ديکښې اختلاف دې چه آيا ورستودَنبوت نه حضورﷺ لوستل ليکل کولې شواوکنه؟علامه ابن کثير رحمه الله اواکثرمحدثين وائی چه بعدالنبوۃ هم حضورﷺ لوستل ليکل نه شوکولې صاحب دَ بحر فرمائی چه "واکثر المسلمين علي ان رسول الله صلي الله عليه وسلم لم يکتب قط ولم يقرأبالنظر في کتاب"ځکه چه اُمّي دَحضورﷺ وصف دې اومعجزه ده،اګر چه دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم نه علاوه په نورو خلکو کښې داعيب او ذم دې کقوله تعالی:الذين يتّبعون الرّسول النّبی الامّی الذی(الاية)،دغه شان حديث کښې راغليدی چې انّاامّةٌ اُمية لانکتب ولانحسبُ. بعضِ وائی چې بعدالنبوۃ حضورﷺ لوستل ليکل کول شول،دليل داد چې کله دَصلح حديبيه په موقع دَمشرکانوسره صلح نامی باندی اوليکل شول:هٰذاماقاضیٰ عليه محمّدرسول الله،نومشرکانواووئيل که دامونږمنلٰ چه ته رسول الله ئی نواتباع به موکړي وه جنګ به ختم وؤ،داوران کړه اومحمدبن عبدالله اوليکه.حضورﷺ حضرت عليﷺ ته دَورانولوحکم اوکړوليکن حضرت عليﷺورانول نه شول برداشت کولې،نوحضورﷺ پخپله وران کړواومحمدبن عبدالله ئی اوليکل،په روايت دَبخاری کښې دی چه:فاخذرسول الله صلی الله عليه وسلم الکتاب وليس يحسنُ يکتبُ فکتب هٰذاماقاضیٰ عليه محمدبن عبدالله ...الحديث،نودينه ظاهره ده چه حضورﷺ پخپل لاس مبارك سره داليکلی وؤ ليکن دوئي دا استدلال کمزور او ضعيف دې.ځکه چه قاضي عياض رحمه الله فرمائي چه دَ حضور صلی الله عليه وسلم دا ليکل معجزه وه يعنی دابطور معجزه حضور صلی الله عليه وسلم نه ،دا ليکل صادر شوي وو .اوحافظ ابن حجر فرمائی:"فکتب هذا ما قاضی الخ"نه مراد

امر بالکتاب دې لکه وئيلې شي " کتب السلطان لفلان بکذانو هلته هم مراد امر ابالکتاب وي،نو دغه شان دلته هم امر په کتاب سره مراد دې،وهذا هو الرجح عندي ويؤيد براوية السيرة الحلبية ج3 فجعل علي يتلكأ ويأبى ان يكتب الا محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال له صلى الله عليه وسلم:اكتب فان لك مثلها تعطيها وانت مضطهد اي مقهور"او پدى سره مقصود اشاره وه هغه جنګ ته چه ورستو بيا دَحضرت على او معاويه رضي الله عنهما په مينځ اوشو ،يعنى جنګ صفين نو چه کله دَ حضرت على رضي الله عنه او معاويه رضي الله عنه په مينځ کښ دَ جنګ صفين په خاتمې سره معاهده کيدله نو په صلح نامه کښ کاتب اوليکلو "هذا ماصلح عليه امير المؤمنين علي ابن طالب رضي الله عنه ومعاوية بن ابي سفيان نو حضرت عمر وبن عاص چه دَحضرت معاويه رضي الله عنه دَطرف نه حکم وؤ،اوئيلو چه امير المؤمنين به نه ليکلې ځکه چهلو کنت اعلم انه امير المؤمنين ماقاتله فبئس الرجل انا الي اقررت انه امير المؤمنين ثم اقاتلهبلکه دَدى په ځائې على ابن طالب اوليکه

دَحضرت علي رضي الله دَطرف والا کسانو دانه برداشت کوله ليکن حضرت على رضي الله عنه چه کله داخبره واوريدله نو امر ئي اوکړو په ورانولو دَ لفظ دَ امير المؤمنين سره.فلما سمع علي کرم الله وجهه ذلک وامره بمحوها وقال امحها تذکر قول النبي صلي الله عليه وسلم له في الحديبية(السيرة الحلبية ج3ص29)

او دغه شان مسئله په لوستلو کښ هم ده،چه رسول الله صلى الله عليه وسلم لوستل دَ کتاب نه اولو ستل دَ مکتوب کولې نشو او کومو امورو او اياتو کښ چه لوستل راغليدى هغه يا امرا يا معجزتًا دى،روح المعاني فرمائى چه نبي پاک صلى الله عليه وسلم به لوستل ده کتاب نشو کولې ليکن کله به ئې چه حروفرو ته نظر مبارک اوکړو نو حروفونه ورته دَخپلو اسماؤ او مدلولاتونه ،خبر ورکولو اګر چه صاحب دَروح المعانى دَدى توجيه متعلق فرمائي "وانت تعلم ان مثل هذا لايقبل بدون خبر صحيح ولم اظفر به"(روح)ليکن په نورو واقعاتو دَ معجزاتو سره ئي تاکيد کيدلې شي

﴿بَلۡ هُوَ ءَايَٰتُۢ بَيِّنَٰتٞ﴾اضراب دې دَماقبل نه،يعنى قرآن دَشك اوارتياب کتاب ندي،

بلکه داخو واضح آیاتونه دي چې، اسح دي په زړونو دَمؤمنانو کښې .دسې محفوظ دي چې څوک پکښې دَتحریف قدرت نه لري.

﴿ فِي صُدُوْرِ ﴾جار مجرور متعلق دی دَ محذوف سره چه"محفوظ"دی.او کیدل دَ قرآن محفوظ په سینو دَ اهل علم کښې دَ دی نه مراد دَ قرآن پاک یادول او حفظ کول دی.چه صحابه کرامو رضوان الله عنهم یادکړي وؤ،تابعینو،تبع تابعینو چه سلسله ئي تر اوښه پوري جاري ده.او دا خصوصیت دَ قرآن دې چه دَ دی امت اکثر خلک ئي حفظ کوي په خلاف دَ کتب سابقنؤ نه ، چه د هغه حفظ به صرف انبیاءکرامو ته وؤ،او هر چه دی په بعض روایاتو کښې په باره دَقارون کښې چه "انه کان یقرا التوراة عن ظهر قلب،نو اولا خو دغه روایت ثابت ندي ،او په تقدیر ده تسلیم سره قارون یو فرد وؤ،او شاذ ونادر الوقوع دَدی ایت سره متعارض ندي

| |
|---|
| وَقَالُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيٰتٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ |
| اووائی دوئ ولې نه نازلیږی پدې پیغمبرمعجزی دَطرفه دَرب دَده نه،ته ورته اووایه بیشکه اختیاردَمعجزو |
| عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاِنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ اَوَلَمْ يَكْفِهِمْ اَنَّآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ |
| الله جَلَّجَلَالُهُ سره دي،اوبې شکه څه خویرونکې یم ښکاره.آیاندي کافی دوئ لپاره داچه مونږنازل کړيدي په تاکتاب |
| يُتْلٰى عَلَيْهِمْ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَرَحْمَةً وَّذِكْرٰى لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝ |
| چه لوستلي شی پدوئ،بیشکه پدی قرآن کښې خامخارحمت دي اونصیحت دي لپاره دَهغی قوم چه ایمان راوړی، |
| قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ شَهِيْدًا ۚ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ |
| ته اووایه کافی دي الله جَلَّجَلَالُهُ خمامینځ کښې اوستاسومینځ کښې گواه،عالم دي په هغه څه چه په اسمانونوکښې دی اوزمکه کښې دی |
| وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْبَاطِلِ وَكَفَرُوْا بِاللّٰهِ ۙ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝ وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ |
| اوهغه کسان چه ایمان ئی راوړیدي په باطل اوکفرئی کړیدي په الله جَلَّجَلَالُهُ،هم داکسان تاوانیان دی،اودوئ زرغواری ستانه |

| |
|---|
| بِالْعَذَابِ وَلَوْلَآ اَجَلٌ مُّسَمًّى لَّجَآءَهُمُ الْعَذَابُ وَلَيَاْتِيَنَّهُمْ بَغْتَةً |
| عذاب، خو کچرته نه وي یوه نیټه مقرره دَعذاب نوخامخابه ورته راغلي وؤعذاب،اوخامخابه راځی دوئ ته ناڅاپه |
| وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝ يَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌ بِالْكٰفِرِيْنَ ۝ |
| اودوئ به خبرنه وی اوزرغواړی ستانه عذاب،اوبیشکه جهنم خامخاراګیرونکې دې کافرانولره، |
| يَوْمَ يَغْشٰهُمُ الْعَذَابُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ وَيَقُوْلُ ذُوْقُوْا |
| په هغه ورځ چه پټ به کړی دوئ عذاب دَبره دَدوئ نه اودَلاندې دَخپودَدوئ نه اوالله ﷻ به ورته وائی اوس وڅکئ |
| مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ |
| سزادَهغه عملونوچه تاسوکول |

﴿وَقَالُوا لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ﴾مشرکینو به په نبی صلی الله علیه وسلم باندې اعتراض کولو چه کچرې ته په حقه پیغمبر ئې نوتاته زمونږ د فرمائش مطابق معجزه ولې نه میلا ویږی لکه څرنګه چه صالح علیه السلام ته ناقه اور موسی علیه السلام ته ید بیضاءوغیره میلاؤ شوي وؤ ﴿قُلْ إِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِندَ اللّٰهِ﴾داجواب دې شکوی او دَ اعتراض نه په دو طریقو سره .اوطریقه دجواب دا ده چې معجزه دالله په اختیارکښ ده خپل مشیت مطابق ئې نازلوی دَچافرمائش مطابق ئې نه نازلوی،او څما ذمه داري صرف تبلیغ کول اودا انذار دې او ستاسو په فرمائش مطابق معجزی څما په قدرت او اختیار کښ نیشته دې،﴿أَوَلَمْ يَكْفِهِمْ أَنَّآ أَنزَلْنَا﴾ دادویمه طریقه دَطریقه دَجواب ده چه معجزه خودَنبی دَپاره وي او دَرسول الله صلی الله علیه وسلم دَ صدق دَپاره دَقرآن نه ،بله لویه معجزه څه شی کیدیشی دا قرآن دائمی او باقی پاتی کیدندکی معجزه ده،کچرې په دوئ کښ ضد او تعصب او رحمت وی.او پدی قرآن کښ دَدوئ دَ شکوک او شبهاتو ازاله کیدلو دَپاره واضح دلائل دی. ﴿قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيدًا بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ﴾دانتیجه ده دَ ماقبل بیان چه هر کله دا خبره ثابته شوه چه دَپیغمبر ذمه

داري صرف تبليغ او انذار دي نو بياهم دا كفار نه منى نو اې پيغمبره صلى الله عليه وسلم كافرانوته اووايه چه الله ﷻ خماپه تبليغ اوانذاراوستاسوپه انكاراوتكذيب گواه اوخبرداردي،هريوته به دَهغه مناسب بدله وركوى،هغه دَاسمانونواودَزمكى په هرڅيزباندى عالم دي،﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِٱلْبَٰطِلِ ﴾دَباطل نه مرادمعبودان باطله من دون الله دي او ماسوى الله ته معبودان باطله ځكه وئيلي كيږي چه دَدوئ عبادت باطل دي ﴿وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِٱلْعَذَابِ﴾ زجر اوتخويف دي كافرانوته چه دوئ به طوراِستهزاء اوتكذيب ستانه دَعذاب الهى دَجلدئ مطالبه كوى،ليكن دَعذاب وخت مقرردي كه وخت ئې مقررنه وي نوتراوخه پورې به ورته عذاب راغلي وؤ،كله ئې چه وخت راشي نوبيابه پرى اچانك راشى دوئ به خبرهم نه وى، ﴿وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِٱلْعَذَابِ﴾دَماقبل اعاده ده براې تاكيد اودكفارودَجهالت اظهار دي يا ماقبل نه عذاب دنيوى مراد دي اودينه عذاب اُخروى﴿ يَوْمَ يَغْشَىٰهُمُ ٱلْعَذَابُ ﴾دا بيان دَ كيفيت دَ احاطى دَ عذاب جهنم دي،يعنى ماقبل كښ ذكر دَ احاطي په عذاب جهنم سره اوشو پدي ايت كښ دَ هغي احاطي يو كيفيت بيانيږي.﴿وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةُۢ ﴾بيان دي دَعذاب اُخروى،﴿مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ أَرْجُلِهِمْ ﴾كنايه ده دَجميعُ جهاتونه،يعنى شلورو واړوطرفونونه به عذاب راگيركړي وى.كه څوك اشكال اوكړي چه جهات خو شپږ دي نو شپږ جهاتو كښ صرف دوه/۲ جهاتو يعنى دَفوق او تحت تخصيص ولې اوكړي شو؟؟نو جواب ترينه داكړي شويدي چه تخصيص دَپاره نكته داده چه دَنار جهنم او دَنار دنيا امتياز او فرق راشي،ځكه چه نار دنيا صرف جهاتواربعو يعنى يمين ،شمال ،قدام،خلف باندي احاطه كولي شي،اوفوق،تحت باندي نشى كولې،ځكه چه دَ دنيا اور دَلا ندي طرف نه بليږي او پاسه خيژى نو ځكه په فوق باندي احاطه ممكنه نده او تحت باندي هم نشي راتلې ځكه دَ اور كومه حصه دَ خپو لاندي راشي نو شعله هلته ختمه شي كچري سكروټي پاتي وي او دَ جهنم اور(اعاذ ناالله منها)دَهغى شعله دَخپودَ لاندې هم دِ پاسه به هم وي غرض دا چه دَجهات سته نه،به وي،نوخلاصه دَجواب داده چه دَاطراف اربعونه هر"اور"گيره اچولي شي خو دَدغي

دوه/۲اطرافونه،دنیوي اور ګیره نشي اچولې او دَ جهنم اور به دومره سخت وي دَدغي دوه/۲ اطرافو نه به هم ګیره اچوي نو دَ دَغي شدت دَ بیان او دَ دغي فرق او امتیاز دَ بیان دَ پاره تخصیص دَ دغي دوه/۲ اطرافو اوشو

او هرکله چه خاصیت دَ اور صعودیعنی ختل دي پاسه طرف ته ،نو دَ پاځه یعنی جانب فوق باندي اور بلیدل دومره عجیب او نادر ندي لکه څومره چه دَخپو دَ لاندې اور باقی پاتي کیدل نادر او عجیب دي ،خودَدي وجي نه دَلاندې یعنی جانب دَ تحت سره مضاف الیه ارجلهم ذکر شو او داسي اوئیلي شو چه او من تحت ارجلهم او دَ جانب فوق سره مضاف الیه روس ذکر نشو او داسي او نه وئیلې شو چه او من فوق رؤسهم

﴿وَيَقُولُ﴾ الله تعالیٰ به ورته اوفرمائی یاداروغه دَجهنم چه دنیاکښ موکوم عملونه کول دَهغی بدله اوس اوڅکئ.

يٰعِبَادِيَ الَّذِينَ اٰمَنُوٓا اِنَّ اَرْضِيْ وَاسِعَةٌ فَاِيَّايَ فَاعْبُدُوْنِ ﴿۵۶﴾ كُلُّ

اې بندګانو څما مؤمنانو بیشکه زمکه‌څما فراخه‌ده پس‌صرف څماعبادت کوئ هر

نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ثُمَّ اِلَيْنَا تُرْجَعُوْنَ ﴿۵۷﴾

ساه لرونکې څکونکې دمرګ دې، بیابه مونږته تاسوواپس کیږئ

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ

هغه کسان چه ایمان ئې راوړیدې اوعمل کوی نیک خامخاځکانه به ورکړوورته دجنت نه

غُرَفًا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا نِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿۵۸﴾ الَّذِيْنَ

بنګلې چه بهیږی به لاندی دهغی نه نهرونه همیشه به وی په هغی کښ،دیرښه دې اجردعمل کونکو.هغه کسان

صَبَرُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿۵۹﴾ وَكَاَيِّنْ مِّنْ دَآبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا

چه صبر یې کړیدې (په تکلیف دهجرت)اوپه رب خپل اعتمادکوی.اوډیردځناورنه داسې دی چه نه باروی رزق خپل

اَللّٰهُ يَرْزُقُهَا وَاِيَّاكُمْ ۖ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝ وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ

الله ﷻ ورته رزق ورکوی اوتاسوته هم،اوالله ﷻ ښه اوریدونکي دي عالم دي،اوکچرته ته تپوس اوکړې دَدوئ نه

مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَيَقُوْلُنَّ

چه څوک دي هغه ذات چه پیدا کړي ئی دی اسمانونه اوزمکه اومسخر کړي ئی دي نوراوسپوږمۍ نوخامخابه وائی چه

اللّٰهُ ۚ فَاَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ۝ اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ

الله ﷻ دي نوكوم طرفه ته اړه ولي كيږي دوئ،الله ﷻ فراخه كوی رزق هغه چاته چه ئی خوښه شي دَخپلو بندګانو نه

وَيَقْدِرُ لَهٗ ۚ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝ وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ نَّزَّلَ

اوتنګوی ئی ورته،بی شکه الله ﷻ په هرڅیزباندی ښه خبردي،اوکچرته تپوس اوکړې ته دَدوئ نه چه څوک دي چه نازلوی

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِ مَوْتِهَا لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ۚ

دَاسمان نه باران نوراژوندئ کوی په هغې سره زمکه ورستودَچې دلودهغې نه،نوخامخابه وائی چه الله ﷻ دي،

قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ ۚ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ۝

نواووایه ټول صفتونه دَالوهیت الله ﷻ لره دي،بلکه زیات دَدوئ نه عقل نه لری

﴿يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا﴾ دَااول دعوه دَسورة سره متعلق دي اوترغیب دي هجرت ته،چې دَتوحید په خاطربه مصائب راځی،چه دامشرکان تاسوته ایذارسوی اودَالله ﷻ عبادت ته مونه پریدی نودَالله ﷻ ځمکه فراخه ده داسیی ځائ ته هجرت اوکړئ چه خالص ځماعبادت اوکړئ:نو پدِی اعتبار سره دَ "ارضي"نه مراد "نفس ارض" یعنی زمکه مراد ده،لکه چه وئیلي شي پائ ګدالنګ نیست. مُلك خداتنګ نیست،او بعض فرمائی چه چه دَ"ارضي واسعة"نه مراد فراخی دَ رزق ده اواګرچه په ظاهر کښ اخباردي خومراد ترینه انشاء د او مطلب دادي چه څوک دَ الله تعالی دَ رضا دَ پاره هجرت اوکړي نو الله به هغه له فراخ رزق وکړي لکه په سورت النساایت نمبر ۱۰۰ کښ دي.

﴿فَإِيَّٰيَ﴾ مفعول به دي فعل محذوف دَپاره نو په اصل کښ دا سي وؤ "اعبدوني" فعل فاعل حذف شو، منصوب متصل په منفصل سره بدل شو، او "فاعبدون" مذکور مفسر دي دَ محذوف دَ پاره، او ''فا'' په "فاياي" کښ دَپاره دَ تسبب ده، يعنی هر کله چه اوئيلې شو چه "ان ارضي واسعة" نو ورپسي دَ دي سببيت ته اشاره اوشوه چې وسعت دَ دي دَپاره دې چه خاص دَ الله تعالى عبادت اوکړې شي، چه "فاياي فاعبدون" او په "فاعبدون" کښ فا جزائيه ده، چه داخله ده په مفسر باندي نو هر کله چه مفسر محذوف شو اور مفسِر دَهغه قائم مقام شو نو فا جزائيه هم په مفسِر باندي داخله شو.

امام رازی رحمه الله فرمائي چه: "فاياي" کښ فا جزائيه ده او "فاعبدون" کښ فا دَپاره دَ ترتيب دَ مقتضىٰ ده په مقتضې باندي لکه چه وئيلي شي "هذا عالم فاكرموه" نو عالم والا علم مقتضى ده او اکرام ئې مقتضا دې، نو هم دغه شان دلته هم الله تعالى دا اوفرمائيلو چه "ان ارضي واسعة فاعبدوني" او بيا ئي اشاره اوکړه چه معبود کيدل دَ الله تعالى دَذات تقاضا ده، او صرف اوصرف هغه مستحق دَعبادت دې، نو ځکه "فاعبدون" ذکر شو

﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ ٱلْمَوْتِ﴾ هر کله چه الله تعالى دَ هجرت حکم اوکړونو بعضو حضراتو باندي دا حکم شاق اوګرځيدلو اوخپل وطن پريخودل ورته ګران وؤ، او خپلو خپلوانو ورته هم دَمرګ ويره ورکړه چه پردي وطن ته ځئ نو هلته به مړه شئ نو دا ايت نازل شو چه کچرته تاسو ته په هجرت کښ دَاحبابو او اوطانو مفارقت ګران ښکاری نوپدی پوهه شئ چه دامفارقت خوبه يوه نه يوه ورځ راځی ځکه چه مرګ به په هرکس باندي راځی، هرځه به پاتی شی ټول به مونږخواته راځی. او "کل نفس" مبتدا ده نکره مخصصه تخصيص ئي په عموم سره شويدې.

﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ﴾ بشارت أخروی دې هجرت کونکوته، چه دَالله ﷻ دَخاطره دوئ کورونه پريدی نومونږ په آخرت کښ دوئ ته دَجنت بنګلي ورکړوچه دهغې دَلاندی به نهرونه بهيږی، ﴿ٱلَّذِينَ صَبَرُوا۟﴾ دَ﴿ٱلْعَٰمِلِينَ﴾ صفت دې، چه دَهجرت په شدائد اودَمشرکانو په اذيتونو صبر کوی، او هرڅه الله ﷻ ته حواله کوی.

﴿وَكَأَيِّن مِّن دَآبَّةٍ﴾يعنى كچرته په هجرت كښ تاسوته داوسوسه وى چه پرديس كښ به خوراك كوم ځائ نه ميلاويږى،داسى ځائ ته به څنگه لاړشوچه معيشت اسباب پكښ نوى نوپوهه شئ چه ډيرځناورداسى دى چه ځان سره رزق نه ګرځوى نه جمع كوى الله ﷻ هغوئ ته هم مقدررزق وركوى اوتاسوته هم دركوى خواه چه تاسوكوم ځائ هم يئ.نوداخطره مكوئ بلكه په الله ﷻ بهروسه كوئ هغه كامل صفاتووالاذات دي."كَاَيِن من"په معنى دَ "كم من"سره دې او"كم"خبريه دې په معنى دَ تكثير سره دي دَ دي مطلب دا دې چه ډير ځناور داسي دي چه دَروزئى دَ فكر نه بي فكره دي،البته ځني ځنا ځناور او مخلوق داسي شته دې چه هغوي ځان دَپاره روزي جمع كول كوى،لكه منګك،ميږي او انسان شو،دغه شان بعض حضراتو پكښ بلبله هم ذكر كړيده.

**فائده**:پدي ايت كښ پدي دليل نشته دې چې ځان دَ پاره رزق جمع كول ناجائز دي.بلكه دَ ايت مقصد دادې چه يو ديني كار دَ رزق او معيشت دوجي نه پريخودل ندي جائز دَ رزق په معامله كښ دَ الله تعالى په ذات باندي توكل پكار دې.

﴿وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾دادويم عقلي دې په توحيد ،على سبيل الاعتراف من الخصم،يعنى مشركان هم دَدى اعتراف كوى چه خالق دَاسمانونواوزمكى صرف الله ﷻ دې،يعنى دَتوحيدفى التخليق قائل دى،نودَتوحيدفى الالوهيت نه ولى انكاركوى، ﴿ٱللَّهُ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ﴾دادريم دليل عقلي دې،چه دَانسان بنيادى ضرورت چه رزق دې هغه دَالله ﷻ په اختياركښ دي كه چاته ډيروركوى اوچاته كم،هرڅه باندې هغه عالم دي،لهذامستحق دَعبادت هم صرف هغه دې، ﴿وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّن نَّزَّلَ﴾داڅلورم دليل عقلى دى په توحيد ،على سبيل الاعتراف من الخصم،چه مشركان دَدى اعتراف كوى چه لكه څرنګه دكائناتوخالق صرف الله ﷻ دي دغه شان دااعتراف هم كوى چه دكائناتوباقى پاتى كيدلونظام صرف الله ﷻ سره دې.او دغه شان لكه څرنګه چه رازق صرف الله دې نو دغه رنګه اسبابو دَ رزق خالق هم صرف الله دي چه دَاسمان نه باران نازلوى چه دَهغى په ذريعى سره وچه زمكه راژوندئ شى،او رزق

دَ مخلوقاتو دَ پاره پیدا شي ﴿قُلِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ دا دَمذکوره دلائلو ثمره ده چه دَمشرکانو دَ اعتراف نه ثابته شوه چه تمام صفات الله جَلَّ جَلَالُهُ سره مختص دی څوك هم ورسره شریك نشته. لیکن اکثر دَدوئ نه غور او تدبر نه کوی چه دَ توحید اقرار اوکړي

وَمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَهْوٌ وَّلَعِبٌ ۭ وَاِنَّ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ ۘ لَوْ كَانُوْا

او نده دا ژوند دَ دنیا مګر عبث بی حقیقته او لوبی دی او بیشکه کور دَ آخرت هم هغه حقیقی ژوند دې، کچری دوئ

يَعْلَمُوْنَ ﴿٦٤﴾ فَاِذَا رَكِبُوْا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ

پوهیدلي. پس کله چه دوئ سواره شی په کشتئ کښ نو سوال کوی الله جَلَّ جَلَالُهُ ته چه خالص کونکی وي هغه ته دَخپل عبادت.

فَلَمَّا نَجّٰىهُمْ اِلَى الْبَرِّ اِذَا هُمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿٦٥﴾ لِيَكْفُرُوْا بِمَآ

پس هر کله چه الله جَلَّ جَلَالُهُ ورته نجات ورکړې وچی ته نو بیا دوئ شرك کوی، چې دوئ کفر اوکړي په هغه نعمتونو

اٰتَيْنٰهُمْ ۚ وَلِيَتَمَتَّعُوْا ۫ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿٦٦﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا

چې مونږ ورته ورکړیدي او چه دوئ لږه نفع واخلي پس زر ده چه دوئ به پوهه شي. آیا نه ګوری دوئ چه

اَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا اٰمِنًا وَّيُتَخَطَّفُ النَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ ۭ اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ

بیشکه مونږ ګرځولې دې حرم امن والا او تختولې شی خلق دَ ګیرچاپیره دَدوئ. آیا په باطل دوئ ایمان راوړی

وَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَكْفُرُوْنَ ﴿٦٧﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ

او په نعمت دَ الله جَلَّ جَلَالُهُ کفر کوی. او څوك دې غټ ظالم دَ هغه چانه چه اوتړی په الله جَلَّ جَلَالُهُ دروغ یا تکذیب اوکړي دَ حق

لَمَّا جَآءَهٗ ۭ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿٦٨﴾ وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا

کله چې راغی ده ته. آیا نده په جهنم کښ ټکانه لپاره دَ کافرانو. او هغه کسان چه کوشش کوی زمونږ دَ دین لپاره

لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ۭ وَاِنَّ اللّٰهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٦٩﴾

خامخا به ورته مونږ هدایت کوو دَ لارو خپلو. او بیشکه الله جَلَّ جَلَالُهُ خامخا دَ نیکو کونکو سره دې

﴿وَمَا هَـٰذِهِ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَآ ﴾دادَدنيادَژوندتقليل اودَدنيادَتحقيربيان دي.دَدنيادَژوند تشبيه دَلوبوتماشوسره ورکړې شويده،چه لکه څرنګه ماشومان لوبی تماشی اوکړې.راجمع شی څان خوشحاله کړي لږوخت لپاره بياجداجداشی خالی لاسونه کورونه ته ځی،دغه شان دَدنياهم دَيوڅوورځی لوبی تماشی دی چه کافرانوفاسقانوپکښ څان خوشحاله کړيدې،بيابه ترينه خالی لاس ځی،او فرق په مينځ دَ "لهو" او"لعب" کښ دادي چه لهو"اطلاق په هغه څيز باندي کيږې چه په هغي سره دَزړه مشغوليت دَ بل شي نه راځي دَدي وجي نه صاحب دَ مظهري فرمائي:"وهومابشغله مما يغنيه فان اشغال المرأ بالدنيا يشغله مما يفيده في الحيوة المؤبدة"يعنى لهو هر هغه شئ دي چه دَ مفيد شئ نه منع کول او مشغول کول کوي نو په دَنيا کښ مشغوليت دَ انسان دَ هغه څيزونه منع کول کوي کوم څيزونه چه ابدي ژوند کښ پکار راځي،او لعب لو بوته وئيلي کيږي.اطلاق ئي په هر هغه څيز باندي کيږي چه دلږي مزي ولاوي اوزرزائله کيدونکې او ختميدونکې وې،نو دَدينه معلومه شوه چه د الله تعالى عبادات ذکر واذکار وغيره په دنيا کښ شامل ندي اګر چه کيږي په دنيا کښ،يعنى دنيا ئي ميدان عمل دي خود دنيا نده،څکه چه دَ دي ثمره په اخرت کښ انسان ته ميلاويږي.

﴿وَإِنَّ ٱلدَّارَ ٱلْأَخِرَةَ لَهِيَ ٱلْحَيَوَانُ ﴾"حيوان"مصدردې د(حی)اصل کښ حييان دي،دويمه ياخلاف قياس په واؤبدله شويده،"حيوان"مبالغه ده په حياة کښ،يعنى اصل اوحقيقى حياتْ آخرة حيات دې،چه نه پکښ موت شته دې نه مرض نه فنا.﴿لَوْ كَانُواْ يَعْلَمُونَ ﴾دا شرط دی جوابِ شرط محذوف دې ای لوکانوايعلمون لماأثروا عليها الدنيا (روح)يعنى که دوئ پوهيدلي نودنياته بئ په آخرت ترجيح نه وه ورکړي.الله تعالى دي مونږ ته هم دا پوه راکړي يا "لو" تمنائى دې يعنى کاش چي دوئي پوهيدلي﴿فَإِذَا رَكِبُواْ فِي ٱلْفُلْكِ ﴾دازجردې مشرکانوته چه کله دوئ په درياب کښ په طوفان کښ راګيرشی دَخپلوباطلو معبودانودَمددنه نااُميده شی نوبيادَمؤمنانوپه شان الله ﷻ ته اوازونه کوی دَشرك نه بيزاره شی ليکن چه کله ورته الله ﷻ نجات ورکړې لوچی ته راشی نوبياشرك شروع کړي.امام رازي رحمه الله پدي ايت سره استدلال کړيدې چه توحيد او معرفت دَ الله تعالى دَهر انسان په فطرت کښ دي اګر

چه دَ خوشحالئ په حالاتو کښ ترینه هیر شي خودَ تکلیف په موقعو کښ ورته رایا دیږي ﴿لِيَكْفُرُوا بِمَآ ءَاتَيْنَٰهُمْ وَلِيَتَمَتَّعُوا﴾ظاهره داده چه لام په دواړوځایونوکښ لام کئ دی یعنی دوئ پدی خپل شرك په سبب زمونږدَنعمت ناشکری کوی چه مونږورباندې کوم دَنجات په صورت کښ کړې وؤ.او دَ هغې نعمت نه صرف ظاهري او دنیوي فائده اخلي چه دشرك په سبب خپل مینځو کښ اتحاد او اتفاق ځرګندکړي،او خپله ډلهٔ(پارټی) درنه کړې. "أي ليتمتعو باجتماعهم علي عبادة الاصنام وتوادهم عليها(روح)اود شرك په سبب خپله پارټی ورسره درنه وی،بعضِ وائی لام امردي،امردَتهدیدلپاره دې لکه"اعملواماشئتم"تائیددَدې قول دادې چې په یو قرائت کښ "وليتمتعوا"په سکون دَلام سره راغلې وې،او بعض حضرات فرمائي چه دا لام العاقبت دې،یعنی دَدې نعمت انجام دَ دوئ په حق کښ دا دې چه دوي کفر اوکړي او دنیوی مزې واخلي او پدیکښ اشاره ده چه کافر او منافق انسان نعمت دَ الله تعالیٰ صرف دنیوي لذت او خواهش پوره کولو ذریعه ګرځوي،او مؤمن او نیک انسان دَ الله تعالی نعمتونه زیادت اطاعت او زیادت شکر ادا کولو ذریعه ګر ځوي«مدارك»﴿فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾یعنی دَخپل کفرانجام به ورته دَقیامت په ورځ معلوم شی

﴿أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا جَعَلْنَا﴾ دیکښ په اهلِ مکه ؤباندی دَیولوئ انعام ذکردې او خاص کر مشرکین مکه ته.چه آبادوئ نه وینی چه مونږدَدوئ علاقه مکانی محترم ګرځولې دې،په امن کښ دې دَقتل وغارت نه،تولوعربوبه دَبیت الله په وجه دَاهلِ مکه ؤعزت کولودَدوئ قافلې به یې نه لوټ کولې حالانکه ګیرچاپیره خلقوته دغه امن نه وؤمیلاؤبلکه ډاکوانو به اغواکولو .قتل کول به ئی صاحب دَروح المعانی دَابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړیدي چه اهلِ مکه ؤحضور ﷺ ته اووئیل چه پدی وجه مونږایمان نه راوړوکچرته عرب خبرشول چه دوئ ایمان راوړیدې نومونږبه مره کړي نودا آیت نازل شولکه سورة القصص کښ هم دی:وقالواان نتبع الهدیٰ معك نتخطف من ارضنا.﴿أَفَبِالْبَٰطِلِ﴾استفهام دَپاره دَ انکار دې،او باطل‌نه مراد غیر الله دې،نو مقصد دادې چه دَ دومره لوئ او عظیم انعام او احسان باوجود دوئي شرك کوي اودَمعبودان باطله عبادت کوي.اودَ الله دَنعمت ناشکري کوي

بعض حضرات فرمائي چه: "وبنعمة الله"نه مراد ذات اقدس رسول الله صلى الله عليه وسلم دي چه په ټولو نعمتونو کښې لوئ نعمت دې،نو دَايت مقصد دادې چه دوئ په معبودان باطله باندې ايمان راوړي اودَرسول الله صلى الله عليه وسلم په نبوت باندې ايمان نه روارړي ،چه دالوئ نعمت دې.

﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ﴾زجردې مشرکانوته چه دَدوئ نه بل غټ ظالمان نشته چه په الله ﷻ دروغ ترکړې چه الله ﷻ لره شريك شته دې،﴿أَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ﴾دَحق نه مرادرسول دې اوکتاب.﴿أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ﴾استفهام تقريرى دې يعنى دَدوئ ځکانه دوزخ دې.﴿وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا﴾ دادَسورة دَابتداء سره متعلق دې، اوبشارت دې هغه کسانو ته چې دَ الله تعالى په لاره کښې په ځانونو باندې تکاليف تيره وي يعنى کوم خلک دَ الله تعالى دَدين په خاطر تکليفونه برداشت کوي،په ځان مشقتونه تيره وي صبر استقامت کوي الله په دوئى ته نوره هم ترقي ورکړي﴿جَاهَدُوا﴾باب مفاعله دَجهادنه،دې او جهاد په لغت کښې کوشش او مشقت ته وئيلي کيږي او اصلاح کښې:استفراغ الوسع في مدافعة العدوته وئيلي کيږي،او داکله په صورت دَ قتال کښې وي چه جهاد ظاهر ورته وئيلې کيږي او کله په صورت دَ مجاهده مع النفس په صورت کښې وي چه ديته جهاد باطني وئيلې کيږي ،دا ايت مکي دې مکه دور کښې جهاد فرضيت نوو رغلي،دَدې نه اکثر مفسرينو دَجهاد نه،دلته جهاد مع النفس مراد کړيدې.

لکه دَحضرت حسن بصرى رحمه الله نه مروي دي فرمائې چه مجاهده نه مراد الصبر علي الطاعات واجتناب المعاصيدي،امام مجاهد وغيره حضراتونه منقول دي چه جاهدوا فينا"معنى ده "رغبوا في طاعتنا" لنهدينهم اي لنعرفنهم طريقناليکن بعض مفسرين فرمائې چه غوره خبره داده چه جهاد نه عامه معنى مراد کړې شي چه جهاد مع النفس او جهاد مع الاعدا ،دواړوته شامل شي(روح البيان ،ابي سعود)

فضيل بن عياض رحمه الله نه مروي دي چه دَجهاد نه مراد کوشش کول دي په طلب دَ

علم کښې او "سبلنا"نه مراد طریقې دَ عمل دي،دَایت مقصد دادې چه:"والذین جاهدوا في طلب العلم لنهدینهم سبل العلم به (بغوي)یعني کوم کسان چه دَ علم زده کړې دَ پاره کوشش کوي نو مونږ به روته په علم باندې دَ عمل کولو لارې اوښایو.او بعض حضرات فرمائي چه جاهدوانه مراد عمل کول دي په علم باندې او "لنهدینهم سبلنا"نه مراد ترقي ورکول دي په علم کښې،نو دَایت مقصد دادې چه کوم خلک په خپل علم باندې عمل کوي نو الله تعالی به ورته دَ خپل طرف نه مزید علم ورکړي.لکه په حدیث شریف کښې دي.من عمل بما علم ورثه الله علم مالم یعلم (بیضاوي سمعاني)﴿وَإِنَّ ٱللَّهَ لَمَعَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ﴾امام رازي فرمائي چه: والذین جاهدوانه مراد هغه کسان دي چه نظر اوفکر کوي چه داشرط دې دَعلم استدلالي دَپاره،او "لنهدینهم سبلنا"نه مراد علم دې په نتیجه باندې چه الله دغه علم پس دَ ترتیب نه په قلب دَ ناظر کښې پیدا کوي،امام رحمه الله دَ دې ایت تفسیر داسې کوي چه هر کله الله تعالی په ماقبل کښې دلائل په توحید باندې ذکر کړل نو دَهغې نه ورستو دَ درې ۳ قسمه خلکو ذکر هم اوکړو(۱) ځنې هغه خلک دي چه نظرا و فکر بالکل نه کوي ضداوتعصب کښې انتها ته رسیدلي وي،اقرار یې هم کوي خو تسلیم نه کوي دَ هغوي ذکر"ومن اظلم ممن افتری"کښې اوشو(دویم ۲)هغه کسان وي چه صحیح نظراوفکر کوي نو الله تعالی ورته علم په نتیجه ورکوي.دَهغوي ذکرېدي جمله کښې اوشو.او(دریم۳) هغه کسان دي چه الله تعالی ته ډیر قریب وي بغیر دَنظر او فکر نه الله تعالی ورته علم په مطلوب ورکړي (یعنی واجد دَ قوت قدسیه وي) دَهغوي ذکر په دې جمله کښې ان الله لمع المحسنین کښې اوشو او ابن کثیر رحمه الله دَامام شعبی رحمه الله نه نقل کړیدي چه عیسی علیه السلام فرمائی: انما الاحسان ان تحسن الي من اساء الیك لیس الاحسان ان تحسن الي من احسن الیك یعني احسان حقیقت دادې چه ښیګړه هغه چاسره اوکړې چه تاسره ئې بدکړې وي او دا حقیقتا احسان ندې چه تاسره چا ښیګړه کړې وي هغه سره ته ښیګړه اوکړې،نو پدیکښې اشاره ده،دیته چه کومو خلکو تاسوته تکلیفونه درکړیدي(لکه چه هغې ته په سورت په ابتدا کښې اشاره شوید وه) نوهغوي سره تاسو احسان کوئ.

(اللهم زدنا علما نافعا ورزقا واسعا وعملا متقبلا

| ركوعاتها (۶) | سورة الرّوم مكية | آياتها (۶۰) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۳۰) وحسب النزول (۸۱)**

حسب تسلسل(۳۰)دې اوحسب النزول(۸۱)دې،نزلت بعدسورة الانشقاق قبل العنكبوت شپېته(۶۰) اياتونو ۸۱۹ كلماتو باندې او ۳۵۳۴حروفوباندې مشتمل دې.

**ربط اسمي:** ماقبل سورت کښې داخبره واضحه شوله چې الله تعالى نه ماسوا څومره معبودان دي.هغوئ حيثيت دَعنكبوت دكور پشان دې،چې بالكل ضعيف او كمزور دي،او چاته څه پناه نشې وركولې.او دې سورت كښې ددې خبرې بيان دې چې څوك الله تعالى نه مدد غواړي او تو حيد باندې قائم دې نو الله تعالى به ورله داسې غلبه وركړي لكه روميانو له په فارسيانو باندې نه غلبه وركړې ده.

**ربط معنوی:** سورة عنكبوت كښې دَمصائبوذكروؤچه مؤمنانوباندې به به طورِامتحان مصائب راځي صرف آمنا وئيل كافي ندي،بلكه دين په خاطر به تكاليف برداشت كول هم ضروري ده نو اس په دې سورة كښې په مصائبوبرداشت كولواوصبراستقامت باندې اوسيدلوانعام ذكركيږي چه مؤمنانوته به دَالله ﷻ دَطرفه نصرت ميلاويږي اودوئ به پرې خوشحاليږي، كقوله تعالى﴿وَيَوْمَئِذٍ يَفْرَحُ الْمُؤْمِنُونَ بِنَصْرِ اللَّهِ﴾.دغه شان ماقبل سورت كښې وؤ چه وَالذين جاهدو فينا لنهدينهم سبلنانو پدې سورت كښې الله په واقعې دَ روميانوسره دَ هغې هدايت او لارې كولاؤلو يوه نمونه ذكر كوي.

**دعوه دَ سورت:** دَ دې سورت دعوه بشارت دې په نصرت سره ورستودَ ابتلانه،او شرط نصرت دې او دا دعوه سره دَ دلائلو څلور ځلې ذكر شويده .(۱)آيت نمبر ۴،(۲)آيت نمبر ۵ (۳)آيت نمبر۴۷،(۴)آيت نمبر ۶۰.اودرې(۳) ځلې شرط دَ دعوى چه (توحيد) دې دَ هغې ذكر دې.

**خلاصه:** په ابتداء كښې مسلمانانوته په مشركانوباندې دَفتح اوغلبې بشارت دى،فتح اونصرت چونكه محض توحيدباندې قائم پاتې كيدلوسره ميلاويږي نو دَتوحيدحكم دې چه﴿

فَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ ﴿۱۲﴾ ۱۲ دلائل عقليه دي په توحيد ۳۰ امورِدفعيه دعذاب دي، دينه علاوه زواجرتخويفات هم دي.

**تفصيلي خلاصه**: دري خله دسورت دعوه (نصرت الهيه) ذکر کيږي: (۱) وَيَوْمَئِذٍ يَفْرَحُ ٱلْمُؤْمِنُونَ

بِنَصْرِ ٱللَّهِ (آيت نمبر ۵،۴) (۲) وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿﴾ فَٱصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ ﴿﴾

دري خله شرط دعوى (توحيد) ذکر دي، (۱) فَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ ﴿﴾ (۲) فَأَقِمْ

وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا ﴿﴾ (۳) فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ ٱلْقَيِّمِ ﴿﴾

دولس (۱۲) دلائل عقليه دي په توحيد:

آيت نمبر (۲۰) نه ۲۷ پورى مسلسل اته ۸دلائل ذکر دي.نهم ۹/ دليل په آيت نمبر ۴۰،لسم دليل په آيت نمبر ۴۲يولسم دليل آيت ۴۸او دولسم دليل په آيت نمبر۵۳کښ ذکردي.

دري دلائل په معاد بيانيږي:

(۱) ٱللَّهُ يَبْدَؤُا۟ ٱلْخَلْقَ ﴿﴾ (۲) يُخْرِجُ ٱلْحَيَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ ﴿﴾ (۳) فَٱنظُرْ إِلَىٰٓ ءَاثَٰرِ رَحْمَتِ ٱللَّهِ ﴿﴾

پنځه تخويفات دي: (۱) أَوَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُوا۟ (آيت ۹،۱۰) (۲) وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ (آيت ۱۲،۱۴) (۳)

ظَهَرَ ٱلْفَسَادُ فِى ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ (آيت ۴۱،۴۲) (۴) مَن كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهُۥ (آيت ۴۴) (۵) وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ (آيت ۵۵)

دري بشارتو بيان دي (۱) غُلِبَتِ ٱلرُّومُ ﴿﴾ (۲) فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ (آيت ۱۰) (۳)

وَمَنْ عَمِلَ صَٰلِحًا فَلِأَنفُسِهِمْ يَمْهَدُونَ آيت نمبر ۴۴،۴۵

دري څايه زجراتو بيان دي (۱) يَعْلَمُونَ ظَٰهِرًا مِّنَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا (آيت ۷،۸) (۲) أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّ ٱللَّهَ يَبْسُطُ

ٱلرِّزْقَ (آيت ۳۷) (۳) وَلَئِنْ أَرْسَلْنَا رِيحًا (۵۱)

دوه څله تسلى ده: (۱) فَإِنَّكَ لَا تُسْمِعُ ٱلْمَوْتَىٰ (آيت ۵۲) (۲) فَٱصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ (آيت

۶۰) يوځل شکوه ده: وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِى هَٰذَا ٱلْقُرْءَانِ (آيت ۵۸)

تمت خلاصة السورة.

الٓمّٓ ﴿١﴾ غُلِبَتِ الرُّوْمُ ﴿٢﴾ فِيْٓ اَدْنَى الْاَرْضِ وَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُوْنَ ﴿٣﴾

الٓمّٓ،مغلوبه کړي شول روميان،په نيزدې زمکه کښې اودوئ(روميان)به ورستودَمغلوبه کيدلونه زربه غالب شي

فِيْ بِضْعِ سِنِيْنَ ۭ لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْۢ بَعْدُ ۭ وَيَوْمَىِٕذٍ

په يوڅوکالونوکښې،خاص الله ﷻ لره دي اختيارمخکښې دَمغلوبه کيدلونه هم اوورستوهم.اوپه دغه ورځ دَغلبې به

يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿٤﴾ بِنَصْرِ اللّٰهِ ۭ يَنْصُرُ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿٥﴾

خوشاله شي مؤمنان،په مددداَلله ﷻ.الله ﷻ مددکوی دَهغه چاچه خوښه ئې شي.اوالله ﷻ غالب دي مهربانه دي

وَعْدَ اللّٰهِ ۭ لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٦﴾

وعده کړيده الله ﷻ.خلاف نکوی الله ﷻ دَوعدې خپلې ليکن اکثرخلق نه پوهيږی

﴿الٓمّٓ ﴿١﴾ غُلِبَتِ الرُّوْمُ﴾دی آياتونوکښې بشارت دَفتحې دي مؤمنانوته په مشرکانو،چه په کومه ورځ روميانوته په ايرانيانوفتح اوشی پدغه ورځ به مسلمانانوته هم دَمکې په مشرکانوباندې فتح ميلاؤشی،مسلمانان به په نصرتِ الهی سره خوشحاله شي.

غلبت الروم جمله خبريه ده مستعمل ده دَ لازم دَ فائدة الخبر دَ پاره،مقصددادي چه روميان مغلوب شو اوفارسيان غالب شو.ليکن تاسو اې کفار مکه پدې مه خوشحاله کيږئ.اواې مؤمنانو تاسو مه خفه کيږئ ځکه چه عنقريب روميانوته به غلبه ورکړې شي،او فارسيان به مغلوب کړې شي.

دَدې آياتونوشانِ نزول باره کښې مفسرينوليکلی دی چه په عهدِرسالت کښې دوه لوئ طاقتونه وو(سپرطاقت)يوفارس(ايران)اوبل روم،اهلِ فارس آتش پرست وو،اوروميان اهلِ کتاب يعنی عيسايان وو.دَمشرکانوهمدردياني دَاهل فارس سره وې ځکه چه دوئ هم مشرکان اودَغيرالله عبادت کونکی وو،نودَمکې مشرکان به دَدوئ په ترقی اوفتحې باندې خوشحاله کيدل،اومسلمانان به دَروميانوپه ترقی اوفتحې خوشحاله کيدل.ځکه چه دوئ اهلِ کتاب وو.بعثت نبوی نه يوڅوکاله بعدفارسيانوپه روميانوغلبه اوموندله.ډيرې علاقې ئې ورنه واخستلې،پدې واقعې مشرکان ډيرخوشحاله شواومسلمانان خفه شول.مشرکانوبه

مسلمانانوته پیغورونه ورکول چه زمونږملګری ستاسوپه ملګروغالب شول.تاسوهم کچرته مونږسره مقابله شی نومونږبه درباندی غالب کیږو .نوالله ﷻ داآیاتونه نازل کړل چه پدی کښ داپیشنګوئی اوشوه چه په یوڅوکالوکښ به رومیان بیاغالب کیږی.اوس خومغلوب دی لیکن ورستودَمغلوبیت نه به بیاغالب شی،پدغه ورځ به الله ﷻ دَمؤمنانوسرهم نصرت کوی دَمکی په مشرکانوباندې به ورته فتح ورکوی.آیت نازلیدلونه ورستوابوبکر ﷺ راغې کافرانوته ئی اووئیل ستاسودَخپلوملګروپه غلبې مه خوشحالیږئ ډیرزربه دوباره رومیان غالب شی، ابیٔ بن خلف ورته اووئیل:داسی هرګزنشی کیدلې.ابوبکر ﷺ ورسره شرط اولږولوکه چرته دری کاله کښ رومیان غالب شونوته به ماله لس(۱۰)اوښان راکوې اوکه غالب نشول نوځه به درکوم،دغه وخت کښ شرط لګول حرام نه وؤ،بیاابوبکر ﷺ حضور ﷺ خدمت کښ حاضرشودَدی واقعی خبرئی ورته ورکړوحضور ﷺ ورته اوفرمائې تادَدری(۳)کالو مدت کم مقرکړیدې ځکه چه﴿بِضْعِ﴾لفظ دَدری(۳)نه ترنهه(۹)پوری عددلپاره استعمالیږی، نولاړشه اودی کښ اضافه اوکړه،ابوبکر ﷺ راغې دَدری(۳)کالوپه ځائ ورسره دَنهه کالواودَ لس(۱۰) اوښانوپه ځائ سل(۱۰۰)اوښان مقررکړل،دهجرت په دویم کال اودَ دې شرط لګولو په ووم(۷)کال باندی چه یو طرف ته مسلمانان دَ جنګ بدر په فتح باندې ډیر خوشحاله وؤ نوعین په دغه وخت کښ دَ رومیانو په فارسیانو باندې غالب کیدلو بشارت اوزیږې هم راغې،او چونکه ابي بن حلف په جنګ بدر کښ دَ بنی پاک صلی الله علیه وسلم دَلاس مبارک نه زخمی شوې وؤ،اوبیاپه مکه کښ مردار شونوحضرت ابوبکر ﷺ دَده دَوارثانونه(۱۰۰) اوښان واخستل،حضور ﷺ خدمت کښ ئی حاضرکړل،حضور ﷺ ورته حکم اوکړوچه داصدقه کړه،اګرچه دادغه وخت کښ حرام نه وؤلیکن حضور ﷺ ته دَشرط په ذریعه سره حاصل شوې مال خوښ نه وؤ.

**فائده**:په بعض روایاتو کښ راغلیدی چه کله حضرت ابوبکر رضی الله نبی پاک صلی الله علیه وسلم ته په شرط سر ه وصول کړی اوښان پیش کړو نو نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیلو چه: هذا السحت تصدق به اودَسحت اطلاق عموما په مال حرام باندې کیږې،حالانکه په اتفاق دَ مفسرینو سره په دغه وخت کښ شرط لګول حرام نوو،کچرې حرام وې،نو نبی صلی الله علیه وسلم به ابوبکر رضی الله عنه ته اجازت ولي ورکړې وؤ؟ نو بعضو محدیثنو جواب

دا کړي دي چه 'سحت' په معنی دَ مال حرام سره ندي بلکه 'سحت' په معنی دَخلاف مروت او سبب العار دي،نو سحت په معنی دَ ساحت للمروة دي،نه په معنی دَ ساحت للدين .لکه په بل روايت کښ 'کسب الحجام سحت' بعضو دَجواب کړيدي چه 'سحت' په معنی دَ کراهت سره دي،ليکن غوره جواب دادي چه کوم رواياتو کښ لفظ 'سحت' راغليدي هغه روايات ضعيف دی،او په روايات صحيحه کښ صرف 'تصدق' دي،نولهذا 'سحت' ثابت ندي،اوحکم دَ تصدق دکمال تقوی په اعتبارسره اودَ کمال احتياط په بنياد وو.

**فائده(۲)**:امام ابوحنيفه رحمه الله پدې آيت سره استدلال کړيدي چه عقود فاسده په دارالحزب کښ مطلقا جائز دی،داسې ذکر په شامي،محيط،برهاني وغيره کښ دي،نو دلائل سره دَ اختلافاتو په کتب دَ فقه کښ تفصيلا ذکردي،ليکن استدلال پدې آيت مذکور سره محل تامل دي.

﴿فِىٓ أَدْنَى ٱلْأَرْضِ﴾"الارض"کښ الف لام عهدي دي او معهود ورسره"ارض الروم"ده. اوچونکه زمکه دَروم ، په نسبت دَفارس عربوته زياته نيزدی ده،نو ده دي وجې توصيف ئې په ادنی الارض سراوشو مختلفورواياتوکښ دی چه جنګ دَ'اذرعات' اودَ'بُصری'"په مينځ کښ علاقی کښ شوې وو،بعضِ وائی مرادورنه أردن اوفلسطين وغيره علاقي دي.او بعض حضرات فرمائي چه 'ادنی الارض' نه مراد،'ارض العرب' دی او په کلام عربی کښ چه کله 'الارض' ذکر شی نو معهود ترينه زمکه دَ عربو وي،او دوارو توجيهاتو کښ تعارض نيشته دي.

﴿وَهُم مِّنۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ﴾'هم'ضميرراجع دي روميانوته او﴿غَلَبِهِمْ﴾مصدرمبنی للمفعول دي مضاف دي نائب فاعل ته ای من بعدمغلوبيتهم،يعنی ورستودَمغلوب کيدلونه به بيازرغالب شی.﴿فِى بِضْعِ سِنِينَ﴾متعلق دي دَ﴿سَيَغْلِبُونَ﴾سره.﴿بِضْعِ﴾عدد مبهم دي اطلاق ئی دَدری نه ترنهه پوری کيږی.﴿لِلَّهِ ٱلْأَمْرُ مِن قَبْلُ﴾'قبل' او'بعد' مبنی دی په ضمې باندې ځکه چه مقطوع عن الاضافت دی خو مضاف اليه منوی ده،معنی ئې داده چې :من قبل الغلبة ومن بعد الغلبة يامطلب دادي چه'من قبل هذه المدة ومن بعد هذه المدة" پديکښ دليل

دې پدې چه مغلوب کیدل اوغالب کیدل ټول دَالله ﷻ دَطرفه دی ﴿بِنَصۡرِ ٱللَّهِ﴾ غوره قول دادې چه جار مجرور متعلق دې دَ "يفرح المؤمنون" سره يعنى په دغه ورځ به مؤمنان خوشحاله شي په نصرت او امداد الله سره او دَالله ﷻ دَامدادنه مراديادادې چه الله ﷻ به مسلمانان پخپل قول کښ صادق اوغالب کړی،پیشنګوئ به ثابته شی چه دادَحضور ﷺ په صداقت باندی لوئ دلیل دې،یامراددادې چه مسلمانانوته به هم پدغه ورځ په مشرکانوغلبه میلاؤشی چنانچه پدغه وخت کښ جنګ بدرکښ مسلمانان غالب شول

﴿يَنصُرُ مَن يَشَآءُ﴾نصرت حقیقی دَ الله تعالی مؤمنانو سره وي،او کافر سره دالله تعالی امداد اونصرت نوي،دَنودکافر کامیابی دَ نصرت الهی دَ وجی نه ،نوي بلکه دَ ظاهری اسبابودَ وجی نه وي،اودَالله تعالی دَطرف نه،په مؤمنانو باندې ابتلا وي نودَدې وجی نه ،دَ من يشآء"نه ورستو"من اوليائه" مقدر دې،یعنی په خپلو دوستانو اوبندګانو کښ چاته خوښه شي امداد وسره اوکړې په دښمن باندې ئې غالب کړې او چاته ئې خوښه شې نو ابتلاءً مغلوب ئې کړې یعنی من اوليائه لان نصره مختص بغلبة اوليائه لاعدائه فاما غلبة اعادائه لاوليائه فليس بنصره وانما هو ابتلاء وقد يسمى ظفرا(قرطبى)﴿وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ﴾الله تعالی غالبه ذات دې،هغه ته هیڅ ګرانه نه ده،بس چی په چا مهربانی اوکړی نو هغه له غلبه ورکړې﴿وَعۡدَ ٱللَّهِ﴾،مفعول مطلق دې اضافت ئې فاعل ته شویدې او ناصب ئې حذف کړې شویدې اي وعد الله وعدا یعنی کومه وعده دَغلبی دَرومیانوده په فارس باندی چه مونږه اوکړه یعنی چه رومیان به دوباره غالب کیږی دادَالله ﷻ صادقه وعده ده،الله ﷻ دَخپلی وعدی خلاف ورزی نه کوی مدت موعودکښ به خامخاپوره کیږی.لیکن اکثرخلق ظاهری اسبابوته ګوری دَالله ﷻ تصرفاتو باندی نه پوهیږی

| |
|---|
| يَعۡلَمُونَ ظَٰهِرٗا مِّنَ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا وَهُمۡ عَنِ ٱلۡأٓخِرَةِ هُمۡ غَٰفِلُونَ ۝٧ |
| پوهیږی په ښکاره کارونودې ژونددَدنیا،اودوئ دآخرة نه هم دوئ غافله دی |

أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا فِي أَنفُسِهِم ۗ مَّا خَلَقَ اللَّهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا

آيانه كوي فكردوئ په زړونو خپلو كښ،چه ندى پيدا كړى الله اسمانونه اوزمكه اوڅۀ چه په مينځ ددى دواړو كښ دى

إِلَّا بِالْحَقِّ وَأَجَلٍ مُّسَمًّى ۗ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ بِلِقَاءِ رَبِّهِمْ لَكَافِرُونَ ﴿٨﴾

مګرپه حقه اولپاره دنيتى مقررى ئى پيدا كړيدى.اوبيشكه ډيرخلقونه په ميلاويدلودرب خپل خامخاانكاركونكى دى

أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ

آيادوئ نه ګرځي په زمكه كښ چه اوګورى چه څنګه وؤانجام دهغوكسانوچه مخكښ وؤددوئ نه.

كَانُوا أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَأَثَارُوا الْأَرْضَ وَعَمَرُوهَا أَكْثَرَ مِمَّا

وؤهغوئ زيات سخت ددوئ،اهل مكؤنه په قوة كښ اواړولى ئى وه زمكه اواباده كړي ئى وه زمكه زيات دهغى نه

عَمَرُوهَا وَجَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ ۖ فَمَا كَانَ اللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ

چه دوئ اباده كړيده اوراغلي وؤهغوئ ته رسولان دهغوئ په واضحو معجزو سره.پس نه وؤالله چه ظلم ئى پرى كړي وې

وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿٩﴾ ثُمَّ كَانَ عَاقِبَةَ الَّذِينَ أَسَاءُوا السُّوأَىٰ

ليكن هغوئ پخپلوځانونو پخپله ظلم كولو.بياوؤانجام دهغه چاچه بدئ كړي وؤ بدځائ،چه جهنم دې

أَن كَذَّبُوا بِآيَاتِ اللَّهِ وَكَانُوا بِهَا يَسْتَهْزِئُونَ ﴿١٠﴾ ع

پوجه ددى چه تكذيب ئى كولوپه آياتوداللهﷻ اوپه هغى پورې يې مسخرې كولې

﴿يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا﴾ دا بدل دې دماقبل "لايعلمون"نه اوزجردې مشركانوته چه صرف ددنياعيش وارام باندى پوهيږى او دهغه نفع اونقصان ورته ښكاري او ددى لپاره كوشش كوى اودآخرت نه بالكل غافله دى هغى لپاره ئى هيڅ تياري نشته دې.اودې آيت كښ تنبيه ده پدې خبره چې جهل اوهغه علم چې مقصودترينه صرف تحصيل ددنيا وي،دواړو په مينځ كښ هيڅ فرق نيشته دې،دواړه برابردى(مدارك)

﴿أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا فِي أَنفُسِهِم﴾داهم زجردې مشركانوته."في انفسهم"ظرف د"يتفكروا"دې تاكيد

دپاره دي اومفعول به د"يتفكروا"ندي،دايت مقصد دادي چه دوئ په خپل خانونوکښ ولې فکر نه کوی،یعنی دخان سره دي سوچ اوفکراوکړي چه الله تعالی داټول نظام دعالم عبثه اوبی مقصده ندي پیداکړي بلکه دحق داظهارلپاره ئی پیداکړي دي چه پدی سره انسان خپل خالق اوپیژنی اودهغه دقدرت اووحدانیت باندی استدلال اوکړی دغه شان ددی په تغیراتواواحوالُ کښ غورکولونه پته لګی چه ددی یوحداوانتهاء نشته دي لهذایومقرری نیټی باندي به داعالم فناکیږي،بل عالم به قائمیږی چه جزااوسزامیلاؤشی.لیکن اکثرخلق داغورنکوی اودالله ﷻ سره دملاقات نه یعنی بعث بعدالموت نه انکارکوي﴿مَّا خَلَقَ ٱللَّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ﴾دامتعلق دي دمحذوف سره چه "فيعلموا"دي،اي فيعلمواماخلق الله السموات والارض الابالحق(مدارک،روح).﴿وَأَجَلٍ مُّسَمًّى﴾عطف دي په﴿بِٱلْحَقِّ﴾باندی ای وباجلٍ معین قدره الله تعالی لبقائها(روح)مرادورنه وخت دقیامت دي.یعنی استدلال دي اوکړی په خپل نفس اوپه زمکی اسمانونو اوددي په انقلاباتوسره په قیامت باندي چه قیامت خامخا قائم کیدونکی دي،اودا انقلابات الله تعالی عبث ندی پیداکړی.

﴿أَوَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ﴾داتخویف دنیوي دي اهلِ مکه ؤته،چې دوئ دمخکنی هلاکت شده قومونوانجام بدلیدلې دي حالانکه هغوئ ددوئ نه په قوت،زراعت وغیره کښ زیات وؤ.لیکن درسولانوتکذیب ئی اوکړونوالله ﷻ هلاك کړل.نودوئ دی هم عبرت واخلي﴿كَانُوٓا۟ أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً﴾قوت نه مراد جسمانی قوت دي لکه قوم عاد اوثمودچه الله تعالی ورته ډیر لوئ جسمانی طاقت ورکړي وؤ. ﴿وَأَثَارُوا۟ ٱلْأَرْضَ﴾یعنی زمکه به ئی دکروندي اوزراعت لپاره اړه وله،یادمعادنوراوباسلو لپاره،پدیکښ اشاره ده د هغوئ اقتصادی قوت ته﴿وَعَمَرُوهَآ﴾یعنی قسمه قسم عمارات به ئی جوړول چه دومره تاسو نشئ جوړولي،پدیکښ اشاره ده دهغوئ امن ومان طرف ته اوعلامه آلوسی رحمه الله فرمائی چه پدیکښ دهغوئی طویل عمرونوته اشاره ده ﴿فَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ﴾فا فصیحیه ده ددینه مخکښ عبارت محذوف دي تقدیر د عبارت داسی دي،فلماکذبواالرسل فاهلکهم الله﴿فَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ﴾

اودَ "ليظلمهم" نه مراد هلاک کول دی بغير دَ جرم نه.

اوکه څوک اشکال اوکړی چه مذهب دَ اهل السنة والجماعت دادې چه اهلاک دَ الله تعالى دَ يوتَ مِ لره بغير دَ جرم نه ظلم ندې، دَالله تعالى بلکه عين عدل دې، نوځرنګه ورنه تعبير په ظلم سره اوشو ،نو جوات داکړې شويدې چه تعبير ورنه په ظلم سره دَ پاره دَ اظهاردَ کمال نزاهت دَ الله تعالى دې، يعنى اګرچه اهلاک بغير دجرم اوګناه نه ،ظلم ندې، دَ الله تعالى دَ طرف نه، خو الله تعالى په ځان باندې داخبره تفضلا او احسانا لازمه کړيده، چه يو قوم به هم بغير دَ جرم نه ،نه هلاک کوم ﴿ثُمَّ كَانَ عَـٰقِبَةَ ٱلَّذِينَ﴾ دائى دَبدانجام بيان دې. ﴿عَـٰقِبَةَ﴾ خبر مقدم دې دَ﴿كَانَ﴾ او﴿ٱلسُّوٓأَىٰ﴾ ئى اسم دې، ﴿عَـٰقِبَةَ ٱلَّذِينَ﴾ محل داسم ضمير دې اي عاقبتهم خو اسم ظاهر ذکر کړې شو يعنى "الذين اساؤا" دَهلاکت علت باندې تنبيه دَپاره يعنى بياوؤانجام دَهغه خلقوچه بدئ کړى وؤ، ﴿ٱلسُّوٓأَىٰ﴾ اى العقوبة السوىٰ، چې هغه عقوبة بالنار وؤ. په آخرت کښ اوتدمير دَ ديارو اوهلاکت وؤپه دنياکښ ﴿أَن كَذَّبُواْ﴾ دا سبب اوعلت دَ هلاکت دَ پاره ذکر کيږى.

| |
|---|
| ٱللَّهُ يَبْدَؤُاْ ٱلْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ⑪ وَيَوْمَ |
| الله جَلَّ جَلَالُهُ اول ځل پيداکړيدى خلق بيابه ئى دوباره پيداکوى بيابه خاص هغه ته تاسو واپس کيږئ، اوپه کومه ورځ |
| تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ يُبْلِسُ ٱلْمُجْرِمُونَ ⑫ وَلَمْ يَكُن لَّهُم مِّن شُرَكَآئِهِمْ شُفَعَـٰٓؤُاْ |
| چه قائم (واقع) شى قيامت نونااميده به شى مجرمان (کافران) اونه به وى دوئ لره دَشرکاؤ دَدوئ نه شفاعت کونکى |
| وَكَانُواْ بِشُرَكَآئِهِمْ كَـٰفِرِينَ ⑬ وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَتَفَرَّقُونَ ⑭ |
| اوشى به داشريکان په عبادت دَدوئ انکارکونکى. اوپه کومه ورځ چه قائم شى قيامت پدغه ورځ به خلق دلي دلي شى |
| فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ فَهُمْ فِى رَوْضَةٍ يُحْبَرُونَ ⑮ |
| پس هغه خلق چه ايمان ئى راوړيدې اوکړى يئ دي نيک عملونه نودوئ ته به په باغونو دَجنت کښ نعمتونه ورکولې کيږى |

وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَلِقَآئِ الْاٰخِرَةِ فَاُولٰٓئِكَ فِي الْعَذَابِ

اوهغه كسان چه كفرئى كړيدي اوتكذيب ئى كړيدي زمونږ دآياتونو اودملاقات دآخرت نوداكسان به په عذاب كښ

مُحْضَرُوْنَ ﴿۱۶﴾ فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ ﴿۱۷﴾ وَلَهُ الْحَمْدُ

حاضره ولې شي پس پاكى بيانوئ د الله ﷻ كله كښ چه ماښام كوئ اوچه كله سهاركوئ ،اوالله ﷻ لره ثناء ده

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَعَشِيًّا وَّحِيْنَ تُظْهِرُوْنَ ﴿۱۸﴾ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ

په اسمانونوكښ اوزمكه كښ،او(پاكى بيانوئ دالله) بيګائى اوچه كله ماسپښين كوئ الله راوباسى ژوندي دمړى نه

وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ وَكَذٰلِكَ تُخْرَجُوْنَ ﴿۱۹﴾

اوراوباسى مړي دژوندى نه اوژوندئ كوى زمكه ورستودَوچې دلونه،اوهم دغه شان به تاسوراوباسلي كيږئ دقبرونونه

﴿اَللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ﴾ داپه اثبات دَقيامت باندى عقلي دليل دي،چه لكه څرنګه الله ﷻ پخپل قدرت سره داټول خلق پيدا كړى دى دغه شان به ئى دَمرګ نه ورستوبه ئ بياپيدا كړى،ټول به دَحساب لپاره الله ﷻ ته رجوع كوى.﴿وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ﴾ تخويف اخروى دى مشركانوته اوخلور اخروى حالات دَمجرمانواوكافرانو ذكر كيږى.﴿يُبْلِسُ﴾ دا اول حالت دي.يبلس دَ ابلاس نه مشتق دى،هغه حزن ته وائى چه دَډيرى نااُميدئ نه په سړى راشى ابليس هم دَدينه مشتق دى،بعض وائى ابلاس معنىٰ داده چه سړى حيران اوساكت شى اوڅه حجت اودليل ورسره نه وى،قيامت په ورځ به دكافرانوهم دغه حال وى چه نااميده به وى حيران اوخاموش به ولاړوى څه عذراوحجت به ورسره نه وى.﴿لَمْ يَكُنْ لَّهُمْ مِّنْ شُرَكَآئِهِمْ﴾ دا دويم حالت دي يعنى نه به دَدوئ شركاء اومعبودان باطله دَدوئ سفارش كولى شى چه دَالله ﷻ دَعذاب نه ورته نجات وركړى.﴿وَكَانُوْا بِشُرَكَآئِهِمْ﴾ دادريم حالت دي يعنى چه دوئ دَخپلو معبودانو دَحقيقت حال نه خبرشى اودَهغوئ دَمددنه نااُميده شى نودَالوهيت نه به ئى انكاراوكړى. ﴿وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّتَفَرَّقُوْنَ﴾ داخلورم حالت دي يعنى دَقيامت په ورځ به اهلِ جنت اواهلِ جهنم

جدا جدا شی

﴿فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ما قبل تفرق تفصيل دي او بشارت دي مؤمنانوته چه دوئ ته به په جنت کښ قسمه قسم انعامات ورکولې کيږی.اکرام به ئی کيږی.خوشحاله به وی﴿يُحۡبَرُونَ﴾دَ"حبر"نه مشتق دي."حبر"ډيرې معنی بيان شويدی.(۱)سرور او خوشحالی (۲)اکرام ملمستيا(۳)خائست وغيره دلته ترينه مراد عزت افزائی ده چې هغې سره به جنتيانو ته سرور او خوشحالی هم ميلاويږی ملمستيا او اکرام به يې هم اوشی اوخائست به ورته هم حاصل شي.

﴿وَأَمَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾تخويف دې کافرانوته چه دوئ به هميشه لپاره جهنم په عذاب کښ حاضروی،يوساعت لپاره به هم نشی غائب کيدلې.

**فائده**:دَجنتيانو صفت اودَحالت ذکر په صيغې دَ فعل سره اوشويعنی داسی اوئيلی شو "يحبرون"ځکه چه فعل دلالت په تجدد کوی،نوپدې کښ اشاره چه نعمتونه،دَجنت به متجدد کيږی،اوساعت په ساعت به دَ جنتيانو خوشحالی زياتيږی.اودَمجرمانو دَحالت ذکر په جهنم کښ په صيغې دَ اسم مفعول سره اوشو،دَپاره دلالت په دوام اوبقاباندې.

﴿فَسُبۡحَٰنَ ٱللَّهِ﴾داداَبتداءدَسورت يفرح المؤمنون بنصرالله سره متعلق دې اودَ توحيد دعوت دې،چې الله تعالی تاسوله دَ توحيد او ايمان په بنياد غلبه درکوې،لهذا تاسو الله تعالی دَهر قسم شريکانو نه پاک ګڼئ،تسبيح نه مراد اکثر مفسرينو په نيز ظاهری معنی ده،يعنی مطلقا پاکی بيانول ،خواه هغه دَ مونځ په صورت کښ وی يا مونځ نه بهر وی او دَ دې اوقاتو تخصيص ځکه اوشو چې ديکښ دَ الله تعالی دَقدرت اورحمت مختلف آثارو ظهور کيږی.

ابن عباس رضی الله عنهما دَتسبيح تفسير په مونځ سره کړيدې،او دوئ فرمائی "تمسون" کښ دَ ماښام مونځ او "تصبحون"کښ دَسهار مونځ"عشيا"کښ مازديګر مونځ او "تظهرون" کښ دَماسپخين مونځ ذکر دی،اوبل روايت کښ ترينه داسی مروی دی چې"تمسون"کښ دَماښام اوماسخوتن دواړو ذکر دی،نو دغه شان دې آياتونو کښ پنځه واړه مونځونو ذکر

راغي﴿فَسُبۡحَٰنَ ٱللَّهِ﴾مفعول مطلق دي فعل محذوف"سبحوا"لپاره او﴿وَلَهُ ٱلۡحَمۡدُ﴾جمله معترضه ده ديکښې دَدې خبرې بيان دې چې الله تعالى ستاسوتسبيح ته محتاج ندې،بلکه ديکښې ستاسو فائده ده او تاسو محتاج يئ﴿وَعَشِيّٗا﴾عطف دې په"حين تمسون"باندې.او ﴿وَحِينَ تُظۡهِرُونَ﴾هم پدې باندې عطف دې.په رواياتوکښې دَ دې آيتونوډير فضيلت راغليدې. په يوروايت کښې راغليدي چه څوک دادرې آياتونه سهاراووانې دَورځې دَده نه چه کومه کوتاهي کيږې په عمل کښې دَدې کلماتوپه برکت سره به پوره کيږې او چه څوک ئې دَشپې اووانې نودَشپې دَعمل کوتاهئ تدارک به ئې کيږې،(ابوداؤد وغيره)

﴿يُخۡرِجُ ٱلۡحَيَّ مِنَ ٱلۡمَيِّتِ﴾دابل دليل عقلي دې په بعث بعدالموت باندې ،چه کوم الله ﷻ دَبې جانه،نه جاندارپيدا کوې،اودَجاندارنه بې جانه پيدا کوې نودغه الله ﷻ پدې هم قادردې چه دَمرګ نه ورستوبياانسان پيدا کړي.﴿يُخۡرِجُ ٱلۡحَيَّ مِنَ ٱلۡمَيِّتِ﴾لکه انسان چه دَمړې نُطفې نه پيدا کيږې،ياچرګ داګئ نه پيدا کوې.﴿وَيُخۡرِجُ ٱلۡمَيِّتَ مِنَ ٱلۡحَيِّ﴾لکه نطفه چه دَانسان نه رااوځي اويالکه اګئ دَچرګې نه پيدا کيږې.

﴿وَيُحۡيِ ٱلۡأَرۡضَ بَعۡدَ مَوۡتِهَاۚ﴾ چه اوچه زمکه په باران وغيره سره شنه کړې،نودغه شان به تاسودَقبرونونه ژوندې رااُوځئ.

| |
|---|
| وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦٓ أَنۡ خَلَقَكُم مِّن تُرَابٖ ثُمَّ إِذَآ أَنتُم بَشَرٞ تَنتَشِرُونَ ۝ |
| اوبعض دَدلائلودتوحيد دَالله ﷻ نه دادې چه الله پيدا کړې يئ تاسودَخاورې نه بيااوس تاسوبشريئ خواره يئ په زمکه |
| وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦٓ أَنۡ خَلَقَ لَكُم مِّنۡ أَنفُسِكُمۡ أَزۡوَٰجٗا لِّتَسۡكُنُوٓاْ |
| اوبعض دَدلائلودتوحيددَالله نه دادې چه الله پيداکړيدې ستاسولپاره ستاسودَجنس نه بيبانې چه سکون حاصل کړئ |
| إِلَيۡهَا وَجَعَلَ بَيۡنَكُم مَّوَدَّةٗ وَرَحۡمَةًۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ |
| دهغوئ نه اوګرځولې ئې دې ستاسومينځ کښې محبت اومهرباني.بيشکه پدې کښې خامخا... |

لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿٢١﴾ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦ خَلْقُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱخْتِلَٰفُ أَلْسِنَتِكُمْ

لپاره د هغه قوم چه فکر کوی.اوبعض د دلائلو د توحید د الله نه پیدا کول د اسمانونو او د زمکی دي او اختلاف د ژبو ستاسو

وَأَلْوَٰنِكُمْ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّلْعَٰلِمِينَ ﴿٢٢﴾ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦ

او د رنګونو ستاسو بی شکه پدی کښی خامخا دلائل د توحید دی لپاره د پوهه خلقو.اوبعض د دلائلو د توحید د الله نه

مَنَامُكُم بِٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ وَٱبْتِغَآؤُكُم مِّن فَضْلِهِۦٓ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ

اوده کیدل دی ستاسو د شپی او د ورځی او طلب کول دی ستاسو د رزق د الله ﷻ نه.بی شکه پدی کښی خامخا دلائل د توحید دی

لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ ﴿٢٣﴾ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦ يُرِيكُمُ ٱلْبَرْقَ خَوْفًا

لپاره د هغه قوم چه آوری.اوبعض د دلائلو د توحید د الله ﷻ نه داده چه ښائی تاسوته بریښنا لپاره د یری(د تندر)

وَطَمَعًا وَيُنَزِّلُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَيُحْىِۦ بِهِ ٱلْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَآ

اولپاره د طمع (د باران)اونازلوی د اسمان نه باران نورا ژوندئ کړی په هغی سره زمکه ورستو د اوچی دلو د هغی نه.

إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٢٤﴾ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦٓ أَن تَقُومَ ٱلسَّمَآءُ

بیشکه پدی کښی خامخا دلائل د توحید دی لپاره د هغه قوم چه عقل لری،اوبعض د دلائلو د توحید د الله نه داده چه قائم دي اسمان

وَٱلْأَرْضُ بِأَمْرِهِۦ ۚ ثُمَّ إِذَا دَعَاكُمْ دَعْوَةً مِّنَ ٱلْأَرْضِ إِذَآ أَنتُمْ تَخْرُجُونَ ﴿٢٥﴾

اوزمکه په حکم د الله ﷻ سره،بیاچه کله رااوغواړی تاسوپه یو خل راغوښتلو ، د زمکی نه نو تاسو به رااوځئ

وَلَهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۖ كُلٌّ لَّهُۥ قَٰنِتُونَ ﴿٢٦﴾ وَهُوَ ٱلَّذِى

اوصرف د الله په قبضه کښی دی هغه څه چه په اسمانونو کښی دی او زمکه کښی دی،ټول د هغه اطاعت کونکی دی .او الله هغه ذات دي

يَبْدَؤُا۟ ٱلْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ ۚ وَلَهُ

چه اول خل نی خلق پیدا کړیدی بیابه نی دوباره پیدا کړی،او دوباره پیدا کول زیات اسان دی هغه ته او الله لره دي

ٱلْمَثَلُ ٱلْأَعْلَىٰ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴿٢٧﴾

صفت اوچت په اسمانونو او زمکه کښی،او هغه غالب دي حکمت والا دي

﴿وَمِنْ ءَايَـٰتِهِۦٓ أَنْ خَلَقَكُم﴾ دَدې ځائی نه ترآيت نمبر۲۸پوری اته (۸)دلائل عقليه په شرط دعوی (توحيد)باندې ذکر کيږی او "من اياته" خبرمقدم دې او "ان خلقکم الخ" مبتدا مؤخرده، دااول دليلِ عقلي دې چه دَالله ﷻ په وحدانيت اوقدرت باندی يودليل داهم دې چه ستاسوجدّاعلی حضرت آدم ﷺ ئی دَخاورنه پيدا کړوبيائی دَهغه نه دَاولادسلسله شروع کړه،په تولّه زمکه ئی ذُرّيت خورشو،نود، "خلقکم"معنی داده چه"خلق اصلکم"چه ادم عليه السلام دې،اوبعض حضرات فرمائی چه"خلقکم"نه مراد هر مخاطب دې اوهرانسان په اعتباردَمادې اصليه سره دَخاورونه پيداکيږی ځکه چه ظاهری سبب دَ پيدائش دَ پاره نطفه ده،اونطفه دَ خوراک نه پيداکيږی،اوخوراک دَزمکی نه پيداکيږی﴿ثُمَّ إِذَآ أَنتُم بَشَرٌ تَنتَشِرُونَ﴾دا په معنی دَ تتصرفون"سره دې،يعنی خواره واره ګرځئ دَخپلو غرضونو دَپاره،او"اذا"مفاجاتيه دې،او ثم"لپاره دَ تراخي دې،بعض حضرات فرمائی چه دَتراخی زمانی(حقيقی) دَپاره دې،يعنی الله تعالی اول آدم عليه السلام پيداکړوبيائی څه موده پس بی بی حوا پيداکړه،نودې نه ستاسونسل سلسله شروع شوه.اودَ اذا مفاجائيه اودَ تراخی حقيقی په مينځ کښ څه منافات نيشته دې،ليکن صاحب دَروح المعانی فرمائی چه زيات مناسب د ،دې مقام سره تراخی رتبی ده

﴿وَمِنْ ءَايَـٰتِهِۦٓ أَنْ خَلَقَ لَكُم﴾دادويم عقلي دليل دې "لکم"کښ لام اجليه دې اي لاجلکم اوهرکله چه ماقبل دليل کښ ذکر دَماده اصلِی دَ پيدائش اوتخليق دَ انسان ذکروؤ.نوپديکښ دَ مادې ظاهری اودَبقانسل انسانی دَاسبابوذکر دې،﴿أَنفُسِكُم﴾نه مراد "جنسکم"دې،يعنی داهم دليل دَتوحيد دې چه الله ﷻ ستاسودَسکون لپاره ستاسودَجنس نه ستاسولپاره، بيبيانی پيداکړې اوبيائی ستاسومينځ کښ محبت پيداکړو، او يو بل سره همدردې او رحمت پيدا کړوحالانکه سابقه نه معرفت وؤنه څه رابطه وه،کچرته دَانسان بی بی دَبل جنس نه وه،يائی ورسره محبت نه وؤنوځومره تکليف به وؤنو.پديکښ اشاره ده چی دَ انس اواطمينان دَپاره اتفاق په نوعه کښ ضروری دې دَ نوعين متبائين دَ يوبل سره انس نوی،نواطمينان ذريعه هم نه ګرځی

﴿لِتَسْكُنُوٓاْ إِلَيْهَا﴾ سکون کنایه ده تأنس او اطمینان نه، اودَدې تعدیه په "الی" سره پدیکښ اشاره ده چه خپلې بی بی ته میلان کول ذریعه دَسکون او اطمینان ده، اودَخپلې بی بی نه علاوه بل نامحرم زنانه طرف ته میلان کول ذریعه دَبې سکونئ اوبې ارامئ ده . ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾ 'مؤدة' په معنی دَ محبت سره او 'رحمة' په معنی دَ شفقت سره دې. امام قرطبی رحمه الله فرمائی چه الله تعالی دَ خزی اوخاوند په مینځ کښ محبت اوشفقت فطرتاً پیدا کوی. بعض حضرات فرمائی چه 'مؤدة' تعلق ځوانئ دَعمرسره دې چه دَ خزی اوخاوند پدی عمر کښ یوبل ته جنسی میلان زیات وی، او 'رحمة' تعلق دَ بوډاوالی عمرسره دې چه خزه اوخاوند څومره بوډاګان کیږی نودَیوبل سره ئی دَتراحم علاقه زیاتیږی.

**فائده:** پدې آیت مذکوره سره زمونږ فقهاؤ استدلال کړیدې چی دَ انسان نکاح دَ جنی سره نه کیږی نکاح دَپاره شرط مماثلت دې.

**فائده ۲:** هرکله چه پدې آیت کښ دَبقانسل انسانی اودَحفاظت نسب دَ پاره قانون ذکر شو اودَقانون دَ پاره تفکرضروری وی، نودَدې وجهی نه ورسره په اخیر کښ "یتفکرون" اووئیلی شو.

﴿وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦ خَلْقُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دادریم عقلي دلیل دې، چه اسمانونه اوزمکی پیدا کول هم دَالله ﷻ دَوحدانیت دلیل دې، دغه شان بی شماره انسانان دنیاکښ اوسیږی، په لغت کښ ئی اختلاف دې، بعضِ عرب دی، بعض عجم، دغه رنګه دَتولورنګونوکښ اختلاف دې بعضِ سپین، بعضِ تور، بعضِ سور وغیره، حالانکه نسل دَیوآدم ﷺ دې، بعض وائی دَ﴿وَٱخْتِلَٰفُ أَلْسِنَتِكُمْ﴾ نه مراددَلهجی اختلاف دې چه هرکس لهجه اوانداز دَخبرودَبل نه جداوی حتی که چه دیوورور دَبل نه لهجه بدله وي، او یا ورنه مراد لغات دی چي په کائنات کښ خور مختلف قسم زرګاؤ تعداد کښ دي.

**فائده:** هرکله چه دَ اسمانو اودَ زمکو په حالاتوباندې خبریدل دغه شان اختلاف دَالسنه اوالوانو باندې پوهیدل مستلزم دی علم لره اودغه علم خاص ندې یوفردپوری .نو ددې وجی

نه دَ دې په اخير کښ دَ عالمين ذکر اوشو

﴿وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦ مَنَامُكُم بِٱلَّيۡلِ﴾ دا څلورم عقلي دليل دې چه دَبدن دَ استراحت لپاره الله ﷻ تاسوته دَخوب غوندې عظيم نعمت هم درکړيدې ﴿وَٱلنَّهَارِ﴾ ظاهره داده چې دا عطف دې په "الليل" باندې.او هريو متعلق دې دَ "منامکم" او "ابتغاؤکم" دواړو سره.نومطلب ئې دادې چې چه دَشپې هم خوب کوئ اودَورځې هم چه اوغواړئ نوخوب کولې شئ لکه قيلوله.

دَورځې هم تجارت وغيره کوئ اورزق طلب کوئ اودَشپې هم بعضِ تاجران تجارت کوى.بعضِ دَدوکانونو حراست کوى په اجرت.اوبعض حضرات فرمائى چه په ايت کښ تقديم اوتاخير دې اوهر يو دَبل دَ ليل اود . نهار' نه متعلق دې دَ خپل ملائم اومناسب سره نوتقدير دَ عبارت دا رنګې دې "من اياته منامکم بالليل وابتغاؤکم من فضله بالنهار" اودَ نهار 'نه حرف جار حذف کړې شو .ځکه چه متصل وۆ دَ دليل سره اوعطف وۆ په هغې او حروف عطف کله کله قائمقام د حرف جار راځى(اللباب) ﴿لِقَوۡمٖ يَسۡمَعُونَ﴾ يعنى دَتفهم اومنلو لپاره چه کوم خلق سماع کوى هغوئ لپاره دازبردست دلائل دَتوحيد دي.

﴿وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦ يُرِيكُمُ ٱلۡبَرۡقَ﴾ دا پنځم عقلي دليل دې په توحيديعنى داهم دَالله ﷻ دَوحدانيت دليل دې چه تاسوته آسمان کښ بريخناګانى ښائى چه په هغى سره ستاسوزړونوکښ دَتندرخوف هم پيداکيږى اودَباران طمع موهم پيداکيږى.دلته هم"من اياته"خبر مقدم دې او"يريکم"مبتدا مؤخره،لکه څرنګه په ماقبل اياتونو کښ وۆ.او"يريکم"اګرچه فعل مضارع ده خو مؤل ده په تاويل دَ مصدر سره نو اصل کښ داسې ده"ان يريکم البرق"لکه"تسمع بالمعيدي خيرمن ان تراه" کښ چه تسمع مؤل دې په تقدير دَ "ان"سره"کم" مفعول اول او"البرق"مفعول ثانى دې﴿خَوۡفٗا﴾اى من الصواعق﴿وَطَمَعٗا﴾فى المطر.قتاده وائى چه خوف وى لپاره دَمسافرچه هسى نه باران راباندى رانشى اوطمع وى لپاره دَمقيم.بعضِ وائى خوف وى دګلئ نه چه فصل خراب نکړى اوطمع وى دَباران﴿خَوۡفٗا وَطَمَعٗا﴾دواړه مفعول له دي لپاره د"يريکم"فعل اويامفعول مطلق جوړيږى فعل محذوف

دپاره .اي تخافون خوفا وتطعون طمعا،باقي تفصيل دترکيب سورت رعد آيت نمبر ۱۲ کښې تېر دي

**فائده**:هرکه چه پدې آيت کښې دَ نوم ذکروؤ چه هغه پر منزله دَ مرګ دي او طلب معاش ذکر وؤ چه دَهغې دَ وجې نه انسان سرګردانه وي نو دَدې وجې نه دَ دې آيت په آخير کښې يسمعون ذکرشو ،دپاره ده تنبيه چه دَ الله تعالی دَ وعظ نه فائده هغه خلک اخلی چه کلام دَ الله تعالی ته غور کيدي ،غافله اوسرګردانه خلک ورنه فائده نه اخلی

﴿وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ﴾يعني الله ﷻ دَاسمان د طرف نه باران نازلوی چه دَهغې په سبب اوچه زمکه راشنه شی﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾هرکله چه پدی آيت کښې ذکر دَ بريښنا دَ اسمان اودَباران وريدل وؤ،اوداامور مطرده ندی بلکه کله کله په يوی علاقې کښې وي او په بلی علاقې کښې نوی بلکه کله په يوی علاقې کښې په يوځائی کښې وی او په بل ځائی کښې نوی ،يو وخت کښې وی بل وخت کښې نوی،نو کله زيات وی کله کم وی ،نودَ دې امور ودلالت په وحدانيت او په قدرت دَ الله تعاى باندی ډير واضح دې نوځکه دلته يعقلون ذکر شو ،چه کوم انسان کښې محض عقل وی اګر چه فکراونکړی نوبيا هم دې پدې امورو سره دَ الله تعالی معرفت اودَ هغه توحيد اوقدرت معلوم ولی شي

﴿وَمِنْ آيَاتِهِ أَن تَقُومَ السَّمَآءُ﴾داشپږم عقلي دليل دې پديکښې دَ اسمانونو او زمکی قيام او ترمخصوص اومعين وخته پوری دَ هغه دَ دوام بغير دَ ظاهری اسبابو ذکر دې ،اومرادپه "ان تقوم"سره بقادَاسمان اوزمکې ده پخپل حالت سره ترمعين وخت پوری بغيردَظاهری اسبابونه او﴿بِأَمْرِهِ﴾ کښې اشاره ده کمال قدرت ته ،چه غنی ده دَ ظاهری اسبابو اوالاتونه او ثم يا تراخي زمانی دَ پاره دي اويادَ تراخي رتبی اوتعظيم شان دَ پاره دي،اويادَ تراخي ذکری دَپاره دي،اوپدی دواړواخريين تقديرين په اعتبار سره پديکښې به اشاره شی تعظيم شان ته اوداجمله عطف ده په"ان تقوم السماء"باندې او"من الارض" متعلق دي دَ"دعاکم"سره.يعنی ثم اذا دعاکم من الارض دَدنياميعادختميدلونه ورستوچه الله ﷻ تاسودَقبرونونه دوباره پيداکوی نوپه يوآوازدَاسرافيل سره به تاسوټول دَقبرونونه راوځئ په سرعت سره.

﴿وَلَهُۥ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾داووم(۷)دليلِ عقلی دې.چه ټول کائنات دَالله ﷻ په اختياراوتصرف کښې دی،ټول صرف هغه ته منقاددی، دَهغه دَ تکوينی احکامودَ قبولونه انکار نه شي کولې،اګر چې بعض ئې دَ عبادت دَ امر نه منکر دی نو پدې اعتبار سره دَقنوتَ نه مراد تکوينی اوغير اختياري قنوت دې لکه ژوند،مرګ،صحت،بيماری،وغيره شو،اوبعض فرمائی چهٔقنوتَ نه مراد اختياري قنوت دې،چه عبادت ته وئيلی شی،اودايت خاص دې مطيعينو پورې،"قال الکلبي هذا خاص لمن کان منهم مطيعا(لباب) بعضو ﴿قَٰنِتُونَ﴾معنیٰ دا کړيده ده قائمون بالشهادة،يعنی دَالله ﷻ دَوحدانيت ګواهی ورکونکی دی.کماقال الشاعر:

وفي كلّ شيئٍ له آيةٌ تدلّ على انه واحدٌ.

﴿وَهُوَ ٱلَّذِي يَبۡدَؤُاْ ٱلۡخَلۡقَ﴾دااتم دليلِ عقلي دې،چه الله ﷻ هغه ذات دې چه اول ځل نی هم ټول خلق پيداکړيدي دوباره به ئې هم پيداکوی،بلکه دوباره پيداکول خوالله ﷻ ته زيات اسان دی،ځکه چه دوباره پيداکول اسان وی دَاول ځل نه،ټول ممکنات الله ﷻ ته يوشان دی،دې باوجوداهون صيغه داسم تفضيل راوړلونه دلته مقصودصرف منکرين دَبعث بعدالموت پوهه کول دی،ځکه دوباره پيداکولوته اهون اووئيل شول.نو اهونَ نه مراد په نظر دَ منکرينو کښې دې.اي الاعادةاهون من الابداءحسب علمکم.ځکه چې اول ځل کښې مراحل دَ تخليق ډير دی ځکه چه ابتداکښې نطفه وي ،بياعلقه شی،بيا مضغه شی بيا لحم اوعظام ورته واچولی شې اوبشرجوړشی بيا طفل شی،اوسابقه نمونه هم نوی په خلاف دَاعادی نه چه هغه کښې دامذکور مراحل نشته دې ﴿وَلَهُ ٱلۡمَثَلُ ٱلۡأَعۡلَىٰ﴾يعنی دَټولونه لوئ وصف لکه قدرت عامه،حکمتِ تامه اودغه شان نوردکمال صفات صرف الله ﷻ لره دی.﴿فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ متعلق دې دَ﴿ٱلۡأَعۡلَىٰ﴾سره،يعنی اسمانونواوزمکی کښې ټولونه لوئ شان دَهغه دې،هغه په هرڅه قادردې اوحکيم دې،هيڅ کارئی دَحکمت مصلحت نه ښالي ندي

ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ اَنْفُسِكُمْ ؕ هَلْ لَّكُمْ مِّنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ شُرَكَآءَ

بیانوی الله جل جلاله تاسو ته یومثال ستاسو دَجنس نه، چه آیا شته دي ستاسو لپاره دَغلامانو ستاسو نه څوك شريكان

فِيْ مَا رَزَقْنٰكُمْ فَاَنْتُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ تَخَافُوْنَهُمْ كَخِيْفَتِكُمْ

په هغه مال کښې چه مونږ تاسو ته درکړيدي چه تاسو او هغوئ په هغې مال کښې برابرئ (آيا) يريږئ دَهغوئ نه لکه څنګه چې يريږئ تاسو

اَنْفُسَكُمْ ؕ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۲۸﴾ بَلِ اتَّبَعَ الَّذِيْنَ

يوبل نه. همدغه شان په تفصيل سره بيانوُ آياتونه (دلائل) لپاره دَهغه قوم چه عقل لرى بلکه اتباع کړيده هغو

ظَلَمُوْۤا اَهْوَآءَهُمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ فَمَنْ يَّهْدِيْ مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ؕ

چه ظلم (شرك) ئى کړيدي دَخپلو خواهشاتو بغير دَعلم نه، نو څوك به هدايت اوکړى هغه چاته چه ګمراه ئى کړى الله جل جلاله،

وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۲۹﴾

او نشته هغوئ لره څوك مدد کونکي

﴿ضَرَبَ لَكُم مَّثَلاً﴾ توحيد باندې اته (۸) دلائلو ذکر کولونه بعد اوس الله تعالى مسئله دَتوحيد دَمثال په صورت کښې ذکر کوى، څکه چې مثال سره مسئله خه واضحه شى اوزړه ته پريوځى، چه داغور او کړئ چه آيا ستاسو په غلامانو کښې څوك ستاسو سره په مال کښې داسې شريك شته دي چه ستاسو او دَهغو اختيار برابروي، څنګه چه تاسو تصرف کوئ دغه شان هغه هم تصرف کولى شي؟ یا درسره برابر خونه وى خو کم از کم تاسو سره انديشه دَمخالفت وى چه دَهغه دَمرضئ نه بغير تصرف اوکړئ نو اعتراض به درباندې اوکړى لکه څنګه چه داصيل شريك نه دغه خوف وى، ظاهره ده چې غلام ته داسې حيثيت هرګزندې حاصل. نو ستاسو معبودانِ باطله چه دَالله جل جلاله بندګان دى هغه به څنګه د الله جل جلاله سره برابر شى،

﴿مِّنْ أَنفُسِكُمْ﴾ يعنى دا مثال ستاسو دَاحوالونه منتزع دي ستاسو په ماحول کښې موجود دي ﴿هَل لَّكُم مِّن مَّا مَلَكَتْ أَيْمَـٰنُكُم مِّن شُرَكَآءَ﴾ شركا مبتدا مؤخر دي او "من" زائد دي دپاره دَتاکيد. اولكم خبر مقدم دي او مماملك ايمانكم حال دي دَمبتدا نه مطلب دا دي چې

آياتاسو غلامانو کښې څوک ستاسو سره په مال کښې شريک شته؟اواستفهام انکاری دې.﴿فَأَنتُمْ فِيهِ سَوَآءٌ﴾ انتم مبتدا دې مرادورنه مالکان اومملوکان دواړه دی."سواء"ورله خبردې.او"فيه" سواءسره متعلق دې.﴿تَخَافُونَهُمْ﴾ورله خبرثانی دې او فا په "فانتم" کښې يا جوابيه ده او داپوره جمله جواب استفهام ده.استهام تحت نه ده داخله نو دې صورت کښې انکار صرف اولی جملې "هل لکم"باندې وارد دې اومطلب دا دې چې ستاسو غلامانو کښې څوک تاسو سره په مال کښې شريک نشته چې تاسو اوهغوئ په مال کښې برابر شريک وئ او تاسو دهغوئ دَاجازت نه بغير خپل مال کښې تصرف کولو نه يريږئ او يافاعاطفه تفريعيه ده .او داتفريع ده په شرکت باندې.اوپوره جمله استفهام تحت داخله ده نو مطلب به داشی آيا ستاسو غلامانو کښې څوک ستاڅوسره په مال کښې شريک شته اوبيا دَهغه شرکت په نتيجه کښې تاسو اوهغوئ.برابر گرځيدلي يئ اوتاسو دهغوئ اجازت نه بغير په مال کښې تصرف نشئ کولې؟نودې صورت کښې انکارپه دواړو جملو وارد شو،يعنی نه ستاسو غلامانونه څوک ستاسو شريکان شته.نه تاسو اوهغوئ په مال کښې برابر شريک يئ،اونه تاسوتصرف کولودپاره هغوئ نه اجازت راخلئ.

﴿كَخِيفَتِكُمْ أَنفُسَكُمْ﴾انفسکم نه مرادهم جنس يعنی ازادشريکان مراددی،يعني څرنگه چه تاسودَ آزاد شريکانودَ مرضئ نه بغير مال کښې تصرف نشئ کولې اويريږئ آيا خپلو غلامانو له هم دا حيثيت ورکوئ؟﴿بَلِ ٱتَّبَعَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓاْ﴾اضراب دې دَماقبل نه چې دوئ ته دلائل اومثالونه مه بيانه وه،ځکه چې داخوهغه چاله نفع ورکوی څوک چې دَ حق طالب وی،اودليل قوت اومضبوطی ته گوری،اودوئ خودَخواهش نفس غلامان دې،چې هغه ورته څه وائی هغه کوی،دليل او حجت نه گوری.﴿فَمَن يَهْدِى مَنْ﴾داتسلی ده حضورﷺته،چه تاخپله ذمه واری پوراکړيده ليکن دَدوئ ضداوعنادپوجه اللهﷻ پدوئ دَضلالت مهرلگولې دې، دوئ ته اوس څوک هدايت نشی کولې،څوک ورسره دَضلالت دَخلاصولو کښې نصرت نشی کولې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَقِمْ | وَجْهَكَ | لِلدِّينِ | حَنِيفًا | ط | فِطْرَتَ | ٱللَّهِ |
| سن برابرکړه | خان | خپل دين ته | مستقيم په حق،اتباع | اوکړئ | تاسو دَفطرت | دَاللهﷻ |

| |
|---|
| الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۚ لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ۙ |
| هغه چه پیداکړي ئ دي خلق په هغې.مه بدلوئ دين دالله.دغه دين محکم اوبرابردي. |
| وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۙ مُنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ وَاتَّقُوْهُ |
| ليکن اکثرخلق نه پوهيږي.پدې حال کښ چه انابت(رجوع)کونکي يئ الله ﷻ ته اوده نه اويريږئ |
| وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۙ |
| او پابندي کوئ دمونځ او مه کيږئ دمشرکانو نه . |

﴿فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ حَنِيْفًا﴾ ماقبل دلائلو او مثال بيان نه بعد اوس دويم ځل عام دعوت دي توحيد او خالص د الله تعالى عبادت ته ،چې په دلائلو سره د توحيد اثبات او شرک ابطال اوشو ،تو تاسو اوس خالص په توحيد او اسلام باندي قائم شئ،د الله تعالى نه يره اوکړئ صرف د هغه عبادت کوئ او هغه سره بل څوک شريک مه ګرځوئ ،ځکه چه (۱) اسلام خالص فطري مذهب دي،(۲) ديکښ هيڅ قسم تبديلي نشي راتلي،له ازله دي اوتر ابده به وي(۳) بالکل سيدها او نيغ دين دي﴿فِطْرَتَ اللّٰهِ﴾ديکښ داسلام اووصف بيان دي چې داخالص فطري مذهب دي "فطرة" منصوب دي په فعل محذوف اى الزموافطرة الله يااتبع فطرة الله(روح) دالله ﷻ دفطرت نه(۱)مراددالله ﷻ د طرفه په هرکس کښ دحق دپيژندلو اوادراک کولو خلقةً اوفطرةً کيخودلي شوي استعداد دي اود فطرت اتباع مطلب ددې په موجب او مقتضىٰ باندي عمل کول او،دنفس اوشيطان داتباع پوجه ورنه مخالفت نه کول دی(۲)بعضِ مفسرين وائى د﴿فِطْرَتَ اللّٰهِ﴾نه مراددينِ اسلام دي،اومراددادي چه الله ﷻ هرکس خلقة اوفطرةً مسلمان پيداکړيدي حتىٰ چه يوسړي کچرته خپل اختيارته پريخودلي شى نوبل دين به اختيارنکړى،ليکن بعضِ وخت مورپلارياپل څوک ئى ددين اسلام نه واړه وى لکه په حديث دصحيحينو کښ دى:مامن مولودٍ يولدُالاّعلي الفطرة فابواهُ يهودانه اوينصرانه اويمجّسانه(۳)بعضِ مفسرين وائى مرادورنه عهدالستُ دي اومطلب دادى چه الله ﷻ خلق پدى حال کښ پيداکړيدى چه خپل معرفت ئى پکښ مرکوزکړيدى کقوله تعالى:ولئن سالتهم من خلق

السموٰتِ والارض ليقولنّ الله(روح،كبير)

﴿لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ﴾ ديکښې دَ اسلام دويم وصف مذکور دې چې دې کښې څه قسم تبديلي نشي راتلې"خلق الله" نه مراد مذکوره فطرت دې"لا"نه خپله حقيقي معنی ''نفي'' هم مراد کيديشی ،چې الله تعالى دافطرت او استعداد ټولو انسانانو کښې برابر ايخيدې،څه فرق او تبديلي پکښې نشته ،او همدغه شان دَ الله تعالى دازل نه دا سنت دې چې انسانان په فطرت توحيد او اسلام باندې پيدا کوي،او ترابده به داجاری وي،ديکښې هيڅ قسم تبديلي نه راغليده او نه راتلې شي،او"لا"نهی معنی کښې اغستل هم ممکن دې اي لا تبدلو خلق الله يعنی الله تاسوته دَايمان استعداد درکړې دې،فطرت توحيد باندې يې پيدا کړی ئې،لهذا ديکښې تبديلي مه راولئ،او دَ شرک وکفر نه اجتناب اوکړئ،

﴿ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ﴾ذلک اسم اشاره دہ مشار اليہ ئې "الدين" دې،ديکښې داسلام دريم وصف ذکر دې چې دا بالکل نيغ دين دې يعنی دکوم دين اتباع او دَ هغې غير نه اعراض حکم تاسوته شوې دې هم دغه صحيح او مستقيم دين دې،"القيم"بالکل نيغ ،چې هيڅ قسم کوږ والي پکښې نشته،اصل کښې"قَيْوِمٌ"وو،"واؤ"ياء کړې شو،او ياء به يا ياء کښې مدغم کړې شوه،نو قَيِّمٌ جوړ شو. ﴿مُنِيبِينَ إِلَيْهِ﴾حال دې"الزمو"فعل محذوف ضمير مرفوع نه،يعنی الله ﷻ ته دَتوبی اودَاخلاص په ذريعه رجوع اوکړئ.﴿وَاتَّقُوهُ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِينَ﴾.دري واړه جملې عطف دي په "الزموا"فعل محذوف باندې

| |
|---|
| مِنَ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا ۖ كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴿٣٢﴾ |
| دهغو کسانو نه چه ټکړې ټکړې کړې ئې دې دين خپل او شوی دی دوئ ډلې ډلې،هريوه ډله په هغه حصې دَدين چه ورسره ده خوشحالې کونکې ده. |
| وَإِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُمْ مُنِيبِينَ إِلَيْهِ ثُمَّ إِذَا |
| اوکله چه اورسيږی خلقوته څه تکليف نوبياسوال کوی خپل رب ته حال دا وی چه رجوع کونکی وی الله ته،بياچه کله |

اَذَاقَهُمْ مِّنْهُ رَحْمَةً اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿٣٣﴾

اوڅکوي الله دوئ ته دخپل طرفه رحمت نوبس بيا يوه ډله ددوئ نه خپل رب سره شريك ګرځوي

لِيَكْفُرُوْا بِمَاۤ اٰتَيْنٰهُمْ فَتَمَتَّعُوْا فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿٣٤﴾

انجام ئې داشي چه ناشكري اوكړي په هغه نعمتونو چه مونږ ورته وركړيدي.نو خوند واخلئ.زر ده چه پوهه به شئ.

اَمْ اَنْزَلْنَا عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا فَهُوَ يَتَكَلَّمُ بِمَا كَانُوْا بِهٖ يُشْرِكُوْنَ ﴿٣٥﴾ وَاِذَاۤ

آيانازل كړيدي مونږ پدوئ څه دليل چه هغه ګويان وي (دلالت كوي) په هغه چه دوئ بې الله سره شريك كوي.اوكله چه

اَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً فَرِحُوْا بِهَا وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ

اوڅکوومونږ خلقوباندې څه رحمت نوخوشاله شي په هغې اوكه ورسيږي ورته يو تكليف په سبب دهغه عملونوچه كړي دي

اَيْدِيْهِمْ اِذَا هُمْ يَقْنَطُوْنَ ﴿٣٦﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ

لاسونودوئ نوبس بيادوئ نااميده شي (درحمت دالله نه) آيا دوئ نه دي ليدي چه الله جل جلاله فراخوي رزق

لِمَنْ يَّشَاۤءُ وَيَقْدِرُ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿٣٧﴾

چاته ئې چه خوښه شي اوتنګوي رزق. بيشكه پدې كښې خامخادلائل دتوحيد دي لپاره دهغه قوم چه ايمان راوړي

﴿مِنَ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا﴾ دامشريكنو اتباع نه منع كولو ورستو اوس دهغوئ قبيح اومذموم صفاتو بيان دې،او من الذين بدل دې ﴿اَلْمُشْرِكِيْنَ﴾نه ديكښې دهغوئ اول مذموم او قبيح خصلت بيان دې،چې فطرت په ځائې يې دَ خواهشاتو اتباع اوكړه نو دهغې نتيجه داشوه چې دَ هغوئ مذهب څه بنياد نشته،چاته چې څه ښه ښكاره شويدي هغه يې خپل مذهب ګرځوليدې اوپه هغې خوشحاله او مطمئن دي.

﴿وَاِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ﴾دا دَ مشركانو دويم مذموم او قبيح خصلت بيان دې اوزجر دې چه كله دوئ باندې څه تكليف راشي اودَخپلو معبودانِ باطله ؤنه نااُميده شي نوبيا خالص الله جل جلاله ته اوازونه كوي،چه الله جل جلاله وورباندې مهرباني اوكړي اونجات ورته وركړي نوبيا شرك شروع

کړي او دَخپل نجات نسبت غیرالله ته کوي.

﴿لِيَكۡفُرُواْ بِمَآ ءَاتَيۡنَٰهُمۡ﴾لام دَعاقبة دي يعنی انجام ئی داشی چه زمونږدَنعمتونوناشکری اوکړي کافرشی،یالام کئ دي.بعضِ وائی لام امردي.امردپاره دَتهدیددي.﴿فَتَمَتَّعُواْ﴾داامر هم دَتهدیدلپاره دي.یعنی زمونږدَنعمتونونه فائده واخلئ کفرانِ نعمت اوکړئ ډیرزربه تاسوته دَدي پته اولګی.﴿أَمۡ أَنزَلۡنَا عَلَيۡهِمۡ﴾ماقبل کښ دَشرك قباحت وذعقلاًاودلته دَشرك نقلاًقباحت ذکر کیږی.یعنی نقل اعتبار سره هم شرك مذموم دي څکه چی پدي هیڅ دلیل نشته،او"ام" منقطعه دي،یعنی دَ شرک عقلي قباحت بحث یو طرف ته کړئ.داراته اوایئ چې څه نقلی دلیل درسره شته په شرک باندي؟؟﴿سُلۡطَٰنٗا﴾نه مرادحجت اودلیل دي.یعنی آیامونږپیدوئ څه حجت نازل کړیدي چه شرك اوکړئ.استفهام انکاري دي.یعنی دوئ سره څه دلیل نشته،﴿فَهُوَ يَتَكَلَّمُ﴾تکلّم کنایه ده دَدلالت نه،یتکلّم پمعنی دَیدلّ دي.

﴿وَإِذَآ أَذَقۡنَا ٱلنَّاسَ رَحۡمَةٗ﴾دا دریم مذموم او قبیح خصلت بیان دي اوزجردي ورته چې دَدغوخلقوعجیب حالت دي چه کله دَالله ﷻ دَطرفه په عیش عشرت کښ وی مالداره وی نوبیادومره نخري،تکبراوغرورکوی چه دَخپل حدنه تجاوزاوکړی اوخپل منعم حقیقی ورنه هیرشی اوچه کله دَخپلوبدعملونودلاسه په څه مصیبت کښ اخته شی نوبیاګډي وډي وائی اومایوسه شی،حالانکه شان دَمومن خوداسي ندي مؤمن په عیش عشرت کښ شکرکوی،ډیره مستی نه کوی خپل منعم حقیقی ورته یادوی.اوچه څه غم مصیبت پری راشی نوصبرکونکی وی اوالله ﷻ نه امیدساتی.

**فائده**:(واذا مس الناس)او(اذا اذقناالناس)کښ یا دَ مشرکانو او کافرانو دوه قسمونو طرف ته اشاره ده ،چې کفارو یوقسم داسې دي چې مصیبت او تکلیف پرې راشي نو الله تعالی ته رجوع کوي،او دَهغه نه دعاګاني غواړي،لیکن دامن او نعمت په وخت بیا دَ الله تعالی نافرمانی کوي او هغه سره شریک ګرځوی،او دویم قسم هغه دي چې هغه دامن او نعمت په حالت کښ ،عیش وعشرت او مستو کښ مبتلا وي،او تکلیف وخت کښ بیا دَ الله تعالی نه نااميده وي،او هغه نه ګیلې کوي.

او یاصرف پدیکښې دٙ یوقسم دوه مختلف احوالو طرف ته اشاره ده.اول آیت کښې تکلیف ابتدائی حالت بیان دې او دویم کښې دٙمصیبت استمرار او طول بیان دې،یعنې چه کله پرې تکلیف لږ اوګدشي نو نا امیده شي.

﴿أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ ٱللَّهَ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ﴾دا زجر دې مشرکانو ته چې دوئ ته دٙ دې خبرې نښه پته ده چې روزي معامله الله تعالی په اختیار کښې ده.الله تعالی یې په فراخولو هم قادر دې او په کمولو یې هم نو کچرته دوئ دٙ دې خبرې لږ خیال ساتلې نو دٙ خوشحالئ په وخت کښې به یې شرک او ناشکری نه کوله ،او تنګ دستئ په وخت کښې به دٙ قنوط اٙو نا امیدی نه شکار کیدل.

خکه چه دیکښې دٙ ایمان واضح دلائل او نشانیانې دي.

| |
|---|
| فَـَٔاتِ ذَا ٱلْقُرْبَىٰ حَقَّهُۥ وَٱلْمِسْكِينَ وَٱبْنَ ٱلسَّبِيلِ ذَٰلِكَ خَيْرٌ |
| پس ورکوه خپل(رشته دار) ته حق دٙهغه اومسکین ته اومسافرته داورکول دٙحق غوره دی |
| لِّلَّذِينَ يُرِيدُونَ وَجْهَ ٱللَّهِ وَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ۝ وَمَآ ءَاتَيْتُم مِّن رِّبًا |
| لپاره دٙهغه چاچه غواړی رضادٙالله ﷻ.او داکسان هم دوئ کامیاب دی.اوهغه چه ورکوئ تاسوځه عطیه |
| لِّيَرْبُوَا۟ فِىٓ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ فَلَا يَرْبُوا۟ عِندَ ٱللَّهِ |
| دپاره دٙدې چه زیاتوالې اوکړی په حاصلولودٙمالونودٙخلقوکښې نونه زیاتیږی هغه په نیزدٙالله، |
| وَمَآ ءَاتَيْتُم مِّن زَكَوٰةٍ تُرِيدُونَ وَجْهَ ٱللَّهِ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُضْعِفُونَ ۝ |
| اوهغه چه ورکوئ تاسودٙزکوٰة نه چه غواړئ رضادٙالله ﷻ نوهم داکسان دوئ دوه چنده کونکی دی(خپل ثواب لره) |
| ٱللَّهُ ٱلَّذِى خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ |
| الله ﷻ هغه ذات دې چه تاسوئ پیدا کړی بیا ئې رزق درکړیدې تاسوته بیابه مړه وی تاسو بیابه ژوندی کوی تاسو، |
| هَلْ مِن شُرَكَآئِكُم مَّن يَفْعَلُ مِن ذَٰلِكُم مِّن شَىْءٍ سُبْحَـٰنَهُۥ وَتَعَـٰلَىٰ |
| آیاستاسودٙشریکانونه داسی څوک شته دې چه اوکړی دٙدغی کارونونه څه څیز،پاك دې الله ﷻ اولوئ دې |

## عَمَّا يُشْرِكُونَ ۞

دهغې نه چه دوئ ورسره شريکوي

.﴿فَـَٔاتِ ذَا ٱلْقُرْبَىٰ حَقَّهُۥ﴾ دمشريکينو مذموم صفاتو بيان نه ورستو مسلمانانو ته دښه صفاتو اختيارولو حکم دې،(۱) خپلوانو حقوق اداکوئ،(۲) مسکينانو او غريبانانو خيال ساتئ(۳)دمسافرو حقوقو خيال ساتئ(۴)خپل مينځ کښ يو بل له هديه او تحائف ورکوئ خو خالص دَ الله تعالى رضا لپاره څه دنيوى مفاداتو لپاره نه،دې به تاسو ته آخرت کښ هم بدله ميلاويږي او دنيا کښ به الله تعالى درله په مال کښ برکت واچوي او مصيبتونه به درنه لرې کړي،﴿حَقَّهُۥ﴾حق نه مراد مطلقا حقوق دى،مالي وى اوکه غيرمالي،واجب وى اوکه غير واجب.﴿ذَٰلِكَ خَيْرٌ﴾يعني اهل حقوقو ته حق ورکول دَهغه خلقولپاره غوره دى چه دَالله ﷻ رضائي مقصودوى،اوهم داخلق کامياب دى.

﴿وَمَآ ءَاتَيْتُم مِّن رِّبًا﴾اکثر مفسرينو دَ"ربا"نه مراد"عطيه"او"تحفه تحائف"اغستې دي،يعني په دې نيت بل چاله تحفه ورکول چې سبابه دهغه طرف نه دينه ښه شې ماته ميلاويږي، نو الله تعالى په نيز دَ دې هيڅ اجر نشته،البته که نيت يې خالص وي نو الله تعالى به ورله دنيوى اواخروى دواړو اعتباسره بدله ورکوي.

ځنې مفسرينود"ربا"معروفه معنى سود اغستې ده،نو دې توجيه بنيادباندې دَدې آيت تفسير يمحق الله ويربي الصدقات پشان دې،نوپديکښ دَسوداغستلومذمت دې،دَسود حرمت باقاعده طورباندې اگرچه مدينه کښ راغليدې،خو قباحت ئې ابتدانه مسلم وۆ.

﴿لِّيَرْبُوَا۟ فِىٓ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ﴾ أي تحصل فيه زيادة تكون اموال الناس ظرفالهايعنى نيت داوي چې خلقومال کښ شامل شي،اوبيادَ اضافې اوزيات والى سره ده ته واپس راشي .﴿فَلَا يَرْبُوا۟﴾ دَاجراخروى نفى ده،﴿مِّن زَكَوٰةٍ﴾زکوة نه مرادصدقه ده،﴿ٱللَّهُ ٱلَّذِى خَلَقَكُمْ﴾دانهم(۹)عقلى دليل دې په توحيد ،چه ستاسوخالق هم صرف الله ﷻ دې،رازق موهم صرف هغه دې،موت

اوحيات موهم دَهغه په قبضه كښې دى.نوآياستاسومعبودانوكښې داسې څوك شته چه داكاراوكړى؟ بلكه نشته.نو الله جَلَّ جَلَالُهٗ دَهرقسمه شريك نه پاك اوګڼړئ

ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ اَيْدِي النَّاسِ لِيُذِيْقَهُمْ

ظاهرشويدې فسادپه اوچه اولونده كښې په سبب دهغه عملونوچه كړيدى لاسونودخلقولپاره ددې حې اوڅكوى الله جَلَّ جَلَالُهٗ دوئ ته

بَعْضَ الَّذِيْ عَمِلُوْا لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٤١﴾ قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ

سزادبعض هغه عملونوچه دوئ كړيدى كيديشي چه دوئ رجوع اوكړى .نه اووايه، اوګرځئ په زمكه كښې

فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلُ ۭ كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّشْرِكِيْنَ ﴿٤٢﴾

نواوګورئ په (نظرعبرت) چه څنګه وۀانجام دهغوخلقوچه مخكښې وو ددوئ نه.وۀاكثرپه هغوئ كښې مشركان.

فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ الْقَيِّمِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ

پس برابركړه خان خپل دين سم معتدل ته مخكښې دَدينه چه راشى داسې ورځ چه نه به وى واپس كيدل هغې لره

مِنَ اللّٰهِ يَوْمَىِٕذٍ يَّصَّدَّعُوْنَ ﴿٤٣﴾ مَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهٗ ۚ وَمَنْ عَمِلَ

دالله جَلَّ جَلَالُهٗ طرف نه،پدغه ورځ به ټول خلق دلې دلې شى چاچه كفركړې وى نوپه هغه به وى وبال دكفردهغه.اوچاچه عمل كړې وى

صَالِحًا فَلِاَنْفُسِهِمْ يَمْهَدُوْنَ ﴿٤٤﴾ لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

نيك نولپاره دَخپلوځانونولار سموى.لپاره ددې چه بدله وركړى الله جَلَّ جَلَالُهٗ هغوته چه ايمان ئې راوړيدې او كړى ئې دى

الصّٰلِحٰتِ مِنْ فَضْلِهٖ ۭ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٤٥﴾ وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ يُّرْسِلَ الرِّيَاحَ

نيك عملونه دَخپل فضل نه بيشكه الله نه خوښوى كافران.اوبعض دَدلائلودَتوحيدنه داده چه الله راليږلى هواګانى

مُبَشِّرٰتٍ وَّلِيُذِيْقَكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ وَلِتَجْرِيَ الْفُلْكُ بِاَمْرِهٖ وَلِتَبْتَغُوْا

زيرى وركونكى دباران اوچې اوڅكوى په تاسودَرحمت خپل نه اوچې اوچليږى بيړئ په امردَالله سره.اوچې طلب كړئ تاسو

مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۞

درزق دهغه نه او دپاره ددې چې تاسو شکر اداکړئ

﴿ظَهَرَ ٱلْفَسَادُ فِى ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ﴾ دا تخويف دنيوى دې.چې دنياکښ کوم شر او فساد خوريږي اوافات بليات نازليږي هغه دخلقو دبدو عملونو پوجه راځي.شرك او دپيغمبرﷺ نافرماني دټولونه لويه دهشت ګردی ده.فسادنه مراددادې چه په معاشرې کښ امن ـ سکون ختم شي يوبل باندې ظلم زياتي.قتل اغوا.ډاکې زياتې شي.دغه شان ورنه ارضی اوسماوي آفات هم مراددې لکه قحط.ګراني.زلزلې.سيلابونه وغيره.دغه شان په فصلونو ميوؤکښ کموالې اوبرکت ختميدل هم دګناهونو پوجه راځي.ابوالعاليه رحمه الله وائی څوك چه دالله جل جلاله نافرماني کوی هغه په زمکه کښ فسادخوره وی.ځکه چه صلاح دزمکې په طاعت سره دې.ددې وجه نه په حديث کښ دی لحدٌيقام فی الارض احبّ الی اهلهامن ان يمطروااربعين صباحاً(ابن کثير)يعني زمکې باندې دالله جل جلاله يو حدجاری کول دزمکې والؤلپاره دڅلويښت ورځی مسلسل باران نه زيات غوره دې.ځکه چه کله حدجاری شي نوخلق دمعاصيؤدارتکاب نه منع شي،اوچه معاصي ختم شي نودآسمان نه برکات نازليږي.کقوله تعالی:ولوانّ اهلَ القریٰ آمنواالاية،پدې وجه چه کله آخرې زمانه کښ عيسیٰ عليه السلام نازل شي اومکمل شريعت نافذکړي نوزمکه به خپل برکات رااوباسي يويواناربه سؤونوکسان خوري،دېوی اوښې پئ به څوڅوکسانوته رسيږي. ﴿ٱلْبَرِّ﴾او﴿ٱلْبَحْرِ﴾نه مرادتوله دنياده،بعضِ وائی د﴿ٱلْبَرِّ﴾نه مراددلته ځنګلونه بيابانونه دی اود﴿ٱلْبَحْرِ﴾نه مرادښارونه دی،اوعرب غټوخارونو باندې اطلاق دَ بحر کوي بعض وائی﴿ٱلْبَحْرِ﴾نه مرادهغه کلي اوښارونه دی چه دنهرپه کنارې وی،بعضِ وائی دواړونه مرادمعروف براوبحردی يعنی په اوچه اوپه دريابونوکښ،بحرکښ فساددادی چه اوبه کمې شي نونهرونه اوچ شي دغه شان پکښ طوفانونه راشي،ميان پکښ ختم شي(ابن کثير.روح وغيره)

﴿بِمَا كَسَبَتْ أَيْدِى ٱلنَّاسِ﴾يعنی په سبب دهغه معاصيؤاوذنوبو چه خلق ئې کوی دهغې

دَنحوست پوجه،لکه بل ځائ ارشاددي:وماا صابکم من مصيبةٍ فبما کسبت ايديکم (شورى:۳۵)
﴿لِيُذِيقَهُم بَعْضَ ٱلَّذِى ﴾مضاف محذوف دي اى وبال بعضِ اعمالهم فى الدنيا (روح)يعنى دنياکښ ورته دَبعضِ بدعملونوسزاورکړى چه کيديشى دَخپل ګناهونونه رجوع اوکړى اوداآخرت دَعذاب نه بچ شى ﴿بَعْضَ ٱلَّذِى عَمِلُوا۟ ﴾يعنى دَبعضو اعمالوسزا ورکړى ځکه چې دَټولواعمالوسزاورکولو ځائى آخرت دي،اوبل دَدي وجهى نه هم چي کچرته دَټولواعمالو سزائى ورکولي نوبيابه څوک ژوندي هم نه وي پاتي،اودَسزا مقصد چي هغه الله تعالى رجوع ده،به فوت شوي وي.

﴿قُلْ سِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾داهم تخويف دي،يعنى شرك اونافرمانئ سره فسادراځى که ستاسوشك وى نواوګرځئ په زمکى کښ چه ستاسونه مخکښ خلقوانجام دکفرپوجه څنګه وؤ،لکه قوم لوط،اوقارون وغيره،﴿فَأَقِمْ وَجْهَكَ ﴾ دادريم ځل دعوت توحيد دي،يعنى چه شرك سبب دَفساددي نوپوره پوره توحيدباندى قائم شئ مخکښ دَدينه چه دَقيامت ورځ راشى بيابه چاته هم مهلت نه ورکولي کيږى،نه به دَچاداوس وى چه واپس ئې کړى

﴿لَّا مَرَدَّ لَهُۥ ﴾"لا"نفى جنس دي "مرد"مصدر دي پمعنى د"الرد"سره.واپس کولوته وائى اوداسم دي د"لا""له"ورله خبردي،﴿مِنَ ٱللَّهِ ﴾متعلق دي ياپه﴿يَأْتِىَ﴾پورى،اى مِن قبل ان يّاتى من الله تعالى يومٌ لايقدرُاحدٌان يَردّه(روح) يامتعلق دي په ﴿ مَرَدَّ ﴾پورى،نومعنى داده چه الله ﷻ به ئې نه واپس کوى چه دغه ورځ راشى،﴿يَوْمَئِذٍ يَصَّدَّعُونَ ﴾اصل کښ"يتصدّعون"دي تاپه صادبدله شوه اوادغام اوشو،اى يتفرقون،يعنى پدغه ورځ به خلق ډلي ډلي جداجداږشى،فريق فى الجنة وفريق فى السّعير.

﴿مَن كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهُۥ ﴾داتخويف اُخروى دي چه چادنياکښ کفراوکړو نقصان ئې هم هغه ته دي هم ده ته به سزاورکولي کيږى،﴿وَمَنْ عَمِلَ صَـٰلِحًا ﴾بشارت دي مؤمنانو اونيك عمل کونکوته.

﴿وَمِنْ ءَايَـٰتِهِۦٓ أَن يُرْسِلَ ٱلرِّيَاحَ﴾دالسم(١٠) عقلي دليل دي په توحيدچه دالله ﷻ دقدرت اووحدانيت ددلائلونه داهم يودليل دي چه الله ﷻ يخي هواګانى رااوليږى چې تاسو ته دباران زيرې درکوى اوچى.باران اوشى نوتاسو خوشحاله شئ اوزمکه ورسره شنه شى."مبشرات"حال تعليليه دې.يعني علت معنى ورکوي أي:لتبشركم ﴿وَلِيُذِيقَكُم مِّن رَّحْمَتِهِۦ﴾د"رحمت" نه مراد د باران فوائد دى.چې فصل او بوټى ورسره شنه شى . زميندار دپنرې مشقت نه بچ شى.اوبيماريانى ورسره ختمې شى وغيره."يذيق"فعل سره دفاعل اومفعول نه په تاويل د مصدر کښ مجرور دې دلام حرف جر دپاره.اوجارمجرور يا متعلق دې برسل فعل مقدر پورې ."اي برسلها ليذيقكم" اوياجارمجرور عطف دې په مبشرات باندې،ځکه چې داهم تعليل معنى ورکوى اوحال هم ورکوى.اي لتبشركم وليذيقكم

﴿وَلِتَجْرِيَ ٱلْفُلْكُ﴾مرادورنه بادبانى کشتئ دى چه دهواپه ذريعه چليږى ﴿وَلِتَبْتَغُوا۟ مِن فَضْلِهِۦ﴾فضل نه مرادرزق دې،يعنى دکشتوپه واسطې رزق تلاش کړئ تجارتى سفرونه پکښ اوکړئ ﴿وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ لعل دپاره "تعليل"دې اي ولتشكروا يعنى داټول انعامات ددى لپاره په تاسوالله ﷻ کوى چه شکراداکړئ دهغه دوحدانيت اقراروکړئ اوشرك اونکړئ.

| |
|---|
| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ رُسُلًا إِلَىٰ قَوْمِهِمْ فَجَآءُوهُم بِٱلْبَيِّنَـٰتِ فَٱنتَقَمْنَا |
| اويقيناليږلى وومونږستانه مخکښ ډيررسولان خپلوقومونوته نوراغلى ووهغوئ ته واضحومعجزو سره نوبدل واخستومونږ |
| مِنَ ٱلَّذِينَ أَجْرَمُوا۟ ۖ وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۝ ٱللَّهُ ٱلَّذِى يُرْسِلُ ٱلرِّيَـٰحَ فَتُثِيرُ |
| دهغونه چه جرم ئې کړې ووأوحق دې په مونږامداددمؤمنانو.الله ﷻ هغه ذات دې چه راليږي هواګانې نوراپورته کړى |
| سَحَابًا فَيَبْسُطُهُۥ فِى ٱلسَّمَآءِ كَيْفَ يَشَآءُ وَيَجْعَلُهُۥ كِسَفًا فَتَرَى ٱلْوَدْقَ |
| ووريځ بيائى خوره کړى په اسمان کښ ځنګه چه دالله خوښه وي اواوګرځوى يې لاندې باندې نوته وينى باران |

| |
|---|
| يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ فَاِذَاۤ اَصَابَ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖۤ اِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ ۟ |
| چه را اوځي د مينځ د هغې نه. نو کله چه الله اورسوي باران چا ته ئې چه خوښه شي د خپلو بندګانو نه نو بيا دوئ خوشاله شي. |
| وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّنَزَّلَ عَلَيْهِمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمُبْلِسِيْنَ ۟ فَانْظُرْ |
| او بيشکه وو دوئ مخکښې د باران وريدلو نه په دوئ مخکښ د دينه بالکل نااميده. نو اوګوره په کتلو د عبرت سره |
| اِلٰۤى اٰثٰرِ رَحْمَتِ اللّٰهِ كَيْفَ يُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ اِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰى ۚ |
| اثار د رحمت باران د الله ته څنګه ژوندئ کوي زمکه ورستو د اوچيدلو نه. بيشکه هم دغه الله خامخا ژوندي کونکي دي مړو له |
| وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۟ وَلَئِنْ اَرْسَلْنَا رِيْحًا فَرَاَوْهُ مُصْفَرًّا لَّظَلُّوْا |
| او هغه په هر څيز باندې قادر دې. او که چرې اوليږلو مونږ باد (فصل) بيا اويني هغوئ هغه فصل تک زير (هلاک شي) نو شروع به کړي |
| مِنْۢ بَعْدِهٖ يَكْفُرُوْنَ ۟ فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى وَلَا تُسْمِعُ |
| د دوئ ورستو د هلاکت د هغې نه ناشکرئ (د تيرو نعمتونو) پس ته اې پيغمبره نه شې اوره ولې مړو ته او ته نشې آوره ولې |
| الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ ۟ وَمَاۤ اَنْتَ بِهٰدِ الْعُمْيِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ؕ اِنْ تُسْمِعُ |
| کڼړو ته بلنه کله چه دوئ اوګرځي شا کونکي. او نه ئې ته لاره ښودنکي ړندو ته د ګمراهئ د هغوئ نه. نه شې اوره ولې ته |
| اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ ۟ |
| مګر هغه چا ته چې ايمان راوړي زمونږ په آياتونو نو هغوئ مسلمان وي |

﴿وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ رُسُلًا﴾ دا حضور ﷺ ته تسلی ده او تخويف دنيوی دې مجرمانو، مشرکانو ته چه اې پيغمبره! ستا نه مخکښې هم مونږ ډير رسولان په واضحو معجزاتو سره خپل خپل قوم ته رااليږلي وو نو چه کوم خلقوو رنه انکار او کړو نو مونږ ورنه انتقام واخستلو هلاک موکړل. ﴿وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا﴾ دريم خل تکرار دې، د عوې د سورت يعنی دا زمونږ وعده ده چه مؤمنان په خپل ايمان سم قائم وی نو مونږ به ورسره نصرت کوؤ په مشرکانو به ورته غلبه ميلا ويږی.

﴿ٱللَّهُ ٱلَّذِي يُرۡسِلُ ٱلرِّيَٰحَ ﴾دا يولسم(۱۱)عقلي دليل دې په توحيد .چه الله ﷻ دهوا ګانو په ذريعه په آسمان کښ وريځې خورې کړې دخپل مشيت مطابق،باران ورنه نازل شي خلق پرې خوشحاله شي،﴿وَإِن كَانُواْ ﴾انْ مخففه عنِ المثقله دې،اسم ئې ضميرشان مقدر دې،يعنې دوئ دباران نازليدلو نه مخکښ نااميده وو چه باران نه کيږي،فصلونه به موتباه شي،﴿مِن قَبۡلِ ﴾ يعنې مخکښ دنازليدلو دباران نه﴿مِّن قَبۡلِهِۦ ﴾،تکرارلپاره دتاکيد دې،﴿فَٱنظُرۡ إِلَىٰٓ ءَاثَٰرِ رَحۡمَتِ ٱللَّهِ ﴾دالله ﷻ درحمت داثارونه مرادبوټي فصلونه زرغونيدل دي،ميوې زياتيدل دي په باران سره،نظرکولونه مراددعبرت په نظرکتل مراددي،يعنې دعبرت په نظرسره اوګورئ چه الله ﷻ څنګه پخپل قدرت سره اوچه زمکه ژوندئ کړه،نوچه کوم عظيم الشان رب پدغه قادردې،نوهغه دمرګ نه ورستو دخلقوپه ژوندې کولو هم قادردې دهغه دقدرت نه هيڅ څيزهم بهرندې،﴿وَلَئِنۡ أَرۡسَلۡنَا رِيحٗا ﴾زجردې مشرکانوته،اودهغوئ دناشکرئ بيان دې،چه کچرته مونږدوئ په فصلونوداسې هوانازله کړوچه په هغې سره ددوئ فصل زيړشي وچ شي نوکفراوجحودشروع کړي،اودالله ﷻ ټول احسانات هيرکړي.

﴿فَإِنَّكَ لَا تُسۡمِعُ ٱلۡمَوۡتَىٰ﴾تسلي ده حضورﷺ ته،چې داکافران په شانته دمړواودکنړو يارونودي،ستاداقدرت نشته دې چه په مړوخپله خبره اومني،ياکنړوته خبرې واؤره وې يارونده سمه لاره اوښائې خصوصاًچه کله دوئ ددنه ليدلواراده هم اوکړي،پس ته ددوئ په کفراونافرمانئ باندې مه غمژن کيږه،ستاکارصرف تبليغ اودعوت دې،دچاپه انکارتاته څه نقصان نه رسيږي،ستاخبره هم هغه کس اوريدلې شي چه زمونږپه آياتونوايمان راؤړي اعتمادکوي اودتسليم په صفت موصوف وي.

(تنبيه)دسماع الموتى مسئلې تحقيق دسورة نمل په آخرکښ تيردې هلته دې اوکتلې شي،چه نه ئې کليةً انکارکيديشي اونه ئې کليةً ثبوت کيديشي.

| |
|---|
| ٱللَّهُ ٱلَّذِي خَلَقَكُم مِّن ضَعۡفٖ ثُمَّ جَعَلَ مِنۢ بَعۡدِ ضَعۡفٖ قُوَّةٗ ثُمَّ جَعَلَ |
| الله هغه ذات دې چه تاسوئې پيداکړي يئ دکمزورې څيزنطفې نه بيائې درکړې دې ورستو دکمزرئ نه قوة بيائې درکړې دې |

۱

| |
|---|
| مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضَعْفًا وَّشَيْبَةً ؕ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۚ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْقَدِيْرُ ﴿٥٤﴾ |
| ورستودَقوة نه كمزورى اوبوډاوالي.پيداكوى اللهﷻ څه ئى چه خوښه وى اوهغه ښه عالم دي ښه قادردى. |
| وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يُقْسِمُ الْمُجْرِمُوْنَ ۙ مَا لَبِثُوْا غَيْرَ سَاعَةٍ ؕ |
| اوپه هغه ورځ چه قائم شي قيامت نوقسمونه به كوى مجرمان‌كافران‌چه ندي تيركړى دوئ په دنياكښ به غيردیوساعت نه |
| كَذٰلِكَ كَانُوْا يُؤْفَكُوْنَ ﴿٥٥﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَالْاِيْمَانَ |
| همدغه شان په دنياكښ هم دوئ اړولي كيدل.اواوبه وائى هغه كسان چه وركړي شويدي ورته علم اوايمان |
| لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ اِلٰى يَوْمِ الْبَعْثِ ؗ فَهٰذَا يَوْمُ الْبَعْثِ وَلٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ |
| چه يقيناتاسووخت تيركړيدي موافق دَليكلودَالله ترورځ دَقيامت پورې نوداورځ دَقيامت ده ليكن تاسو |
| لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٥٦﴾ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنْفَعُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَعْذِرَتُهُمْ وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ ﴿٥٧﴾ |
| نه پوهيدلئ.پس نن ورځ نفع به نه وركوى ظالمانوته عذردَهغوئ اونه به دوئ نه طلب دَتوبې كيږى |

﴿اَللّٰهُ الَّذِى خَلَقَكُم مِّن ضَعْفٍ﴾دا دولسم(١٢)عقلي دليل دي په توحيد،چه اللهﷻ تاسودَيوضعيف څيزيعنى بې جانه نطفې نه پيدا كړئ،بيائى درته قوى مضبوط جسم دركړو پخپلولاسونوهرڅه كولي شئ،بيامو په بدن كښ كمزورى پيداشى آخربوډاګان شئ.نوداټول حالات دَاللهﷻ په اختياركښ دى،هرڅه باندى هغه عالم قادردې لهذادَعبادت لائق صرف هغه اوګنړئ. ﴿مِّن ضَعْفٍ﴾نه مراديانطفه ده يادقبل دَپيدائش نه حالت دَجنين دې

﴿ثُمَّ جَعَلَ مِنۢ بَعْدِ قُوَّةٍ﴾قوت نه مرادځوانى ده، او ضعفا نه مراد بوډاوالي دي﴿وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ﴾داتخويف اخروى دي مشركانوته،يعنى كله چې قيامت قائم شى نوبيادوئ قسمونه خورى چې﴿مَا لَبِثُواْ غَيْرَ سَاعَةٍ﴾داجمله به دوئ بطور عذرذكركوى،دَبعث بعدالموت نه انكار دَپاره،يعنى دنياكښ دوئ بعث بعدالموت ډير مستبعد ګنړلو او دائى وائيل چې كله مونږ خاورې اوبړي شو نو بيابه څنګه پورته كيږو،نو كله چې دَقيامت په روځ په خپله دَبعث

مشاهده اوکړی نو خپل زوړ دلیل اوانکار دپاره به عذر تلاش کوی چې مونږ داانکار ځکه کوؤ چې زمونږ ګمان وؤ چې مونږ به یوطویل مدت په قبرونو کښې تیره وؤ.او چورچور کیږوبه،داخومونږ ډیرلږ وخت تیرکړو نوځکه راپورته کړې شو ﴿كَذَٰلِكَ كَانُواْ يُؤْفَكُونَ﴾یعنی لکه څرنګه چې دوئ قیامت کښې سمه خبره نه کوی دَدروغوقسمونه کوی دغه شان دوئ دنیاکښې هم دروغ وئیل اوبعث بعدالموت نه ئې انکار کولو.ذلک اسم اشاره دپاره مشار الیه "الافک" دې ﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلْعِلْمَ﴾داجمله معترضه ده .یعنی قیامت په ورځ چې کله مؤمنان ددوئ دا عذر او باطل حجت واوری نو دوئ اګر چې مخاطب به نه نوی خو په غلطه خبره به خاموشه پاتې نشی اوورته په اووائی"لقد لبثتم في كتاب الله الى يوم البعث" چې تاسو لږ وخت نه دې تیر کړې،بلکه الله تعالی چې درله څومره وخت لیکلې وؤ.دَمرګ نه ترقیامته پورې،هغه موپوره تیرکړو.﴿ كِتَٰبِ ٱللَّهِ ﴾کتاب الله نه مراد دَالله ﷻ علم اوفیصله ده ای ف علمهِ وقضائه(روح)یعنی تاسودروغ وایئ چه مونږهیڅ وخت ندې تیرکړې.دَالله ﷻ دَعلم اودَفیصلې مطابق یعنی کومه نیټه چه الله ﷻ مقررکړې وه ترورځې دَقیامت پورې هغه موتیره کړه.

بعض مفسرین لیکی چې "في"دلته ظرفیت معنی نه ورکوی،بلکه علت معنی ورکوی"اي لاجل کتاب الله .یعنی مؤمنان به ورته اوائی چې دا عذرونه پریګدئ.داهیڅ نفع نه درکوی،کوم وخت چې مودنیا کښې تیرونکې وؤ،هغه مو دنیا کښې تیر کړو.اوکوم وخت موچې برزخ کښې تیرونکې وو ،هغه موبرزخ کښې تیر کړو.اوالله تعالی درته ځکه څه نه وې،چې د نن ورځ عذاب ئې درله لیکلې وؤ﴿ فَهَٰذَا يَوْمُ ٱلْبَعْثِ ﴾ فا فصیحیه ده.او مفاجات معنی ورکوی.اې اذا کان کذلک فهذایوم البعث یعنی کله چې خبره داسې ده چې تاسو خپل مدت تیر کړو نواوس درباندې قیامت ورځ راغله.﴿وَلَٰكِنَّكُمْ كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴾استدارک دې ولقد لبثتم نه.یعنی خه وخت او موقع درته میلاوشوې وه لیکن تاسو حق نه طلب کوؤ.بلکه اعراض موترینه کوؤ."لایعلمون"نه مراد "لاتطلبون"دې یعنی طلب درکښې نه وؤ(التحریر والتنویر)

﴿فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنفَعُ الَّذِينَ﴾ دا دَ الله تعالى طرف نه جواب دې،دَمشركينو دَعذر چې دَقيامت په ورځ به مشركانو نه هيڅ عذرنه قبليږي اونه به ورته دَتوبې كولو اجازت وي چه الله ﷻ راضي كړي اوجهنم نه خلاصي شي،﴿وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ﴾ استعتاب ازالي دَعتاب ته وائي،يعني دوئ به ازاله دَعتاب نشي كولي دَتوبې په ذريعه لكه څنګه چه دنيا كښې انسان په توبه معاف كيږي،ياپمعنى دَلايرجعون دې يعني دنياته به نه واپس كيږي(ابن كثير)

| |
|---|
| وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ مِن كُلِّ مَثَلٍ ۚ وَلَئِن جِئْتَهُم بِآيَةٍ |
| اويقيناًبيان كړيدي مونږلپاره دَهدايت خلقوپدې قرآن كښې دَهرقسم مثال نه.اوكه راوړې ته دوئ ته معجزه |
| لَّيَقُولَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُبْطِلُونَ ۝٥٨ كَذَٰلِكَ |
| نوخامخاوائي به كافران نه يئ تاسومګراهل باطل يئ.هم دغه شان |
| يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ۝٥٩ فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ |
| مهرلګوى الله ﷻ په زړونودَهغوكسانوچه نه پوهيږي،پس ته صبركوه اې پيغمبره!بيشكه وعده دَمدددَالله حقه ده |
| وَلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِينَ لَا يُوقِنُونَ ۝٦٠ |
| او هرګزبرانګيخته دې نه كړي تاپه بې صبرئ هغه خلق چه يقين نه لري. |

﴿وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ﴾داشكوه ده دَمشركانو معاندانو نه،چه مونږدَدوئ هدايت لپاره دې قرآن كښې هرقسمه واضحه مثالونه اودلائل بيان كړيدى زمونږطرف نه هيڅ تقصيرنشته دې،ليكن دَعنادپوجه بياهم دوئ هدايت اونه موندلوكله يواعتراض اوكله بل اعتراض كوى.﴿وَلَئِن جِئْتَهُم بِآيَةٍ﴾يعني سره دَدينه چه مونږه ورته ښه پوره واضح بيان كړيدې،دَدينه علاوه ورته ته معجزه هم راوړې نوبياهم دَهغې نه انكاركوى،اووائي چه تاسوپه باطله يئ،نوپدې وجه الله ﷻ دَدوئ په زړونومهردَجباريت لګولي دې،﴿كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ﴾يعني الله ﷻ هم دغه شان دهغوخلقوپه زړونومهردَضلالت لګوى چه يقين نه كوى،لكه څنګه ئې چه

پدوئ مهرلګولي دي،يا کاف پمعنیٰ دَلامِ تعليليه دي﴿كَذَٰلِكَ﴾كښ اشاره تكذيب ته ده،يعني دوئ تكذيبّ پو جه الله جَلَّ جَلَالُهُ دَ دوئ په زړونو مهرلګولي دي

﴿فَٱصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ﴾ دادعوي دَ سورت دريم ځل تكرار دي او داتسلی ده حضور ﷺ ته،يعنی ته دَدوئ په تكليفونو صبر کوه،بی شکه وعده دَالله جَلَّ جَلَالُهُ چه مؤمنان به غالبه کیږی حقه ده، ﴿وَلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ﴾يعنی دَقيامت منكرين دې تا په صبراوحلم په ترك مجبوره نه کړی يعنی داسې بې صبره مه شی چې دعوت وتبليغ درنه پاتې نشی بلكه پخپل تبليغ باندې مداومت کوه.

| رکوعاتها (۴) | سورة لقمان مكية | آياتها (۳۴) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۳۱) وحسب النزول (۵۷)**

حسب التسلسل (۳۱) دي، حسب النزول (۵۷) دي، نزلت بعد الصافات وقبل السبأ.

**ربط اسمی**: ماقبل کښ دَدې ذکر وؤ چې که په توحید قائم پاتې شوئ نو الله تعالی به مو نصرت کوی، لکه څنګه چې ئې دَ رومیانو مدداوکړو فارسو خلاف، اوس دلته ذکر دي چه توحید دومره اهم مسئله ده چې لقمان حکیم خپل ځوی ته په نصائحو کښ ټولو نه سرفهرست ذکر کړیده، او خصوصی تاکید ئې ورته کړیدي.

**ربط معنوی**: ماقبل سورة روم کښ دَفتح اونصرت اعلان وؤپه شرط دَدې چې تاسوپه توحید مضبوط شوئ، دې سورة کښ بیان دَتوحیددې علی وجه الکمال، نوګویاچه داسورة دَماقبل سورة تتمه ده.

**خلاصه**: په ابتداء کښ تمهید مع الترغیب دې، بیازجردې کافرانوته، یونقلي دلیل اواته (۸) عقلي دلائل په توحید، دوه ځله ثمري دَدلائلو.

**تفصیلی خلاصه**: ابتداءکښ تمهید مع الترغیب دې آیت (۱) نه تر ۹ پورې.

اته (۸) عقلی دلائل ذکر دی:

اول دلیل عقلی: آیت ۱۱، ۱۰

دویم دلیل عقلی: آیت ۲۰

دریم دلیل عقلي، آیت ۲۵.

څلورم دلیل عقلی آیت ۲۶.

پنځم دلیل عقلی: آیت ۲۷.

شپږم دلیل عقلی: آیت ۲۹

اووم لیل عقلی: آیت ۳۱

اتم دليل عقلی ۳۴

يو دليل نقلی دي.آيت ۱۲-۲۰ پوري

دوخله ثمره دَدلائلو ذكر كيږی (۱) آيت ۲۵ قُلِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ (۲) آيت نمبر ۳۰ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْحَقُّ دوه زجرونه ذكركيږی (۱) آيت ۲۱ . ۲۰ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ فِى ٱللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ (۲) آيت ۳۲ وَٱخْشَوْا۟ يَوْمًا لَّا يَجْزِى وَالِدٌ عَن وَلَدِهِۦ

په آيت ۲۴ ، ۲۳ كښ تسلی ده.آيت ۲۲ كښ بشارت او آيت ۳۳ كښ تخويف دي

الٓمٓ (۱) تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْحَكِيمِ (۲) هُدًى وَرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِينَ (۳) ٱلَّذِينَ

الٓمٓ.دا آياتونه دَداسي كتاب دی چه حكمت والا دي.لار خودنكي اورحمت دي لپاره دَنيكانو.نيكان هغه دی

يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ (۴) أُو۟لَٰٓئِكَ

چه پابندی كوی دَمونځ اوور كوی زكوة اودوئ په آخرت باندی هم دوئ يقين ساتي.دغه كسان

عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ ۖ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ (۵) وَمِنَ ٱلنَّاسِ

په سمه لاره دی دَطرفه دَرب خپل نه او دغه كسان هم دوئ كاميابی موندونكی دی.اوبعض دَخلقونه

مَن يَشْتَرِى لَهْوَ ٱلْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ

هغه دی چه په پيسواخلی عبثې خبرې لپاره دَدې چه گمراه كړی (خلق) دَلارې دَالله جَلَّ جَلَالُهُ.نه بغيردَعلم نه،

وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ (۶)

(اولپاره دَ دې چې اوګرځوی دا (لاره دَ الله) ګپ شپ،دا كسان هم دوئ لره عذاب ذلت ناك دې

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ءَايَٰتُنَا وَلَّىٰ مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا كَأَنَّ

اوكله چې لوستلې شی پدہ آياتونه زمونږنومخ ترې واړه وی تكبركوی لكه چې اروااوريدلی ئی هم ندی ګوياكه

| |
|---|
| فِيْٓ اُذُنَيْهِ وَقْرًا ۚ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝۷ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
| په غوږونودده کښې دروندوالي دې،نوزيري ورکړه ورته دعذاب دردناک.بيشکه هغه کسان چه ايمان ئې راوړيدې |
| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ جَنّٰتُ النَّعِيْمِ ۝۸ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ وَعْدَ اللّٰهِ |
| او کړي يې وي نيک عملونه دوئ لپاره جنتونه دنعمتونو دي.هميشه به وي په هغې کښې.وعده کړيده الله ﷻ |
| حَقًّا ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝۹ |
| وعده حقه.اوهغه غالب دې حکمتونو والا دې |

﴿الٓمّٓ ۝۱ تِلْكَ اٰيٰتُ﴾داتمهيد دې اوترغيب دې اتباع دقرآن ته،چې داکتاب دمحسنينو لپاره رحمة اوهدايت دې نودَدې اتباع وکړئ دنيوي اخروي فلاح به بيامومئ.﴿الْحَكِيْمِ﴾ پمعنیٰ (۱)دَذي حکمةٍ سره دې يعنی حکمتونو والاکتاب دې،(۲)ياحکيم په معنی دمحکم سره دې،يعنی په بل کتاب سره نه منسوخ کيږي،(۳)ياصفت بحال متعلقه دې ای حکيم منزله،نازلونکې ئې ډيرحکيم ذات دې﴿هُدًى وَّرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِيْنَ﴾يعنی دوئ ورنه هدايت حاصلوی ورنه قرآن خوټول خلقولپاره هدايت اورحمت دې﴿الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ﴾،صفات دمحسنينو بيانيږی دا اول صفت دې﴿وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ﴾زکوٰة نه مرادزکوٰة داموالودې،ځکه چې نفسِ فرضيت ئې مکه کښې راغلې وؤياورنه مراد دعقائدو اواعمالوطهارت مراددې يعنی خپل عقائداواعمال دشرک وغيره ګندګئ نه پاک ساتي،﴿وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ﴾دريم صفت دې د محسينونو دآياتونوترکيب اونوري متعلق خبري په ابتداء دسورة البقري کښې تيرددې هلته اوګورئ.

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْتَرِيْ﴾دازجردې دقرآن مخالفينوته اوهغوئ ته تخويف اخروی دې،چې دوئ دقرآن په مقابلې کښې دفضولوخبرواتباع کوی او هغه خوښه وی،خپله هم ګمراه دی خلق هم ګمراه کوی دوئ دپاره به رسواکن عذاب وی.

مفسرين رحمهم الله وائي چې داآياتونه دنضربن حارث باره کښې نازل دي ځکه چې لوئ کافروؤدتجارت دپاره به فارس وغيره ملکونوته تللودهغه ځائ نه به ئې دعجمو بادشاهانو قصې،ناولې واخستلې ځان سره به ئې راوړې اوقريشوته به ئې وئيل چې محمدﷺتاسوته دعاد،ثمودقصې آوروي،راځئ چې څه تاسوته ددې نه مزيدارې قصې درستم،اسفنديار اودنوروبادشاهانوقصې واؤروم،خلقوبه دغه قصې ډيرپه شوق سره اؤريدلې اوقرآن آوريدلونه منع شول،نودا آياتونه نازل شول،په يوروايت کښې دي چې ده يوه سندرغاړې وينځه هم راوستې وه،چې يوکس به اسلام طرف ته مائله کيدلونوهغه به ئې دهغې ويـزې کورته ليږلوهغې به ورته سندرې ويلې،بيابه ئې هغه کس ته وئيل محمدﷺتاسوته کرۍ قرآن آوري،مونځونه درباندې کوي،روژې نيولوحکم درته کوي، دهغې نه دامزې زياتې ښه دي.

﴿مَن يَشْتَرِى﴾ دشراءنه مرادشراء بالمال ده يعنى خپله حقيقى معنىٰ ورنه مراده ده. يا ورنه مرادخوښول اوغوره کول دي،کقوله تعالى:اولئك الذين اشتروالضللة[بقره ۱۶]،﴿لَهْوَ الْحَدِيثِ﴾حضرت حسن بصريؒ دلهوالحديث متعلق وائي: كلّ ماشغلك عن عبادة الله تعالى وذكره من السّمروالاضاحيك والخرافات والغناء ونحوها[روح]يعنى لهوالحديث هرهغه ته وائي چې تادالله ﷻ دعبادت اودهغه دذکرنه غافله کوي لکه بې هوده قصې،خنداګانې، خرافات يعنى فضول کارونه،سازاوګانې بجانې وغيره اوحضرت ابن مسعودؓ به قسم کولوچې دېنه مرادغنايعنى ګانې دي.

داکثروعلماؤپه نيزپدې آيت کريمه کښې دګانوبجانوونيلواواوريدولو ذم دې،دګانوونيل اوآوريدل چې ورسره مزاميروي يعنى رباب،سازوغيره،دغه شان ددې الاتو حرمت باندې ائمه متفق دي،چې تفصيل ئې دفقه په کتابونوکښې موجوددې،نن صباد ګانواوفحش ويډيوګانو کتلودپاره موبائل اخستونکې هم ددې زجرمستحق دې کوم چې آيت کريمه کښې مذکوردې، چې دوئ لپاره ذلت ناك اورسواکن عذاب دې.

﴿عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾مرادورنه دين دالله ﷻ اوقرآن دې يعنى دسندروپوجه خلق ددين نه ګمراه کوي،لام په﴿لِيُضِلَّ﴾کښې دتعليل لپاره دې﴿بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾متعلق دې يادَ﴿يَشْتَرِى﴾

سره،نومطلب دادي چې دې پخپل شراء اوتجارت په حال خبرنه دې چې حق يعنی قرآن ئې پريخودلو اوگمراهي ئې واخسته، يامتعلق دي دَ ﴿لِيُضِلَّ﴾ سره.يعنی خلق گمراه کوی خبرنه ئې چې دَلاري دَالله ﷻ نه خلق گمراه کول جهالت دې دَحق نه

﴿وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا﴾ ضمير منصوب راجع دې سبيل الله ته.لفظ "سبيل "مذکر او مؤنث دواړه استعماليږی،يعنی دين نه گپ شپ او مذاق جوړ کړی.او مسخرې وريوړې شروع کړی.او يا ضمير منصوب"ايات"ته راجع دې،يعنی دې آياتونو پورې توقې او مسخرې اوکړی

﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ءَايَٰتُنَا﴾ دازجردې چې دې معاندينوباندې چه کله زمونږآياتونه تلاوت کړې شي نواعراض ورنه کوی،تکبرکونکي،گوياکه دوئ بالکل کانړه دی.اوړواوريدلې ئې هم ندي،دوئ ته دَدردناك عذاب خوشخبري ورکړه﴿وَقْرًا﴾ وقربوج ته وائی دَبوج نه مراد کونړوالې دې،﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا﴾ مؤمنانو ته بشارت دې.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ | بِغَيْرِ | عَمَدٍ | تَرَوْنَهَا | وَاَلْقٰى | فِي | الْاَرْضِ | |
| پيداکړې ئی | دی آسمانونه | بغيردَستنونه | چه تاسوئې | وينئ هغه | او ايخې ئې | دی په | زمکه کښې | |
| رَوَاسِيَ | اَنْ | تَمِيْدَ | بِكُمْ | وَبَثَّ | فِيْهَا | مِنْ | كُلِّ | دَآبَّةٍ |
| غرونه | چه اونه | خوځيږی زمکه | په تاسواوخواره | کړې ئی | دی پدې | کښې | دَهرقسمه | خناورنه. |
| وَاَنْزَلْنَا | مِنَ | السَّمَآءِ | مَآءً | فَاَنْۢبَتْنَا | فِيْهَا | مِنْ | كُلِّ زَوْجٍ | كَرِيْمٍ ۝ |
| اونازل کړيدی | مونږدَآسمان | نه اوبه | نوزرغون کړيدی | مونږپدې | کښې | هرقسمه | گياه | عمده، |
| هٰذَا | خَلْقُ | اللّٰهِ | فَاَرُوْنِيْ | مَاذَا | خَلَقَ | الَّذِيْنَ | مِنْ | دُوْنِهٖ |
| دا ټول پيداکول دَالله ﷻ دی | | | نوتاسواوښايئ ماته | چه څه | پيداکړيدی | هغه معبودانوچه | ماسویٰ دَالله ﷻ نه | دی، |

بَلِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ⑪

بلکه ظالمان مشرکان په ګمراهئ ښکاره کښې دی

﴿خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ﴾ دا اول دليلِ عقلي دې په توحيد. چې الله ﷻ بغير د څه سهارې نه وه (۷) اسمانونه پخپل قدرت سره پيداکړيدي، په زمکه ئې مضبوط مضبوط غرونه پيداکړل، دَزمکې دَاستقرار لپاره، او هرقسمه مخلوق ئې پدې کښې خواره کړل ﴿تَرَوْنَهَا﴾ ضمير اسمانونو ته راجع دې، يعنی تاسو وينئ اسمانونه چې ستنې ورته نشته. ﴿رَوَٰسِيَ﴾ جمع دَراسیٌ ده يادَراسيةٌ، مضبوط غر ته وائی. ﴿أَن تَمِيدَ بِكُمْ﴾ ای لئلا تميدبكم (روح) خوځيدلو ته وائی، يعنی غرونه يې پکښې کيخودل دې دپاره چې په تاسو خوځيږی نه ﴿مِن كُلِّ زَوْجٍ﴾ زوج دلته پمعنی دَصنف دې، يعنی هرقسمه ګیاه او غلې او ميوې او ﴿كَرِيمٍ﴾ اي نفيس يعنی عمده، ډير منفعت والا

﴿هَٰذَا خَلْقُ ٱللَّهِ﴾ يعنی دا مذکور ټول دَالله ﷻ مخلوق دی، دَالله ﷻ نه ماسوئ چې تاسو کوم معبودان په خدائئ نيولي دی آيا هغوئ څه پيداکړلي شي؟ يقيناً چې هيڅ څيز هم نشی پيداکولي، بلکه اصل خبره داده چې بيا هم دوئ دَهغوئ عبادت کوی نو په ګمراهئ ښکاره کښې دی

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا لُقْمٰنَ الْحِكْمَةَ اَنِ اشْكُرْ لِلّٰهِ وَمَنْ يَّشْكُرْ فَاِنَّمَا يَشْكُرُ

او يقيناً ورکړې وو مونږ لقمان ته حکمت چه شکرادا کوه دَالله ﷻ، او چاچه شکر اوکړو نو بيشکه شکر کوی

لِنَفْسِهٖ وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ ⑫

لپاره دَفائدې دَخپل ځان، او چاچه ناشکری اوکړه نو ځان ته ئې تاوان ورکړو ځکه چه الله ﷻ بې پرواه دې ستائيلې شويدې،

وَاِذْ قَالَ لُقْمٰنُ لِابْنِهٖ وَهُوَ يَعِظُهٗ يٰبُنَيَّ

او کله چې اووئيل لقمان خپل ځوي ته حال داچه هغه نصيحت ورته کولو چه اې بچوړيه خما

| لَا | تُشْرِكْ | بِاللّٰهِ ۭ | اِنَّ | الشِّرْكَ | لَظُلْمٌ | عَظِيْمٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شرك | مکوه | دَالله ﷻ سره . | بیشکه | شرك | خامخاظلم | دي لوئ |

﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا لُقْمَٰنَ ٱلْحِكْمَةَ ﴾داپه توحیدباندې دلیلِ نقلي دې.چې دَحضرت لقمان په شان حکیم اوهوښیارکس هم دَشرك نه بچ کیدلوتلقین کړیدې.خپل ځوي ته ئي دټولونه اول دَشرك نه بچ کیدلووصیت کړیدې.چې شرك مکوه شرك ډیرلوئ ظلم دې.

دیکښ اختلاف دې چې حضرت لقمان نبی وؤ اوکه نه.

دَاکثروپه نیزحضرت لقمان حکیم نبي نه وؤ البته یوپاك.متقي انسان وؤچې الله ﷻ ورته حکمت،عقل اوپوهه ورکړې وه داسي خبري به ئي کولي لکه یونبي چې کوی.دَعکرمه. شعبي رحمه الله وغیره په نیزلقمان نبي وؤ،

حضرت لقمان حکیم دکوم ځائی وؤاوپه کومه زمانه کښ تیردې نو دَدې خبري کامل اوپوره یقین نشی کیدلې چې لقمان حکیم دکوم ځائي اوسیدونکې وؤ،اوپه کومه زمانه کښ تیردې،البته دَاکثروقول دې چې دې حبشي وؤ،دَحضرت ایوب علیه السلام خوریې وؤ،یائي دَترورځوې وؤ،دَ داؤد علیه السلام زمانه ئي موندلې وه.

﴿ٱلْحِكْمَةَ﴾حکمت نه مراد هغه دَ عقل وفطانت نه ډکې خبری دی،چې هغه دَ انسان لپاره ژوند کښ راهنما ګرځی،اودنیوی او اخروی دواړه قسمه فائدې ورسره وابسته دی،﴿أَنِ ٱشْكُرْ لِلَّهِ ﴾ان تفسیریه دې دَ "الحکمة" تفسیرکوي،"ان"تفسیریه دَ قول نه بعدراځی،اودلته مخکښ اګر چې قول ماده لفظا نشته خوحکمااوضمنا شته ځکه چې مراد الحکمتنه هغه فطانت نه ډک اقوال دی چې دوئ ته الله تعالی بطور الهام ورکړی وؤ،نو ځکه"ان" تفسیریه راوړل صحیح دی﴿وَمَن يَشْكُرْ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ ﴾یعنی څوك چې دَالله ﷻ شکراداء کوی نوفائده اوثواب ئي هغه ته رسي،الله ﷻ ته دَچاپه شکرفائده نه رسي اونه ورته دَچاناشکري،کفرضرر رسوي،﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ غَنِيٌّ ﴾قائمقائم دې دَجواب شرط محذوف،اصل عبارت داسي دې چې:ومن کفرفانما یکفرُعلی نفسه(روح)یعنی څوك کفراوناشکري کوی نوضرردکفربه هغه ته رسي،ځکه

چې الله ﷻ غني دې محتاج ندې دچاشکرته محموددې بالذات.﴿وَهُوَ يَعِظُهُۥ﴾جمله حاليه ده،﴿لَا تُشْرِكْ بِٱللَّهِ﴾دحضرت لقمان په نصائحوکښې اول نصيحت دې.﴿إِنَّ ٱلشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾دا هم قول دلقمان دې،يادالله ﷻ قول دې چې بل ځائې کښې ئې هم شرک ته ظلم عظيم وئيلې دې،الذين آمنوا ولم يلبسوا ايمانهم بظلم "ظلم"وائي يوشيزبې محله استعمالول.ددېنه به لوئې ظلم بل څه وي چې عاجزمخلوق ته غالب اومختارخالق درجه ورکړيشي

| |
|---|
| وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حَمَلَتْهُ أُمُّهُ وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ |
| اوکلك حکم کړيدې مونږانسان ته په حق دموريلارکښې څکه چې ،اوچت کړې وی دې موردده په کمزورئ دپاسه دبلې کمزورئ |
| وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ إِلَيَّ الْمَصِيرُ ۝ |
| اوجداکيدل دده «دتې دمورنه» په دووکالوکښې دی،«دې خبرې»چه شکرکوه خمااودموريلارخپل،خاص ماته دې راتلل دی |
| وَإِنْ جَاهَدَاكَ عَلَىٰ أَنْ تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا |
| اوکه کوشش کوی داواړه په تاچه ته شريك کړه ماسره هغه بتان چه نشته دې تاسره په الوهيت دهغې دليل نوخبره ئې مه منه |
| وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا ۖ وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ ۚ ثُمَّ |
| اوملګرتيااورسره کوه په دنياکښې په شرعی طريقې سره،اواتباع کوه دلاری دهغه چا چه رجوع ئې کړيده ماته بيابه |
| إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ۝ |
| خاص ماته رجوع وي ستاسونږه به خبرکړم تاسوپه هغه عملونوچه تاسوکول |

﴿وَوَصَّيْنَا ٱلْإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيْهِ﴾يعني والدينو اطاعت او دهغوئ سره حسن سلوک انتهائي اهم عبادت دې،او انسان ته ډيرپه تاکيد سره ددې حکم شوې دې،خوتوحيد دومره اهم حکم دې،کچرته مور پلارکښې هم څوک اولادته دَ شرک حکم کوی نو بيا هم دَ دې ګنجائش نشته،اودَ مورپلار داحکم منل جائز نه دی.

دا جمله معترضه ده د الله تعالی طرف نه، او دَ حضرت لقمان قول لاتشرک بالله تائید دي، حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائ چې لقمان حکیم بچی ته دَ توحید حکم او کړو چې حقوق الله کښې دَ ټولو نه اهم حکم دې، دَ والدینو حق ئی ورته اونه ښودلو ځکه چې ده دَ فائدی اشتباه پکښې راتلله او دَ خودغرضی شائبه اووهم پیداکیدلو نو ځکه یې دا نصیحت اونکړو، او دَ اهمیت په وجه الله تعالی ذکر کړو، نو دینه دا ثابته شوه چې دعوت وعظ او نصیحت کښې داسې خبره کول ندی پکار، چې هغی نه دَ خودغرضی وهم نه پیداکیږی. ﴿حَمَلَتْهُ أُمُّهُ﴾ دا جمله بطور تعلیل راغلیده ماقبل د پاره.

﴿وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ﴾ وهن مصدر دې دَ وهن يَهِنُ کمزورې اوضعف معنی کښې استعمالیږی. اول وهنا حال دې مبالغتا، او علی وهن ورله صفت دې، أي: وهنا واقعا علی وهن کمزورئ باندې کمزوری وی، یو خوا دَ بچی بوج وی او بل مسلسل وی، ﴿وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ﴾ پیدائش نه بعد هم دَ مور مشقت ختم نشی، بلکه دوه کالو پورې ورله تې ورکوی، هغې دوران کښې دا مور څو مره تکلیف اوچتوي، "فصاله" أي فطامه، في عامين، أي: انقضاء عامين یعنی دوه کاله پوره کیدو سره دَ تیی ورکولو مدت ختم شی، دا په احنافو کښې صاحبینو، او امام شافعی او احمد مذهب دې، امام صاحب په نیز مدرت رضاعت دونیم کاله دې، او دهغوئ استدلال په وحمله وفصاله ثلاثون شهرا (الاحقاف 15) سره دَ، ﴿أَنِ اشْكُرْ لِي﴾ "أن" تفسیریه دې او جمله تفسیر واقع کیږی دَ "وصینا" لپاره، یعنی خپل رب او دَ والدینو شکر اداکولو وصیت اوتاکید موورته کړې دې ﴿إِلَيَّ الْمَصِيرُ﴾ څما خواله خوراتلل دی، چې دَ مور پلار نافرمانی اونکړې، گنې سخت عذاب به درکړم.

﴿أَن تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ﴾ یعنی دَ هغې په الوهیت کښې دَ شریك کیدلو تاسره څه علم او دلیل نه وي ﴿فَلَا تُطِعْهُمَا﴾ دې وخت کښې بیا دَ دوئ اطاعت مه کوه ﴿وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا﴾ یعنی دَ شرع او عرف مطابق ئې خدمت کوه لکه خوراك ورکول، جامې

ورکول، علاج کول. ليکن دَشرك په کارونوکښ ني خدمت مکوه. حضرت اسمابنت ابی بکر رضی الله عنهامور مشرکه وه يوځل دَځه حاجت دَ پاره مدينې ته راغله. حضرت اسما رضي الله عنها دَ نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه دهغې سره تعاون اوصله رحمی اجازت طلب کړو. نو نبی صلی الله عليه وسلم ورله اجازت ورکړو. ﴿وَّاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ﴾ يعنی دَهغه چااتباع کوه چې رجوع الی الله ني کړي وي. په توحيداواطاعت سره. حضرت سعدبن ابي وقاص رضی الله عنه پاره کښ راغې چې کله يې اسلام راوړو. نو موريې قسم اوخوړ چې ځه به ترهغه وخت پورې خوراک سکاک نه کوم چې ترڅو پورې تا اسلام نه وی پريخودې. يؤورځ ئ دغه شان تيره کړه. دويمه ورځ يې دغه شان تيره کړه. حتی چې ډيره خرابه شوه نو سعدرضی الله عنه ورته اويل اې مورې که ستا څل ساکاني شي او دهغه شان يوه يوه درنه اوځي نو بيا هم ځه خپل دين نه پريږدم. که خورې نوخوره اوکه نه خورې نومه خوره. موريې پوهه شوه چې دې اسلام په هيڅ قيمت نه پريږدی. نو خوراک سکاک يې شروع کړو

يٰبُنَيَّ اِنَّهَآ اِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَكُنْ فِيْ صَخْرَةٍ اَوْ فِي السَّمٰوٰتِ

اې بچوړيه ځمابيشکه يوخصلت کچرته وی داخصلت په اندازی دَدانی دَاوری بياوی په کاڼری کښ ياوی په اسمانونوکښ

اَوْ فِي الْاَرْضِ يَأْتِ بِهَا اللّٰهُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَطِيْفٌ خَبِيْرٌ ⑯

اوياوی په زمکه کښ نورابه ئی وړی ښکاره به ئی کړی الله ﷻ. بيشکه الله باريك ليدونکې دې خبردارديې.

يٰبُنَيَّ اَقِمِ الصَّلٰوةَ وَاْمُرْ بِالْمَعْرُوْفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَاصْبِرْ عَلٰى مَآ اَصَابَكَ

اې بچوړيه ځماپابندی کوه دَمونځ اوامرکوه خلقوته دَنيکئ اومنع کول کوه دَبدکارنه اوصبرکوه په هغه تکليف چه ورسيږی تاته،

اِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ ⑰ وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ فِي الْاَرْضِ

بيشکه دا دَمقصودی کارونونه دی اومه ګرځوه مخ خپل دَخلقونه اومه ګرځه په زمکه کښ

مَرَحًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرٍ ⑱ وَاقْصِدْ

په نازاونخره، (ځکه چې) بيشکه الله ﷻ نه خوښوی هرهغه سړي چه خودپسنده وی فخرکونکې وی، اوميانه روی کوه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيْ مَشْيِكَ | وَاغْضُضْ | مِنْ | صَوْتِكَ | إِنَّ | أَنْكَرَ | الْأَصْوَاتِ | لَصَوْتُ | الْحَمِيْرِ ۝ |
| په خپلوتلوکښ | اورو | سانه | اوازخپل | بیشکه | ډیربدپه | اوازونوکښ | | خامخااوازدخردي |

﴿يَٰبُنَيَّ إِنَّهَآ إِن تَكُ﴾دادويم وصيّت دَلقمان حكيم دې خپل بچي ته.مثال بيانولونه يې مقصود دَ الله تعالى دَ قدرت اظهاردې چې الله ﷻ نه دَبندګانوهيڅ عمل هم پټ ندې،آسمان اوزمكي اودَدې په مينځ كښ چې څه دى دَهغې يوې يوې ذرې باندې دَالله ﷻ علم محيط دې،انسان كه ذره برابرنيكي كوى اوكه ګناه،الله ﷻ به ئې دَقيامت په ورځ حاضره وي، ﴿إِنَّهَا﴾ضميرمطلق خصلت ته راجع دې،كه نيك وي اوكه بد ،يعنى كوم يوخصلت بنه وي يابداودَاُوري ددانې په اندازې ووړكې هم وي اوفرض ئې كړه چې ديولوئ كانړي لاندې ياآسمانونودَپاسه يادَزمكي په تياروكښ كيخودلې شي هغه هم دَالله ﷻ نه پټ نشى پاتې كيدلې الله ﷻ به ئې دَقيامت په ورځ حاضره وي نوانسان ته غافله كيدل ندى پكار، ﴿يَأْتِ بِهَا اللَّهُ﴾يعنى حاضره وي به ئې اوحساب به ئې كوى﴿لَطِيفٌ﴾الله ﷻ باريك بين دې پټ نه پټ څيز ئى هم په علم كښ وى ﴿خَبِيرٌ﴾اي بكنهه يعنى ذات نه ئى هم خبر وى اوحقيقت نه ئى هم خبروى.

﴿يَٰبُنَيَّ أَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ﴾ دائى دريم نصيحت دې دَتوحيدنه ورستوځوي ته دَامرِمصلح حكم كوى چې مونځ دې، ﴿وَأْمُرْ بِٱلْمَعْرُوفِ﴾ دائى څلورم نصيحت دې يعنى دغيراصلاح لپ ره امربالمعروف اونهي عن المنكركوه،دَتوحيدامركوه اودَشرك نه خلق منع كوه، ﴿وَٱصْبِرْ عَلَىٰ مَآ أَصَابَكَ﴾ دائى پنځم نصيحت دې يعنى چه امربالمعروف اونهي عن المنكركوې اودَدې پوجه درته څه تكليف اورسيږي نوپه هغې صبركوه، ﴿إِنَّ ذَٰلِكَ﴾يعنى صبرعلى المصيبة يااشاره صبراومذكورټول مأموراتوته ده،يعنى داهغه اموردى چې الله ﷻ ئې عزم اوامركړيدې.

﴿وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ﴾دائی شپږم نصیحت دې.اودعبادت نه ورستواوس خپل

خوي ته دښه اخلاقوتربيت ورکوی. ﴿تُصَعِّرْ﴾ صَعَر نه مشتق دې داهغه بيماري ده چې اوښ

ته لاحقه کيږي نوخټ ئي ورسره کوږشي.دلته کنايه ده دتکبرنه اوخلقوته حقيرکتلونه.

دمتکبرکس تشبيه دبيمارا وښ سره ورکړيده.يعنی خلقوسره خبرې کولووخت کښ دهغوئ نه

دتکبرکونکي په شان مخ بل طرف ته مه اړه وه﴿لِلنَّاسِ﴾کښ لام لپاره د صلې دې. يعنی

خلقونه مخ مه اړوه،اويا تعليليه دې ای لاجل الاعراض عن الناس(روح)

﴿وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ﴾دا اووم نصيحت دې يعنی داسې چال سره مه ځه چې دهغې نه

غروراوتکبراظهارکيږي"مشی"(تګ)خو هسې هم په ځمکه وی .دينه باوجود "في الارض"

راوړلو کښ اشاره ده دېته،چې ځمکه باندې تګ راتګ کښ ټول برابر دی.لهذا دې باندې

داسې انداز سره تلل نه دی پکار چې هغې سره د چا برتری ثابتيږي اوياورنه بل ته تکليف

رسی.دينه داهم معلومه شوه چې عمومی مقاماتو اواشياؤ کښ ځان دعامو خلقو سره

برابرساتل پکاردی هلته خپل امتياز برتری اوتخصيص نه دې صحيح لکه شاهراه عام

هسپتال وغيره شو﴿مَرَحًا﴾مفعول له دې ناز اوتکبرته وائی﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ﴾مذکوره دوه

حکمونو علت بيان دې،چې د خلقونه مخ اړولو او په ناز ونخرو سره ګرځيدلو بنيادی وجه

فخروتکبراوخود پسندی ده،او الله تعالی داسې خلق نه خوخوی ﴿مُخْتَالٍ﴾مختال خود

پسندهغه کس چې ځان ورته ښه ښکاري دبل تحقيرکوی،دتکبرپوجه دبل انسان نه نفرت کوی

او﴿فَخُورٍ﴾هغه ته وائی خپل صفتونه پخپله خلقوته کوی.

﴿وَاقْصِدْ فِي مَشْيِكَ﴾ دااتم نصيحت دې اوپه ديکښ ورته دمعاشرت اداب ښائي.يعنی

چې په لاره ځي نودرميانه چال سره ځه ډيرتيزهم مه ځه اوډيروروهم مه ځه.﴿وَاغْضُضْ مِن

صَوْتِكَ﴾دانهم نصيحت دې چې آوازدې خپل خکته ساته.په زوره خبري کول لاروکښ چغې

وهل دآداب معاشرت نه خلاف دی.عاقل سړي سره ښه نه ښکاری او"من" په "من صوتک" کښ

دپاره دَتبعیض نه دي بلکه بطور صله راغلې دې،ځکه چې "غض"فعل کله بغیر دحرف جرواسطې نه متعدی کیږی او"من"حرف جر په واسطې سره متعدی کیږی

﴿اِنَّ اَنۡکَرَ الۡاَصۡوَاتِ﴾ یعنی په آوازونو کښې اقبح آوازدَخردی،نوکچرته په زوره چغې وهل بنه وې نو دَخرآوازبه دَټولونه بنه وو.اصوات نه مراداصوات دَحیواناتودي،

اَلَمۡ تَرَوۡا اَنَّ اللّٰهَ سَخَّرَ لَكُمۡ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الۡاَرۡضِ

آیا نه وینئ تاسو چه الله تعالی مسخر کړیدی ستاسو لپاره هغه څه چه په اسمانونو کښې دی او هغه څه چه په زمکه کښې دی

وَاَسۡبَغَ عَلَيۡكُمۡ نِعَمَهٗ ظَاهِرَةً وَّبَاطِنَةً ؕ وَمِنَ النَّاسِ مَنۡ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ

او پوره کړی ئې دی په تاسو نعمتونه خپل، ښکاره او پټ، او بعض په خلقو کښې داسی دی چه بحث مباحثه کوی دَ الله تعالی په باره

بِغَيۡرِ عِلۡمٍ وَّلَا هُدًى وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيۡرٍ ﴿۲۰﴾ وَاِذَا قِيۡلَ لَهُمُ اتَّبِعُوۡا

کښې، بغیر دَعقلی دلیل نه او هدایت نه (دلیل عقلی نه) او دکتاب روښانه نه، او کله چه او وئیلې شی دوئ ته اتباع اوکړئ

مَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ قَالُوۡا بَلۡ نَتَّبِعُ مَا وَجَدۡنَا عَلَيۡهِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَلَوۡ كَانَ

دَ هغه قرآن چه نازل کړیدې الله، نو دوئ وائی بلکه مونږ اتباع کوو دَهغه دین چه موندلی دی مونږ په هغې پلاران خپل، اګر

الشَّيۡطٰنُ يَدۡعُوۡهُمۡ اِلٰى عَذَابِ السَّعِيۡرِ ﴿۲۱﴾ وَمَنۡ يُّسۡلِمۡ وَجۡهَهٗۤ اِلَى اللّٰهِ

که شیطان دعوت ورکوی دوئ ته عذاب دَ جهنم ته، او هغه څوک چه اوسپاری خپل ځان الله ته

وَهُوَ مُحۡسِنٌ فَقَدِ اسۡتَمۡسَكَ بِالۡعُرۡوَةِ الۡوُثۡقٰى ؕ وَاِلَى اللّٰهِ عَاقِبَةُ الۡاُمُوۡرِ ﴿۲۲﴾

حال دا چه هغه نیکوکاروی، نویقینا ده منګلې اولګولې په کړئ محکمې باندې، او خاص الله ته دې انجام دَټولو کارونه

وَمَنۡ كَفَرَ فَلَا يَحۡزُنۡكَ كُفۡرُهٗ ؕ اِلَيۡنَا مَرۡجِعُهُمۡ فَنُنَبِّئُهُمۡ بِمَا

او چا چه کفر اوکړونو نه دې غمژن کوی تا کفر دَهغه، خاص مونږ ته واپس راتلل دی دَ دوئ نو خبر به کړو

| |
|---|
| عَمِلُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٢٣﴾ نُمَتِّعُهُمْ قَلِيلًا ثُمَّ |
| مونږ دوئ په هغه عملونه چه يې کړيدی،بيشکه الله ښه عالم دې په خبرو دَ سينو ،نفع به ورکړو مونږ دوئ ته لږه بيابه ئې |
| نَضْطَرُّهُمْ إِلَىٰ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿٢٤﴾ |
| مجبور کړو عذاب سخت ته |

﴿أَلَمْ تَرَوْا أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم ﴾دادويم عقلي دليل دې په توحيد ،چې آياتاسونه وينئ چې الله ﷻ دَاسمان اوزمکي تمام مخلوقات ستاسوپه خدمت کښ لګياکړيدی،خپل ظاهري باطني نعمتونه ئي په تاسوپوره کړيدی،داصرف الله ﷻ کړيدی څوک ورسره شريك نشته،لهذاالله برحق هم صرف هغه دې صرف دَهغه عبادت کوئ.﴿ظَٰهِرَةً وَبَاطِنَةً ﴾ظاهري نعمتونه هغه دی چې ادراك ئي په حواسوسره کيږي،لکه نعمت دَسمع،بصر،صحت وغيره، باطني نعمتونه هغه دې چې په حواسوسره ئي ادراك نه کيږي لکه عقل،فهم،بعضِ وائی معلوم نعمتونه انسان ته اوغيرمعلوم نعمتونه ورنه مراددی،بعضِ وائی ظاهري نه مراد اسلام نصرة على الاعداء مراددې،باطني نه امداددَملائکومراددې،بعضِ وائی دنيوي او اخروي نعمتونه ورنه مراددی،ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چې ظاهري نه مراداسلام دې،باطني نه مراد بدعملونوباندې پرده اچول دی(روح المعاني).

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَن يُجَادِلُ ﴾زجردې مشرکانوته يعنی دَدومره نعمتونوباوجوددوئ په حق دَالله ﷻ کښ جګړې کوی،بغيردَڅه قسمه دليل نه،بعضِ ورنه انکارکوی،بعضِ ورله شريك ثابتوي،﴿بِغَيْرِ عِلْمٍ ﴾مرادورنه دليلِ عقلي دې،﴿وَلَا هُدًى ﴾مرادورنه دليلِ نقلي دې﴿وَلَا كِتَابٍ مُّنِيرٍ ﴾مرادورنه دليل وحي دې﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا ﴾داهم ورته زجردې چې دوئ ته اوونيلې شي چې تاسواتباع دَماانزل الله يعنی قرآن دَاحکاماتواوکړئ نودوئ انکارکوی اووائی چې دَماانزل الله اتباع نکوؤبلکه دَهغه دين اتباع کوؤچې مونږورباندې خپل مشران ليدلي دی.

﴿أَوَلَوْ كَانَ ٱلشَّيْطَٰنُ ﴾عطف دې په محذوف معطوف عليه اى ايتبعوهم ولوكان الشيطان يدعوهم.يعنی مشركانوباندې تعجب دې چې اګرچه شيطان دَدوئ مشران دَشرك پوجه جهنم عذاب ته بوځی،اوبياهم دوئ دَهغوئ اتباع كوی.باقي تفسيردآيت په سورة البقرة آيت(۱۷۰) كښې تيردې.﴿وَمَن يُسْلِمْ وَجْهَهُۥٓ ﴾بشارت دې مؤمنانوته.چې چا خپل ځان پوره پوره الله ﷻ ته حواله كړوخپل ټول كارونه ئې الله ﷻ ته اوسپارل نوده كلكه اومضبوط رسئ اونيوله چې پدې سره به دَالله ﷻ دَعذاب نه بچ شي

﴿وَجْهَهُۥ﴾نه مراد ذات دې﴿وَهُوَ مُحْسِنٌ ﴾يعنی مؤمن اومؤحدوي دَ﴿بِٱلْعُرْوَةِ ٱلْوُثْقَىٰ ﴾نه مراد دَايمان اوتوحيدمحكمه كړئ اورسئ ده،داسي محكمه رسئ چې شوكيدل ئې نشته دې

﴿وَمَن كَفَرَ فَلَا يَحْزُنكَ كُفْرُهُۥٓ ﴾داتسلی ده حضورپاك ﷺته اوتخويف دې كفركونكوته، يعنی دامشركان چې دَضداوعنادپوجه كفركوی نوته دَدوئ په كفرمه غمګين كيږه ځكه چې قيامت كښې به داټول ځماپيښئ ته راځي،نوځه به ورته عذاب اوعقاب سره خبرداري وركړم،﴿إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌۢ ﴾تعليل دې دَ﴿فَنُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوٓاْ ﴾يعنی الله ﷻ به ورته بدله وركوي دَدوئ عملونوځكه الله ﷻ په ټوخبروهم عالم دې،نوښكاره كارونه ورنه بالكل ندی پټ،﴿نُمَتِّعُهُمْ قَلِيلًا ﴾تمتيعاقليلاًلره فائده يازماناًقليلاً.لږه زمانه،يعنی يوڅوورځي فائده دی واخلي دنياكښې،آخرت كښې به ورته لوئ عذاب وركولې كيږي،﴿ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ ﴾ مراددَمجبوره كولونه په زوربوتلل په طريقی دَ ديكوور كولو سره او شړلوسره جهنم ته دی.

| وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ ٱللَّهُ |
|---|
| اوكچرته تپوس اوكړې ته دكافرانونه چه چا پيدا كړيدى اسمانونه اوزمكه نوخامخاوائی به چه الله، |
| قُلِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٥﴾ لِلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ |
| اووايه ته ټول ثناءصفت الله لره دی،بلكه اكثروپدوئ كښې نه پوهيږی.خاص الله لره دی هغه څه چه په اسمانونو كښې دی |

| |
|---|
| وَالْاَرْضِ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ۝ وَلَوْ اَنَّ مَا فِي الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ |
| اوزمکه کښې دی. بیشکه الله هغه بې پرواه دې ستائیلي شویدي.او کچرته هغه څه چه په زمکه کښې دی داونونه |
| اَقْلَامٌ وَّالْبَحْرُ يَمُدُّهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ سَبْعَةُ اَبْحُرٍ |
| قلمونه شي او درياب، شي دده سره سیاهی ـ روستود (ختمیدلو)دده نه ـ اووه نوردریابونه |
| مَّا نَفِدَتْ كَلِمٰتُ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝ مَا خَلْقُكُمْ |
| او اولیکلي شي پدغوسره کلمات دالله نوخلاصي به نشي کلمات دالله بیشکه الله غالب دي حکمت والادي نه دی پیداکول ستاسو |
| وَلَا بَعْثُكُمْ اِلَّا كَنَفْسٍ وَّاحِدَةٍ ۭ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ۝ |
| اونه بیاژوندی کول ستاسومګرداسی دی لکه پیداکول دنفس یو.بیشکه الله ښه اوریدونکي ښه لیدونکي دي. |

﴿وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دادریم دلیل عقلي دې په توحید علیٰ سبیل الاعتراف من الخصم یعنی مشرکانو نه چې تپوس اوکړې چې دزمکي او اسمانونو خالق څوك دې نودوئ هم دااعتراف کوی چې صرف الله ﷻ دې، ﴿قُلِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ دا ثمره ده دماقبل دلائلو، یعنی دماقبل دلائلو نه ثابته شوه چې ټول صفات دالوهیت صرف الله ﷻ لره دی، عبادت لائق صرف الله ﷻ دې لیکن مشرکان دجهالت پوجه پدې دلائلو نه پوهیږي، ﴿لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دا څلورم دلیل عقلي دې په توحید، چه ټول کائناتو کښې تصرف صرف دالله ﷻ دې.

﴿وَلَوْ أَنَّمَا فِي ٱلْأَرْضِ﴾ دا پنځم عقلي دلیل دې په توحید، پدېکښې دالله ﷻ دعظمت اودوسعت علم بیان دې یعنی کچرته په زمکه کښې دهرې اونې دڅانګونه قلمونه جوړشي اوټول دریابونه ددوئ دسیاهي دواتونه جوړشي اوټول خلق کاتبان شي دالله ﷻ محامدمحاسن لیکل شروع کړي، نوقلمونه به په تراشلوتراشلوختم شي دریابونوسیاهي به ختمه شي لیکن دالله ﷻ محامد، محاسن اودوسعت علمی احاطه به اونشی، ځکه چې صفات دالله ﷻ غیرمتناهي دی، متناهي اسباب اوقوتونه ئې احاطه نشی کولې، ماپه انماکښې موصوله

ده،او اسم واقع کيږي لپاره ان. "في الارض"جارمجروريې صله ده،اي ماکان في الارض﴿مِن شَجَرَةٍ﴾"من"بيانيه دي د"ما"بيان کوی،اوجارمجرورحال جوړ کيږي،دَ "ما"نه،يادَ "في الاض"دَ متعلق ضميرنه، ﴿أَقْلَـٰمٌ﴾خبردي دَ"ان" ﴿وَٱلْبَحْرُ﴾ واؤحاليه دي ياعاطفه دي،البحر مبتدادي، "يمده سبعة ابحر"جمله فعليه ورله خبردي،"سبعة" کښې عدد مقصود ندي بلکه تکثير مقصود دي

**فائده۱**:ظاهري اعتبارسره آيت تقدير داسې پکار وؤ، البحر مداديمده يعنی دا درياب ورله سياهي وي او دې ختمدونه ورستو بيا نو ردیابونه ورله سیاهی جوړه شي ليکن براه راست "يمده"راوړلو سره يوخو مختصر الفاظو کښې دواړه معنی حاصلې شوې،ځکه چې "يمده" معنی ده:بل هم سياهي والا اوګرځوي اوخپله ورله هم سياهي جوړه شي،او بل دَ "مد" منظر کښي طرف ته هم اشاره اوشوه،چې اول بحر بمنزله دَ هغه دوات شي چې پکښې سياهی وي،اوپه هغې سره ليکل شروع کړې شی،کله چې هم سياهی کميږی يا ختميږی نودنورونه ورته اچولې کيږی،

**فائده۲**:"شجرة"مفرد ذکر شو،او "اقلام"جمع ،دې کښې نکته داده چې "شجرة"کښې تعميم مقصود دې اوهغه مفردذکر کولو سره خه حاصليږي،ځکه چې دې معنی ده : کل شجرة شجرةيعنی هره يوه يوه ونه پريکړې شي، او ﴿أَقْلَـٰمٌ﴾کښې تکثير مقصود دې او هغه په جمع سره حاصليږي نوځکه صيغه دَ جمع ذکر شوه،معنی به داسې شي:بيا دهرې ونې نه ډير شې قلمونه جوړ کړيشی.

**فائده۳**:دلته "لو"په آيت کښې راغليدې او" لو"باره کښې دوه مشهورې قاعدې دی،(۱)"لو"کلام مثبت منفی اوکلام منفی مثبت ګرځوی.(۲)دې صورت کښې دا دکلام اوله حصه (شرط) سبب ګرځوی لپاره دَ دويمې حصې(جواب شرط)نو دلته چې کله اولې قاعدې مطابق کلام اوله حصه "انما في الارض.."منفی اوګرځي او دويمه حصه "مانفدت کلمات الله"مثبت اوګرځي،او چې دويمه قاعده ورسره ميلاوکړيشی نو معنی به داشی: "لولم يکن مافي الارض من شجرة...لنفدت کلمات اللهيعنی کچرته ونې قلمونه اودريابونه سياهی نشی نودَ الله کلمات به ختم شی،حالانکه دادآيت مطلب بالکل نه دې.دَدې اشکال ډير جوابونه کړې

شويدى دلته صرف يو جواب دَ قرافى رحمه الله ذكركيږى، هغه فرمائى چه "لو" څنګه دَ سببيت دَ پاره راځى دهغه شان قطع سببيت دَپاره هم راځى او دا هغه وخت كله چې دَ يوكلام نه سببيت مفهوم كيږي او ته دَ هغې ردكول غواړى اودې صورت كښې بيا مثبت منفى او منفى مثبت هم نه ګرځى،لكه يوسړي زيدباره كښې اوائي: "لو لم يكن زيد عالما لما اكرمه خالد"كه زيد عالم نوي نو خالد به يې اكرام نوې كړې،يعنى دَ زيد اكرام سبب علم دې،اوس ته دَ دې سببيت ردكول غواړې او اوائي: "لولم يكن زيد عالما لاكرمه خالد"كه زيد عالم نوې نو بيا به هم خالد دده اكرام كولو،يعنى صرف علم دَ اكرام سبب ندې،بلكه دَهغه نورصفات اوكمالات هم شته چې هغې دَوجهى نه يې اكرام اوشى، نو دلته "لو" په دويمه جمله كښې دَقطع سببيت دپاره راغلې دې،چې دَزيد اكرام سبب علم نه دې،نودې وجهى نه به منفى جمله به په ثبات كښې او مثبت جمله به په نفى كښې نه بدليږى دهغه روايت كښې راځي: "نعم العبد صهيب لولم يخف الله لم يعصه"دې مطلب دا نه دې چه كچرته دَ الله تعالى خوف پكښې وې نو بيا به يې دَ معصيت ارتكاب كولې،بلكه مطلب يې دادې كه كچرته خوف خدا نوې نو بيا به ئې هم نافرماني نه كولې دَخپل پاک طينتي اوحياءدوجهې نه،اوكله چې ورسره خوف خدا هم شامل وى نو بيا خوف په طريق اولى نه كوى،نو دلته په آيت كښې هم "لو"دَ قطع سببيت لپاره راغليدې،مثبت منفى او منفى مثبت نه ګرځوى مطلب به دآيت داسى شى كچرته ونې په ځمكه كښې قلمونه شى او دريابونه سياهى جوړه شى نو بيا به هم كلمات دَ الله تعالى ختم نشي.

﴿إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾تعليل دې دَماقبل،﴿مَّا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ﴾داتخويف اُخروي دې،منكرينودَقيامت ته،چې ستاسوټولواول ځل پيداكول اودَمرګ نه ورستوبياپيداكول الله ﷻ ته داسي آسان دى لكه ديوكس پيداكول اودَمرګ نه ورستوراژوندې كول،نوخامخا به الله ﷻ تاسوټول راژوندې كړي.﴿إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌۢ بَصِيرٌ﴾تعليل دې دَماقبل،چې لكه څرنګه الله ﷻ ته ديوآوازآوريدل اوپه يووخت كښې ډيرآوازونه اوريدل يوشان دى،او په يو وخت كښې ورته يوځيز ليدل او ډيرځيزونو ليدل يوشان دى هم داسي ورته ډټولومخلوقاتوپيداكول ديوكس پيداكولوپه شان دى.

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ وَسَخَّرَ

آیاته نه ګوري چه الله داخله وي شپه په ورځ کښې اوداخله وي ورځ په شپه کښې اومسخرکړې ئې دی

الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَّجْرِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى وَّاَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿٢٩﴾

نُوراوسپوږمۍ.هريوچليږي ترڅو نيټې مقررې پورې اوبيشکه الله په هغه عملونوچه تاسوئې کوئ ښه خبردې.

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَاَنَّ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ

دا په سبب دَدې چې بيشکه الله صرف هغه معبودبرحق دې اوبيشکه هغه معبودان چه دوئ ئې عبادت کوی ماسوی دَالله نه

الْبَاطِلُ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ﴿٣٠﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ الْفُلْكَ تَجْرِيْ

باطل دی، اوبيشکه الله هم هغه ډير برتر او ډير لوئې دې آياته نه ګوري چه بيړئ چليږی

فِي الْبَحْرِ بِنِعْمَتِ اللّٰهِ لِيُرِيَكُمْ مِّنْ اٰيٰتِهٖ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

په درياب کښې په فضل دَالله سره چه اوښائی الله ﷻ تاسوته دَدلائلو دَوحدانيت خپل نه، بيشکه په دی کښې خامخادلائل دی

لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ﴿٣١﴾ وَاِذَا غَشِيَهُمْ مَّوْجٌ كَالظُّلَلِ دَعَوُا اللّٰهَ

لپاره دَهرصبرکونکی شکرکونکی.اوکله چه پټ کړی دوئ چپې په شان دَوريځو،سوال کوی دوئې الله ته

مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ڬ فَلَمَّا نَجّٰىهُمْ اِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُمْ

حال دا وي چې خالص کونکی وي الله ته عبادت،نوچه کله ورته نجات ورکړی الله اوچې ته نوبعضِ دَدوئ نه

مُّقْتَصِدٌ ۭ وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُوْرٍ ﴿٣٢﴾

په سمه لار تلونکی وی اونکوی انکاردَآياتونو زمونږمګرهرټګی کونکې ناشکره.

﴿اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ﴾ داشپږم عقلي دليل دې په توحيد،چې دَدې ټولوکائناتونظام تصرف،دَالله ﷻ په اختيارکښې دې،نورسپوږمۍ ستاسوپه خدمت کښې هغه لګولي دی،نودَهغه نه ماسِوئ بل معبودنشته دې،﴿كُلٌّ يَّجْرِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى﴾دَمقرروخت نه

مراد یا وخت دَفنا دَعالم دې چې ترهغه وخت پورې د نور سپوږمۍ نظام روان وی بیا به ختم شی، او یا ورنه د نور او سپوږمۍ دمدار متعین منزل مراد دې چې هلته پورې اورسی نو ددوئ سفر پوره شی یا ترینه دَدوئ یومیه منزل مراد دې چې په هغې سره ورځ او شپه راځی، او یا ترینه دَ نور سالانه منزل او دَسپوږمۍ ماهانه منزل مراد دې، چې په دې سره کالونه او میاشتې بدلیږی، دیومیه منزل ذکر حدیث کښ هم راغلې دې چې حضورﷺ ابوذرؓ ته اوفرمائیل آیا تاته پته چې دانُوَر چرته غروب کیږي. ابوذرؓ عرض اوکړو. الله ورسوله اعلم، حضورﷺ اوفرمائیل دَده آخري منزل عرشِ الهي دې، دَسجدې کولونه ورستو بیا دَطلوع اجازت طلب کوی، یو وخت به راشي چې اجازت به میلاؤ نشی او ورته به اووئیل شي ارجعي مِن حيث جئتِ چې دَ کوم ځائ نه راغلې یې هلته واپس شه. نو نُوربه دَمغرب نه طلوع شي، او دا به علامه وي دَقربِ قیامت (بخاري، مسلم).

﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ﴾ دا اشره ده دَدلائلو مذکورو. ﴿ذَٰلِكَ﴾ اشاره ده بیان دَدلائلوته، یعنی دا دلائل دَدې لپاره ذکرشول چې تاسو یقین اوکړئ چې صرف الله ﷻ هم هغه معبود برحق دې، نه هغه سره څوک صفات کښ شریک نشته او نه هغه سره څوک ذات کښ شریک شته او دَالله ﷻ نه ماسِویٰ مشرکان چې دَځومره معبودانو عبادت کوی هغه باطل دی حق ندی.

﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱلْفُلْكَ تَجْرِى﴾ دا اووم (۷) دلیل عقلي دې په توحید، چې په دریابونو کښ لوئ لوئ جهازونه، بیړئ صحیح سلامت دَالله ﷻ په قدرتِ کامله سره ګرځي راګرځي، دی کښ دَهرصابر شاکر لپاره دَالله ﷻ دَوحدانیت ښکاره نخې دی. ﴿بِنِعْمَتِ ٱللَّهِ﴾ با دپاره سبب ده او مراد دَنعمت نه فضل او احسان دَالله ﷻ دې، چې اسباب دَچلیدوئ ورله پیدا کړیدي، لکه چې نن صبا په پترولو، ډیزلو چلیږي، او یا باء دَپاره مصاحبت او ملابست ده او مراد دَنعمت نه اسباب دژوند لکه خوراک وغیره دی. ﴿لِّيُرِيَكُم مِّنْ ءَايَٰتِهِۦٓ﴾ من تبعیضیه دې، یعني بعضِ دلائل دَالوهیت درته اوښائي، ﴿صَبَّارٍ شَكُورٍ﴾ مراد ورنه مؤمن دې دریابې سفر چونکه خطرې او سلامتې بین بین کښ وی دَ مشکل او خطرې حالت کښ صبر او خطرې نه بچ وتلو صورت کښ دَ الله تعالی شکر دَ بنده مؤمن شعاروي نو ځکه المؤمن به ځائ صبار شکور ذکر شو.

﴿وَإِذَا غَشِيَهُم مَّوْجٌ ﴾دازجردي مشركانوته،چې كله دوئ دَدرياب په موجونوكښې راګيرشي اودَخپلومعبودانودَمددنه نااُميده شي نوبياالله ﷻ ته آوازونه شروع كړي﴿مَّوْجٌ ﴾ اسم جنس دې،تنوين دپاره دَ تكثيراوتعظيم دې ﴿كَالظُّلَلِ﴾جمع دَ "ظلة"ده اومراد ترينه غټې سورې دې چې طول وعرضَ كښې خوروى لكه دَ وريځې سورې يا دغرونوسورې شو ،اوقتاده رحمه الله ئې تفسير په وريځوسره كړې دې ،يعنى دوريځو سورى يا ټكرو په شان غټې غټې چې پرې راواوړى نوبيا ورته مونږ يادشو .﴿فَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ ﴾دَقصدنه مشتق دې،استقامة الطريق ته وائى،يعنى په سمې لارې تلونكى وي،مرادورنه توحيددې،يعنى چې كله ورته الله ﷻ نجات وركړي نوبعضِ په توحيدباندې مقيم پاتې شي،ليكن بعضِ بياهم خپله زړه سركشي اوشرك شروع كړي،يا﴿مُقْتَصِد﴾دَاقتصادنه دې،توسط اواعتدال ته وائى،يعنى ډيركم كسان داسې وي چې دَاعتدال اوتوسط په لاره قائم پاتې كيږي،ابن عباس رضي الله عنه دَ﴿مُقْتَصِد﴾تفسيرپه"موف عهده"سره كوى،يعنى دَدرياب په طوفاني چپوكښې ئې چې الله ﷻ سره كوم عهدكړې وي هغه پوره كونكې وي،لكه حضرت عكرمه رضي الله عنه دَفتح مكې په وخت كښې اوتختيدلودرياب كښې بيړئ كښې سورشونوسخت طوفان راغې،خلقوخپلومعبودانوته اوازونه شروع كړل بيړئ والؤاووئيل صرف دَالله ﷻ نه اوغواړئ چې نجات دركړي نورمعبودان باطله هيڅ نشى كولې،عكرمه اووئيل چې زمونږمعبودان په درياب كښې فائده نشى راكولې نوپه اوچه كښې هم نشى راكولې،بيائى دَالله ﷻ سره عهداوكړوچې ياالله كچرته تاماته نجات راكړونوځه به دَحضورپاك ﷺ په لاس ايمان راوړم،نوبياراغې اسلام ئې راوړلو(روح المعاني)﴿خَتَّار ﴾ دَختر"نه دې،غدار،عهدخلاف كونكې،مقابل دې دَ﴿صَبَّار﴾،او﴿كَفُور﴾مقابل دې دَ﴿شَكُور﴾.

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمْ وَٱخْشَوْاْ يَوْمًا لَّا يَجْزِى وَالِدٌ عَن وَلَدِهِۦ ر |
| اې خلقو!اوويريږئ دَخپل رب نه اوويريږئ دَداسې ورځې دَعذاب نه چه نه به پكار راځي پلاردَخوي خپل . |

| |
|---|
| وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَّالِدِهٖ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ |
| اونه څوې هغه پكار راتلونكې دې دخپل پلارد څه،بېشكه وعده د الله حقه ده نودهوكه دې نكړي تاسو |
| الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ٭ وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ ﴿۳۳﴾ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ |
| ژوندد دنيا،اودهوكه دې نكړي تاسويه باره د الله كښې دهوكه باز،بېشكه الله سره دې علم «د راتلو د» قيامت، |
| وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْاَرْحَامِ ؕ وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا ؕ |
| اونازلوي باران،او علم دې ورته د هغې چه په رحمونو «د ميندو» كښې دي اونه پوهيږي هيڅ څوك چه څه كاربه كوي دې صبا، |
| وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌ بِاَيِّ اَرْضٍ تَمُوْتُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ خَبِيْرٌ ﴿۳۴﴾ |
| او نشته پته هيڅ چاته چې په كومه زمكه به دې مرى بېشكه الله «پدې ټولوخبرو» ښه عالم دې ښه خبردې |

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ﴾ داتخويف اخروي دې،چې اې خلقود خپل رب نه د هغه ورځې يعنى قيامت باره كښې اويريږئ چې په هغه ورځ به څوك هم چاته څه فائده نشى وركولې حتى كه چې پلاربه څوي ته اوځوې به پلارته څه فائده نشى وركولې،داوعده د الله ﷻ حقه ده،نود دنيا اود شيطان په دهوكه كښې مه راځئ،دغې ورځې لپاره تيارى اوكړئ.﴿لَّا يَجْزِيْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِهٖ﴾ داهغه صورت كښې چې يومؤمن اوبل كافروي،كه دواړه مؤمنان وي نويوبل ته به نفع په صورت د شفاعت كښې وركولې شي «معارف القرآن»

﴿فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا﴾ دنيا دهوكه داده چې د دې په لذاتو كښې سړې مشغول شي نيك اعمال ورنه پاتې شي، ﴿الْغَرُوْرُ﴾ يعنى شيطان اود شيطان دهوكه داده چې سړى ته ګناهونه مزيّن كړي،د توبې او مغفرت اميدورته وركړي بعضِ واين﴿الْغَرُوْرُ﴾ هرهغه شئ دې چې انسان دهوكه كوى كه مال وي،جاه وي،شهوت وي ياشيطان .

﴿إِنَّ ٱللَّهَ عِندَهُۥ عِلْمُ ٱلسَّاعَةِ﴾دااتم دليلِ عقلي دې په توحيد ،دېكښې مقصودنفي دَشرك فى العلم ده.دى آيتِ شريفه كښې چې دكوم پنځه امورو بيان شويدې دېته مفاتيح الغيب وئيلى كيږي يعنى دغيب خزاني،چې دَالله ﷻ نه ماسوىٰ بل هيڅ چاته ئي علم نشته دې،نه نبي ته نه مقربې فرشتې ته،په حديث شريف كښې دى"مفاتح الغيبِ خمسٌ لايعلمها الاّالله(بخاري)"يعنى دغيب خزانې پنځه دى الله ﷻ نه ماسوىٰ ئي بل چاته علم نشته دې.بيا حضور ﷺ دا پنځه امور او شمارل

كه څوك اشكال اوكړي چې تمام غيوب خو صرف پدې پنځو امورو كښې منحصرندى نو صرف ديته مفاتح الغيب ولې اووئيل شول؟جواب(۱)دادې چې مغيبات پدې پنځو كښې منحصرندى خو تخصيص دَدې پنځو ځكه اوشو چې حضور ﷺ نه چادَدې پنځو باره كښې سوال كړې وو نو شانِ نزول كښې تخصيص پوجه ئي تخصيص اوشو،يو كس حضور ﷺ خواته راغې سوال ئي اوكړو چې"يامحمّدمتىٰ قيام الساعة"يعنى قيامت به كله قائميږي او زمونږ زمكې شاړې شويدى كله به زرغونيږي(يعنى باران به كله كيږي چې زمكې شنې شي)او ځما ښځه حامله ده څوك به ورنه پيداكيږي او صبا به څه څه كوم او ځه به كوم ځائ كښې مركيږم،نو داآيت نازل شو(روح المعاني)حضرت شبير احمد عثمانى رحمه الله تعالى دلته په علم غيب باندې ډير عمده بحث كړيدې ،فرمائي چې مغيبات په دوه قسمه دى(۱) تشريعيه(۲) تكوينيه،تشريعه نه مراداحكام شريعت دى او تكوينيه نه مراد حوادث او واقعات دَ زمانې دى.مغيبات تكوينيه بيا په دوه قسمه دى،(۱)مكانيه(۲)زمانيه اوزمانيه بيا په درې قسمه دى(۱) زمانه ماضى(۲)حال(۳)استقبال نو دا ټول پنځه قسمه شول(۱) مغيبات تشريعيه(۲)مغيبات تكوينيه مكانيه(۳)مغيبات تكوينيه زمانه ماضى(۴)تكوينيه زمانه حال(۵)تكوينيه زمانه استقبال ديكښې دَ اول علم غيب الله تعالى خپلو پيغمبرانو له وركړې دې،لكه سورت الجن كښې دي"عالم الغيب فلايظهر على غيبه احدا الامن ارتضى من رسول"او دينه علاوه څلورقسمونو علم كلي صرف دَ الله تعالى خاصه ده،البته جزوي علم خپلو بندګانو كښې چاته اوغواړى نو هغه ته عطاءكړى،او آيت كښې مذكور پنځه مثالونو كښې څلوروانواعو طرف ته اشاره ده.﴿وَيُنَزِّلُ ٱلْغَيْثَ﴾كښې ماضى استمرارى مغيباتو ته اشاره ده،﴿وَيَعْلَمُ مَا فِى ٱلْأَرْحَامِ﴾ كښې حاليه زمانيه

ؤمغيباتوته،اوپه ﴿وَمَا تَدْرِى نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ﴾کښې استقبالی مغيباتوته اشاره ده او ﴿بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ﴾کښې مکانی مغيباتوته اشاره ده. دحضرت عثمانی رحمه الله دمذکوره تشريح نه دَدې اعتراضاتوجوابونه اوشول چې حضور ﷺ بعضومواقعوکښې پشنګوئ کړېده بياهغه صحيح ثابته شويده،لکه جنګ بدرنه يوه ورځ قبل حضور ﷺ خبرورکړې وؤچې دمشرکانوفلانې فلانې مشربه صبا قتل کيږي اولکيرې ئې راخکلي اودهغوئ قتل ځايونه ئې هم متعين کړل،ابن مسعود رضي الله عنه قسم سره وائی چې دابالکل صحيح ثابته شوه.دغه شان دحضرت حسين رضي الله عنه دپيدا کيدلو اطلاع حضور ﷺ اوّل نه کړې وه.نوجواب اوشوچې دمغيباتو علم کلي الله تعالیٰ چاته ندې ورکړې البته بعضوجزئياتوعلم بطورمعجزه حضور ﷺ ته ورکړې شويدې.

اوکه څوك په﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ﴾باندې اعتراض اوکړي چې نن صباخوداکترانوته داول نه علم حاصل وي چې دانردې که ښځه،نوتهانوي رحمه الله جواب کړيدې چې مرادعلم بغيردآلاتونه دې چې دالله تعالیٰ علم ورباندې بغيردآلاتونه وي،دغه شان علم کلی او تفصيلي ورنه مراددې چې دابچې نيك بخت دې که بدبخت،ناقص البدن دې که کامل،ښکلي دې که بدصورت،عمرئې څومره دې،رزق ئې څومره دې وغيره چې داعلم صرف الله تعالیٰ ته دې،دغه شان دموسمياتوماهرين دباران خبرورکوی ليکن دآلاتواوعلاماتوپه ذريعه ورکوی، اوامکاني خبرورکوی قطعي خبرنه ورکوی زمونږمشاهده ده چې څنې وخت کښې دهغوئ خبرصحيح ثابت نشی،نودې خبرته علم غيب نشی وئيلې ،والله اعلم.

تمت سورة اللقمان.

| ركوعاتها (۳) | سورة السّجدة مكية | آياتها (۳۰) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دي شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۳۲) وحسب النزول (۷۵)**

حسب التسلسل(۳۲)دي،حسب النزول(۷۵)دي،نزلت بعدالمؤمنون وقبل الطّور.

**ربط اسمى**: ماقبل سورت كښې دَ حضرت لقمان خپل ځوي ته نصيحت ذكر وؤ چه"يا بنيّ لاتشرك بالله"او دي سورت كښې دَدي بيان دي چې ايمان والا چې كله دَالله تعالى آياتونه واوري نو اطاعت نه ورته په سجده اوغورځيګي.

**ربط معنوى**:ماقبل سورتونوكښې بيان دَتوحيدوؤ،نفي دَشرك فى البركة وه،دي سورت كښې به طورِترقي نفي دَشرك فى الشفاعة ده"چه"مالكم مِن دونه من وّلي ولاشفيع.

**خلاصه**: اولني دوه آياتونوكښې تمهيدمع ترغيبْ دي،چې داقرآن دَربّ العالمين نازل كړي شوي كتاب دي،دَدي دعوه اومنئ چې نفي دَشرك ده،آيت(۳)شكوه اوجوابِ شكوه ده آيت(۴)اول دليل عقلي دي په نفي دَشرك فى الشفاعة باندي، ﴿مَا لَكُم مِّن دُونِهِۦ﴾دَسورة مقصودي دعوه ده چې دَالله ﷻ نه ماسِوىٰ بل څوك شفيع قهري نشته،آيت(۱۰)شكوه اوجواب شكوه ده،آيت(۱۱)زجردي مشركانوته اوتخويف اخروي دي،آيت(۱۲)مؤمنانوته بشارت دي،آيت(۲۳)نه دليل نقلي دي په دعوي دسورة آيت(۲۷)دويم دليل عقلي دي په دعوي دَسورة،آخركښې شكوه اوجواب شكوه ده (تمت).

فضائل(۱)حضورﷺ به دشپي ترهغه وخته پوري نه اوده كيدلوترڅوبه ئي چې داسورة اوسورة الملك نه وؤلوستلي(ترمذي وغيره).(۲)رواياتو كښې راځي چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم به دَ جمعې سحر مونځ اولني ركعت كښې اكثر داسورت تلاوت كولو.

| |
|---|
| الٓمٓ ۞ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۞ اَمْ يَقُوْلُوْنَ |
| الٓم،نازليدل دَدي كتاب چه نشته شك پدي كښې دَطرفه دَرب العالمين نه دي،آياوائي مشركان |
| افْتَرٰىهُ ۚ بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اَتٰىهُمْ |
| چه دې پيغمبردَخان نه جوړكړيدې قرآن،بلكه داحق دې دَطرفه دَرب ستاچه اويره وې داسې قوم چه ندې راغلې دوئ ته |
| مِّنْ نَّذِيْرٍ مِّنْ قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُوْنَ ۞ |
| هيڅ يرونكې(پيغمبر)ستانه مخكښې كيديشي دوئ په سمه لاره روان شي |

﴿الٓمٓ ۞ تَنْزِيلُ الْكِتَٰبِ﴾داتمهيدمع ترغيب دې اتباع دَقرآن ته چې داقرآن بلاشكه

دَالله ﷻ دَطرفه نازل دې،دَدې اتباع اوكړئ﴿تَنْزِيلُ الْكِتَٰبِ﴾مبتدادې،﴿لَا رَيْبَ فِيهِ﴾جمله

معترضه ده براێ تاكيد،ياحال دې،او﴿مِن رَّبِّ الْعَٰلَمِينَ﴾خبردې

﴿أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَىٰهُ﴾داشكوه ده دكافرانونه چې وائي داقرآن دَالله ﷻ دَطرفه ندې نازل بلكه

دې پيغمبر دَخان نه جوړكړيدې،﴿بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ﴾جواب شكوه ده چې داقرآن دَخان نه

نه دې جوړشوې بلكه داحق كتاب دې دَالله ﷻ دَطرفه نازل دې.﴿لِتُنذِرَ قَوْمًا﴾دادَنزول دَقرآن

مقصدذكركيږي چې پدې سره خلق دَالله ﷻ دَعذاب نه اويره وي،﴿نَّذِيرٍ﴾ نه مراد نبي او

رسول دې،او "قوما"نه مراد (۱)ياهغه عرب قبائل دى چې هغوئ ته باكل نبي ندې راغلې،لكه

قريش شو،بلكه "عدنا نينو"تولو ته نبي او رسول ندې راغلې ،حضرت اسماعيل عليه السلام

اگر چه دَ دوئ جد امجد دې،اوهغه رسول وؤ،خوهغه رسالت عمومې او دائمې نه وؤ،هغه

نبوت صرف موجودينو او بنوجرهم پورې خاص وؤ،كماقال تعالى: وكان يأمر اهله بالصلوة او هغه

وخت نه دقريش بحيثيت قوم وجود وؤ او نه دَ عدنا بينو اويا﴿مَّآ أَتَىٰهُم﴾مطلب دادې چه:ما

اتٰهم بعدالضلال،يعنى دوئ چه ملت ابراهيمى اواسماعيلى نه گمراه شونو هغې نه بعد دوئ ته

ستانه مخکښې بل نبی ندې راغلې،(۲) یاترینه مراد مطلقا عرب دي،او ﴿قَبْلِكَ﴾نه مراد زمانه فترت ده،چې حضرت عیسی علیه السلام او محمد صلی الله علیه وسلم مابین زمانه کښې دوئ ته څوک نذیرندې راغلې،

دلته داخبره قابل ذکر ده چې بعض ملحدین او مستشرقین دې قسم آیتونه نه دَ دنبی صلی الله علیه وسلم رسالت تخصیص باندې استدلال کوی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم دعربونبی وۇ،ټول عالم دَپاره نه دې راليږلې شوې حالانکه داسراسر جهالت دې دې آیت کښې صرف د یو باعث ذکر دې،چې چونکه دوئ ته څوک نذیر نوۇ راغلې نو الله تعالی ورته.ته اوليږلی او قرآن ئې درکړو ،دينه حصر بالکل نه ثابتيږي.ځکه چې يو شې لپاره متعدد بواعث کيدې شي،مزيدداچې دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَرسالت عموم نوروډيروآياتونونه واضح طورباندې ثابت شوي دي.

**فائده**:دې قسم آیاتونو دَ "وان من امة الا خلافيهانذير"سره هيڅ تعارض نشته ،ځکه چې هلته نذيرنه مراد عام دې،نبی وي اوکه غيرنبی،اودغه شان ئې "ولقد بعثنا في كل امة رسولا(النحل)سره تعارض نشته ځکه چې (۱) دلته زمانه فترت کښې نفی مراد ده،(۲) ياقوم په بنسبت سره امت ته خاص دې او دلته دَ قوم نه نفی ده چې خصوصيت سره دې قوم ته نذير ندې راغلې،نودې سره دَامت نه نفی نه لازميږي.لهذا هيڅ تعارض نشته دې.

| |
|---|
| اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَیْنَهُمَا فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ |
| الله ﷻ هغه ذات دې چې پيداکړی ئې دي آسمانونه اوزمکه اوڅه چې په مينځ دَدې دواړوکښې دي په مقداردَشپږو ورځوکښې |
| ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ مَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّلِیٍّ وَّلَا شَفِیْعٍ اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ④ |
| بيائې استوا اوکړه په عرش.نشته دې تاسولره ماسوئ دَالله ﷻ نه هيڅ کارساز اونه شفاعت کونکې،آياتاسونصيحت نه اخلئ |
| یُدَبِّرُ الْاَمْرَ مِنَ السَّمَآءِ اِلَی الْاَرْضِ ثُمَّ یَعْرُجُ اِلَیْهِ فِیْ یَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗۤ |
| تدبيرکوی الله ﷻ دَهرکاردَاسمان نه زمکې ته بياخيژي الله ﷻ ته په داسې ورځ کښې چې دې مقداردَهغې |
| اَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ ⑤ ذٰلِكَ عٰلِمُ الْغَیْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِیْزُ الرَّحِیْمُ ⑥ |
| زرکاله دهغې مودې نه چه تاسوئې شمارئ.هم دغه الله ﷻ عالم دې په هرپټ اوښکاره غالب دې رحم کونکې دې |

| |
|---|
| الَّذِيٓ اَحۡسَنَ كُلَّ شَيۡءٍ خَلَقَهٗ وَبَدَاَ خَلۡقَ الۡاِنۡسَانِ مِنۡ طِيۡنٍ ۚ |
| هغه الله جَلَّ جَلَالُهٗ چه ښائسته ئي پیداکړیدي هرڅیزچه پیداکړي ئي دي اوشروع ئي کړیده دپیداکولودانسان دخټې نه |
| ثُمَّ جَعَلَ نَسۡلَهٗ مِنۡ سُلٰلَةٍ مِّنۡ مَّآءٍ مَّهِيۡنٍ ۚ ثُمَّ سَوّٰىهُ وَنَفَخَ فِيۡهِ |
| بیائي ګرځولي دي نسل دانسان دخلاصې داوبوحقیرونه،نطفې نه،بیائي برابرکړي دي اوپوکړی ئی دی ده کښې |
| مِنۡ رُّوۡحِهٖ وَجَعَلَ لَـكُمُ السَّمۡعَ وَالۡاَبۡصَارَ وَالۡاَفۡـِٕدَةَ ؕ قَلِيۡلًا مَّا تَشۡكُرُوۡنَ ۝۹ |
| دروح خپل نه اودرکړی ئی دی تاسوته غوږونه اوسترګې اوزړونه.ډیرکم تاسوشکرکوئ |

﴿اَللّٰهُ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ ﴾دااول دلیل عقلي دي په توحید ،چې الله جَلَّ جَلَالُهٗ تن تنهاداسمانونو اودزمکي اودټولومخلوقاتوخالق دي،دټول نظام تدبیریعني اختیاردهغه په قبضه کښ دي،

﴿ ثُمَّ اسۡتَوٰی عَلَی الۡعَرۡشِ ﴾یعنی لکه څرنګه چې دزمکی اواسمانونوخالق تن تنها الله دي،نو دهٔ شان ئ ددې کائناتونظام لپاره ئ استوا على العرش کړیده کائناتوکښ هرڅه پخپله خوښه کوی باقی ددې تفسیرپه سورة الاعراف آیت «۵۴»جلد دویم صفحه«۵۴۲»وغیره کښ تیرشویدي هلته ئې اوګورئ.﴿مَا لَکُمۡ مِّنۡ دُوۡنِهٖ﴾دادسورة مقصودي دعوه ده،چې دالله جَلَّ جَلَالُهٗ نه ماسویٰ ستاسولپاره بل څوک کارسازاوحاجت روانشته دې،اونه دهغه په نیزڅوک شفیع قهري شته دي،﴿یُدَبِّرُ الۡاَمۡرَ مِنَ السَّمَآءِ ﴾یعني دټول عالم نظام تدبیراودکائناتونظم ونسق دهغه په اختیارکښ دي،داسمان نه زمکي ته خپل احکام نازلوي ،قیامت کښ به دهرامررجوع الله جَلَّ جَلَالُهٗ ته کیږي،امورتشریعه بی دفیصلي لپاره دالله جَلَّ جَلَالُهٗ حضورته پیش کیږي تدبیر امر وئیلي کیږې چې یوکار عاقبت مدنظر اوساتلي شي او هغه په خه محکمې طریقې اومهارت سره وجودته رواستلي شي،دلته ترینه مراد د ټول کائنات نظم ونسق اوهغې چلولو دپاره احکامات دی﴿مِنَ السَّمَآءِ اِلَی الۡاَرۡضِ ﴾من ابتداءغایت او الیٰ انتهاءغایت دپاره دي ،یعنی آسمان نه واخله ترځمکې پورې دټول کائنات نظم ونسق هغه په لاس کښ دې او ډیر محکم انداز سره یې چلوی، ﴿ثُمَّ یَعۡرُجُ اِلَیۡهِ فِیۡ یَوۡمٍ ﴾ددې په تفسیر کښ د مفسرینو ډیراقوال

دی(۱)ځنې مفسرين وائي: يعرج اليه معنى يصير اليه ،او يرجع اليه ده،اوعروج فعل دلته تشريفا رواړلې شويدې او ضمير په يعرج کښې "الامر"ته راجع دې او "اليه" کښې الله تعالى ته راجع دې،او "فى يوم"نه مراد قيامت ورځ ده.يعنى بيادَ قيامت په روځ به دَ کائناتو ټول نظام فناشي،اوځومره ظاهر ي اومجازي اسباب په کائنات کښې دَ نظام چلولودى هغه به ټول ختم شي او هر څه به الله تعالى ته او سپارلې شي او هغه ته به پيش شي کمافي قوله تعالى:الا الي الله تصير الامور (الشورى) والى الله ترجع الامور ( التحريروالتنوير) (۲)بعضو مفسرينو دَ يعرج اليه معنى "يثبت في علمه" کړيده،يعنى الله تعالى يوه فيصله اوکړي اودَ هغې تنفيذ او وقوع مدت انسانو شمارمطابق زرکاله بعد وي،مګر الله تعالى په نيز دابالکل حاضروي.اوداسې وي لکه يوه ورځ،دَهغه شان مضمون سورت الحج آيت (۴۷) کښې هم بيان شويدې ويستعجلونك بالعذاب ولن يخلف الله وعده،وان يوما عند ربك كالف سنة مماتعدون يعنى چې کله انبياءکافران دَ الله تعالى عذاب نه اويره وي،نودوئ ورپورې مسخرې کوي چې دومره مده تيره شوه.چرته دې دَ الله تعالى عذاب،نوالله تعالى ورته افرمائيل،چې هغه مدت چې مامقررکړيدې.تاسو شمارمطابق به ډير لرې وي،زرکاله به وي،پنځوس زره کاله به وي،اودابه تاسو اعتبار سره ډيروي،مګر الله تعالى ته دا داسې دي لکه يوې ورځې مدت.خلاصه دَ مطلب دَ آيت داده چې انسانانو علم مطابق ډير ورستو راتلونکې اموړالله تعالى ته بالفعل حاضراو معلوم وي(ابوالسعود)

(۳)اوځنې مفسرينو عروج خپله معنى کښې اخستې دي،او آيت مطلب دابيانوي چې الله تعالى يو حکم صادر کړي نوفرشتوته دَ تنفيذ دَ پاره اوسپاري،هغه فرشته ځمکې ته کوزى شي.اودَ حکم تنفيذ اوکړي اوبيا واپس آسمان ته رااوخيژي او الله تعالى ته،باجود دَ علم نه،دهغې خبرورکړي،داسفر چې هغه فرشته په يوه ورځ کښې کوي،کچرته انسانانو رفتار اعتبار اوکړې شي نو زر ،پنځوس زره کاله پرى لګى.

**فائده**:دلته په آيت کښې دَ ورځې مقدار زر کاله بيان شويدې،اوپه سورت المعارج کښې پنځوس زره کاله ،نودَې تناقض جوابونه هلته ذکر شويدې،هلته ئې اوګورئ

﴿ذَٰلِكَ عَٰلِمُ ٱلۡغَيۡبِ﴾يعني دَداسي اعلى اوعظيم الشان انتظام اوتدبيربرابره ول دَهغه ذات کاردي چې په هريوپټ اوښکاره باندې عليم خبيردې خبر اول دې،"العزيز" خبرثانى دې غالب دې په هرڅه،هره فيصله اوحکم يې رحم باندې مبني دې،﴿ٱلرَّحِيمُ﴾خبرثالث دې،

﴿ٱلَّذِيٓ أَحۡسَنَ كُلَّ شَيۡءٍ﴾خبررابع دې دَ"ذلک" احسن‌يا خپله حقيقى معنى کښ استعمال دې،يعنى هر شي له يې حسم ورکړې دې اوخائسته يې پيدا کړيدې،اګرچه خائست خائست کښ فرق شته،خونفس حسن کښ ټول مشترک دى،هر شي کښ څه نه څه فائده او مصلحت شته،يا"احسن"په معنى دَ "اتقن"کښ دې،اتقان مکمل مهارت اوکمال سره يوکار کولوته وائي،يعنى ډير محکم اومضبوط انداز سره يې تخليق ئ کړيدې،يا "احسن"په معنى دَ "الهم" دې،يعنى اشياوؤ تخليق هم اوکړو او بيا ورته دَ ضرورياتو الهام هم اوکړو،کما في قوله تعالى:اعطى کل شيء وخلقه ثم هدى(طه)

﴿وَبَدَأَ خَلۡقَ ٱلۡإِنسَٰنِ﴾ جنس انسان مراد دې چې ابتدا ئى دآدم عليه السلام نه شويده

﴿ثُمَّ جَعَلَ نَسۡلَهُۥ مِن سُلَٰلَةٍ﴾يعني دَانسان(آدم)نسل ئي دَمني دَقطرې نه خورکړيدې چې داحقيري اوبه دي،او"سلالة"دَ سلَّ يَسِلُّ سلاًنه مشتق دې، "سل"وتلو او جداکيدلو ته وائي،او سُلالة هغى خالص ذراتوته وائي چې په چهاڼ سره اوځي او جداشي،اودَې مناسبه معنى"خلاصه"ده،او دَ انسان مني هم چونکه دَ مختلفو غذاګانو خلاصه او نچوړدې،دې وجهې ديته هم سلالةويلې کيږي. ﴿ثُمَّ سَوَّىٰهُ﴾يعني دَانسان اعضاء ئي دَمورپه رَحم کښ برابرکړل،﴿وَنَفَخَ فِيهِ مِن رُّوحِهِۦ﴾ بيا يې پکښ روح واچولو اضافت دَروح،الله ﷻ ته ياتشريفي دې،لکه بيت الله،ياتمليکي دې،يعني هغه روح ئي پکښ واچولو چې دَالله ﷻ په ملك کښ دې،﴿وَجَعَلَ لَكُمُ ٱلسَّمۡعَ﴾يعني ذآوريدلو اوليدلو اوپوهيدلو قوتونه ئي انسان ته ورکړل دَدې دَ پاره چې تاسودَالله ﷻ شکر اداکړئ،اودَغه نعمتونوشکرداوؤچې په سترګوباندې مو دَالله ﷻ تکويني آيتونه په غورسره ليدلي وې،په غوږمودَالله ﷻ تنزيلي آيتونه آوريدلې

وي اوپه زړونوموفکراوغورکړي وي،اوتوحيدومنلي وؤ،ليکن تاسو ډيرکم شکرکونکي يئ.

| |
|---|
| وَقَالُوْٓا ءَاِذَا ضَلَلْنَا فِي الْاَرْضِ ءَاِنَّا لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۬ؕ بَلْ هُمْ |
| وائي کافران چه آياکله ورک شو مونږپه زمکه کښ،آيا يقينا به مونږ راپورته کولي کيږو په نوي پيداکولو سره .بلکه دوئ |
| بِلِقَآئِ رَبِّهِمْ كٰفِرُوْنَ ۝ قُلْ يَتَوَفّٰىكُمْ مَّلَكُ الْمَوْتِ الَّذِيْ وُكِّلَ بِكُمْ ثُمَّ |
| په ملاقات دَرب خپل انکارکونکي دی، ته اووايه،روح به اخلي ستاسو فرشته دَمرګ هغه چه مقرره په تاسوبيابه |
| اِلٰى رَبِّكُمْ تُرْجَعُوْنَ ۝ وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الْمُجْرِمُوْنَ نَاكِسُوْا رُءُوْسِهِمْ |
| تاسوخپل رب ته واپس کيږئ،اوکچرته اووينې ته هغه حالت چې کله مجرمانوخکته کړی وی سرونه خپل |
| عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ رَبَّنَآ اَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا |
| دَخپل رب خواته،وائي به ای ربه زمونږ اوليدل مونږاواورېدل مونږنوواپس کړه مونږدنياته چه عمل اوکړومونږنيک |
| اِنَّا مُوْقِنُوْنَ ۝ وَلَوْ شِئْنَا لَاٰتَيْنَا كُلَّ نَفْسٍ هُدٰىهَا |
| بيشکه مونږيقين کونکي يو،اوکه غوښتلي وې مونږ (په زوره مسلمانول) نوورکړی به مووه هرکس ته سمه لاردَ هغه |
| وَلٰكِنْ حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّيْ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ۝ فَذُوْقُوْا |
| ليکن ثابته شويده فيصله زمادَطرفه چه خامخابه ډکوم څه جهنم دَپيريانواوانسانانودواړونه،پس اوڅکئ عذاب |
| بِمَا نَسِيْتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ۚ اِنَّا نَسِيْنٰكُمْ وَذُوْقُوْا |
| په سبب دَدې چې هيرکړې وؤتاسوملاقات دَورځې ستاسوچې داده،بيشکه مونږهم تاسوهيرکړئ اوڅکئ |
| عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ |
| عذاب دَهميشه والي په سبب دَهغې عملونوچې تاسوکول |

﴿وَقَالُوْٓا أَءِذَا ضَلَلْنَا فِي الْاَرْضِ﴾داشکوه ده،دَمشرکانونه په انکاردَبعث بعدالموت باندې چې دوئ وائي چې ايامونږچې دَمرګ نه ورستوپه زمکه کښ غائب شودَبدن اجزاء مودَخاورو سره

خاورې شي نو آيا دوباره به بيا پيدا کيږو؟﴿أَءِنَّا لَفِى خَلۡقٍ جَدِيدٍۭ﴾أي لمبعوثون في خلق جديد همزه دَاستفهام لپاره دَتاکيد ده،دَاولنی همزه استفهام چې په إذا ضللناکښ ده ﴿بَلۡ هُم بِلِقَآءِ رَبِّهِمۡ﴾يعنی دوئ صرف تعجب نکوي بلکه انکار ئې هم کوی،یادوئ ترددا وتعجب څه دليل په بنياد ندي،ځکه چې په بعث بعدالموت باندې واضح دلائل قائم دي،بلکه صرف عناد او انکار کوي.

﴿قُلۡ يَتَوَفَّىٰكُم﴾داجواب شکوه ده،چې ضرورربه تاسودوباره پورته کيږئ،اودَالله تعالی مخې ته به موپيشی کيږی،اودامرګ په مينځ کښ دَهغې ملاقات صرف واسطه اوتهميددي،دَمرګ مطلب داندې چې تاسوبالکل معدوم اوفناشولئ،بيا به نه پورته کيږئ.

﴿مَّلَكُ ٱلۡمَوۡتِ ٱلَّذِى﴾علامه ابن کثير رحمه الله وائی چې ظاهر دَآيت نه داده چې ملك الموت يومعينه فرشته ده روح قبض کوي،په بعض آثاروکښ ورته عزرائيل وئيلې شويدي، قتاده رحمه الله وائې چې دَده نوراعوان هم دي چې دَانسان نه بدن نه روح رااوباسي چې حلقوم ته اورسي نوملك الموت ئې قبض کړي،دَدې وجه نه په سورة النحل وغيره کښ"الذين تتوفاهم الملائکة" ذکرشويدي چې پدې دلالت کوي چې روح قبض کونکې فرشتې ډيرې دي، مجاهد رحمه الله وائی چې ټوله زمکه ملك الموت ته راغونډه کړې شويده په شان دَلوخي،هغه چې دَچاروح قبض کول اوغواړي نوداسې په اسانئ سره قبض کړي لکه دَلوخي نه چې دانه راواخلي،يوروايت کښ دي چې حضور ﷺ دَيوصحابي خواکښ ملك الموت اوليدلونوورته ئې اوفرمائيل:ياملك الموتِ ارفق بصاحبي فانه مؤمن،يعني ځماصحابي سره نرمي اوکړه ځکه چې دې مؤمن دې،ملك الموت ورته اووئيل،تاسومطمئن شئ،څه دَهرمؤمن سره نرمي کوم،اواوئې وئيل چې څومره خلق دنياکښ ابادې،ټول څه په ورځ کښ پنځه ځلې ګورم،ټول څه پيژنم،اويامحمّد ﷺ دَهرڅه دَالله ﷻ په حکم سره کوم ورنه څه پخپل اختيارسره دَيو ماشې روح هم نشم قبض کولې،ترڅوچې دَالله ﷻ امرنه وي شوی(ابن کثير).

﴿وَلَوۡ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلۡمُجۡرِمُونَ﴾داتخويف اخروي دې،﴿رَبَّنَآ أَبۡصَرۡنَا﴾مخکښ ورنه"يقولون"مقدر دې،يعني کافرانوبه دَقيامت په ورځ دَشرم اودَذلت پوجه سرونه خکته کړي وی وائي به چې

اې الله اوس مونږ هرڅه پخپلو سترګو اوليدل،پخپلو غوږونو مونږ واوريدل مونږ دنياته واپس اوليږه مونږ به نيك عمل كوو،اوس مونږ په حساب كتاب باندې پوره پوره يقين راغې.

﴿وَلَوْ شِئْنَا لَاٰتَيْنَا﴾رد دې دَدوئ دَخواهش،حاصل دادې چې كچرته مونږدوئ دنياته واپس كړواواجباري ايمان ورباندې قبول كړونودازمونږدَمقصدخلاف ده،ځكه كه مونږغوښتلې جبري طوردَخلقومسلمانول نوټول خلق به مومسلمانان كړې وو،اوكه ابتلاء لپاره ئې دنياته ليږلونودوئ فطرت دادې چې دوئ به بيادَشرك نه منع نشي كقوله تعالیٰ:ولوردُّوا لعادُوالمانُهواعنه(انعام:۲۸)﴿هُدٰىهَا﴾.هدايت نه مراد دلته ايصال الى المطلوب دې ځكه چه اراءة الطريق درجې كښې هر انسان ته حاصل دې.﴿مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ﴾اجمعين دلته عموم انواع دپاره دې،عموم افراد دپاره ندې،يعنى مطلب دادې،دَانسانانو اوجناتو دواړونه به پكښې خامخا كسان وي.دامطلب ندې چه ټولو انسانانو اوجناتو نه به جهنم ډكووم.

﴿وَلٰكِنْ حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّيْ﴾بيان دَحكمت دې چې جبرى طورمونږچاته هدايت نه كوؤځكه مونږدافيصله كړيده چې جهنم به هم ډكوؤ.﴿فَذُوْقُوْا بِمَا نَسِيْتُمْ﴾يعني په وخت دَدخول دَجهنم كښې به ورته خزنه دَجهنم اووائي چې اوڅكئ عذاب دَجهنم په سبب دَدې چې دَدې ورځې دَراتلونه تاسوانكاركولوچې حشرنشرنشته دې،﴿اِنَّا نَسِيْنٰكُمْ﴾يعني مونږهم تاسوپه عذاب كښې داسې پريدولكه چې هيرشوى مويئ،دَنسيان په شان معامله درسره كوؤ،نسيان كنايه ده دَمحروم والې دَرحمت نه يعنى زمونږدَرحمت نه محرومه يئ اواوس هميشه لپاره عذاب ته داخل شئ په سبب دَخپلو عملونو.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّمَا | يُؤْمِنُ | بِاٰيٰتِنَا | الَّذِيْنَ | اِذَا | ذُكِّرُوْا | بِهَا | خَرُّوْا سُجَّدًا |
| بيشكه ايمان راوړى په آياتونوزمونږهغه كسان چې كله نصيحت ورته اوكړې شې پدى آياتونو،نوپريوځې په سجدې | | | | | | | |
| وَّسَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ۩ تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُوْنَ | | | | | | | |
| اوپاكى بيانوى سره دَحمددَرب خپل اودوئ تكبرنه كوي،لرې وى ډډې دَدوئ دَخوب دَځايونونه سوال كوى | | | | | | | |

رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا ۡ وَّمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿١٦﴾ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ

خپل رب ته يري سره طمع سره اودهغې مال نه چې مونږورته ورکړيدې خرچ کوي پس ندې معلوم هيڅ چاته هغه څه

اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٧﴾ اَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا

چې پټ ساتلې شويدې ورله چه يخوالې نی دسترګودې،بدله ده دهغه عملونوچه دوئ کول آياهغه څوك چه مؤمن وي (کيديشي)

كَمَنْ كَانَ فَاسِقًا ۭ لَا يَسْتَوٗنَ ﴿١٨﴾ اَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَلَهُمْ

په شان دهغه چاچه فاسق وي،ندی برابر.هغه کسان چه ايمان ئې راوړيدې اوعملونه ئې کړيدی نيك نودوئ لره

جَنّٰتُ الْمَاْوٰى ۡ نُزُلًاۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٩﴾ وَاَمَّا الَّذِيْنَ فَسَقُوْا

جنتونه داوسيدلودی،ميلمستياده په سبب دهغه عملونوچه دوئ کول،اوهغه کسان چه فاسقان دی

فَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ۭ كُلَّمَآ اَرَادُوْٓا اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَآ اُعِيْدُوْا فِيْهَا

نواستونګه دهغوئ اور (دجهنم) دي،هرکله چه اراده اوکړي دوئ چه اوځی دهغی اورنه نوبيابه واپس کړيشی په هغې کښې

وَقِيْلَ لَهُمْ ذُوْقُوْا عَذَابَ النَّارِ الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿٢٠﴾ وَلَنُذِيْقَنَّهُمْ

اوورته به اووئيل شی اوڅکئ عذاب داورهغه عذاب چه تاسودهغې تکذيب کولو،اوخامخااوبه څکوومونږدوئ ته

مِّنَ الْعَذَابِ الْاَدْنٰى دُوْنَ الْعَذَابِ الْاَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٢١﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ

نزدې عذاب نه،مخکښې دعذاب لوئ (دآخرت) نه، کيديشي دوئ رجوع اوکړی الله ﷻ ته اوڅوك دي لوئ ظالم دهغه چانه

ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ثُمَّ اَعْرَضَ عَنْهَا ۭ اِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِيْنَ مُنْتَقِمُوْنَ ﴿٢٢﴾

چه نصيحت ورته اوکړې شي په آياتونودرب دده بيااعراض اوکړی دې دهغې نه،بيشکه مونږدمجرمانونه بدله اخيستونکی يو.

﴿اِنَّمَا يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا الَّذِيْنَ﴾ دادکافرانومقابله کښې دمؤمنانو صفات بيانيږي،چې کله مؤمنانوته زمونږآياتونه اولوستلې شي نودوئ په زړونوکښې دالله ﷻ خوف پيداشي دډيرخشيت اوتواضع نه سجدې کوی،په ژبه دالله ﷻ تسبيح تحميدادا کوی دهرقسم شريك نه ئې منزه ګڼړي اوپه زړونوکښې ئې دالله ﷻ طاعت پروت دې تکبرنه کوي.

﴿تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ ٱلْمَضَاجِعِ﴾دیکښې هم دَمؤمنانو صفات بیانیږي چې دوئی تو له شپه خوب او غفلت کښې نوي پراته بلکه څه حصه عبادت هم کوي دالله تعالی رحمت امید او عذاب نه یره ساتي،اوکوم مال چې ورله الله تعالی ورکړې دې،هغې نه الله تعالی په لار کښې خرچ کوي.

تتجافى جنوبهم نه مراد دَتهجد مونځ دې،په ترمذي،نسائي،ابن ماجه وغیره کښې دي چې معاذبن جبل رضي الله عنه وائي چې څه دَحضور ﷺ سره په یو سفر کښې ووم،ماعرض اوکړوچې یارسول الله! ماته داسې عمل اوښایه چې جنّت ته مې داخل کړې،جهنم نه مې لرې کړي،حضور ﷺ اوفرمائیل تادَیولوئ امرباره کښې تپوس اوکړوخوچې الله تعالی یې چاته اسانه وي نوهغه ته اسان دې،دَالله تعالی عبادت کوه شرک مکوه،مونځونوپابندي کوه.زکوٰة اداکوه،رمضان روژې نیسه،حج کوه،بیایې اوفرمائیل:آیاتاته دَخیردروازې اونه ښایم؟روژه ډال دې،صدقه ګناه معاف کوي اومونځ کول دَنیمې شپې،بیائې داآیت﴿تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ ٱلْمَضَاجِعِ﴾تلاوت کړو،بعضِ وائي دینه مرادهغه خلق دي چې ماښام اوماسخوتن مونځونومینځ کښې نفلونه کوي،دینه علاوه نوراقوال هم دي(روح،قرطبي،إبن کثیر).

﴿فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ أُخْفِيَ﴾ دابشارت دې.یعنې لکه څرنګه چه دوئ دَشپوپه تیاروکښې دَخلقونه پټ بې ریاعبادت کوي دَدې بدله کښې ورته الله تعالی داسې نعمتونه تیارکړیدي چې دَهغې کیفیت هیڅ چاته ندې معلوم نوداجزامن جنس العمل ده،ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چې الله تعالی فرمائي: اعددتُ لعبادي الصّالحین مالاعینٌ رأت ولاأذنٌ سمعت ولاخطرعلی قلب بشر(بخاري)یعنې مادَخپلونیکوبندګانولپاره هغه نعمتونه تیارکړیدي چې نه سترګولیدلي دي نه غوږونوآوریدلي دي اونه دَچاپه زړه کښې دَهغې تصورراغلې دې.

﴿أَفَمَن كَانَ مُؤْمِنًا﴾دَدواړو فریقینو صفاتوبیان نه ورستو دَمراتبوبیان دې. یعنې مؤمن اوفاسق برابرنشي کیدلي،که دواړه یوشانته شي نونعوذبالله دَدې مطلب دادې چې دَالله تعالی په دربارکښې توره تیاره ده،دَدنیاوي بادشاهانوپه شان.

﴿أَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا﴾بشارت دې اوتفصیل دې دَمراتبودَفریقینوچې مؤمنانوته به الله تعالی دَنیک عملونوپه سبب جنت المأوىٰ ورکوي،میلمنوپه شان هرقسمه راحت به ورته میسّروي،﴿جَنَّٰتُ

﴿ٱلۡمَأۡوَىٰ﴾ يعني دَاستوګني جنتونه.ځکه چه استوګنی ځائی په حقيقت کښ جنت دې هلته انسان آرام اوراحت موندلې شي.دنياکښ که انسان هر څومره نعمتونو کښ وي خوداعارضی دی،آخر مرګ دې ﴿وَأَمَّا ٱلَّذِينَ فَسَقُواْ﴾ تخويف دې فاسقانوته،چې فاسقان کافران به ټول عمرجهنم کښ اوسيږي.﴿كُلَّمَآ أَرَادُوٓاْ﴾ يعنی کله چې دویٔ بهروتلوته نيزدي شي نوبيابه ويخ دَجهنم ته ورديکه کړی شي،روايت دې چې دَجهنم لمبې به دویٔ اووهي نوبره سرته به ئې رااورسوي،دروازوته به نيزدې شي نودویٔ به دَوتلواراده اوکړي نوبله لمبه به ئې اووهي بيخ ته به ئې اورسوي،هميشه به ورسره داسي کيږي(روح)اللّهم اجرنامن النّاربفضلك،

﴿وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنَ ٱلۡعَذَابِ ٱلۡأَدۡنَىٰ﴾ دا تخويف دنيوي دې،الادنىٰ دُنُوٌنه مشتق دې،نزدي ته ويلې کيږي،مراد ترينه دينوی عذاب دې، ﴿ٱلۡعَذَابِ ٱلۡأَكۡبَرِ﴾ نه مراددَقيامت عذاب دې،

**فائده:** دادنیٰ مقابل اقصیٰ اودَ اکبرمقابل اصغرراځي،دلته نه دَ ادنیٰ تقابل دې د اقصیٰ سره اونه دَ اکبرتقابل دې ادنیٰ سره ،بلکه العذاب الادنیٰ اوعذاب الاکبرذکردي،چونکه دلته مقصود کافرانو ته تخويف دنيوي اواخروی دواړه دی،نو دې تعبير سره يوطرف ته ضمنی طورباندې تقابل هم ثابت شو،او بل طرف ته تخويف په ابلغې طريقې سره حاصل شو،تقابل داسی راغې چې العذاب الادنیٰ نه مراد دنيا عذاب دې،اودامستلزم دې اصغرله،ځکه چې دنيا عذاب څومره هم سخت وی خو په مرګ سره ختم شي.اواکبرمتضمن دې،اقصیٰ معنې ته ځکه چې دابه آخرت کښ وي،اوتخويف په ابلغې طريقې سره داسې حاصل شوچې عذاب دنيوی ته الادنیٰ لفظ استعمال شو،نو پديکښ تنبيه ده په دې خبرې چه دنيا عذاب اګر چې آخرت په مقابله کښ ډير کم دې،خوديته اوګورئ څومره نزدې دې اوآخرت عذاب دپاره الاکبرلفظ استعمال شو،چې دا اګرچې لرې دې ليکن دَهغې شدت اندازه خواوکړئ چې څومره لویٔ عذاب دې.

﴿لَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُونَ﴾ يعني مونږورباندې دنيوي عذاب دَدې لپاره راولوچې کيديشي دویٔ الله ﷻ ته رجوع اوکړي دَخپلوګناهونونه توبه اوباسي دَعذاب قيامت نه بچ شي،﴿وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّن ذُكِّرَ﴾ دازجردې اوتخويف دې،هغه خلقوته چې قرآن آوري اودَهغه په احکاماتوعمل نه

کوي،اعراض ورنه کوي،دده نه لوئ ظالم بل څوک نشته الله ﷻ به ورنه دقیامت په ورځ ضرورانتقام اخلي.

| |
|---|
| وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَآئِهٖ وَجَعَلْنٰهُ |
| اويقيناً وركړې وو مونږ موسی ﷺ ته کتاب نو ته مه کيږه په شك کښې دميلاويدلو د دې کتاب نه اوګرځولې وو مونږ هغه |
| هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۲۳﴾ وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ |
| لاره ښودنکې بني اسرائيلوته،اوګرځولي وو مونږ ددوئ نه(بني اسرائيلو نه)اماما ن چه سمه لاره به ئې ښودله خلقوته |
| بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا ۫ؕ وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۲۴﴾ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ |
| په حکم د زمونږ کله ئې چه صبر اوکړو،اووو دوئ په آياتونو زمونږ يقين کونکي.بې شکه رب ستا هغه به فيصله کوی |
| بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۲۵﴾ |
| په مينځ ددوئ کښې په ورځ دقيامت په هغه څه کښې چه دوئ په هغې کښې اختلاف کولو |

﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ﴾دادليل نقلي دي په توحيد،اوتسلي ده حضور ﷺ ته،چې موسی عليه السلام د الله تعالی پيغمبروؤ،تورات ورته ميلاؤشوې وؤ،هغې کښې هم دغه مضمون وؤ چې الله تعالی نه ماسوابل څوک معبوداواله نشته،هغه ته پدې لار کښې تکليفونه ميلاؤ شوي ووّاو تکذيب يې شوي وؤ،خوبلآخر ورته غلبه حاصله شوه،نو دهغه شان ته هم د الله تعالی پيغمبر يې اوداقرآن بلاشک وريب د الله تعالی کتاب دې. ديکښې هم دهغه مضمون بيان دې،تاته هم پدې مضمون بيانولوتکليفونورسې اوتکذيب به دې کيږي خوبلآخر غلبه به دحق وي.

﴿مِّن لِّقَآئِهِۦ﴾(۱)ها ضمير راجع دې"الکتب"ته چې هلته ئې مصداق تورات دې خودلته دضمير په صورت کښې ئې مصداق قرآن مجيد دې،بطريق استخدام يعنی دا قرآن الله تعالی طرف نه تاته ميلاؤ شوېدې،ديکښې هيڅ شک وشبه مه کوه،څنګه چه موسی عليه السلام ته تورات ميلاويدلو کښې شک وشبه نشته،ياها ضمير مصداق تورات دې،اوداجمله دماقبل تاکيدده،يعنې تورات الله تعالی موسی عليه السلام له ورکړې وؤ ديکښې هيڅ شک وشبه مه

کوه.(۲)بعضو "ها"ضمیر تکذیب اوایذاته راجع کړیدي،هغې باندې مقام دلالت کوي،یعنی موسی علیه السلام له مونږ کتاب ورکړې وؤ،دَهغه تکذیب شوې وؤ،او تکلیفونوورته رسولي شوي وؤ،نوستا به هم دهغه شان حالاتوسره مخه راځي،دیته مه پریشانه کیږه.﴿وَجَعَلْنَٰهُ هُدًى﴾ضمیریاکتاب ته راجع دې یاموسیٰ ﷺ ته.﴿وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً﴾یعني بعضِ مودَدووعملونوپوجه دَاُمت مشران ګرځولي وؤ،یو پوجه دَصبر ،بل داچې زمونږپه آیاتونوئې یقین کولو .معلومه شوه چې پدې دووعملونودَامت قیادت میلاویږي

﴿يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا﴾دافریضه دَامامت ده چې قاندبه خلقوته سمه لاره ښانې،﴿إِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ﴾مابین دَانبیاؤاوامتونودَهغوئ کښ،یاپه مابین دَمؤمنانو اومشرکانو کښ.

| |
|---|
| أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّنَ الْقُرُونِ يَمْشُونَ فِي مَسَاكِنِهِمْ |
| آیاندې میلاو هدایت دوئ ته دَدې خبرې نه چه څومره هلاك کړیدي مونږمخکښ دَدوئ نه ډېرلونه چه دوئ ګرځي په کورونودَهغوئ کښ. |
| إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ أَفَلَا يَسْمَعُونَ ﴿٢٦﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَسُوقُ الْمَاءَ إِلَى الْأَرْضِ |
| بیشکه په دې کښ خامخادلائل دی،آیادوئ نه آوری، آیانه دی لیدلی دوئ چه بیشکه مونږروانؤاوبه زمکی |
| الْجُرُزِ فَنُخْرِجُ بِهِ زَرْعًا تَأْكُلُ مِنْهُ أَنْعَامُهُمْ وَأَنفُسُهُمْ أَفَلَا يُبْصِرُونَ ﴿٢٧﴾ |
| وچې ته نوراوباسو مونږپه هغې سره فصل چه خوری دَهغې نه ځناوردَدوئ اودوئ پخپله هم، آیادوئ نه وینی. |
| وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْفَتْحُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٢٨﴾ قُلْ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا يَنفَعُ |
| اووائی دوئ کله به وی دافیصله کچرته یئ تاسورشتنی.ته اووایه ورته په ورځ دَفیصلې به نفع نه ورکوی |
| الَّذِينَ كَفَرُوا إِيمَانُهُمْ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٢٩﴾ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ |
| کافرانوته ایمان دَهغوئ اونه به ورته مهلت ورکولي شي پس اې محمده ﷺ ته اعراض اوکړه دَدوئ نه |
| وَانتَظِرْ إِنَّهُم مُّنتَظِرُونَ ﴿٣٠﴾ |
| اوانتظاراوکړه(دَمدددالله)بیشکه دوئ انتظارکوی دَغلبې په تا. |

﴿أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا ﴾داتخویف دنیوي دي اهل مکه ؤته چې آیادوئ نه ګوري چې دَدوئ نه مخکښ څومره خلق مونږدَانبیاؤدَمخالفت پوجه هلاك کړیدي،دوئ پخپل تجارتي سفرونوکښ دَهغوئ په ښارونواوکورونوتیریږي اودَدوئ دَهلاکت مشاهده کوي،دَدینه دوئ عبرت ولي نه اخلي﴿أَوَلَمْ يَهْدِ ﴾، "یهد" فعل دپاره فاعل یا محذوف دې چې په هغې باندې کم اهلکنا..."دلالت کوی،اي لم یهدلهم اهلاکنا الامم الکثیرة اوکم خبریه فاعل نشی جوړې دې ځکه چې جمهورنحاتو په نیز دادصدارت کلام تقاضه کوی،اویاورله کم اهلکنا قبلهم پورا جمله فاعل ده،خوداجمله دلته مقصود اللفظ ده اوبطور حکایت نقل ده﴿ أَفَلَا يَسْمَعُونَ ﴾ددې قومونو دقوت وثروت خبرې، درسولانو سره طرزسلوك اودهغوئ تکذیب احوال اوبیا دَالله تعالی دَ طرف نه عذاب نازلیدل اودَهغوئ هلاکت کیفیت دوئ ته په تواتر سره راغلې وو،اوداخبرې عام زبان زد وې،نوځکه افلایسمعون ذکر شو چې داوعظ ونصیحت دپاره زیات مؤثر وؤ بنسبت دَافلا یبصرون یا افلاینظرون وئیلونه ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَسُوقُ ٱلْمَآءَ ﴾دادویم دلیل عقلي دې په توحید،اوپه حشرنشرباندې هم دلیل دې،چې آیادوئ نه ویني چې مونږپه وچه زمکه بارانونه اوورؤهغه تکه شنه شي،شنه واخه ئي حیوانات خوري،نورفصلونه دوئ خوري داټول دَالله ﷻ تصرفات دي،هغه تنِ تنهاکارسازدې،اوچې په وچه زمکه کښ واخه پیداکولوباندې قادردې نوپه بعث بعدالموت باندې هم قادردې،﴿إِلَى ٱلْأَرْضِ ٱلْجُرُزِ﴾ "جَرَز" نه دې، کټ کولو ته وائی او الارض الجرز وچې زمکی ته وائی،چه دَ فصل راختلو صلاحیت پکښ وی خوفی الحال پکښ نه وی موجود،﴿أَفَلَا يُبْصِرُونَ ﴾چونکه دَزمکې وچیدو،بیاپرې باران وریدو اوهغې نه پس بیادَبوټوزرغون کیدوتعلق مشاهدې اولولیدوکتوسره دې نوځکه افلایبصرون فعل راوړلې شو ﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْفَتْحُ ﴾داشکوه ده دَمشرکانونه چې مسلمانانو به دوئ ته وئیل چې الله تعالی به مونږله په تاسوغلبه راکوي او زمونږ نصرت او مدد به کوي نودوئ به استهزاءً باربارددَ مسلمانانونه تپوس کولوچې داورځ به کله راځي.

﴿قُلْ يَوْمَ ٱلْفَتْحِ لَا يَنفَعُ ﴾جوابِ شکوه ده چې جلدي مه کوئ استهزاء مه کوئ چې کله ورځ د، فتح یعنی قیامت راشي نوبیابه تاسوایمان راؤړی خودغه ورځ به بیاایمان راؤړل نفع نه

درکوي، اونه به درته مهلت درکولې کیږي، دجواب اسلوب حکیم باندې مبنی دی، (۱) یوداچې هغوئ دوخت تعیین متعلق سوال اوکړو، الله تعالی ورله وخت تعیین اونکړو، بلکه دايې ورته اوي چې هغې علم الله تعالی سره دې، هرسړي له او دځان غم کول پکاردي
(۲) اوبل داچه هغوئ دنیوی غلبې باره کښې تپوس کړې وؤ، او الله تعالی ورته جواب کښې داخروي غلبې ذکر اوکړو چې حقیقتا فتحه اوغلبه دآخرت کامیابی ده. ﴿فَأَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ﴾ یعني اې محمّده ﷺ! دَدوئ په تکذیب اواستهزاء باندې پرواه مکوه، اعراض ورنه اوکړه، بحث مباحثې ورسره مکوه، دَالله ﷻ دَمدداونصرت اودَدوئ دَهلاکت وخت نیزدې دی، ته انتظار کوه خُمادَنصرت اودَدوئ دَهلاکت، دوئ هم انتظارکوي چې مسلمانان به نیست نابودشي، آخرالله ﷻ خپله وعده صادقه کړه جنګ بدرکښې دَمسلمانانوغلبه اوشوه اوکفار ناکام نامرادشول (ان الله لایخلف المیعاد).

| ركوعاتها (۹) | سورة الاحزاب مدنيه | آياتها (۷۳) |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | شروع كوم په نامه دَ الله ﷻ چه بخښونكي دى مهربانه | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۳۳) وحسب النزول (۹۰)**

سورة احزاب مدني سورت دي،دَترتيب قرآني په لحاظ سره دري دريرشم(۳۳)دي اودَترتيب نزولي په لحاظ سره نوي(۹۰) دي،نزلت بعد آل عمران وقبلَ الممتحنة،زمانه دَنزول ئى سنه(۵ھ)ده چې په دغه كال غزوه احزاب شوي ده،اودي سورة ته هم پدي وجه سورة احزاب وائى چې پديكښ دَدغه واقعي ذكردي.

**ربط اسمي**: سورت سجده كښ ددي ذكر وؤ چې عقيده توحيد منونكى صرف الله تعالى ته سريه سجده وى،اوس په سورت الاحزاب كښ دَدي ذكر دي چې عقيدي دَ توحيدباندي قائم اوسئ اگر چې احزاب ستاسو په مقابله كښ راشي.

**ربط معنوي**:ماقبل سورة سره ئى ربط دادي چې په ماقبل سورة سجده كښ الله ﷻ فرمائيل (مالكم من دونه من وّلي ولاشفيع)يعني دَالله ﷻ نه ماسوىٰ څوك شفيع قهري نشته،پدي سورة كښ دَدي بيان دي چې لكه څرنگه دچاپه ويناسره متبنىٰ(پردى ځوى ته خپل ځوي وئيل) حقيقى ځوي نشى جوړيدلي اودغه شان دَچاپه ويناسره خپله ښځه مورنشي جوړيدلي نودغه شان چاته دَشفيع قهري ويلوسره هغه شفيع قهري نشي جوړيدلي.

**دَسورت دَمضامينواجمالي خلاصه**: په دي سورت كښ دري(۳)بنيادي مضامين ذكركيږي (۱)نفي دشفيع قهري،يعني دَنفي دَشفاعت بلااذنه،يعني مشركانوته داوئيلى كيږي چې كوم تاسوخپل ځان لپاره شفعاء جوړكړيدي نوداپه حقيقت كښ شفعاء ياآلهه نه دى، (۲)رفع دحرمت دَزوجي دَمتبنىٰ نه(۳)رفع دَحرمت ابدي دَ مظاهرمنهانه،اصل اوبنيادي اوله مسئله ده اودادواړه فروعي مسئلي دي،اودَاولي مسئلي مؤيدات دي، حرمت دَزوجي دَمتبنىٰ اوحرمت ابدي دَمظاهرمنهادادواړه دَجاهليت دَزماني بدرسمونه وونودَدي رسمونوختمولولپاره شپږواري خطاب دي رسول پاك ﷺ ته،لس(۱۰)واري خطاب دي مؤمنانوته، دوه(۲)واري

خطاب دې ازواج مطهراتو ته

**تفصيلي خلاصه**: اصولی مضمون: يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ ٱتَّقِ ٱللَّهَ (آيت نمبر ۱ـ ۴)

اول فروعی مضمون وَمَا جَعَلَ أَزۡوَٰجَكُمُ ٱلَّٰٓـِٔي :آيت نمبر ۴)

دويم فروعی مضمون: وَمَا جَعَلَ أَدۡعِيَآءَكُمۡ أَبۡنَآءَكُمۡ (آيت نمبر ۴)

دويم فروعی مضمون باندې مبنی اووه (۷) خطابات رسو الله صلی الله عليه وسلم ته:

(۱) يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ ٱتَّقِ ٱللَّهَ آيت: ۱) (۲) يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزۡوَٰجِكَ (۲۷) (۳) وَإِذۡ تَقُولُ لِلَّذِيٓ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ (آيت ۳۷) (۴) مَّا كَانَ عَلَى ٱلنَّبِيِّ مِنۡ حَرَجٍ آيت ۳۸) (۵) يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ إِنَّآ أَرۡسَلۡنَٰكَ شَٰهِدٗا (آيت ۴۵) (۶) يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ إِنَّآ أَحۡلَلۡنَا لَكَ (آيت ۵۰) (۷) يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزۡوَٰجِكَ وَبَنَاتِكَ (آيت ۵۹)

دوه خطابات امهات المؤمنينو ته:

(۱) يَٰنِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ مَن يَأۡتِ (آيت ۳۰) (۲) يَٰنِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ لَسۡتُنَّ كَأَحَدٖ (آيت ۳۲)

دويم فروعی مضمون باندې مبنی لس (۱۰) خطابات عامو مؤمنانو ته:

(۱) ٱلنَّبِيُّ أَوۡلَىٰ بِٱلۡمُؤۡمِنِينَ (آيت ۵) (۲) يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَةَ ٱللَّهِ (آيت ۹) (۳) إِنَّ ٱلۡمُسۡلِمِينَ وَٱلۡمُسۡلِمَٰتِ (آيت ۳۵) (۴) مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَآ أَحَدٖ مِّن رِّجَالِكُمۡ (آيت ۴۰) (۵) يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ (آيت ۴۱) (۶) يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا نَكَحۡتُمُ (آيت ۴۹) (۷) يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَدۡخُلُواْ بُيُوتَ ٱلنَّبِيِّ آيت ۵۳) (۸) إِنَّ ٱللَّهَ وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى ٱلنَّبِيِّ (آيت ۵۶) (۹) يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَكُونُواْ كَٱلَّذِينَ ءَاذَوۡاْ (آيت ۶۹) (۱۰) يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَقُولُواْ قَوۡلٗا (آيت ۷۰)

پنځه تخويفات دی:

(۱) وَمَا كَانَ لِمُؤۡمِنٖ وَلَا مُؤۡمِنَةٍ إِذَا (آيت ۳۶) (۲) إِنَّ ٱلَّذِينَ يُؤۡذُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ (آيت ۵۷) (۳) لَّئِن لَّمۡ يَنتَهِ ٱلۡمُنَٰفِقُونَ وَٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم آيت ۶۰) (۴) يَسۡـَٔلُكَ ٱلنَّاسُ عَنِ ٱلسَّاعَةِ (آيت ۶۳) (۵) إِ

عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ (آیت ۷۲)

يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ ۗ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۙ ①

[1] اې نبي! يريږه [2] د الله ﷻ نه او مه منه [3] خبره د كافرانو او د منافقانو. بې شكه الله پوهه دې حكمتونو والا دې

وَّاتَّبِعْ مَا يُوْحٰۤى اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ۗ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ۙ ②

او تابعداري كوه [1] د هغې چه وحې كيږي تا ته د طرفه د رب ستا نه. بې شكه الله ﷻ دې په هغه عملونو چه تاسو ئې كوئ خبردار

وَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۗ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ③

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| [2] او توكل | وكړه | په | الله ﷻ | باندې، او كافي | دې | الله ﷻ | كارساز. |

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللّٰهَ﴾ په دې آياتونو كښې اول خطاب دې رسول پاك ﷺ ته، دې كښې اصولى مضمون ذكر دې او په كښې څلور حكمونه ذكر كيږي، درې او امر دى يو نهې ده، د نبي معنى خبرور كولو والا ده، حضور ﷺ ته ځكه نبي وائي چې د الله ﷻ د طرفه خلقو ته د مغيباتو خبرور كوي د قبر او د احوال و د آخرت په باره كښې، دلته په ﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ﴾ سره استدلال كول په ج اب د يا نبي الله، يارسول الله، مطلقا وئيلو باندې جهالت دې ځكه دلته دا بطور عبادت وستلې كيږي نه بطورِ عقيده چې حضور ﷺ حاضر ناظر دې ﴿اتَّقِ اللّٰهَ﴾ اول حكم دې، امر د دوام او ثبات لپاره دې، اى دم على التقوىٰ، مفسرينو د دې آياتونو شان نزول داسې نقل كړيدى چې د جنگ احد نه بعد كفارِ مكه ؤ او بعض منافقانو لكه ابو سفيان او عكرمه بن ابي جهل، ابو الاعور اسلمى، عبد الله بن ابى وغيره، حضور ﷺ ته دا پيشكش او كړو چې مونږ او تاسو به اتفاق او كړو پدې خبره چې ته زمونږ د بتانو بد والې وئيل ترك كړه او هغوئ ته آلهه او شفعاء او وايه،

(1) خطاب اول براى نبي كريم ﷺ
(2) حكم اول
(3) حكم دوم
(1) حكم ثالث
(2) حكم رابع

اومونږبه ستاسره جنګ پریدو ،نومسئله به حل شي داخبره رسول پاکﷺ اوصحابهؓ ته ډیره ناګواره اولږیده ،حضرت عمرؓ موجودوؤ ،دهغوئ دقتل لپاره ئی دنبيﷺ نه اجازت طلب کړولیکن نبيﷺ منع کړو ،الله ﷻ دا څلورحکمونه نازل کړل

﴿وَلَا تُطِعِ ٱلْكَٰفِرِينَ﴾دویم حکم دي،تخصیص بعدالتعمیم دي،لپاره دتاکیداواهتمام ،چې دکافرانواومنافقانواطاعت مه کوه یعني ددوئ بتانوته آلهه اوشفیع قهري مه وایه﴿إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا﴾الله ﷻ په هرشي ښه عالم دي نودټولواشیاؤ مصالح اومفاسدپیژني﴿حَكِيمًا﴾حکمت والادي نوتاته امرنکوي مګردهغه څه چې په هغې کښ مصلحت وي،اوتانه نه منع کوي مګرچې په هغې کښ په فساداونقصان وي.

﴿وَٱتَّبِعْ مَا يُوحَىٰٓ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ﴾دادریم حکم دي چې اتباع دمایوحیٰ کوه﴿مَا يُوحَىٰٓ﴾نه مرادټول قرآن اوخصوصاً دلته داحکم چې‹مالکم من دونه من وليٍّ...›یعني دالله ﷻ نه ماسویٰ بل څوک نه حاجت رواشته اونه شفیع قهري﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ﴾داڅلورم حکم دي نبي کریمﷺ ته چې ته بلاخوف وخطردتوحید تبلیغ کوه،ددوئ دبتانودالوهیت نفي کوه،الله ﷻ باندي توکل کوه الله ﷻ تالره وکیل کافي دي.

| |
|---|
| مَّا جَعَلَ ٱللَّهُ لِرَجُلٍ مِّن قَلْبَيْنِ فِى جَوْفِهِۦ ۚ وَمَا جَعَلَ أَزْوَٰجَكُمُ |
| نه دی ګرځولی الله ﷻ هیڅ چالره دوه زړونه په ګیډه دهغه کښ[2]،اونه ئی دی ګرځولی ښځې ستاسو[1] |
| ٱلَّٰٓـِٔى تُظَٰهِرُونَ مِنْهُنَّ أُمَّهَٰتِكُمْ ۚ وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَآءَكُمْ أَبْنَآءَكُمْ |
| هغه چې ظهارکوئ تاسودهغوئ نه میندي ستاسو،[3]اونه ئ دي ګرځولي متبنی ګان ستاسو‹حقیقي›ځامن د ستاسو |

[1] علت برائ ماقبل
[2] نظیر اول
[3] نظیر ثاني

ذٰلِكُمْ قَوْلُكُمْ بِاَفْوَاهِكُمْ ۖ وَاللّٰهُ يَقُوْلُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيْلَ ۞ اُدْعُوْهُمْ

داهسی وئیل ستاسودي په خولوستاسو ،اوالله ﷻ وائ حق اوهغه ښائی سمه لار. بلئ تاسودوئ نسبت کونکي

لِاٰبَآئِهِمْ هُوَ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ فَاِنْ لَّمْ تَعْلَمُوْٓا اٰبَآءَهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ

پلارانودَدوئ ته داکارډیرغوره دي په نزددالله ﷻ پس که نه وي معلوم تاسوته پلاران ددوئ نودوئ رونړه دی ستاسو.

فِي الدِّيْنِ وَمَوَالِيْكُمْ ۚ وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيْمَآ اَخْطَاْتُمْ بِهٖ

په دين کښ اودوستان ستاسودی،اونيشته په تاسوباندې گناه په هغې کښ چه خطاشوی یئ تاسویه هغې.

وَلٰكِنْ مَّا تَعَمَّدَتْ قُلُوْبُكُمْ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۞

ليکن(شته گناه)په هغې کښ چې قصدیې وکړي زړونه ستاسو.او الله ﷻ بخښونکې مهربانه دي

﴿مَّا جَعَلَ اللّٰهُ لِرَجُلٍ﴾ د"رجل" نه مراد ،لاحدٍ دی،سړی وي که ښځه.دَرجلٍ تخصیص پوجه دَقوت شویدي،داعلت دي دَماقبل﴿اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ﴾ لپاره،یعني الله ﷻ دَچاپه بدن کښ دوه زړونه نه دي پيداکړي،هرچاته ئی صرف يوزړه ورکړيدې،پدې کښ دَالله ﷻ محبت اواطاعت یعني دَتوحيدعقيده اودکفارومحبت اواطاعت یعني دَشرك عقيده نشي يوځائ كيدلې.څكه چې بدن دَانسان عالم صغرىٰ دې،اوزړه ئی بادشاه دې.عالم كبرىٰ .قياس دی په عالَم صغرىٰ باندې،چې په عالم صغرىٰ کښ دوه بادشاهان(زړونه)نشته نوپه عالم كبرىٰ كښ به څرنگه دوه يازيات بادشاهان اومعبودان شي،مولاناجامي رحمه الله وائی:

دریں راه حاصلی جزیك دلی نیست | دودل بودن بجزبی حاصلی نیست
یـکی بین ویــکی دان ویکی گــو | یـکی خواه ویکی خوان ویکی جو

دغه رنګه پدې آيت کښ دَعربوپه يوې غلطي مقولې ردهم دې.په دوئ کښ چې به څوك ذهين اوډیرهوښياروؤ.نودوئ به هغه ته ذی قلبين(دوؤزړونووالا)وئيل.لکه دَجميل ابن معمرکافرباره کښ راځي چې،حضورﷺ ده ته دعوت ورکړونوده اووئيل(انّ لی قلبين افهم باحدهماا كثرممايفهم محمدﷺ) نوپه روايت کښ دي چې دې په جنګ بدرکښ دکافرانوله طرفه شريك شوې وؤ.مشرکانوته چې شکست اوشواوونختيدل نودې هم وتختيدلواودومره

بدحواسه شوچې يوه څپلۍ ئې په لاس کښې وه بله ئې په خپه کښې وه. ابوسفيان ورنه تپوس اوکړو (مابال احدى نعليك فى رجلك والاخرىٰ فى يدك) يعني څه درباندې شويدي چې يوه څپلۍ دې په خپه کښې ده بله دې په لاس کښې نيولې ده، ده اووئيل چې ماته خوپته هم نشته، ځماخو داګمان وو چې دواړه م په خپو کښې دي.

﴿وَمَا جَعَلَ أَزْوَٰجَكُمُ ٱلَّٰٓـِٔي ﴾ دا دماقبل لپاره دوه نظيرين ذکر کيږي، دا اول نظير دې چې لکه څرنګه ستاسوازواج په ظهارسره ستاسوامّهات نشي جوړيدلې. نودغه شان ستاسوپه ويناسره څوك شفيع قهري بلااذنه نه شي جوړيدلې، پدې آيت کښې هم دجاهليت په يوبدرسم باندې رددې، چې دوئ به په مظاهرمنهاباندې احکام دامومة (موروالې) جاري کول، (تفصيل ددې مسئلې به انشاء الله دسورة مجادله په تفسيرکښې راځي)

﴿وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَآءَكُمْ ﴾ ادعياء جمع د (دعى) ده په معنىٰ د مدعو متبنىٰ ته وايئ. دادويم نظيردې دماقبل چې لکه څرنګه ستاسوپه ويناسره پردي ځامن ستاسوځامن نشي جوړيدلې، نودغه شان ستاسوپه ويناسره څوك شفيع قهرى نشي جوړيدلې. پدې آيت کښې هم دجاهليت په يوبدرسم باندې رددى، چې دوئ به په متبنىٰ باندې احکام دبنوة جاري کول، هغه بئ خپل حقيقي ځوې ګڼړلو . دهغه دزوجي مطلقي سره بئ نکاح نه کوله.

مفسرين وايئ چې داآيت نازل شويدې په باره دزيدبن حارثه ﷺ کښې، زيد ﷺ اصلاً عربي النسل وو، غلام نه وو، په وړکوالئ کښې دخپلې مورسره دنيانيکه کورته روان وو، په لاره کښې بنوقيس قافله لوټ کړه چې په هغې کښې دې هم وو، دمورنه يئ په زورواخستلو، دعکاظ منډئ ته ئ دخرڅولولپاره راوستلو، حضرت خديجې ﷺ خپل وراره حکيم بن حزام ﷺ منډئ ته اوليږلوچې يوذهين عربي النسل غلام واخله، حکيم بن حزام ﷺ نظرپه منډئ کښې په زيدباندې اولګيدلونووائى خستلواوخپلې تروړخديجې ﷺ په خدمت کښې ئې پيش کړو. کله چې نبي کريم ﷺ دحضرت خديجې ﷺ سره نکاح اوکړونوهغې زيد ﷺ دنبي ﷺ په خدمت کښې دهديې په طورپيش کړو، بل خوادزيد ﷺ پلارته دده په جدائى سخت تکليف اوغم وو، ده به دزيدپه جدائى کښې ژړل اواشعاربه يې ويل اوګرزيدو به، دهغې اشعارونه يوځوداهم دي

| | |
|---|---|
| بكيتُ على زيدٍ ولم ادرمافعل | أحيٌّ يرجىٰ ام اتىٰ دونه الاجل |
| فو الله لاادرى وانى لسائل | اغالكَ بعدى السهل ام غالك الجبل |

| | |
|---|---|
| فياليتَ شعرى!هل لك الدهراوبة | فحسبي من الدنيا رجوعكَ لي بجل |
| تذكرينه الشمس عند طلوعا | و تعرض ذكراه اذاغر بها افل |
| وان هبت الا رياح هيجّن ذكره | فياطول ما حزني عليه و ماجل |
| ساعمل نصّ العيس في الارض جاهدا | ولا اسام التطواف اوشام الابل |
| حياتي اتاني على منيّتي | فكلّ امرئ فانٍ وان غره الامل |

يعني څه دَزيد په يادكښ جاړم اوداراته نده معلومه، چې هغه ژوندې دې چې اميدې اوكړيشى، يامرګ ختم كړيدې، په الله ﷻ مې دې قسم وې، ماته داهم نده معلومه چې اې زيده! ته نرمې زمكې هلاك كړې يې، يادَغره زمكې مړكړې ئې. آرمان! ماته دامعلومه شوې چې ته به تول عمركښ كله واپس راشې كه نه، تولې دنياكښ څماانتهائى غرض ستاواپس راتلل دې، كله چې نورراخيجې نوهم راته زيديادېږې كله چې ډوبيږى نوبياهم دَده يادونه څماپه زړه وريږى وې، اوكله چې هواګانې چليږې نودَهغه يادراته تازه كوې، هائى افسوس! څما غم اوڅمافكرڅومره اوږدشو، څه به دَهغه په تالاش كښ تولې دنياكښ دَاوښ تيزرفتارې په كارراولم، اودَدنياچكرلګولونه به ستړى نشم، اوښ به ستړې شې خوځه به ستړى نه شم، خپل ژوندبه دې كښ تيره وم، كه ماته مرګ راغې نوخيردې ځكه چې مرګ هريوخيزفناكوې، اګرچه خوك هرڅومره اميدونه اولرې.

خلاصه داچې هغه به ااشعاروئيل اوپه ژړا ژړابه يې تلاش كښ ګرځيدلو، اتفاقاًدَهغه دَقوم يوڅوكسان حج ته راغلي وؤهغوئ هلته ئې زيداوليدلونواوئې پيژندلو، دَپلارحال ئې ورته واوره ولودَهغه شعرونه يې ورته واؤرول، اودَهغه دَياداودَجدايئ قصې يې ورته بيان كړې، زيد ﷛ دَهغوئ په لاس پلارته درې(٣)شعرونه اوليږل چې دَهغې مطلب داوؤچې څه دلته په مكې كښ يمه، په خيريت يم، ته غم اوفكرمه كوه څه دَديرسخيانوخلقوپه غلامئ كښ يم، هغه كسان چې لاړل دَزيدخبرئى دَهغه پلارته واؤرولواوهغه اشعارئى ورته واؤرول كوم چې زيد ﷛ وئيلې وؤ، اوپته ئى ورته اوخودله، دَزيدپلاراوتره دَفديې رقم دَځان سره واخستلواودَغلامئ نه دَخلاصولوپه غرض مكې ته راغلل، دَتحقيق نه روستوورته پته اولږيده چې دې دَ نبى ﷺ په غلامى كښ دې نودوئ، دَنبې كريم ﷺ خدمت كښ حاضرشول، عرض ئى وكړوچې اې دَهاشم اولاده! اودَخپل قوم سرداره، تاسوخلق دَحرم اوسيدونكې يئ، اودَالله ﷻ دكورګاونډيان يئ، تاسوپخپله قيديان ازاده وئ، اوږوته خوراك وركوئ، مونږدَ

خپل ځوی په طلب کښې تاسوته راغلي يو، په مونږ احسان اوکړه اوفديه قبوله کړه اوهغه ازاد کړه، نبي ﷺ اوفرمائيل څه خبره ده، عرض ئې اوکړو دَزيدپه طلب کښې راغلی يو، نبي ﷺ ارشاد اوفرمائيلو بس دومره خبره ده، عرض ئې اوکړوچې هاؤبس دومره خبره ده ، نبي ﷺ اوفرمائيل چې زيدرااوغواړئ اودَهغه نه تپوس اوکړئ، کچرې هغه تاسوسره تلل غواړی نوبغيردَفديه اخستلوهغه تاسوته حواله دې، اوکه تلل نه غواړي نوځه په داسې کس زياتې نشم کولې، هغوئ داخبره په خوشحالئ منظورکړه، زيد ﷺ ئې رااوغوښتلو، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل ته دوئی پيژنې، عرض ئې اوکړوجي آوپيژنم، داځماپلاردې، داځماتره دې، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل، ځماحال هم تاته معلوم دې، اوس تاته اختياردې، چې ماسره اوسيږې اوکه دوئ سره تلل غواړې نوهم تاته اجازت دې، زيد ﷺ عرض اوکړوچې حضور ﷺ څه ستاسوپه مقابله کښې نورڅوك خوښولی نه شم، تاسوځمادَپلارپه ځائ يئ اودَتره په ځائی هم، پلاراوتره ورته اووئيل چې زيده! غلامي دآزادئ په بدله کښې خوښوې. اوپلارتره اودَټول کورنئ په بدله کښې غلام اوسيدل غواړې، زيد ﷺ ورته اووئيل چې آؤ، چې ماپه دوئ کښې يعني په حضور ﷺ کښې داسې خبرې ليدلی دی چې دَهغې په مقابله کښې هيڅ څيزخوښولی نشم، نبي کريم ﷺ چې داواؤريدل نوهغه ئې په غيږه کښې واخستلواوونې فرمائيل: اشهدوا انه حرٌ وآنه ابنی يرثنی وارثه، دَزيد ﷺ پلاراوتره چې دامنظراوليدلوډيرخوشحاله شو، اولاړل دَدې اياتونودَنزول نه مخکښې به ده ته زيدابن محمد ﷺ وئيلی کيدل، داآياتونه چې نازل شول نوبيابه ورته زيدبن حارثه وئيلې کيدل.

﴿ذَٰلِكُمْ قَوْلُكُم بِأَفْوَاهِكُمْ ﴾ ذلكم کښې اشاره ماقبل درې واړوخبروته، چې چاته ذی قلبين وئيل مظاهرمنهاته موروئيل، متبنّیٰ ته حقيقي ځوی وئيل داستاسودَخولوهسې خبرې دې، حقيقت ئې نشته، حقه خبره الله ﷻ کوي اوهم هغه حق خبرې ته هدايت کوي، نوتاسوخپل قول ترك کړئ اودَهغه قول اختيارکړئ، ﴿ٱدْعُوهُمْ لِآبَآئِهِمْ ﴾ای منسوبين لاباٸهم، مؤمنانوته خطاب دې چې متبنّیٰ ګان خپلوپلارانوته منسوب کوئ، زيدبن حارثه واين، اوکه پلاران ئې درته نوي معلوم نوبيائې خپل رونړه اودوستان ګنړئ، روايت دې چې نبي اکرم ﷺ به دې آيت دَنزول نه بعدزيد ﷺ ته وئيل: انت اخوناومولنا(ابن کثير).

﴿هُوَ أَقْسَطُ عِندَ ٱللَّهِ﴾ ضمیرد "هو" راجع دې مصدر د (ادعوا) ته کمافی قوله تعالى (اعدلوا هو اقرب للتقوى) يعني خپل پلارانو ته ئى نسبت کول د الله ﷻ په نزد انصاف خبره هم داده.
﴿فَإِخْوَٰنُكُمْ فِي ٱلدِّينِ﴾ خبردې دمبتدا محذوف (اى فهم اخوانكم) اوجمله جواب شرط یاقائمقام د جواب ده. ﴿وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيمَآ أَخْطَأْتُم بِهِۦ﴾ مطلب یادادې چې قبل د نهې نه چې کوم نسبت تاسو کړیدې په هغې کښې په تاسو گناه نشته. یاداچې نسبت ئى بل چاته اوکړئ اوستاسو خيال هم دغه وي، یاداچه سهوأئى نسبت بل چاته اوکړئ ﴿وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ علت دې د ﴿وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ﴾ لپاره.

| |
|---|
| ٱلنَّبِيُّ أَوْلَىٰ بِٱلْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ وَأَزْوَٰجُهُۥٓ أُمَّهَٰتُهُمْ وَأُو۟لُوا۟ ٱلْأَرْحَامِ |
| دانبي ﷺ زيات نزدې دې د مؤمنانو ته د ځانونو د دوئ نه اوبیبیانې د دده میندې د دوئ دی. اوخپلوان |
| بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِى كِتَٰبِ ٱللَّهِ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُهَٰجِرِينَ |
| د يوبل زيات حق دار دی په كتاب د الله ﷻ كښې د مؤمنانو نه اود هجرت كونكونه |
| إِلَّآ أَن تَفْعَلُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَوْلِيَآئِكُم مَّعْرُوفًا ۚ كَانَ ذَٰلِكَ فِى ٱلْكِتَٰبِ مَسْطُورًا ۝٦ |
| مگرداچه كوئ تاسو د دوستانو خپلو سره احسان، دې داحكم په كتاب كښې ليكلې شوې، |

﴿ٱلنَّبِيُّ أَوْلَىٰ بِٱلْمُؤْمِنِينَ﴾ دا اول خطاب دې مؤمنانو ته په باره د عزت د نبي كريم ﷺ كښې، چې اې مؤمنانو نبي كريم ﷺ د جاهليت رسمونه ختموى كافران اومشركان يې مخالفت كوي، اعتراضونه وربانديې كوي نو تاسو د نبي كريم ﷺ د ناموس تحفظ اوكړئ ځكه چې د هغه حق په تاسو باندې د ځانونه هم زيات دې، اود هغه ازواج مطهرات خپلې میاندې اوگنړئ. ﴿أَوْلَىٰ﴾ یا په معنیٰ د (احق) سره دې يعني تابعداري اوتعظیم دنبي كريم ﷺ اود هغه حق په تاسو د ستاسو د نفسونو نه هم زيات دې، یا په معنیٰ أرأف (مهربان) سره دې، يعني نبي كريم ﷺ زيات مهربانه دې په مؤمنانو باندې د هغوئ د نفسونو نه، یا په معنیٰ د اقرب سره دې، په بخاري

وغيره کښ دابوهريرهؓ نه روايت دې چې نبي کريمﷺ فرمائي(مامن مؤمن الاواناأولى الناس به في الدنياوالاخرة.اقرؤاان شئتم النّبي اولى بالمؤمنين من انفسهم)مجاهدؒ فرمائي هرنبي دخپل امت لپاره روحاني پلاروي اوپدې وجه ټول اهل ايمان پخپل مينځ کښ رونړه دی.دې تائيدپه قراءت دابن مسعودؓ کښ داسې راغلې دې.(النبي اولى بالمؤمنين من انفسهم وهواَبٌ لهم)

﴿وَأَزْوَٰجُهُۥٓ أُمَّهَٰتُهُمْ﴾هرکله چې نبي کريمﷺ دمؤمنانولپاره روحاني پلاردې نوازواج مطهرات امّهات المؤمنين دي.يعني مرتبه ددوئ اوپه تعظيم تکريم کښ ددوئ حق دمياندوپه شان دې نوددوئ معمولي بې ادبي اودوئ ته تکليف رسول اشددرجه حرام دی.(اعاذناالله)

﴿وَأُو۟لُوا۟ ٱلْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ﴾ دفع دشبهه ده چې ناشي ده دماقبل نه.چې حضورﷺ روحاني پلاردې اوازواج مطهرات امهات دي.اومسلمانان پخپل مينځ کښ رونړه دي نودميراث په احکاموکښ به هم هرمسلمان دبل وارث ګرځي.اودغه شان دنبي کريمﷺ اوازواج مطهراتوسره به ئ هم په ميراث کښ شرکت وي؟ نوجواب اوشوچې دنبي اکرمﷺ اودازواج مطهراتوتعلق دمؤمنانوسره اګرچه دومره دې چې دموريلارنه ئې حق زيات دې.ليکن ميراث ته پديکښ دخل نشته.ميراث به دنسبي اوقريبي رشته دارئ په بنيادتقسيمېږي.ابن عباسؓ اوسعيدبن جبيرؓ وغيره حضرات وائي چې په ابتداء داسلام کښ به دميراث تقسيم،دتوارث بالهجرة،په بنيادکيدلو.يعني مهاجربه دانصاري وارث جوړيدلو.نوبياچې کله دخلقواقارب په اسلام کښ داخل شول نوداتقسيم بياپدې آيت سره منسوخ شو.دغه شان تشريح دسورةنساء په آيت(٢٣)کښ هم تيره شويده.﴿فِى كِتَٰبِ ٱللَّهِ﴾ جارمجرورمتعلق دی يادَ﴿أَوْلَىٰ﴾سره،﴿مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾ من يابيانيه دي.دَ﴿وَأُو۟لُوا۟ ٱلْأَرْحَامِ﴾بيان کوي.(اى اولوالارحام من المؤمنين اولىٰ بالارث من الاجانب) يعني خپل مؤمنان رشته داران دَ ميراث زيات حق دار دی.دنورو پردونه.ياَمن َپه مفضل عليه باندې داخل دې(اى اولوالارحام اولى بالارث من المؤمنين) يعني رشته داران دَ عامومؤمنانونه زيات مستحق دی﴿إِلَّآ أَن تَفْعَلُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَوْلِيَآئِكُم﴾ اولياء،نه مراد عام مؤمنان دی او استثنا منقطع ده نو.مطلب دادې چې

وراثت خوصرف په رشته داریٰ سره ملاویږي مګرکه دَایماني وروروليٰ په بنا تاسوخپل انصاریامهاجرو رونړواودوستانوسره څه نیکي اواحسان کویٔ نوداهم جائزدي او یا استثنا متصله ده اومتستثنی منه ورله في کل نفع مقدره ده ،یعی څومره دَ نفع صورتونه دی دهغی زیات مستحق اولاالارحام دی سوادَ وصیت نه چه دویٔ لپاره جائز نه دي.﴿مَّعْرُوفًا﴾پدې کښ وصیت طرف ته اشاره ده چې دَوراث لپاره نشته اودَغیرلپاره مشروع دي.﴿كَانَ ذَٰلِكَ﴾ مشارالیه مذکور ټول احکامات دی.﴿فِي الْكِتَابِ﴾کتاب نه مرادیاقرآن دې یعني په قرآن کښ دغه حکم دَهمیشه لپاره جاري اونافذدي،یادکتاب نه مرادلوح محفوظ دي.

| |
|---|
| وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ وَمِنكَ وَمِن نُّوحٍ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ |
| او یادکړه هغه وخت چه واخسته مونږه دَپیغمبرانونه وعده دهغویٔ اوستانه اودَنوح عليه السلام نه اوابراهیم عليه السلام نه اودَموسیٰ عليه السلام نه |
| وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ۖ وَأَخَذْنَا مِنْهُم مِّيثَاقًا غَلِيظًا ﴿٧﴾ لِّيَسْأَلَ الصَّادِقِينَ |
| اودَعیسیٰ ابن مریم نه،اوواخسته مونږه دَدویٔ نه وعده کلکه دَپاره ددې چه پوښتنه وکړي الله جل جلاله دَریښتنونه |
| عَن صِدْقِهِمْ ۚ وَأَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿٨﴾ |
| په باره دَریښتیادَدویٔ،اوتیارکړیدي الله جل جلاله دَپاره دکافرانوعذاب دردناك |

﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ﴾دامتعلق دې دَاول خطاب دَنبي کریم صلى الله عليه وسلم سره،یعني مونږدَهرنبي نه داعهداخستې دې چې هغه به اتباع دَمایوحیٰ کوي،لهذاته هم اتباع دَمایوحیٰ کوه اودکفارواودَمنافقانودَمخالفت پوجه په تبلیغ اودعوت الی الحق کښ نرمي مه کوه.﴿مِيثَاقَهُمْ﴾دمیثاق نه هغه عهدمراددې چې په ازل کښ دَتمامو انبیاؤنه په تبلیغ دَرسالت،احکام دَشریعت اوپه اتباع دَمایوحیٰ باندې اغستی شوې وو.﴿وَمِنكَ وَمِن نُّوحٍ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ﴾تخصیص بالذکردَدې پنځوؤانبیاؤاوشوسره دَدینه چې دویٔ داخل دي په﴿مِنَ النَّبِيِّينَ﴾کښ،داپوجه دَدې چې دویٔ اولعزم اوارباب دَشرائعووؤ. ﴿لِّيَسْأَلَ

﴿ٱلصَّـٰدِقِينَ عَن صِدۡقِهِمۡ﴾ لام په "ليسئل" كښې لام كئ دې، علت دې دَاخذ دَميثاق اوضميردَفاعل يكښې الله ﷻ ته راجع دې، اودَ﴿ٱلصَّـٰدِقِينَ﴾نه مرادتمام انبياء دي يعني داميثاق دَدې لپاره اغستې شوې وؤچې الله ﷻ به دَقيامت په ورځ دَانبياؤنه سوال کوي، اوسوال به دَعهدمتعلق وي چې آيادوئ خپل قوم ته دارسولې دې اوکه نه؟اوقوم تصديق کړيدې که تکذيب،کقوله تعالى(فلنسئلنّ الذين أرسِلَ اليهم ولنسئلنّ المرسلين(اعراف:۶) اومقصوددَسوال نه به تبکيت دکفاروي ورنه الله ﷻ په صدق دَانبياؤباندې عالم دې.

﴿وَأَعَدَّ لِلۡكَـٰفِرِينَ عَذَابًا أَلِيمًا﴾دا ياعطف دې په مقدره جمله باندې چې(فاثابَ المؤمنين)ده، اومطلب دادې چې قيامت په ورځ الله ﷻ چې کله دَانبياؤنه تپوس اوکړي دَقوم متعلق چې چاايمان راوړې دې اوچانه نو،(فاثاب المؤمنين واعدّ للكافرين عذاباأليماً)يادلته صنعت احتياك شويدې،تقديري عبارت داسې دې(ليسأل الصّادقين عن صدقهم واعدّ لهم ثواباًعظيماً ويُسأل الكاذبين عن كذبهم واعدّلهم عذاباأليماً(روح المعاني)).

| |
|---|
| يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَةَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ إِذۡ جَآءَتۡكُمۡ جُنُودٞ فَأَرۡسَلۡنَا |
| اې مؤمنانوياد كړئ نعمت دَالله ﷻ په تاسوپه هغه وخت كښې چه راغلې تاسوته لښكرې نوراوليږله مونږ |
| عَلَيۡهِمۡ رِيحٗا وَجُنُودٗا لَّمۡ تَرَوۡهَا ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ بَصِيرًا ۝٩ |
| په دوئ باندې هوااوداسې لښكرې چه نه وې ليدلې تاسوهغه، او الله ﷻ په هغه عملونوچه تاسو كول ليدونكې دې |

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَةَ ٱللَّهِ﴾دادويم خطاب ذکرکيږي مؤمنانوته،په باره دَاطاعت اوتحفظ دَناموس دَحضورﷺ،چې اې مؤمنانو احضور صلی الله علیه وسلم دې رسم بد .خاتمه اوکړه او که وريسې ځوک خبرې کوي نو تاسو دَ هغه ناموس تحفظ کوئ،څه به تاسو حامي وناصر يم.لکه چې مې په غزوهٔ احزاب كښې ستاسونصرت اوكړواودَرسول پاكﷺ په بركت سره مې فتح درکړه نودَهغه كامله اتباع كوئ.

پښ-ې دوؤرکوع کښې دَغزوهٔ احزاب ذکردې چې هغې ته غزوه خندق هم وائي،باعث دَدې غزوې داوؤچې دَمديني په اطرافوكښې دَيهودوبوقبيله بنی نضيراوسيدله،چې دوئ رسول

پاکﷺ دَبدعهدئ اودَشرارت پوجه جلاوطن کړي وؤ.ددوئ يوڅوسرداران مکې ته راغلل اودَقريشوسردارانورسره يئ ملاقاتونه 'وکړل.دحضورﷺ اودَمسلمانانوخلاف جنګ کولوته ئی اماده کړل.قريشوورته اووئيل چې تاسوخواهلِ کتاب يئ تاسومونږته دااووايئ چې زمونږ دين حق اوصحيح دې اوکه دين دَمحمَدﷺ .نودوئ ورته اووئيل چې ستاسودين حق دين دې،اواولى دې دَدين دَمؤمنانونه.لکه په(الم ترالى الّذين اُوتوانصيبًامن الكتاب يؤمنون بالجبت والطاغوت ويقولون للذين كفروا هٰؤلاء اهدىٰ من الذين امنواسبيلاً(سورة نساء: ٥١))کښې دَدې تذکره ده،بيائې خانه کعبه کښې قسمونه اوکړل چې مونږکښې چې ترڅوپورې يوکس هم موجودوي نوجنګ به کوؤ،پدغه ورځ ئی دَمشرکانودَبتانوتعظيم اوعبادت هم اوکړو.قريشودَمکی سره دَمعاهدې نه ورستوئی دَبني غطفان سره هم معاهده اوکړه اودَهغوئ يوسردار(عيينه)ته ئی دَخيبردکجوروبوباغ ورکولوپيش کش هم اوکړو.بيايئ نوروقبائلوسره هم دغه شان معاهدې اوکړې اوتقريبًادولس زره کسانولښکريئ تيارکړواوپه مدينه باندې يئ دَحملې کولومنصوبه جوړه کړه،نبي اکرمﷺ ته چې دَدې منصوبې اطلاع اوشوه نودرې کارونه ئی اوکړل.توکل على الله،اووئی فرمائيل:حسبناالله ونعم الوكيل،ظاهرې اومادې اسباب ئی برابرکړل اوصحابه کراموﷺ سره ئی مشوره اوکړه،په مشوره کښې حضرت سلمان فارسيﷺ هم وؤ.هغه عرض اوکړوچې زمونږپه وطن فارس کښې چې کله به دشمن حمله کوله نومونږبه خندقونه جوړه ول. رسول پاکﷺ دامشوره قبوله کړه اوصحابؤته يئ دَخندق کنستلوحکم اوکړو.دَانصارو اومهاجرودَلس لس کسانوجماعت يې جوړکړو اوپخپله هم پکښې شريك شو.هرجماعت باندې څلويښت ګزه خندق کنستل مقررشو،شپږو ورځوکښې درې نيم ميله اوږدخندق تيارشو،صحابه کراموﷺ دَډيرې لوږې تندې حالت کښې داخندق تيارکړو.کله چې حضورﷺ دَصحابؤﷺ تکليف اوليدلونووئی فرمائيل:

اللّهم انّ العيش عيش الاخرة فاغفرالانصاروالمهاجرة

صحابه کرامؤبه فرمائيل:

نحن الذين بايعوا محمداً على الجهادمابقينااېداً

حضرت براء بن عازبﷺ فرمائی چې په ورځ دَخندق حضورﷺ خاورې لرې کولې حتّی چې بدن مبارك ئی په دوړوکښې پټ شواودايې وئيل:

والله لولا الله مااهتدينا و لا تصدقنا ولاصلينا

فانزلنْ سكينةً علينا وثبّت الاقدام ان لاقينا
انّ الاولیٰ قدبغوا علينا اذا ارادو فتنةً ابينا

دَدشمن لښكردَابوسفيان په قيادت كښ مديني ته قريب راغي چي تعدادئ تقريبا دولس زره وؤ،خندق ئې چي اوليدلو نووئ وئيل چي داخوعجيبه دفاعي تدبيردې،اهل عرب خوپدې نه پوهيدل،حضورﷺ دَخندق نه بل طرف ته دَدري زره كسانوصف بندى اوكړه جبل سلع ته ئې شاكړه اودَشمن ته ئې مخ كړو،پدې حالت كښ تقريبًايوه مياشت تيره شوه،جنگ اونه شوصرف تيراندازى اوكاڼرى ويشتل وؤ.پدې دوران كښ دَيهوديانويوه دريمه قبيله بنوقريظه،چې دَدوئ معاهده مسلمانانوسره قائمه وه اودَمسلمانانوسره دَامدادكولوپابندوؤ. دوئ غدراي اوكړه اودَنوراحزابوسره يوځائ شو،حضورﷺ اومسلمانانوته دَدي پوجه ډير صدمه اورسيدله،مؤنځ اودعاگانوكښ مشغول شول،حضورﷺ به دادعاكوله"اللّهم مُنزل الكتاب، سريع الحساب اهزم الاحزاب اللّهم اهزمهم وزلزلهم(بخاري)صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم ته ئې دا دعاوښودله"اللّهم استُرعوراتناوآمن روعاتنا"دَمسلمانانودَطرفه سعدبن معاذ رضي الله عنه دَتيراندازئ په دوران كښ زخمي شو،دعائ اوكړه چي ياالله تعالیٰ كچرته آئنده دَمكي مشركانوسره بل جنگ كيدونكې وي نوماته ترهغه وخته پوري ژوندراكړه اوكه نه وي نوبياماته پدې جنگ كښ شهادت نصيب كړي خودَهغه وخته پوري ماته مرگ مه راكوه ترڅوچي څه دَبني قريظه نه دَهغوئ دَغدارئ انتقام وانخلم،الله تعالیٰ دَده دادعاقبوله كړه اوبنوقريظوته دَده په خوښه سره سزاملاؤشوه چي دَهغې ذكرپه دويمه ركوع كښ راځي،حضورﷺ به په مسجدفتح كښ مسلسل دعاگاني كولى،الله تعالیٰ ئې دعاگانې قبولې كړې،دَبده په ورځ دَماسپخين اومازيگر په مينځ كښ دَخوشحالئ په حالت كښ ئې صحابه كراموته تشريف راوړواودَفتح خوشخبري ئې ورته وركړه.الله تعالیٰ دَدشمن په مينځ كښ بې اتفاقي پيداكړه،يوكس نُعيم بن مسعودداسلام راوړلو،دَحضورﷺ خدمت كښ حاضرشو،عرض ئې اوكړوچي مااسلام راوړې دې اوځماقوم ځمادَاسلام نه ناخبره دي،تاسوماته حكم اوكړئ چي څه دَاسلام څه خدمت اوكړم،دې ډير ذهين اوپوهه سړې وؤ،نبي كريمﷺ ورته اوفرمائيل چي داسې څه صورت جوړكړه چي دا احزاب دَيوبل دَمددنه منحرف شي(الحرب خدعةٌ)حضرت نعيم داسلام راوړلونه مخكښ دَبنوقريظوملگرې اودوست وؤ،دې راغې هغوئ ته ئې اووئيل:چې تاسوته ځمادوستي معلومه ده،اوځمااوستاسومينځ كښ تعلقات هم تاسوته ښه معلوم دي،نودوئ ورته جواب

ورکړو، چې واقعي ته زمونږدوست اوخيرخواه ئی،نوده ورته اووئيل چې ګورئ قريش مکه يازمونږقبيله بني غطفان ستاسوپه شان ندی تاسوخودَمديني اوسيدونکې يئ،مدينه کښې ستاسومالونه اواولادونه دی کچرته دوئ ته شکست اوشي نودوئ به اوتختي لاړبه شي، تاسوبه يواځې پاتې شئ اوبيابه دَمسلمانانوسره مقابله نشئ کولې،نودَدې وجه نه تاسودَاهل مکؤسره ترهغه وخته پورې مه شريك کيږئ ترڅوچې هغوئ تاسوته خپل سرداران اومشران په ضمانت کښې درنکړي،بنوقريظؤدامشوره ډيره خوښه کړله،دې نه بعدبيانعيم بن مسعودﷺ دَقريشوسردارانوته راغې،ابوسفيان وغيره ته ئی اووئيل چې تاسوته معلومه ده چې څه ستا سوملګري يمه اودَمحمّدﷺ نه جدايم،ماته په خفيه ذرائعوسره يوه اطلاع ملاوه شويده په ماحق دی چې څه هغه تاسوته اووايم خوېدې شرط چې څمانوم به چاته نه ښايئ،خبره داده چې بنوقريظه ستاسوسره په معاهدې کولوباندې نادمه شويدي اوحضورﷺ ته ئی داپيغام ليږلې دې چې آياته به مونږنه پدې راضي شي چې مونږتاسوته دَقريشواودَبني غطفان يوڅوسرداران حواله کړو،ته هغوئ قتل کړې اومونږتاسره شريك شو،حضورﷺ ورسره پدې راضي شويدې،نولهذاتاسونه کچرته بنوقريظؤدَڅه کسانومطالبه اوکړه نويوکس ورته هم مه ورکوئ،بيانُعيم خپلې قبيلې ته لاړواوهغوئ ته ئی هم هغه اووئيل چې قريشوته ئی وئيلی وؤ.

شوال سنه(۵ھ) دَخالي په شپه ابوسفيان دَقريشودَطرف نه څه کسان بنوقريظؤته اوليږل اوورته ئی اووئيل:چې مونږسره دَجنګ سامان ختم شويدې،مونږتاسوته منتظريو،راشئ چې په مسلمانانوباندې په يوځائ شريکه حمله اوکړواومعامله ختمه کړو،يهوددَقريظؤورته جواب اوليږلوچې يوخونن دَخالي ورځ ده تاسوته معلومه ده چې مونږپدې ورځ جنګ نه کيږ،بل داچې مونږتاسوسره ترهغه وخته نه يوځائ کيږوچې تاسويوڅوسرداران مونږته ضمانت کښې رانکړئ،هغوئ چې داواؤريدل نويقين ئی راغې چې نعيم واقعي صحيح وئيلی دي،جواب ئی ورته ورکړوچې مونږتاسوته يوکس هم نه درکوؤ،پدې خبره دَدواړوپه مينځ بې اتفاقي راغله،قوت ئی ختم شو،اوالله ﷻ ورباندې يوه سخته تيزه اويخه هوامسلط کړه چې دَهغې پوجه دَهغوئ سامانونه،خيمې وغيره تباه شولې اواوسوزيدلې،حضورﷺ ته چې دااحزابوپه مينځ کښې دَاختلاف اوبې اتفاقئ اطلاع ملاوه شوه نويوصحابي حضرت حذيفهﷺ ئی دَحالاتومعلومولوپاره دَدشمن ځائ ته اوليږلو،حذيفهﷺ چې کله روان شونونبي کريمﷺ ورته دادعااوکړه،(اللّهم احفظه من بين يديه ومن خلفه وعن يمينه وعن شماله ومن

قوله (ومن تحته) حذیفه ﷺ فرمائی چې څه کله هلته لاړم نو اولیدل مي چې اوربلیږي اوخلق ورته خان ګرمه وي، او دَهر طرف نه، واپس ځئ، واپس ځئ، اوازونه راځي، دهوا دَتیزئ پوجه دَځلور وواړه طرفونونه دَهغوئ په خیموکانړي راوریدل، دَخیموپړي شلیدل، اسونه وغیره څناورهلاك کیدل، څه دَهغه ځائ نه واپس راغلم، کله چې نیمي لارې ته اورسیدم نوتقریباً شل (٢٠) سواره کسان چې پټکې ئې تړلي وو ماسره ملاؤشو، هغوئ اووئیل خپل آقا ﷺ ته اووایه چې الله ﷻ دَدښمنانو انتظام کړیدې بې فکره اوسه، ماچې کوم منظر او حالت هلته اولیدل هغه مې حضور ﷺ ته عرض کړل، چنانچه دَبُدهٔ په ورځ ماسپخین نه ورستو کافرانو جماعتونه په تختیدلو شروع شول ابوسفیان چې دَقریشو مکښ مشر وو هغه هم قریشو ته اعلان اوکړو چې (فارتحلوا فانی مرتحِلٌ) دغه شان نورې قبیلې هم واپس اوتختیدلې. حضور ﷺ صحابهٔ کرامو ته دَفتح بشارت ورکړو او دا ئې هم اوفرمائیل: چې دینه پس به کافران په مونږ حمله نشي کولې مونږ به ورباندې حملې کوؤ.

﴿ٱذْكُرُوا۟ نِعْمَةَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾ دې کښې دغې فتحې ته اشاره ته، ﴿إِذْ جَآءَتْكُمْ جُنُودٌ﴾ دکافرانو لښکرې ورنه مراد دي، دَقریشو لښکر چې قیادت ئې ابوسفیان کولو، قبیله بني غطفان چې قیادت یې عیینه کولو، بنوعامر چې قیادت ئې عامربن طُفیل کولو، بنوسُلیم چې قیادت ئې ابوالاعور کولو، بنونظیر چې قیادت ئې حیی بن اخطب کولو، بنوقریظه چې قائدئې کعب بن اسد وو، ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا﴾ دَ (ریحًا) نه مراد باد صبا دې، لکه په حدیث کښې دي (نصرت بالصَبا واهلکت عاد بالدَبور) ﴿وَجُنُودًا﴾ عطف دې په (ریحًا) باندې ای وارسلنا علیهم جنوداً (جنودا) نه مراد لښکرې دَفرشتو دي چې زرفرشتې وې، دوئ اګرچه قتال نو ؤکړې لیکن دکافرانو په زړونو کښې یې رُعب اچولی وؤ، او دا او آزونه به یې کول، واپس ځئ واپس ځئ. ﴿لَّمْ تَرَوْهَا﴾ یعني عمومي طورباندې مونه وې لیدلې، نودَحضرت حذیفه ﷺ لیدل دې سره منافي نه دي. ﴿وَكَانَ ٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا﴾ خطاب مؤمنانو ته دې، مراد دَعملونونه خندق کنستل، صف بندیاني کول وغیره دي.

| |
|---|
| إِذْ جَآءُوكُم مِّن فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنكُمْ وَإِذْ زَاغَتِ |
| كله چه راغلي دالښكري تاسوته دپاسه طرفه ستاسونه اودښكته طرفه ستاسونه اوكله چه وازې پاتې شوي |
| ٱلْأَبْصَـٰرُ وَبَلَغَتِ ٱلْقُلُوبُ ٱلْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِٱللَّهِ ٱلظُّنُونَا۠ ۝ هُنَالِكَ |
| سترګې اوورسيدل زړونه مرونه اوتاسوګمانونه كول په الله جل جلاله باندې مختلف ګمانونه.په دغه مقام كښ |
| ٱبْتُلِىَ ٱلْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا۟ زِلْزَالًا شَدِيدًا ۝ وَإِذْ يَقُولُ ٱلْمُنَـٰفِقُونَ وَٱلَّذِينَ |
| وازميلې شومؤمنان اوو‌جرقولي شوپه جرقولوسختوسره،اوكله چې ويل به منافقانواوهغه كسانوچه |
| فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ إِلَّا غُرُورًا ۝ |
| په زړونودهغوئ كښ مرض وؤ.وعده نه ده كړې مونږسره الله ﷻ اورسول ﷺ دده مګردهوكه |

﴿إِذْ جَآءُوكُم مِّن فَوْقِكُمْ ﴾بدل دې د(اذجاتكم جنود)نه،د(فوقكم)نه مرادمشرقي جانب دې چې دهغې جانب نه بنوغطفان اودوئ ملګري اهل نجد،بنوقريظه،بنونضيرراغلي وؤ.﴿وَمِنْ أَسْفَلَ مِنكُمْ﴾دينه مغربى جانب مراد دې،دى جانب نه قريش،بنوكنانه وغيره راغلى وؤبعض وائى چه فوق اواسفل كنايه ده دځلورو واړوطرفونونه،كمافى قوله تعالى:يوم يغشاهم العذاب من فوقهم ومن تحت ارجلهم (عنكبوت:۵۵)﴿وَإِذْ زَاغَتِ ٱلْأَبْصَـٰرُ﴾يعني متحيري شوې،دډيرحيرانتيا اودخوف په وخت كښ دانسان سترګې وازې وي بنديږي نه.﴿وَبَلَغَتِ ٱلْقُلُوبُ ٱلْحَنَاجِرَ﴾داهم كنايه ده دشدة الرعب اوخوف نه﴿وَتَظُنُّونَ بِٱللَّهِ﴾اى فى حق الله.دا خطاب ياصرف مخلص مسلمانانوته دې.دمسلمانانوتعدادددشمن په مقابله كښ ډيركم وؤ،په ظاهره كښ دفتح څه صورت په نظرنه راتلو،نوپدې وجه بتقضاء بشريت دمؤمنانوپه زړونوكښ مختلف قسمه ګمانونه راتلل،بعضوګمان وؤچې شايدمونږته به فتحه نصيبة نه شي.بعضوداګمان وؤچې كافران به نن ورځ په مدينې قابضه شي.بعضوبه داوئيل چې مونږته به فتح ملاويږي.ياخطاب مسلمانانواومنافقانوواړوته دې،اود﴿ٱلظُّنُونَا۠﴾نه مرادمختلف

قسمه ظنون دي. مؤمنانوبه وئیل هذاماوعدناالله ورسوله وصدق الله ورسوله ، اومنافقانو به وئیل چې: ماوعدناالله ورسوله الاغرورا، ،قرطبي،

﴿هُنَالِكَ ٱبْتُلِىَ ٱلْمُؤْمِنُونَ﴾پدې کښې هم دَغزوهٔ احزاب دَسختوحالاتوتذکره،،هنالك، یاظرف زمان دې.یعني پدغه وخت کښې یاظرف مکان دې یعني پدغه ځاي کښې،دَابتلاء اثرپه زړه اوباطني قوتونوباندې وي اودَزلزال اثرپه ظاهري قوتوباندې،نومطلب داشوچې مؤمنان دَغزوهٔ احزاب په موقع په ظاهري اوباطني دواړه پریشانواوسختوکښې مبتلاوؤ.

﴿وَإِذْ يَقُولُ ٱلْمُنَٰفِقُونَ﴾داتفصیل دې دَظن المنافقون،روایت دې چې دَخندق کنستلوپه وخت کښې یو مضبوط کاڼې صحابه کرامو مخې ته راغې،صحابه کرامو ډیرکوشش اوکړو ،خوماتِ یې نکړو ،نبی علیه السلام یی رااوغوختلو ،نبی علیه السلام په درې ګزاره کښې مکمل مات کړو ،هرګزارسره به یوه رڼا پورته کیده اونبی علیه السلام به داآیت تلاوت کولو .وتمت کلمة ربک صدقاوعدلا(انعام ۱۱۵ )حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه ورنه دې باره کښې تپوس اوکړو نونبی علیه السلام ورته اوفرمایل:اول ګزار سره ماته کسریٰ سلطنت ښارونه او دَ هغې سره اخوادیخوا علاقې اوچتې کړې شوې،او ما پخپلو سترګو اولیدلې، دویم ګزار کښې دَروم سلطنت علاقې اودریم کښې مې حبشې ښارونه اولیدل ،نسائی مختصرا،بعضو روایتو کښې راځي چې منافقینوداواریدل نو اویئ ویل:چې مونږ دلته خندق نشو کنستې،اودې مونږ سره دَفارس اوروم دَ بنګلو وعدې کوی،الطبراني في المعجم الکبیر: ج۱۱ص:۳۷۲،او بعضو منافقینو داوئیل چې دااوګورئ مونږدقضاء حاجت لپاره لرګونته کښې بهرنه شوتلې نوپداسې لويولويوښارونوبه څرنګه قبضه اوکړو ،نودانده مګرتپوله دهوکه ده،

﴿وَٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ﴾دینه مرادیاضعیف الاعتقادمسلمانان دي،یامنافقان دي اوعطف یادَتغایر وصفي دَوجه نه دې یاعطف تفسیري دې﴿مَّا وَعَدَنَا ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ﴾ مراددَوعدې نه وعده مذکوره ده چې مسلمانان به یمن،شام،فارس وغیره ښارونه قبضه کوي.

وَإِذْ قَالَت طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ يَٰٓأَهْلَ يَثْرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمْ فَٱرْجِعُوا۟ ۚ وَيَسْتَـْٔذِنُ

اوکله چه وویل یوې ډلې ددوئ نه اې یثرب والؤ نیشته دې طاقت دمقابلې ستاسونو واپس شئ.او اجازت غوختلو

فَرِيقٌ مِّنْهُمُ ٱلنَّبِىَّ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ وَمَا هِىَ بِعَوْرَةٍ ۖ إِن يُرِيدُونَ

یوې ډلې ددوئ نه د پیغمبرنه ویل به دوئ چې بیشکه کورونه زمونږ خالی دی.اونه دی هغه خالی.اراده نه لری دوئ

إِلَّا فِرَارًا ۝ وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِم مِّنْ أَقْطَارِهَا ثُمَّ سُئِلُوا

مګر د تیښتې.اوکچرې داخل کړې شی په دوئ باندې یولښکرد اطرافو د مدینی نه.بیا درخواست وکړې شی د دوئ نه

ٱلْفِتْنَةَ لَءَاتَوْهَا وَمَا تَلَبَّثُوا۟ بِهَآ إِلَّا يَسِيرًا ۝ وَلَقَدْ كَانُوا۟

د فتنې نو خامخا به راشی دوئ هغې ته اووخت به نه تیره وی په کورونو کښې مګر ډیر کم.اوپه تحقیق سره وؤ دوئ

عَٰهَدُوا۟ ٱللَّهَ مِن قَبْلُ لَا يُوَلُّونَ ٱلْأَدْبَٰرَ ۚ وَكَانَ عَهْدُ ٱللَّهِ مَسْـُٔولًا ۝

چې وعده ئ کړې وه د الله سره مخکښې د دینه چې شاګانې به نه ګرځوې دوئ.او د وعدې د الله به خامخا تپوس کیږی

﴿وَإِذْ قَالَت طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ﴾ضمیرراجع دې منافقانو ته،پدیکښې د منافقانو د یوبل شرارت ذکردې،دوئ به د غزوهٔ احزاب په موقع خلقوته وئیل چې اوس دلته په مورچو کښې اوسیدل ممکن ندي.دلته اوسیدل د مرګ خولې کښې اوسیدل دي،لهذا که ژوند غواړئ نو واپس مدینې ته لاړشئ.﴿يَٰٓأَهْلَ يَثْرِبَ﴾یثرب د مدینې منورې قدیم نوم وؤ.یثرب د عمالقو د نیکه نوم وؤنو پدې وجه مدینې ته به یې یثرب وئیلو،حضورﷺ د هجرت نه ورستو د دې نوم(مدینة الرسولﷺ)شو.اوس ورته یثرب وئیل ګناه دې،په حدیث کښې دي،(من سمّى المدينة يثرب فليستغفرالله هى طابة،هى طابة،هى طابة)اووجه داده چې یثرب مشتق دې د(تثریب)نه،تثریب وئیلی کیږي،ملامتیا او عاروړکول کقوله تعالی:لاتثريب عليكم اليوم(یوسف:۹۲)دلته ورته په قرآن کښې یثرب وئیل بطور حکایت دی د قول د هغوئ نه﴿لَا مُقَامَ لَكُمْ فَٱرْجِعُوا۟﴾مقام یا صیغه د ظرف ده یعنې دلته په میدان جنګ کښې تاسوته اوسیدل مناسب اوممکن ندي،خپل کورونوته لاړشئ چې د مرګ نه بچ شئ،یا مصدر دې او مطلب دادې چې په دین محمّديﷺ

باندې قيام ندې پکاربلکه واپس خپل زوړدين يعني كفراوشرك ته رجوع اوكړئ اوكوم بيعت چې موحضورﷺ سره كړيدې دَهغې نه واپس شئ﴿وَيَسۡتَـٔۡذِنُ فَرِيقٌ﴾ مبدل منه دې اوورستو ﴿يَقُولُونَ﴾ورنه بدل دې.

﴿إِنَّ بُيُوتَنَا عَوۡرَةٌ﴾يعني زمونږكورونه خالي غيرمحفوظ دي ځكه چې نارينه پكښ نشته،يا(عورة)پخپلې اصلي اولغوي معنى كښ دې،يعني زمونږكورونه ناقص دي،ديوالونه ئې واړه اوكچه دي نوهسې نه چې احزاب راشي اووړداخل شي،ياييځ مطلب داوچې دَآبادئ نه لرې دي،حالانكه دَدوئ هيڅ عذرنه وؤمقصدئې صرف دَجنګ نه تختيدل وؤ،﴿وَلَوۡ دُخِلَتۡ عَلَيۡهِم مِّنۡ أَقۡطَارِهَا﴾اقطاردَقطرجمع ده،جانب ته وائې اى من اطرافها،دادَمنافقانو دَنفاق اوخبث باطن مثال دې،چې كچرته دَمديني دَاطرافونه خلق راشي اوپه مسلمانانوباندې حمله اوكړي اودوئ ته هم دَمسلمانانو خلاف جنګ كولودعوت وركړي نودوئ به فوراً دَهغوئ دعوت قبول كړي،داعذراوبهانه به ورته نكوي چې زمونږكورونه خالي دي،تاسوته چې دغه عذركوي نوداحقيقي عذرنه دې بلكه دَخپل نفاق دَ وجهې نه ئې كوي.﴿ٱلۡفِتۡنَةَ﴾ نه مراد مسلمانو خلاف جنګ دې،يعنى دوئ نه دَ مسلمانانو خلاف دَرخواست اوشى،﴿لَأٓتَوۡهَا﴾ نوفورا به دا درخواست قبول كړې،﴿وَمَا تَلَبَّثُواْ بِهَآ﴾ ضمير مجرور راجع دې، الفتنه ته يا بيوت ته يعنى بيا به دوئې جنګ كښ تاخير نه كوي،اوكورونو كښ به نه حصاريږى،بلكه فورابه اوځي ﴿إِلَّا يَسِيرٗا﴾مراد سرعت او جلدى ده.

بعضِ مفسرين وائى چې مرادورنه ارتداددې،يعني كچرته دوئ نه دكفرته واپسئ مطالبه اوكړيشي نوبنه په آسانئ سره به ئې قبوله كړي،پدې صورت كښ به ضميردَ(بها)مديني ته راجع وي،يعني دَارتدادنه ورستوبه بيادوئ په مدينه كښ نشي اوسيدلې.

﴿إِلَّا يَسِيرٗا﴾مګرلږساعت،يابه ئې اللهﷻ هلاك كړي يابه ئې دَمسلمانانوپذريعه دَمديني نه اوباسي(البحرالمحيط) ﴿وَلَقَدۡ كَانُواْ عَٰهَدُواْ ٱللَّهَ مِن قَبۡلُ﴾اى من قبل غزوة الخندق،

پدې آيت کښې دَهغه بعضِ منافقانو ذکر دې چې په غزوهٔ بدر کښې ئې شرکت نه وو کړې، کله چې الله ﷻ هلته مسلمانانو ته فتحه ورکړه نو بيا دوئ افسوس نه کول او وئيل به يئ چې کچرته بيا داسې موقع راشي نو مونږ خامخا دَمسلمانانو سره جنګ ته ځو، ليکن چې موقع راغله نو بيائې فرار اختيار کړو.

﴿وَكَانَ عَهْدُ اللَّهِ مَسْئُولًا﴾ يعنې دَالله ﷻ سره کړې شوې عهد باره کښې به الله ﷻ دَقيامت په ورځ تپوس کوي او په عدم وفاء باندې به سزاور کوي، تعبير په ماضي سره دَوجې دَيقين فى الوقوع نه شويدې.

| |
|---|
| قُلْ لَّنْ يَّنْفَعَكُمُ الْفِرَارُ اِنْ فَرَرْتُمْ مِّنَ الْمَوْتِ اَوِ الْقَتْلِ وَاِذًا |
| اووايه ته (اې پيغمبره!) هرګز نفع نه درکوي تاسو ته تختيدل کچرته وتختئ تاسو دمرګ نه يا دَقتل نه او په دغه وخت کښې |
| لَّا تُمَتَّعُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۱۶﴾ قُلْ مَنْ ذَا الَّذِيْ يَعْصِمُكُمْ مِّنَ اللّٰهِ |
| تاسو ته به نفعه نشي درکولې مګر ډيره کمه، او وايه ته (اې پيغمبره!) چه څوک دې هغه ذات چې بچ کړی تاسو دَالله ﷻ دَ عذاب نه |
| اِنْ اَرَادَ بِكُمْ سُوْٓءًا اَوْ اَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً |
| که اراده وکړي الله تاسو ته دَتکليف رسولو او يا څوک دې چه تاسو نه دخدائ رحمت لرې کړي که الله اراده وکړي په تاسو درحمت |
| وَلَا يَجِدُوْنَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۷﴾ قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ |
| او نه به مومي دوئ دځپل ځان لپاره ماسوا دَالله ﷻ نه دوست او نه مددګار، په تحقيق سره معلوم دی الله ﷻ ته |
| الْمُعَوِّقِيْنَ مِنْكُمْ وَالْقَآئِلِيْنَ لِاِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ اِلَيْنَا ۚ وَلَا يَاْتُوْنَ الْبَاْسَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۱۸﴾ |
| منع کونکی دستاسو نه او وئيونکی رونړو خپلو ته چه راشئ مونږ ته، او نه راځي جنګ ته مګر لږ. |

﴿قُلْ لَّنْ يَّنْفَعَكُمُ الْفِرَارُ﴾ دامنافقانو ته خطاب دې او دهغوئ بذدلی بيان دې چې کچرته تاسو دَجنګ نه دَمرګ او قتل دَخوف پوجه تختئ، نو دا تاسو ته هرګز فائده نه درکوي، ځکه چې دَمرګ نه په هيڅ صورت کښې مفر نشته. ﴿وَاِذًا لَّا تُمَتَّعُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا﴾ يعني که بالفرض والمحال

تاسوته فرارفائده درکړي نودابه هم عارضي فائده وي ډيره لږه زمانه به وي، ﴿قُلْ مَن ذَا ٱلَّذِى يَعْصِمُكُم﴾ استفهام په معنىٰ دَنفي سره دې، ای لااحدیمنعکم یعني کچرته الله ﷻ ستاسو دَهلاکولوٰاراده وکړي جنګ ته تللو نه بغير، ياځه بل څه نقصان دررسول اوغواړي نوبيامو هم هيڅ څوك نشي بچ کولې نودَجنګ نه تختيدلو کښې څه فائده ده؟

﴿أَوْ أَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً﴾ دينه مخکښې عبارت مقدردې،تقدیردَعبارت دارنګه دې،اویصیبکم بسوءٍ ان اراد الله بکم رحمةً،یعني کچرته الله ﷻ په تاسورحم کرم کول اوغواړي نوڅوك به تاسوته تکليف درور سوي،یااو(منْ ذالذی یمنعُ رحمة الله منکم ان اراده الله...) ﴿قَدْ يَعْلَمُ ٱللَّهُ ٱلْمُعَوِّقِينَ﴾ دَعوق"نه دي رکاوټ ته وائي،ای المثبطین،مانعین،روکاوټ جوړه ونکي، پدې آيت کښې زجردې منافقانوته چې خپله هم دَ بزدلی پوجه جهادته نه تلل او خلق به يې دَجهادنه منع کولولکه يوروايت کښې راځي چې دَخندق په موقعي يومخلص مسلمان دَخپل سکه وروروخواته لاړونواوئ ليدل چې هغه وريته شوي غوښه خوړله اونبيذالتمرورسره وؤ،نوده ورته وويل چې:الت هٰهناورسول الله ﷺ بين الرّماح والسيوف،یعني ته دلته يئ اورسول پاك ﷺ دَنيزواودَتوروپه مينځ کښې دي،نوورورورته اووئيل چې هَلُمّ الیّ فقداحیط بك یعني ته هم راځه څماخواته، ځکه چې تاسوپه داسې حال کښې راګيرشوی يئ چې تاسودَهغې مقابله نشئ کولې،نودې مخلص مسلمان ورور ورته اووئيل چې ته کاذب ئې اوځه به ددې خبرې اطلاع حضور ﷺ ته ورکومه،﴿لِإِخْوَٰنِهِمْ﴾مرادترينه وطنی او قومی رونړه دی،نسبی رونړه ترينه هم مراداغتسې کيدي شی، «هلُمّ» اسم فعل دي پمعنیٰ دَاحضِراو"ایت" سره،دَاهل حجازپه نيز(چې دَدوئ په لغت قرآن نازل شويدي)پديکښې واحد ،تثنيه اوجمع برابردی نودَدي وجه نه هلم ذکرشواو هلموا ذکرنه شو ،﴿وَلَا يَأْتُونَ ٱلْبَأْسَ إِلَّا قَلِيلًا﴾ دَدي دوه مطلبه کيدې شي،یوداچه دَډيرکم وخت لپاره جنګ ته رااوځي،يعني دَرياکارئ اوشهرت دپاره خوراشي خوچې کله جنګ ګرم شي اوهرسړې په جنګ کښې اخته شي،نودوئ په داسې حالت کښې خپې سپکې کړې اووتختي،(۲)يامطلب دادې چې دوئ کله ګنه اوډيرلږجهادته راځي اکثراوبيشترعذرونه کوي اوجهادنه ځان پاتې کوي.

| |
|---|
| اَشِحَّةً عَلَيْكُمْ ۖ فَاِذَا جَآءَ الْخَوْفُ رَاَيْتَهُمْ يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ تَدُوْرُ اَعْيُنُهُمْ |
| بخل کونکی دی په تاسو باندې،کله چې راشي يره وينې به ته دوئ چه ګوري به تاته،اوړی را اوړی سترګې ددوئ |
| كَالَّذِيْ يُغْشٰى عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۚ فَاِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوْكُمْ |
| پشان دهغه سړی چې په هغه باندې بې هوشی راوستلې شوې وی دمرګ،پس کله چه لاړه شي يره درځی په تاسو |
| بِاَلْسِنَةٍ حِدَادٍ اَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ ۚ اُولٰٓئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوْا فَاَحْبَطَ اللّٰهُ |
| په ژبو تیرو سره،بخیلان دی په خیر(مال غنیمت)باندې،دغه کسان،دوئ ایمان نه دې راوړي نوبرباد کړل الله ﷻ |
| اَعْمَالَهُمْ ۚ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿۱۹﴾ يَحْسَبُوْنَ الْاَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوْا ۚ |
| عملونه ددوئ اودې دا کار په الله ﷻ باندې آسان،ګمان کوی دوئ په لښکرو دکافرانو چه نه دی تلی هغوئ، |
| وَاِنْ يَّاْتِ الْاَحْزَابُ يَوَدُّوْا لَوْ اَنَّهُمْ بَادُوْنَ فِى الْاَعْرَابِ يَسْاَلُوْنَ عَنْ اَنْۢبَآئِكُمْ ۖ |
| اوکه بیا راشي دغه لښکرې نو تمنا به کوي دوئ چه آرمان دوئ اوسیدونکی وې په باندو کښ،تپوس به کولې،ستاسو د حالاتو، |
| وَلَوْ كَانُوْا فِيْكُمْ مَّا قٰتَلُوْٓا اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۲۰﴾ |
| اوکه چرې وې دوئ په تاسو کښ نو نه به وزجنګ کړې دوئ مګر لږ |

﴿اَشِحَّةً عَلَيْكُمْ﴾ دې کښ د منافقینو بل قبیح وصف بیان دې،چې هغه بخل دې،یعنی اول خودوئ تاسو سره په جهاد کښ شریک کیږی نه او که شریک شی نو صرف ریاکاری اوخودنه ئی مقصود وي،دالله تعالی په لار کښ تاسو سره نه جاني تعاون ته تیار وي،او نه مالی تعاون ته تیار وي،دواړو لحاظ سره دوئی بخل کوي،اشحّةجمع ده شحیح ده، منصوب بنا بر ذم دې،یاحال دې دیاتونضمیرنه، ﴿فَاِذَا جَآءَ الْخَوْفُ﴾داتفریع ده په وصف جبن باندې،یعنی په وخت دجنګ کښ داسې وي لکه په چاباندې چې سکرات الموت طاري شوي وي﴿كَالَّذِىْ يُغْشٰى﴾ای کدوران الذی....یا کنظر الذی یغشی...﴿فَاِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ﴾دا په وصف شح باندې تفریع ده،چې کله جنګ ختم شی اومال غنیمت تقسیمیدو وخت راشي نو بیادوئ دهرچانه

مخکښې وي اوپه هره طريقې سره خپل حق اواستحقاق ثابتوي.﴿سَلَقُوكُم بِأَلْسِنَةٍ﴾زبان درازي او سپکې څپورې ويلوته وائي،مطلب دادې چې بياتاسوته طعنې درکوي اووائي چه تولـه توره خومونږه اوکړه،تاسوزمونږنه زيات په غنيمت کښې حق دارنه يئ،لهذامونږته زيات مال راکړئ.﴿أَشِحَّةً﴾منصوب بنا برذم دې اوياحال دې د"سلقوکم"ضمير مرفوع نه "الخير"نه مرادغنيمت دې﴿أُولَٰٓئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوا﴾ يعني بنياداواساس دَدې صفاتوذميموؤ،دَدوئ عدم ايمان دې.﴿فَأَحْبَطَ ٱللَّهُ أَعْمَٰلَهُمْ﴾سوال واردېږي چې دَاعمالودارومدارخوپه ايمان دې،هرکله چې دوئ مؤمنان نه دي نواعمال ئې هم هدردي، نوبيادَاحباط څه معنىٰ ده،جواب(۱)احباط نه مرادعدم قبوليت دې،فصارت کالمحبطة(۲)يا مراددَاعمالونه هغه عملونه دي چې دوئ نفاقاًوتصنعاًکړي وي،اواحباط نه مرادپه دنياکښې فائده نه حاصليدل دي،(۳)يا﴿فَأَحْبَطَ ٱللَّهُ﴾معنى دَاظهرالله سره دې،يعني دَدوئ اعمال چې نفاق وغيره دى الله ﷻ ظاهرکړل.﴿وَكَانَ ذَٰلِكَ﴾يعني دَحبط دَاعمالو.

﴿يَحْسَبُونَ ٱلْأَحْزَابَ﴾دېکښې هم دَمنافقينو بزدلئ بيان دې. يعني دوئ دومره بزدله دي چې کله دوئ ته اووئيلې شي چې احزاب لاړل نودوئ داگمان نه کوي چې دااحزاب به دَمسلمانانو دَقتل نه بغيرلاړشي.﴿وَإِن يَأْتِ ٱلْأَحْزَابُ﴾کچرته بالفرض احزاب دوباره راشي نودامنافقين به داتمنا کوي چې کاش مونږدَمديني په باندوکښې اوسيدلې اودَمسلمانانوپه باره کښې ورته صرف معلومات کيدلې،چې دَجنګ څه انجام دې اوعملې کارمو،نه کولې.﴿وَلَوْ كَانُوا فِيكُم﴾ يعنى که دامنافقان تاسره يوځائ هم شي نوبياهم تاسوسره په جهادکښې حصه نه اخلي مګرلږساعت لپاره.

| |
|---|
| لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِى رَسُولِ ٱللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُوا ٱللَّهَ |
| په تحقيق ده ستاسودپاره په ذات دَرسول دَالله ﷺ کښې نمونه(اقتدا)ښائسته، هغه چالره چه دي اميدلرونکې دَالله ﷻ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْيَوْمَ | الْآخِرَ | وَذَكَرَ | اللهَ | كَثِيرًا ۝ |
| اودورځې | دآخرت | اویاده | وي | الله جل جلاله دیر. |

﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ﴾ پدې آیت کریمه کښې دَاتباع درسول پاک ﷺ ترغیب دې، چې رسول پاک ﷺ دَاعلاء کلمة الله لپاره لوږې تیره وې، خیټې مبارکې پورې کانړې تړې، احد کښې ئې مبارک غابښونه شهیدان کیږې، مخ مبارك ئې زخمي کیږې، محترم تره ئې شهید کیږې، پخپله په نفس نفیس خندق کنستلو لپاره میدان ته راځې تاسو هم په صبر او ثبات کښې دَهغه اقتداء اوکړئ. آیت کریمه اګرچه دَغزوۂ احزاب په موقع نازل دې په معاملې دَجهاد کښې لیکن مفهوم ئې عام دې، دَژوندهرشعبه کښې دَحضور ﷺ اتباع مراد ده، عباداتو، معاملاتو، ماکولاتو، مشروباتو، ملبوساتو، حرکاتو، سکناتو، حرکاتو وغیره کښې دَدغه جامع الصفات، ومنبع البرکات ذات اتباع لازمي ده، هذه الاية الكريمة اصل كبيرفي التاسي برسول الله ﷺ في اقواله وافعاله واحواله... (ابن کثیر) ﴿أُسْوَةٌ﴾ یا مصدر دې په معنیٰ دَقدوة، یا په معنیٰ دَ"مایؤتسیٰ به" چې اقتداء وریسې کیږې اودَخلقو لپاره نمونه وي، ﴿لِّمَن كَانَ يَرْجُوا اللَّهَ﴾ یا بدل دې دَ(لکم) نه یعني چې کوم خلق دَالله جل جلاله نه یریږي اودآخرت دَسختي ورځې نه، نوهغوئ لپاره دَحضور ﷺ په اتباع کښې بهترینه نمونه ده، یاتخصیص بعد التعمیم دې، ﴿وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾ یعنی هرحال کښې ئې الله جل جلاله یادوي که خوشحالي وي که غم، صحت وي که مرض، دینه واضحه شوه چې دَحضور ﷺ دَاتباع اهمیت به هغه چاسره وي چې دغه مذکوره صفات پکښې وي، څوك چې دَدغه صفاتو نه محرومه وي نواتباع دَرسول پاك ﷺ نه به هم محرومه وي.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَمَّا | | رَأَ | الْمُؤْمِنُونَ | الْأَحْزَابَ | | قَالُوا | | هَٰذَا |
| اوکله | چه | اولیدل | مؤمنانولښکرې | دکافرانو، نوورېل | دوئ | چه | داهغه | دی |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | وَعَدَنَا | اللَّهُ | وَرَسُولُهُ | وَ | صَدَقَ | اللَّهُ | وَرَسُولُهُ ۥ |
| چه وعدهٔ | ئې کړیوه | مونږسره | الله جل جلاله اورسول | دَهغه | اورشتیاویلي | دي الله جل جلاله | اودهغه رسول، |

وَمَا زَادَهُمْ إِلَّآ إِيمَٰنًا وَتَسْلِيمًا ﴿۲۲﴾

اوزيات نکړو دوئ لره مگر ايمان او تابعداري،

﴿وَلَمَّا رَءَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلْأَحْزَابَ﴾ دمنافقينو صفاتو بيان نه ورستو اوس بطورتقابل مؤمنانو صفات بيانيږي.يعنى دَ منافقينو برعکس کله چې صحابه کرامو اوليدل چې قريش يواځې په مديني باندې حمله ته ندى راغلى بلکه دَخان سره ئى دَقبائلو لښکرې هم راروانې کړيدي نوګبراؤنه شول بلکه نورئى هم ايمان اويقين زيات شو،﴿قَالُوا۟ هَٰذَا﴾مشاراليه هغه حالات اوتکليفونه دي کوم چې صحابه کرامو پدغه موقع اوليدل،﴿مَا وَعَدَنَا ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ﴾ماموصوله ده اومراد دَوعدې نه دَنصرت اوغلبى وعده ده چى امتحاناتو اوتکليفاتو نه ورستوراځى لکه چې په سورة بقرة (۲۱۴)«ام حسبتم ان تدخلوا الجنّة ولّمايأتکم مثل الّذين خلوامن قبلکم....الا ان نصر الله قريب»کښ ذکرده.﴿وَصَدَقَ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ﴾اى ظهرصدقهما،يعني منافقانوخودَدشمن کثرت اوسخت حالات ليدلوسره وئيلى وؤچې«ماوعدناالله ورسوله الّاغرورا»ليکن مسلمانانوچې دغه حالات اوکتل نووئيل چې الله ﷻ اورسول دَهغه چې کومه وعده کړې وه چې دَابتلاء اوازمائش نه ورستوبه درته فتح ملاويږي،نوهغه صادقه وه،ظهورئى اوشو،﴿وَمَا زَادَهُمْ إِلَّآ إِيمَٰنًا﴾يعني دغه حالاتو ئى ايمان متزلزل نه کړلو،بلکه په الله ﷻ اودَهغه په وعدوئى نورهم اعتمادزيات شو.

| |
|---|
| مِّنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا۟ مَا عَٰهَدُوا۟ ٱللَّهَ عَلَيْهِ ۖ فَمِنْهُم مَّن |
| ځنى دَمؤمنانونه داسى سړى دي چه پوره ئ کړه هغه وعده چه دَالله ﷻ سره ئ کړيوه،پس بعضې ددوئ نه هغه وؤچه |
| قَضَىٰ نَحْبَهُۥ وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ ۖ وَمَا بَدَّلُوا۟ تَبْدِيلًا ﴿۲۳﴾ |
| پوره ئ کړو نذرخپل اوبعضې ددوئ نه هغه دي چه انتظارکښ دي،اونه يى ده راوستې خپلو وعدوکښ هيڅ قسم تبديلى |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِّيَجۡزِىَ | اللّٰهُ | الصّٰدِقِيۡنَ | بِصِدۡقِهِمۡ | وَيُعَذِّبَ | الۡمُنٰفِقِيۡنَ |
| دپاره ددې | چه بدله ورکړي الله ﷻ | رښتنوته | دهغوئ د رشتيا | اوعذاب ورکړي | منافقانوته |

اِنۡ شَآءَ اَوۡ يَتُوۡبَ عَلَيۡهِمۡ‌ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوۡرًا رَّحِيۡمًا ۞ وَرَدَّ اللّٰهُ

که وغواړي هغوئ ته عذاب ورکول اوياتوفيق دتوبې ورکړي هغوئ ته،بيشکه الله بخښونکي مهربانه دې اوواپس کړل الله

الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا بِغَيۡظِهِمۡ لَمۡ يَنَالُوۡا خَيۡرًا‌ ؕ وَكَفَى اللّٰهُ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ الۡقِتَالَ‌ؕ

هغه کسان چه کفرئې کړې وؤسره دخپلې غصي نه،او يې نه موندلو هيڅ خير،اوکافي شو الله ﷻ مؤمنانولره دجنګ نه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَكَانَ | اللّٰهُ | قَوِيًّا | عَزِيۡزًا | ۞ |
| اودې | الله ﷻ | قوي | غالب، | |

﴿مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ رِجَالٌ صَدَقُوۡا﴾دا دويم تقابل دې،چې منافقينو الله سره وعده کړې وه،خو چې کله دَ جنګ موقع راغله نو بيايئ بزدلي اوخودله اوجهاد کښې شريک نه شول،اومؤمنانو هم دغه وعده کړيوه،خوهغوئ وعده خلافي اونکړه،بلکه په خپلې خبرې ثابت قدم ادريدل څنې پکښې شهيدان شو اوځنې لاتراوسه شهادت جام ته تږي په ميدان ګرځي،صحابه کرامو ژوند دَداسې مثالونونه ډک دې،انس بن نضر ﷺ دَبدرپه جنګ کښې شرکت نه وؤکړې حضور ﷺ ته ئې عرض اوکړو،لئن اشهدني الله قتال المشركين ليرين الله ماصنع،يعني که چرته الله ﷻ څه په قتال دَمشرکانو کښې حاضرکړم نوالله ﷻ به اووينې چې څه څه کوم،نوچې کله دَاحدجنګ شروع شواوپه هغې کښې مسلمانان يوبل طرف منتشرشول،نوده اوئيل:اللّٰهم انى اعتذراليك مماصنع هؤلآء اوبيامخکښې شواوئې ليدل چې يوبل صحابي حضرت سعدبن معاذ ﷺ راروان دې هغه ته ئې اووئيل:ياسعداين اين؟ واهاالريح الجنة اجدُهادون اُحدٍ،چرته ځې،په الله ﷻ مې دې قسم وي چې ماته دَجنت خوشبوئې دَاحددَغرنه راځي،دائې اووئيل اوتوره خوئې په لاس کښې وه،دکافرانوپه ګڼړه کښې ورننوتلو،ترڅوچې شهيدشوې نه وؤواپس نه شو،دَشهادت نه پس دَهغه بدن اوکتلې شونودآتيا(۸۰)نه زيات زخمونه دَغشواودَتورو ورباندې وؤ .خورئې دې دګوتوپه بندوسره اوپيژندلو ،

﴿فَمِنْهُم مَّن قَضَىٰ نَحْبَهُۥ﴾نحب وئيلی کيږي نذرته،دلته مستعاردي په استعاري تصريحيه سره دپاره دمرګ ځکه چې مرګ هم دنذر په شان لازم وي،يعني بعضِ صحابه هغه دی چې کوم نذرئې منلي ووچې(لئن اشهدني الله...) هغه ئې پوره کړواوجام دشهادت ئې نوش کړو.

﴿وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ﴾بعضې داسې دي چې تراوخه ئې شهادت ندې نصيب شوې ليکن انتظاردشهادت کوي، روايت کښ دي چې طلحه په باره کښ حضورﷺ فرمائيلي ووچې: هذا ممّن قضىٰ نحبه ...ي اګرکه پدغه وخت کښ نه ووشهيدشوې ليکن په غزوهٔ احدکښ ئې حضـ ـﷺ دکافرانونه پخپل لاس سره بچ کړې وو،خپل لاس ئې ډهال ګرځولې ووډکافرانو دغشو،لاس ئې دغشودلږيدلوپوجه شل شوې وو،سنه(۳۰ه)کښ جنګ جمل په موقع شهيدشو ﴿وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا﴾دزمانی په تيروسره يې خپلوارادو،عزائمو او وعدوکښ څه بدلون ندې راوستې،بلکه هغه شان ټينګ په خپل موقف ولاړ دی.

﴿لِّيَجْزِيَ ٱللَّهُ ٱلصَّٰدِقِينَ﴾داثمره اوغايه ده،دتقابل.يعنی الله تعالی د غزوه خندق په موقع دومره سخت حالات ځکه راوستو چې د ريشتنی مؤمنانواودمنافقانو پته اولګی،اوبيا ريشتنی مؤمنانو ته د هغوئی عمل بدله او منافقانوته د هغوئی دمنافقت سزاورکړي

﴿وَيُعَذِّبَ ٱلْمُنَٰفِقِينَ إِن شَآءَ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ﴾مشيت تعلق توبې سره دي،يعنی الله تعالی که اوغواړی نونفاق په حالت کښ به ورله مرګ درکړی.اودجهنم اوربه پرې لازم اوګرځی،اوکه اوغواړی نوتوبې توفيق به ورله ورکړی.اوعذاب نه به بچ کړی،لهذاداشکال نشی کيدې چې نفاق خودکفر سخته درجه ده،نفس کفر باندې عذاب حتمی اولازمی دې،نو نفاق باندې ولې حتمی اولازمی اونه ګرځيدو،﴿وَرَدَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا بِغَيْظِهِمْ﴾پدې کښ تفصيل دې دهغه انعاماتوچې په غزوهٔ احزاب کښ اللهﷻ په مسلمانانوباندې کړی وو،چې دهغې اجمالأذکريه(اذکروالعمة الله)کښ شوې دې،دلته پنځه(۵)انعامات ذکرکيږي،اول داچې﴿وَرَدَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ﴾يعنې اللهﷻ کافران بغيردفتحې اودځه ميلاويدونه اوسره دغصې،غضب نه واپس کړل،دويم:﴿وَكَفَى ٱللَّهُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ٱلْقِتَالَ﴾اللهﷻ مسلمانان دجنګ نه بچ کړل اوپخپل غيبي

قوت لکه هوا او دَفرشتو په لښکرو سره ئی دَهغوئ نصرت اوکړو.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاَنۡزَلَ | الَّذِيۡنَ | ظَاهَرُوۡهُمۡ | مِّنۡ | اَهۡلِ الۡكِتٰبِ | مِنۡ صَيَاصِيۡهِمۡ | وَقَذَفَ |

اوراکوزئ کړل هغه کسان چه مددئ کړي وؤدلښکرودَاهل کتابونونه دَقلاګانوخپلونه.اوويې غورزوله

فِىۡ قُلُوۡبِهِمُ الرُّعۡبَ فَرِيۡقًا تَقۡتُلُوۡنَ وَتَاۡسِرُوۡنَ فَرِيۡقًا ﴿۲۶﴾ وَاَوۡرَثَكُمۡ اَرۡضَهُمۡ

په زړونودِدوئ کښې يره،يوه ډله تاسوقتل کوله اوقيدکوله تاسوبله ډله.اوپه ميراث يې درکړه تاسوته زمکه دهغوئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَدِيَارَهُمۡ | وَاَمۡوَالَهُمۡ | وَاَرۡضًا | لَّمۡ | تَطَـُٔوۡهَا ؕ |

اوکورونه دهغوئ اومالونه دهغوئ اوپه ميراث کښې به درکړي داسې زمکه چه تاسوقدم نه دې ايخودلې په هغې باندې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَكَانَ | اللّٰهُ | عَلٰى | كُلِّ | شَىۡءٍ | قَدِيۡرًا ﴿۲۷﴾ |
| اودې | اللّٰه جَلَّ جَلَالُهُ | | په | هرڅيزباندې | قادر |

﴿وَاَنۡزَلَ الَّذِيۡنَ ظَاهَرُوۡهُمۡ﴾دريم انعام:هم ضميراحزابوته راجع دې،يعني کوموخلقوچې دَمسلمانانوسره غداري کړي وه يعني بنوقريظه اودَاحزابوملګرتيااوتعاون ئې کړې وؤ،هغوئ هم دَمسلمانانوپه لاسونو قتل شو﴿مِّنۡ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ﴾يعني بنوقريظه﴿مِنۡ صَيَاصِيۡهِمۡ﴾صياص جمع دَصيصة ده،هرهغه څيزته وائی چې په هغې سره سړې دَځان دفاع کوي،دې وجې نه دَغوايه ښکرته هم صيصة وائی،دلته ترينه مراد دَهغوئ قلعې دي.

پدې آياتونوکښې دَبنوقريظه سره دَغزوې ذکردی چې دَهغې مختصربيان داسې دې چې کله دَغزوۀ احزاب نه پس حضورﷺ اومسلمانان خندق نه مديني ته لاړل اوخپلې اسلحې ئی کيخودلې،حضورﷺ دَغسل اراده وه،دې کښې حضرت جبرائيل عليه السلام پخپل آس حيزوم باندې راغې اووئی وئيل:يارسول اللهﷺ وضعتَ السلاح،انّ الملائكة لم تضع السّلاح،انّ الله تعالى يامرك بالسيرالى جانب بني قريظه واناعامدٌ اليهم،يعني تاسوخپلې اسلحې کيخودلې،فرشتوتراوخه پورې خپلې اسلحې ندې کيخودلې،الله پاک جَلَّ جَلَالُهُ امرکوی تاته چې بنی قريظه ته لاړشئ اوپه هغوئ حمله اوکړئ اوځه هم هلته ځمه،بنوقريظه هغه يهوديان وؤچې دَمديني منورې نه درې ياڅلورميله فاصلې باندې اوسيدل،دَبني نظيراوبني قينقاع په شان ئی دَحضورﷺ سره

معاهده کړې وه، چې مونږتاسوبه دَيوبل سره جنګ هم نه کوؤاوکچرته په مديني باندې څوک حمله کوی نوټول به ئی په شريکه دفاع کوؤ، بني قينقاع په غزوهٔ بدرکښ دامعاهده ماته کړه چې هغوئ ته دَدې سزاملاؤشوه، بني نظيرهم دَخپلې عهدشکنئ په وجه دَمديني نه جلاوطن شوی وؤوبنوقريظؤپه غزوه احزاب کښ دامعاهده ماته کړه اودَاحزابوسره يوځائ شول، نودَغزوهٔ احزاب نه بعدحضورﷺ دَهغوئ سره دَجنګ دَپاره روان شو. خپلوصحابؤته ئی اعلان اوکړوچې:لايصلّين احدكم العصرالاّفى بني قريظه، يعني مازيګرمونځ به په بني قريظه کښ کوؤ، صحابه کرام ټول جهادته تيارشول، بنوقريظه طرف ته روان شول په لاره کښ دَمازيګردَمونځ وخت راغې نوبعضِ صحابؤظاهردَحکم دَحضورﷺ ته اوکتل اوپه لاره کښ مونځ اونه کړوبلکه مونځ ئی قضاشواومقرره ځائ ته ورسيدل، اوبعضِ صحابؤ مقصددَحکم ته اوکتل اومونځ ئی اوکړو، حضورﷺ په دواړوجماعتونوباندې عتاب اوخفګان اونه کړو، دَوجې دَاجتهاد دَدوئ دواړونه، صحابه کرام او حضورﷺ دَبنوقريظؤعلاقوته ورسيدل، بنوقريظؤته چې اطلاع ملاؤشوه نوخپلوقلعوکښ بندشول، حضورﷺ تقريباًپنځويشت(۲۵)ورځوپورې دَدوئ محاصره اوکړه، کله چې بنوقريظؤته يقين اوشوچې حضورﷺ دَدوئ نه نه واپس کيږي نودَدوئ سردارکعب بن اسدورته اووئيل چې څه تاسوته درې خبرې پيش کومه چې کومه ستاسوخوښه وي قبوله ئی کړئ، يوه داچې مونږبه حضورﷺ باندې ايمان راؤړوځکه چې دَهغه حق والې تاسوته معلوم شويدې هغوئ داقبوله نکړه، کعب ورته اووئيل چې دانه منئ نوداسې به اوکړوچې خپلې ښځې اوبچې به اول قتل کړوچې بې فکره شو، بيابه دَحضورﷺ سره مقابله اوکړو، که ناکامه شونودَښځوبچوفکربه نه وي اوکه کامياب شونوښځې ډيرې دي، ليکن هغوئ داهم قبوله نکړه، کعب ورته اووئيل چې داهم نه منئ نونن دَخالي شپه ده، مسلمانان به زمونږ دَحملي نه غافله وي چې دَخالي په شپه مونږبه دوئ حمله نه کوؤ، دَمسلمانانودَدې غفلت نه به فائده واخلواوحمله به پرې اوکړو، هغوئ داهم قبوله نکړه اوورته ئی اووئيل چې خمونږمشران دَدې ورځې دَبې حرمتئ پوجه بيزوګان شوي وؤ بياهم ته مونږته دَدې ورځې بې حرمتئ حکم کوي، دينه بعدبنو قريظؤحضورﷺ ته پيغام اوليږلوچې ته مونږته ابولبابهؓ رااوليږه(ابولبابهؓ انصاري صحابي وؤدَده قبيله په جاهليت کښ دَبنوقريظؤحليف وه، نودَيهوديانوداخيال وؤچې ابولبابهؓ به زمونږپه حق کښ رعايت اوکړي نونبي کريمﷺابولبابهؓ اوليږلو، نودَبني

قریظوټولونبڅې،بچي ورته جمع شول،جړاګانې ئی ورته شروع کړې اوده نه ئی داتپوس وکړوچې که مونږدنبي کریمﷺ په حکم دخپلو قلعونه نزول اوکړونوآیانبي کریمﷺ به زمونږپه حق کښې څه نرمي اوکړي،نوابولبابهؓ ته خودنبي کریمﷺ رائ معلومه وه اودبنوقریظودَ فریادنه متاثره شونوهغوئ ته ئی اشاره اوکړه اوپخپله مرئ ئی دتوري په شان لاس راخکلو. مقصدئی داوؤچې نبي کریمﷺ تاسوذبح کوي،نوګویاچې دنبيﷺ رازئی ښکاره کړو،نو فوراًپښیمانه شواولاړودمسجدنبوي په یوستنه پورې ئی ځان اوتړلواوقسم ئی اوکړوچې ترڅوپورې خُماتوبه نه وي قبوله شوي نوترهغې پورې به په دې حالت باندې یمه،اګرکه پدې حالت کښې مرهم شمه،نبي کریمﷺ چې خبرشونوونئی فرمائیل:آمالوجاءني لاستغفرتُ له فامّااذافعل فماانابالّذي الطلقه من مکانه حتی یتوبَ الله علیه،یعني کچرته دې اول ځل څماخواته راغلې وې نومابه ورله استغفارکړې وې،لیکن اوس چې ترڅوپورې دَاللهﷻ دَطرفه دَده دَتوبې قبولیت نه وي راغلې نوځه به دې نه پرانیزم،چنانچه شپږیااوه ورځې تیرې شوې په داسې حال کښې،دَوؤ ورځونه بعدئی توبه قبوله شوه اللهﷻ داآیت نازل کړو:وآخرون اعترفوابذنوبهم (توبه:۱۰۴)حضورﷺ پخپله باندې دَسهارمونځ په وخت کښې کهلاؤکړو.

بنوقریظه دَمحاصرې نه ډیرتنګ شول،حضورﷺ ته ئی پیغام اولیږلوچې تاته څه فیصله منظوره وي هغه مونږته قبوله ده،په صحابه کراموؓ کښې چې دکوموصحابهٔ کراموتعلق دَاوس قبیلې سره وؤ نوهغوئ عرض اوکړوچې یارسول اللهﷺ داخلق مونږته حواله کړه ، حضورﷺ اوفرمائیل:چې آیاتاسوبه راضي شئ پدې چې څه دَدوئ معامله ستاسویوسردارته حواله کړم؟ پدې باندې صحابه راضي شول،حضورﷺ دامعامله حضرت سعدؓ ته حواله کړه،سعدؓ په غزوهٔ احزاب کښې زخمي شوې وؤاواکحل رګ(دمتې رګ)ئی کټ شوې وؤ،(چې دَهغه واقعه مخکښې ذکرشوه)په سوارلئ باندې راوستلې شو،حضورﷺ اوفرمائیل: قوموا الی سیّدکم،سعدؓ خپله فیصله واؤروله،وئی فرمایل:الی احکم فیهم ان تُقتل مقاتلهم وتُسبي ذراریهم ونساءهم:جنګ کونکي سړي دې قتل کړې شي اوماشومان اوزنانه اومالونه دې تقسیم کړې شي،حضورﷺ دَده په فیصلې باندې ډیرخوشحاله شواووئی فرمائیل:لقضیت بحکم الملك ،بیاورته خندقونه اوکنستلی شول،قتل کیدل به اوخندقونوکښې به اچولی کیدل، څلورنیم سوه یاشپږنیم سوه یااوه سوه کسان قتل کړې شول،سعدؓ چې کومه دعاغوښتلې

وه هغه ئی الله پاك قبوله کړه، دهغې نه پس دغي زخم دلاسه شهيد شو.

﴿وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ ٱلرُّعْبَ﴾داځلورم انعام دې چې الله ﷻ دیهودیانو(بنوقریظه)په زړونوکښ داسې رُعب واچولو چې هغوئ دخپلو قلعونه رااووتل، ﴿فَرِيقًا تَقْتُلُونَ﴾یعني بعض په هغې کښ تاسوقتل کول چې جنګ کونکي بالغان وو، ﴿وَتَأْسِرُونَ فَرِيقًا﴾یعني ضعیفان اوزنانه موقیدیان کول، ﴿وَأَوْرَثَكُمْ أَرْضَهُمْ﴾داپنځم انعام دې چې الله ﷻ تاسوته په میراث کښ درکړه دهغوئ زمکه اوکورونه، اومالونه دهغوئ، ﴿وَأَرْضًا لَّمْ تَطَـُٔوهَا﴾ای واورلکم ارضا،یعنی تاسوته به داسې زمکه هم درکړی.چې تراوسه تاسوخپل قدمونه هغې ځائ کښ نه دي ایخي،مراددینه په نیزداکثرومفسرینوزمکه دخیبرده،بعضِ وائی دفارس،روم زمکه ورنه مرادده،بعضِ وائی زمکه دمکيّ ورنه مرادده،(والله اعلم).

دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه مروي ده چې حضور ﷺ به دادعاوئیله:لااله الاالله وحده اعزّ جنده ونصرعبده وغلب الاحزاب وحده فلاشئ بعده(بخاري فی المغازي،مسلم فی الحج).

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَٰجِكَ إِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ |
| اې نبي! اووایه خپلوبیبیانوته کچرې یئ تاسواراده لرئ ژونددنیااوښایست دهغې نوراشئ |
| أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا ۝٢٨ وَإِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ ٱللَّهَ |
| خه به نفعه درکړم تاسوته اورخصت به کړم تاسولره په رخصتئ خاسته سره،اوکچرې یئ تاسواراده کوئ دالله ﷻ |
| وَرَسُولَهُۥ وَٱلدَّارَ ٱلْـَٔاخِرَةَ فَإِنَّ ٱللَّهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَٰتِ مِنكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا ۝٢٩ |
| اودرسول دهغه اودکوردآخرت نو بیشکه الله ﷻ تیارکړیدي لپاره داحسان کونکوچه تاسوئ اجرلوئ |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَٰجِكَ﴾دادویم خطاب دې حضور ﷺ ته،دې آیت ته آیت التخییروئیلې کیږي،شانِ نزول ددې آیاتونودادې چې هرکله چې نبي کریم ﷺ اوصحابه کرامودمکيّ نه مدیني ته هجرت اوکړو،نوحضور ﷺ په مدینه کښ دانصاروصحابه کراموسره

دَمهاجرينو صحابه كرامو مواخاة قائم كړو، انصارو مهاجرينو سره خپل مالونه اوكورونه تقسيم كړل، كله چې په غزوهٔ احزاب اوغزوهٔ بنوقريظه كښې مسلمانانوته غنيمتونه اوزمكې، اموال ملاؤشول نوانصاروته خپل كورونه واپس شول، مهاجرينوته خپل كورونه ملاؤشول، صحابه ؤكرامو باندې وسعت راغې، مالداري راغله، ليكن سرورِكونين ﷺ په كوركښې هغه شان تنګي وه نوپدې وجه ازواجومطهراتو ﷺ دَحضور ﷺ نه دَنفقې مطالبه اوكړله اوعرض ئې اوكړوچې يارسول الله، دكسرىٰ اوقيصربيبيانې په قسمه قسم زيوراتوكښې اوقيمتې ملبوساتوكښې ملبوسې دي، دَخدمت لپاره ئې وينزې دى، زمونږحال تاته معلوم دې، لهذا مونږلپاره په نفقه كښې وسعت اوكړه، دوئ په دغه وخت كښې نهه(٩)بيبيانې وې، عائشه بنت ابي بكر ﷺ، حفصه بنت عمر ﷺ، ام حبيبه ﷺ بنت ابي سفيان، امّ سلمه بنت ابي اميّه، سوده بنت زمعه، زينب بنت جحش، ميمونه بنت حارث، صفيه بنت حيى بن اخطب، جويريه بنت حارث.

حضور ﷺ چې داخبره واؤريدله نودېرخفه شواوقسم ئې اوكړوچې څه به يوه مياشت دوئ ته نزدې نه شمه، كله چې مياشت پوره شوه اومياشت دَنهه ويشت(٢٩)ورځووه نوالله ﷻ دا آيتونه نازل كړل، پدې كښې حضور ﷺ ته حكم اوشوچې ته خپلوازواجوته اووايه چې دوه خبرې دى، كه دَ دنيا ژوند عيش وعشرت غواړئ نوبيا به دَ الله رسول په عقد كښې نه اوسيږئ، بلكه طلاق به دركړي، اوكه دَالله رسول سره په عقد كښې اوسيدل غواړئ نوبيابه په دې ژوند قناعت اختياره وئ، اوپه آخرت كښې به درله الله تعالى دې په بدله كښې لوئ اجرونه دركوي.

﴿فَتَعَالَيْنَ﴾ امردې دَتعالَ نه پمعنىٰ دَاقبلن يعني راشئ اومتوجه شئ تاسوته دَدوؤخبرو اختيار دې، كه دَدنيادَژوندعيش عشرت خوښه وئ نوځمادَنكاح نه به اوځئ څه به تاسورخصت كرم، اوكه ځماپه نكاح كښې اوسيدل غواړئ نوبيابه عشرت دَدنيانه غواړئ ﴿أُمَتِّعْكُنَّ﴾ يعني متعه دَطلاق به دركړم، ﴿وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا﴾ كنايه ده دَطلاق احسن نه، ﴿وَإِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ﴾ يعني كچرته تاسومقصودالله ﷻ اودَهغه رسول وي يعني دَهغه زوجيت خوښه وئ، ﴿وَٱلدَّارَ ٱلْآخِرَةَ﴾ اوآخرت كښې مودرجاتِ عاليه مقصودوي چې هغه زوجيت دَرسول سره لازم دي، ﴿لِلْمُحْسِنَٰتِ مِنكُنَّ﴾ من بيانيه دې دَ(محسنات)بيان كوي، مِن للتبين لانهن كلهن من محسنات(بيضاوي وغيره).

﴿أَجْرًا عَظِيمًا﴾ يعني هغه نعمتونه به دركړي چې دَدنياد َنعمتونونه ډيرلوئ اوقيمتي دي.

روایاتوکښې دي چې کله داحکم نازل شونوحضور ﷺ دَټولونه اول حضرت عائشې ﷺ ته اوفرمائيل چې خه تاته يوه خبره پيش کومه خوته په هغې کښې جلدي مه کوه ترڅوچې ته خپل پلار (ابوبکر ﷺ) اوخپلې مورسره مشوره اونکړې، بيائې ورته دادواړه آياتونه واؤرول، حضرت عائشې ﷺ عرض اوکړو: افيك استامرابويّ؟ آيا خه به ستاپه باره کښې دَخپل پلارمورسره مشوره کومه، بل اختارالله ورسوله. بلکه خه الله ﷻ اودَهغه رسول ﷺ اختياره ومه اودارآخرت، دينه بعدبياحضور ﷺ باقي ازواجومطهراتوته هم دَپورتنيؤآياتونومضمون پيش کړو، ټولو ورته جواب ورکړو چې مونږالله ﷻ اودَهغه رسول ﷺ اودارآخرت خوښه وؤ، پدې جواب سره دَحضور ﷺ په مخ مبارك باندې دَخوشحالئ اثرات ظاهرشول.

يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ مَنْ يَّأْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ يُّضٰعَفْ لَهَا

اې بيبيانودَنبي ﷺ چاچه راتللل اوکړوستاسونه په نافرمانئ ښکاره سره نوزيات به کړې شي هغې ته

الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ ؕ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿۳۰﴾

عذاب دوه چنده، اودې داکاربه الله ﷻ باندې اسان

وَمَنْ يَّقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتَعْمَلْ صَالِحًا نُّؤْتِهَآ اَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ

اوخوك چه تابعدارى کوی ستاسونه دَالله ﷻ اودَرسول دَهغه اوعمل کوي نيك ورکوؤبه مونږ دی ته اجرد دې دوچند

وَاَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيْمًا ﴿۳۱﴾ يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ

اوتيارکړيدې مونږدې لره رزق عزت والا اې بيبيانودَنبي ﷺ نه يئ تاسوپه شان دَنوروښځو

اِنِ اتَّقَيْتُنَّ فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِيْ

بشرط دَ دې چه تاسو پرهيزګارې وئ، نو تاسو نرمى مه کوئ په خبرو کښې نوطمع به اوکړی هغه سړي چه په

فِيْ قَلْبِهٖ مَرَضٌ وَّقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ﴿۳۲﴾

زړه دهغه کښې مرض دې او کوئ تاسوخبره جائزه،

﴿يَٰنِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ مَن يَأۡتِ مِنكُنَّ﴾ دااوّل خطاب دي ازواجومطهراتودَحضورﷺ ته په باره دَحضورﷺ كښ چې حضورﷺ ته دَايذاء رسولونه ځان بچ ساتئ ورنه تاسوته به په نسبت دَنوروښځودوه چنده عذاب ملاويږي،اوكه دَاللهﷻ اودَرسولﷺ اطاعت مووكړو نواجربه هم درته دوه چنده ملاويږي، ﴿بِفَٰحِشَةٖ﴾ بيهقي دَمقاتلؒ نه نقل كړيدي چې مراد دَفاحشة نه دَنبي كريمﷺ نافرماني مرادده په قول اوفعل كښ اودغه شان بداخلاقي اختياره ول دَدنيااوعيش وعشرت ورنه مراد دې بدكاري ورنه هرګزنه ده مرادځكه چې بدكاري دَازواجودَنبيﷺ نه متصوره هم نه ده،مابغت امراءة نبيّ قط،دَنبي زوجه كافره تيره شويده لكه امراءة نوح اوامراءة دلوطؑ ليكن بدكاره چرته هم نه ده تيره شوي، ﴿يُضَٰعَفۡ لَهَا ٱلۡعَذَابُ ضِعۡفَيۡنِۚ﴾ دوه چنده عذاب به ورته ځكه ملاويږي چې كوم څيزقبيح وي په نسبت سره نورونساؤته نوهغه اقبح وي ازواجودَنبي ته،ځكه چې زيادت په قبح كښ تابع وي دَزيادت دَافضليت اودَمرتبې ، يادوه چنده عذاب ځكه دې چې جرم هم دوه چنده وي،يوجرم دنبى نافرمانى اوبل جرم دَخاوندنافرماني ده.

﴿وَمَن يَقۡنُتۡ مِنكُنَّ لِلَّهِ وَرَسُولِهِۦ﴾ ضميرپه يقنت كښ راجع دې ازواجومطهراتوته، دَمذكر صيغه دَوجه دَرعايت دَلفظ،(من)نه ذكرشويده، ﴿نُّؤۡتِهَآ أَجۡرَهَا مَرَّتَيۡنِ﴾ يعني تابع داري كونكو ته به اجرهم دَنوروښځوپه نسبت دوه چنده ملاويږي،تضعيف دَاجرهم دَوجې دَمرتبې اودَافضليت دَازواجو مطهراتونه دې،ګوياچې وعده اووعيددواړه دَمرتبې سره متعلق دي،يادوه چنده اجرېدې وجه دې چې عمل دوه چنده دې،اطاعت دَحضورﷺ اواطاعت دَخاوند ﴿وَأَعۡتَدۡنَا لَهَا رِزۡقٗا كَرِيمٗا﴾ رزق كريم نه مرادنعمتونه دَجنت دي،يعني دَدنيادَعارضي نعمتونوپه ځائ موورته دَجنت ابدي نعمتونه تياركړيدي.

﴿يَٰنِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ﴾ دادويم خطاب دې ازواجومطهراتوته،او په ديكښ ورته څو هدايات بيانيږي، ﴿لَسۡتُنَّ كَأَحَدٖ﴾ دا اول هدايت دې، يعني تاسودَنورو ښځوپه شان نه ئي،الله پاك

چې تاسوته کوم مقام اومرتبه دَصحبت دَنبيﷺ په وجه درکړيده هغه نورومؤمنانوښځوته نده حاصله لهذا نامحرمو سره خبرکولو وخت کښې په لهجه او انداز کښې نرمي اونزاکت مه اختياره وئ،بلکه قصداًاوبتکلف داسې لهجه او انداز اختيار کړئ،چې پکښې درشتګي اوسختي وي ﴿إِنِ اتَّقَيْتُنَّ﴾دَدې تعلق ماقبل سره دې،يعنې تاسو دَ عامومؤمنانو ښځو پشان نه يئ خو په شرط ددې چې تاسو په تقوىٰ قائمې وئ،دلته مراد تقوىٰ اختياره ولو نه دوام دې په تقوىٰ.جزا ورله محذوفه ده چې،هغې باندې لستن کاحدلالت کوي،اوځنې مفسرين ليکي چې دې تعلق مابعد سره دې او﴿فَلَا تَخْضَعْنَ﴾ورله جزاء ده

جمهورومفسرينوپه نيزمطلب دَ﴿فَلَا تَخْضَعْنَ﴾دادې چې کچرته يونامحرم سره دَخبرکولوضرورت راشي مثلاًستاسوکورته اوآزاوکړي اوکورکښې څوك سړې نه وي نوتاسوخپل آوازپه تکلف سره بدل کړئ اودَزنانه په لهجه اواندازکښې چې کوم فطري نزاکت اونرمي ده هغه بدل کړئ اودَنارينه په شان لهجه استعمال کړئ اوجواب ورکړئ.﴿فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ﴾الذي في قلبه مرض نه مرادمنافق دې يعني دَمنافق په زړه کښې به څه فاسدخيال راشي اوداخيال دَيومخلص مسلمان دَ شان نه بعيددې،علماء وائي چې داخطاب ظاهراً اګرچې ازواجومطهراتودې ليکن په حقيقت کښې ټولومسلمانانوښځوته دې چې هره ښځه دې اجنبي سړي سره خبرکولووخت کښې انتهائي احتياط کوي،پدې وجه شريعت کښې دښځواذان،اقامت،امامت،جهري مونځ کول اوپه حج کښې په زوره تلبيه وئيل منع دې،"يطمعْ" منصوب دې ان مقدره پوجه ،ځکه چه جواب نهي ده،﴿وَقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوفًا﴾عام مفسرين وائي چې دې کښې اشاره ديته چې ﴿فَلَا تَخْضَعْنَ﴾مطلب داندی چې بداخلاقي اوغصه کوئ بلکه سختي صرف په لهجه کښې کوئ اوخبره هغه کوئ چې مقصوده،معروفه وي اودَاخلاقوسره منافي نه وي.

حضرت شيخ غلام الله خان رحمهٗ الله دې آيت توجيه جمهور مفسرينو نه مختلف کړيده،هغه فرمائي چې چونکه رستو دَ متبنى ښځې سره نکاح مسئله راروانه ده،نو ديکښې ازواج مطهراتو ته هدايات دی چې کچرته څوک ستاسوسره دې متعلق خبره کوی چې دا نبی

كريم صلى الله عليه وسلم څه كوي؟نوتاسو كلك جواب وركوئ چې نبي عليه السلام څه كوي دَ الله په حكم سره كوي،اوخه كوى،نرمى خبرې اوتبصرى پرى مه كوئ دې سره به د منافق په زړه كښې طمع پيداشي اوخوشحاله به شي دَنبي كريمﷺ په كوركښې دَده دَحكم خلاف ورزي اودَده سره مخالفت شروع شويدې،نولهذا تاسوداسې مه وايئ چې پيغمبربدكوي بلكه ﴿وَقُلْنَ قَوْلاً مَّعْرُوفًا﴾ داوايئ چې حضورﷺ څه كوي چې دَ متبنىٰ دَزوجې مطلقې سره نكاح كوي اويوبدرسم ختمه وي،نوبناء په توجيه دَحضرت شيخ رحمه الله دَ﴿فَلَا تَخْضَعْنَ﴾نه مراد دادې چې دَمتبنىٰ ښځې سره واده متعلق كه څوك ستاسونه تپوس اوكړي نوپه جواب كښې ورته نرمه رويه مه اختياره ئ بلكه څه كلك جواب وركوئ.

| |
|---|
| وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى وَأَقِمْنَ الصَّلٰوةَ |
| اوقراروسيږئ په كورونوخپلوكښې اومه ظاهريږئ په شان دَظاهريدلودجاهليت زوړ،اوپابندى كوئ دَ مونځ |
| وَاٰتِيْنَ الزَّكٰوةَ وَأَطِعْنَ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ ؕ إِنَّمَا يُرِيْدُ اللهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ |
| اوزكوٰة وركوئ،اواطاعت كوئ دَالله جَلَّ جَلَالُهُ اودرسول دهغه،بيشكه اراده لرې الله جَلَّ جَلَالُهُ چه لرې ړى ستاسونه |
| الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيْرًا ﴿۳۳﴾ وَاذْكُرْنَ |
| ګندګى(دكفر،شرك)اې اهلِ بيتو ، اوپاك كړي تاسو په ښه پاكوالى سره، اوپادَوئ |
| مَا يُتْلٰى فِيْ بُيُوْتِكُنَّ مِنْ اٰيٰتِ اللهِ وَالْحِكْمَةِ ؕ إِنَّ اللهَ كَانَ لَطِيْفًا خَبِيْرًا ﴿۳۴﴾ |
| هغه چه لوستې كيږي په كورونوستاسوكښې دَآياتونه دَالله اوحكمت نه، بيشكه الله باريك څيزونولره ليدونكې دې خبرداره دې |

﴿وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ﴾دادويم هدايت دې چې پرده كوئ،اوپه كورونو كښې اوسئ بلاضرورت باهرته مه اوځى،البته كه ضرورت راپيښ شى نومكمل پردې سره باهرته ځئ،دول اوسنګار مه كوئ،قَرْنَ دَ قَرَّ يَقَرُّ نه دې،اصل كښې اقررن وو.اولنئ"را"حركت ماقبل ته نقل كړيشو او"را"تخفيفا حذف كړيشوه.نو"اقرن"شوهمزه وصلى مابعد متحرك شونوهغه حذف كړيشو قرن شو،او بعض وائي چه داد اجوف صيغه ده،قَارَ يَقَار نه بمعنى اجتمع،معنى دواړه

صورتونو کښې یوه ده چې خپلو کورونو کښې قراراونیسئ،باهر مه ګرځئ.﴿وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ ٱلْجَـٰهِلِيَّةِ ٱلْأُولَىٰ﴾تفصیل دې دَماقبل جملې یعنې دَجاهلیت اولی په شان بهربې پرده اوډول سنګارسره مه ګرځئ. تبرج نازوانداز سره ګرځیدلوته هم وائی،اوډول سنګارکول اوهغې دَاظهارکولودَپاره بهروتلوته هم وائی،دینه واضحه شوه چې دَښځواصل ذمه واري،سیاست یامعاشرتي مسائل حل کول ندي بلکه کورکښې کیناستل اوامورخانه داري پوره کول دي، البته دَخپلوحوائجودپاره بهروتل په ساده لباس کښې،بغیردَډول سنګار،خوشبونه،جائزدي،په دې باندې امام بخاري رحمه الله باب قائم کړیدي،باب خروج النساء لحوائجهن،اوپه هغې کښې ئې دَحضرت عائشه رضي الله عنها روایت ذکرکړیدې چې حضور ﷺ ځماپه کورکښې ناست وو،خوراك ئې کولوچې حضرت سوده رضي الله عنها راغله عرض ئې اوکړو چې څه قضاء حاجت دپاره تلم لیکن حضرت عمر رضي الله عنه منع کړم نواوس ځمادپاره څه حکم دې،پدغه خت کښې په حضور ﷺ باندې دَوحې دَنزول حالت شروع شو،چې دغه حالت ختم شونوویئ فرمائیل: «انّ الله قداذن لکنّ ان تخرجن لحاجتکنّ»اوحوائج عام دي دنیوي که دیني لکه حج،تبلیغ،تعلیم ،وغیره.

جاهلیت هر غیر اسلامی نظام ته وائی،خواه هغه قبل ازاسلام وؤاویاکه نن صبا دې،اوجاهلیت اولی نه مراد هغه مشرکانه تهذیب وتمدن دې چې هغه قبل از اسلام پوره دنیا کښې اوخصوصا عربوکښې یونانی اورومی تمدن زیر اثر رائج وؤ(ماجدی)دپردې حکم ښځې ته مونځ اوزکوة نه مقدم کړیشو دینه دَدې اهمیت اندازه اولګوئ.

﴿وَأَقِمْنَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتِينَ ٱلزَّكَوٰةَ﴾ دریم او څلورم هدایت دی تخصیص دَصلوة،زکوة ځکه اوشوچې دادواړه دَعبادات بدینه ومالیه دَپاره اصل اوبنیاددی.﴿وَأَطِعْنَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ﴾ پنځم هدایت دې،تعمیم دې دَماقبل حکم اواشاره ده دیته غالباً چې اقام دَصلوة اواداء زکوة ذریعه ده دَاطاعت دَالله جل جلاله اودَهغه دَرسول ﷺ.﴿إِنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ ٱلرِّجْسَ﴾ دیکښې دَدې هدایاتو ثمره ذکر کیږی چه هغه دګندګی اورزائیلو نه بالکل پاکی ده دَرجس نه مرادتخلیه ده دَرازائلونه، یعنی شرك،معصیت، مخالفت دَرسول ﷺ،یعني الله جل جلاله تاسوته داهدایات ځکه کوي چې تاسودَشرك وغیره معصیتونونه پاك کړی.﴿أَهْلَ ٱلْبَيْتِ﴾منصوب

دي یامنادیٰ ده ای یااهلَ البیت یاورله عامل،امدحُ مقدردې ای امدح اهل البیت،مراد دَاهل بیتونه ازواج مطهرات، حضرت علي، سیده فاطمه، حضرت حسن اوحضرت حسین دي،ازواج مطهرات ځکه په اهل بیتوکښ داخل دي چې هم دوئ مخاطب دي په احکامات مذکوره سره،اوهم دوئ اوسیدونکي دي دکورونودَنبي کریم اوحضرت علي اوفاطمة الزهراء اوحضرات حسنین پکښ ځکه داخل دي چې په یوروایت کښ دي چې یوځل حضور دَامّ سلمه په کورکښ ناست وو،خپل څادرئی راوخستلواوپه فاطمې ،حضرت علي اوحضرات حسنین باندې ئي واچولوبیائی اوفرمائیل: اللّهم هؤلاء اهلَ بیتي فاذهب الرّجس وطهرهم تطهیرا(ترمذي،بیهقي وغیره)نوازواج مطهرات پکښ دَ اول نه داخلي وې اوحضرت علي،فاطمه،حضرات حسنین پکښ هم داخل شول،شیعه ګان اهل بیت صرف حضرت علي،فاطمه،حسن،اوحسین ته وائی لیکن داصحیح نه ده،دَصریح آیاتونونه خلاف کول دي اوهرچې دې استدلال دَدوئ چې کچرته﴿أَهۡلَ ٱلۡبَيۡتِ﴾نه مرادازواج مطهرات وې نوبیابه په ﴿عَنكُمُ﴾او﴿وَيُطَهِّرَكُمۡ﴾کښ ضمیردَمؤنث ذکرشوې وې،عنکنّ اویطهرکنّ به وئیلی شوي وې،نو جواب دادې چې دلته ضمیردَ مذکر لفظ اهل دوجهی نه روارلې شو ځکه چې اهل مذکردې کمافی قوله تعالیٰ: اذ قال لاهله امکثوا(القصص) امکثوا دمذکرصیغه استعمال شویده حالانکه موسیٰ حکم خپلې ښځې ته کړیدې،نوداپوجه دَلفظ دَاهل،وکمافی قوله تعالی:اتعجبین من امر الله رحمة الله وبرکاته علیکم اهلَ البیت(هود).

﴿وَيُطَهِّرَكُمۡ تَطۡهِيرٗا﴾مراددَتطهیرنه تحلیه ده په فضائلوسره،یعني دَشرك،معصیت، مخالفت دَرسول نه پاکول،پدې وجه دې آیت ته آیة التطهیروئیلی کیږي. ﴿وَٱذۡكُرۡنَ مَا يُتۡلَىٰ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾داشپږم هدایت دې،چې ستاسو کورونوکښ تلاوت کیږي اودَنبي کریم صلی الله علیه وسلم دَزندګئ کومی ګوشې مخې ته راځي چې دهغې عام امت نشی خبریدلې،هغه یادوئ ،محفوظه کوئ،عمل پرې کوئ،او نوروته یې تعلیم وتبلیغ کوئ،داآیت هم واضحه دلیل دې دَازواج مطهراتوپه اهل بیت کیدلوباندې ځکه چې دَ﴿فِي بُيُوتِكُنَّ﴾نه مرادهم دوئ

کورونه دی. دَ ﴿وَٱذۡكُرۡنَ﴾ دَذکر دوه معنی کیدیشی (۱) یادول او محفوظ ساتل، یعنی کوم آیاتونه ستاسو کورونو کښ تلاوت کیږی هغه یادوئ، او نبی کریم صلی الله علیه وسلم کوم تعلیمات تاسوته راځی او سیرت کومې پټې ګوشې تاسوته واضحه کیږی هغه محفوظ ساتئ (۲) بیانول یعنی دا آیات او احادیث خلقوته بیانوئ ﴿مِنۡ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ وَٱلۡحِكۡمَةِۚ﴾ آیت الله نه مراد قرآن دې (الحکمة) نه مراد احادیث او تعلیمات او سنن دَرسول اللهﷺ دي، ﴿إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ لَطِيفًا خَبِيرًا﴾ یعني امتثال دَدې احکاماتو ظاهراً، باطناً سراً علانیةً ضروري دي، ځکه چې الله ﷻ لطیف دې دَزړونو اعمالو هم پیژني خبیر دي پټ اعمال هم پیژني.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | ٱلۡمُسۡلِمِينَ | وَٱلۡمُسۡلِمَٰتِ | وَٱلۡمُؤۡمِنِينَ | وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتِ |
| بیشکه مسلمانان سړی | | اومسلماناني ښځي | اومؤمنان سړی | اومؤمناني ښځي، |
| وَٱلۡقَٰنِتِينَ | وَٱلۡقَٰنِتَٰتِ | وَٱلصَّٰدِقِينَ | وَٱلصَّٰدِقَٰتِ | وَٱلصَّٰبِرِينَ |
| اوفرمان برداری کونکی سړي اوفرمان برداری کونکي ښځی، اورشتیاویونکی سړی اورشتیاویونکې ښځې، اوصبرکونکی سړي | | | | |
| وَٱلصَّٰبِرَٰتِ | وَٱلۡخَٰشِعِينَ | وَٱلۡخَٰشِعَٰتِ | وَٱلۡمُتَصَدِّقِينَ | وَٱلۡمُتَصَدِّقَٰتِ |
| اوصبرکونکی ښځی، اوعاجزی کونکی سړی اوعاجزی کونکی ښځی اوصدقه کونکی سړی اوصدقه کونکی ښځی، | | | | |
| وَٱلصَّٰٓئِمِينَ | وَٱلصَّٰٓئِمَٰتِ | وَٱلۡحَٰفِظِينَ | فُرُوجَهُمۡ | وَٱلۡحَٰفِظَٰتِ |
| اوروژه نیونکی سړی اوروژه نیونکی ښځې، اوحفاظت کونکی سړي دخپلوعورتونو اوحفاظت کونکی ښځې، | | | | |
| وَٱلذَّٰكِرِينَ ٱللَّهَ كَثِيرٗا وَٱلذَّٰكِرَٰتِ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُم مَّغۡفِرَةٗ وَأَجۡرًا عَظِيمٗا ۝ | | | | |
| اوذکرکونکی سړی دَالله ﷻ ډیراوذکرکونکی ښځی، تیارکړیدي الله ﷻ دهغوئ لپاره مغفرت اواجرلوئ | | | | |

﴿إِنَّ ٱلۡمُسۡلِمِينَ وَٱلۡمُسۡلِمَٰتِ﴾ دادریم خطاب دي مؤمنانو او مؤمناتو چې دالس (۱۰) مذکوره صفات په خپل ځان کښ پیداکړئ نومستحق دَمغفرت اودَاجرعظیم به وګرځئ.

ابن كثير رحمه الله د احاديثو د كتابونو نه متعدد روايات نقل كړيدي چې د هغې نه معلوميږي
چې دا آيت كريمه د حضرت امّ سلمه رضي الله عنها په سوال باندې نازل شويدې چې يو ځل هغې حضور ﷺ
ته عرض اوكړو چې يارسول الله! څه وجه ده چې قرآن مجيد كښې خود سړو ذكر راځي ليكن
د ښځو ذكر نه راځي، نو پدې باندې الله تعالى دا آيت كريمه نازل كړو او پدې كښې ئې
د سړو او ښځو جدا جدا ذكر اوكړو، دواړو د پاره ئې د مغفرت او اجر عظيم وعده اوفرمائيله.

﴿وَٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ﴾ اسلام ظاهري انقياد او تابع دارى ته وائي او ايمان باطني انقياد ته

وائي، نو گويا كه د انسان نه دواړه مطلوب دي، ﴿وَٱلْقَٰنِتِينَ وَٱلْقَٰنِتَٰتِ﴾ دا د قنوت نه ماخوذ دې،

قانت وئيلى كيږي مخلص فرمانبردار ته: اى المخلصين فى ايمانهم واسلامهم المدوامين على الطاعة

(خطيب شربيني ج۳ ص۳۱۳) ﴿وَٱلصَّٰدِقِينَ وَٱلصَّٰدِقَٰتِ﴾ پدې كښې قول، عمل، نيت ټول داخل

دي، ﴿وَٱلصَّٰبِرِينَ وَٱلصَّٰبِرَٰتِ﴾ صبر كونكي په طاعاتو، ترك د شهواتو، مصائبو ﴿وَٱلْخَٰشِعِينَ

وَٱلْخَٰشِعَٰتِ﴾ خشوع په عبادت او عادت دواړو كښې، عبادت كښې ئې هم عاجزي وي، او عاداتو

كښې ئې هم عاجزي وي تكبر، غرور نه خالي وي، ﴿وَٱلْمُتَصَدِّقِينَ وَٱلْمُتَصَدِّقَٰتِ﴾ د الله تعالى په لاره

كښې صدقه كونكي، پدې كښې فرض زكوٰة نه علاوه، فطرانه، او نفلي صدقات هم داخل

دي، ﴿وَٱلصَّٰٓئِمِينَ وَٱلصَّٰٓئِمَٰتِ﴾ د رمضان فرض روژې ساتونكي، الفاظو د عموم پوجه پكښې

نفلي روژې هم داخلي دي، ﴿وَٱلْحَٰفِظِينَ فُرُوجَهُمْ وَٱلْحَٰفِظَٰتِ﴾ د سړو د پاره "حافظين فروجهم"

ذكر شو او ښځو د پاره صرف "حافظات" نو مفسرين وائي چې يو په دې كښې ښځو ته د حياء تعليم
دې چې دوئ پوهه شي چې الله تعالى دوئ ته په تعليم كولو كښې هم صرف په اشاري او كنايه
باندې اكتفا كولې كيږي د دوئ د فروجو ذكر نه كوي، دويمه دا چې سړي د پاره د صرف شرمگاه
حفاظت ضروري دې، پخلاف د ښځو چې پدوئ باندې صرف د شرمگاه حفاظت ندې لازم بلكه
رفتار، گفتار، لباس، او ازهر څيز كښې حفاظت ضروري دې، د زنانه حفاظت سره سره د اسبابو د زنا
مثلاً: باريك لباس اچول، تنگ لباس اچول بازارونو كښې گرځيدل، نامحرمو سره خبرې كول
وغيره د ټولو حفاظت لازمي دى،

﴿وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّالذّٰكِرٰتِ﴾عام اذكارونه علاوه پكښې مونځ كول هم داخل دي،ځكه چې مونځ پخپله ذكردي كقوله تعالىٰ:واقم الصلوٰة لذكري(طٰه:١۴)ذكركثيركوونكي هغه دي چې په ولاړه،ملاسته،خوشحالۍ غم،هروخت كښې دالله ﷻ ذكركوونكي وي،لكه په حديث كښې دي:سبق المفردون،قالواومالمفردون قال:الذاكرون الله كثيراوالذكرات(مسلم)

﴿أَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً وَّأَجْرًا عَظِيْمًا﴾يعني مذكوره صفاتوحاملينو حاملاتودپاره الله ﷻ مغفرت دګنوبو او اجرعظيم تيار كړيدې چې هغه جنت اودهغې دائمي نعمتونه دي

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ أَمْرًا أَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ

اونه دي شان دمؤمن اونه دمؤمني دا، چه كله فيصله وكړي الله ﷻ اورسول دهغه دېوامرچه وي به دوئ لره

الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ ؕ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيْنًا ۝

اختياردامرددوئ نه،اوڅوك چه نافرماني وكړي دالله ﷻ اودرسول دهغه نويقيناًدې ګمراه شوېه ګمراهئ ښكاره سره.

وَإِذْ تَقُوْلُ لِلَّذِيْٓ أَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ أَمْسِكْ عَلَيْكَ

اواې پيغمبره!كله چه تااوويل هغه كس ته چه انعام كړې وو الله په هغه باندې اوانعام كړې وو تاپه هغه باندې چه وساته دځان سره

زَوْجَكَ وَاتَّقِ اللّٰهَ وَتُخْفِيْ فِيْ نَفْسِكَ مَا اللّٰهُ مُبْدِيْهِ وَتَخْشَى النَّاسَ ۚ

خپله ښځه،اوويريږه دالله ﷻ نه،اوپټه ساتله تاپه زړه خپل كښې هغه خبره چه الله ﷻ ښكاره كوله اوويره كوله تادالزام دخلقو نه،

وَاللّٰهُ أَحَقُّ أَنْ تَخْشٰىهُ ؕ فَلَمَّا قَضٰى زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنٰكَهَا

اوالله ﷻ زيات لائق دې چه ته يره وكړې دهغه نه،پس هركله چه پوره كړوزيدد هغې نه حاجت(طلاق)نوپه نكاح دركړه مونږ هغه تاته

لِكَيْ لَا يَكُوْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ حَرَجٌ فِيْٓ أَزْوَاجِ أَدْعِيَآئِهِمْ إِذَا قَضَوْا

لپاره ددې چه پاتې نشي په مؤمنانو باندې ګناه په نكاح د ښځودمتبنی ګانوددوئ كښې كله چه پوره كړې دوئ

مِنْهُنَّ وَطَرًا ؕ وَكَانَ أَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا ۝

دهغوئ نه حاجت،او امردالله ﷻ كيدونكي دي

﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ﴾ پدې کښې زجردې په ترک دَاطاعت دَحضورﷺ باندې اوتنبیه ده پدې خبره چې هیڅ یومومن اومؤمني ته دااختیارنشته چې کله اللهﷻ اودَهغه رسول یوه فیصله اوکړي اودې هغه منظوره نه کړي.

مفسرین وائی چې داآیت نازل دې په باره دَزینب بنت جحشؓ اودَهغې وروړعبدالله بن جحشؓ اودَدوئ مورامیمه بنت عبدالمطلب کښې چې دادَحضورﷺ تروروه،حضورﷺ دوئ ته دَزیدؓ دپاره دَنکاح پیغام اولیږلو،چونکه په زیدؓ باندې دَغلامئ داغ وؤ،دوئ نه غوختله چې دَدومره لوئ نسب هاشمي خاندان جینئ نکاح دې دَیوآزاد شوي غلام سره اوشي،نوپدې باندې داایت نازل شواوحکم اوشوچې دکومې خبرې فیصله چه اللهﷻ اودَهغه رسول اوکړي نودَهغې خلاف ورزي دَچاڅه دپاره هم نده جائزه،نوچې کله داوعیدراغې نوهغوئ دَخپل خبرې نه واپس شول اوپه نکاح باندې راضي شول،حضورﷺ نکاح وتړله اودَزیدؓ دَطرفه نه ئې مهراداکړو﴿قَضَى ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَمۡرًا﴾دَشانِ نزول په اعتبارسره اګرچه مخصوص دې لیکن دَحکم په اعتبارسره عام دې چې دَاللهﷻ اودَهغه رسولﷺ دَحکم،نه مخالفت څوك کولیشي اونه ورته په منلونه منلوکښې اختیارشته،﴿مِنۡ أَمۡرِهِمۡ﴾ضمیر"مومنٍ"او"مؤمنة"ته راجع دې خوچونکه نکره په سیاق دَنفي کښې واقع شویده،عموم فائده کوي،نوپه مؤمنٍ اومؤمنةٍ کښې عموم راغې نوځکه ورته ضمیردَجمع راجع شو،یعني هیڅ یومؤمني ته دَاللهﷻ اودَهغه دَرسول دَفیصلې نه بعدپخپل څه کارکښې اختیارنشته،بلکه په هغه ضروري ده چې سرِتسلیم خم کړي.

﴿وَإِذۡ تَقُولُ لِلَّذِيٓ﴾داوریم خطاب دې،نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته،چې ته زیدرضی الله عنه له طلاق نه ورکولو مشوره دې وجهی نه ورکوی،چې بیا ماله دَ حضرت زینب رضی الله عنها سره نکاح کول راځی اوخلق به راپسې خبری کوي،نودَخلقوخبرونه مه یریږه،الله نه یریږه،دانکاح به ضرورکیږی،موږبه آسمانونوکښې ده دې نکاح ستاسره کړیدي،﴿أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ﴾یعني ایمان ئی ورته نصیب کړیدې،﴿وَأَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِ﴾یعني دَغلامئ نه دې ازادکړیدي اومتبنّیٰ دې جوړکړیدي اوپخپل خاندان کښې دې ورته واده کړیدي؛مدارك وغیره،﴿وَتُخۡفِي فِي

نَفۡسِكَ مَا ٱللَّهُ مُبۡدِيهِ﴾"ما"موصوله دې،يعني كومه خبره چې الله ﷻ څكاره كوله هغه تاپه پخپل زړه كښ پټوله.هغه كومه خبره ده چې نبي كريمﷺ پخپل زړه كښ پټه كړې وه؟نوجمهورومفسرين وائي چې حضورﷺ ته دَقرائنوپه وجه دامعلومه شوې وه چې دَدوئ دواړومينځ كښ به جدائي راځي،اوچې جدائي راشي نودابه په زينبؓ دويمه صدمه وي،نوددې دَازالې صورت به داوي چې څه ورسره نكاح اوكړمه،اودغه شان پذريعه دَوحې هم حضورﷺ ته داخبروركړې شوې وؤچې زيدؓ به حضرت زينبؓ ته طلاق وركوي،بيابهٔ دَدې نكاح مونږتاسره كوؤاودَدې جاهليت دَدې رسم(يعني دَمتبنّى دَخزې سره پس دَطلاق نه هم نكاح نه كول اودابدَ گڼړل)خاتمه به ستاپه ذريعه كوؤ،حضورﷺ داخبره پټه اوساتله اوچاته ئې اونه وئيل،نودَ﴿وَتُخۡفِي فِي نَفۡسِكَ﴾نه ددغې خبرې پټول مراددي،﴿وَتَخۡشَى ٱلنَّاسَ﴾ "الناس"نه كافران،منافقين مراددي اودَدوئ نه دَيرې مراددادې چې حضورﷺته دافكروؤچې كچرته زينبؓ خماپه عقدكښ راشي نوكافران منافقان به پروپيگنډې كوي چې اوگورئ دَخپل متبنّى دښځې سره ئې نكاح اوكړه،﴿وَٱللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخۡشَىٰهُ﴾يعني دَخلقودَاعتراضونو اوالزامونوفكراوخطره مه كوه بلكه يره خودَالله ﷻ نه پكارده،جلالين وغيره بعض تفسرينوچې كوم تفسيردلته كړيدې نوهغه نامناسب دى اودَشان نبوت سره هم منافي دې،دَجلالين حاشيودَجلالين په دې تفسيرخه ردكړيدى،قال القشيري رحمه الله هذاالقدامٌ عظيم من قائله وتفريط بحقّ النبيﷺ(حاشيه جلالين)﴿فَلَمَّا قَضَىٰ زَيۡدٞ مِّنۡهَا وَطَرٗا﴾"وطراً"حاجت ته وائي دلته ورنه مرادطلاق دې يعني چې كله زيدؓ طلاق وركړو:اى طلّقهاكمارُوى عن قتاده وهوكناية عن ذالك (روح).

**فائده**:په تمام قرآن كښ دَزيدؓ نه ماسوادَبل صحابيؓ نوم نشته،دَده نوم ذكركولوكښ كيديشى حكمت داوى چې هركله دَده نسبت دَزيدبن محمدنه بدل شوزيدبن حارثه ته،نوپدې سره ورته ډيرخفگان اورسيدلونودَدې تسلي دپاره دَده نوم الله ﷻ په قرآن كښ ذكركړو.

دزيدؓ دَطلاق وركولونه پس چې كله دَزينبؓ عدت ختم شونوحضورﷺ ورته دَنكاح پيغام اوليږلو،زينبؓ اووئيل:ماانابصانعة شيئاحتى اوامرربي،يعني ترڅوچې مادَخپل رب سره مشوره نه وي كړې ترهغه وخت پورې هيڅ نه كوم،پاسيدله دَاستخارې مونځ ئې شروع

کړو، الله ﷻ وحي رااوليږه چې﴿زَوَّجْنَٰكَهَا﴾يعني مونږپه اسمانونوکښ دَدي نکاح تاسره اوکړواودَنکاح دَمعروف شرائطوبرعکس مودانکاح اوکړه .ايجاب،قبول،ولايت، شهادت،مهر نه بغير،په حديث دَنسائی کښ دي چې امّ المؤمنين بي بي زينب رضي الله عنها به په نوروبيبيانوفخرکولوچې ځمانکاح الله ﷻ په اسمانونوکښ کړيدې.﴿لِكَيْ لَا يَكُونَ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾دادَزينب رضي الله عنها دَحضورﷺ سره دَنکاح علت دې چې آئنده لپاره څوك مسلمان پدې کښ حرج اونه ګڼړي اوحسبِ ضرورت دَمتبنّی دَزوجي سره نکاح کوليشي.﴿وَكَانَ أَمْرُ ٱللَّهِ ﴾ يعني داپه تقديردَالهي کښ وُنوپه هرصورت به کيدله.

| |
|---|
| مَا كَانَ عَلَى ٱلنَّبِيِّ مِنْ حَرَجٍ فِيمَا فَرَضَ ٱللَّهُ لَهُۥ ۖ سُنَّةَ ٱللَّهِ |
| نيشه دې په نبي ﷺ باندې هيڅ ګناه(الزام) په هغه کښ چه مقررکړيدې الله ﷻ ده لره،داعادت دې دالله ﷻ |
| فِى ٱلَّذِينَ خَلَوْا۟ مِن قَبْلُ ۚ وَكَانَ أَمْرُ ٱللَّهِ قَدَرًا مَّقْدُورًا ﴿٣٨﴾ ٱلَّذِينَ |
| په باره دهغه خلقوکښ چه تيرشويدي مخکښ،او حکم دالله ﷻ مقررشوي فيصله شوي دې،هغه پيغمبران |
| يُبَلِّغُونَ رِسَٰلَٰتِ ٱللَّهِ وَيَخْشَوْنَهُۥ وَلَا يَخْشَوْنَ أَحَدًا إِلَّا ٱللَّهَ ۗ |
| چه رسوي پيغامونه دالله ﷻ اويريږي دالله ﷻ نه اونه يريږي دهيچ چانه ماسِوادالله ﷻ نه. |
| وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ حَسِيبًا ﴿٣٩﴾ |
| اوکافي دې الله ﷻ حساب کونکې |

﴿مَا كَانَ عَلَى ٱلنَّبِيِّ مِنْ حَرَجٍ ﴾داڅلورم خطاب دې حضورﷺ ته اودمخالفينودَ اعتراضونوجواب دې،چې الله ﷻ دَيوکارامرتاته اوکړي په هغې کښ په تاهيڅ حرج اواعتراض نشته،نودَزينب رضي الله عنها سره دَنکاح امرهم تاته الله ﷻ کړيدې،﴿سُنَّةَ ٱللَّهِ ﴾لفظ د(سنة)منصوب بنزع الخافض دې ای کسنة الله يامفعول مطلق دې﴿فِى ٱلَّذِينَ خَلَوْا۟ مِن قَبْلُ﴾ يعني چې کوم انبياء مخکښ تيرشويدي نوهغوئ سره هم دَالله ﷻ داطريقه اوعادت وُچې په

هغوئ به په جائزکارونواوپه دعوت وتبليغ كښې څه حرج نه وؤ.بعض وائی دَ«سنة»نه مرادوسعت دې په نکاح کښې،يعني مخکنو انبياؤته اجازت وؤپه وسعت دَنکاح کښې نوتاته هم شته.﴿ٱلَّذِينَ يُبَلِّغُونَ﴾صفت دې دَ﴿ٱلَّذِينَ خَلَوْا﴾.﴿رِسَٰلَٰتِ ٱللَّهِ﴾ اضافت دَجمع دَاستغراق دپاره وې،يعني انبياء كرام دَټولو پيغاماتوتبليغ کوي خلقوته ئې رسوي،دَالله ﷻ په پيغاماتو کښې کوتاهي اوکتمان نه کوي. ﴿وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ حَسِيبًا﴾يعني الله ﷻ کافي دې حساب کوونکې، دَاعتراض کونکونه به حساب اخلي چې اعتراضونه ئې ولې کول؟

| مَا | كَانَ | مُحَمَّدٌ | أَبَآ | أَحَدٍ | مِّن | رِّجَالِكُمْ | وَلَٰكِن | رَّسُولَ | ٱللَّهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نه | دې | محمد ﷺ | پلاردَيوكس | | | دَسړوستاسونه،ليکن | | رسول | دَالله ﷻ دې |
| وَخَاتَمَ | ٱلنَّبِيِّـۧنَ | | | ۗ | وَكَانَ | ٱللَّهُ | بِكُلِّ | شَيْءٍ | عَلِيمًا ۝ |
| اوختم | كونكى | دې | دَپيغمبرانو،او | | | الله ﷻ | په | هرڅيزباندې | عالم دې |

﴿مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَآ أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ﴾داځلورم خطاب دې مؤمنانوته اودَمخالفينو دَاعتراض دويم جواب دې چې ستاسواعتراض محض لغواولايعني دې،ځکه چې حضور ﷺ دَداسې يوسړي والدنه دې چې هغه بلوغ ته رسيدلې وي نه دَزيد ﷺ اونه دَبل چا،نوحضور ﷺ هرګزدَخپل ځوی مطلقي سره نکاح نده کړې،"رجال"جمع دَرجل" ده بالغ سړي ته وائی يعني دَحضور ﷺ نارينه اولادبلوغ ته نه دی رسيدلی ځکه څلورواړه بچي قاسم،طيب،طاهر، ابراهيم،په وړکوالئ کښې وفات شوي وؤ،البته څلورلونړه ئې،زينب ﷺ،رقيه ﷺ،ام كلثوم ﷺ اوحضرت فاطمه ﷺ بلوغ ته هم رسيدلې وې اونکاح ئې هم شوې وؤ.

که داوسوسه پيداشي چې نکاح اګرچه صحيح وؤليکن که نوې شوې نوبهتربه وه،ځکه چې مخالفينوته به دَاعتراض موقع نه وه ملاؤشوې نوجواب اوشوچې﴿وَلَٰكِن رَّسُولَ ٱللَّهِ﴾چې هغه دَالله ﷻ رسول دې دَده پذريعه الله ﷻ دغه رسم ختمولو.﴿وَخَاتَمَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ﴾يعني هغه خاتم النبيين دې قيامته پورې بل نبي بحيث نبي دنياته نه راځي چې داکمي پوره کړی لهذا

ضروري وه چې دَدې رسم بدخاتمه په خپله اوکړي.

﴿وَكَانَ ٱللَّهُ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٗا﴾ الله ﷻ په هرڅه عالم دې، هغه ته ښه معلومه ده چې دَحضور ﷺ په ذریعه دارسم بدختمول ولې ضروري دي، الله ﷻ ته علم دې په دې چې څماطرف نه دنیاته بل نبي نه راځي لهذادَه په ذریعه ئې دَدې رسم خاتمه اوکړله.

په لفظ دَ ﴿وَخَاتَمَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ﴾ کښې دوه قرائته دي (۱) یوبفتح التاء خاتَم یاپه وزن دَفاعل ماضي ده دَباب مفاعله، نودَخاتم النبین معنیٰ داده چې ختم کړی ئې دی نبیان، یعني نورانبیاء دَده نه ورستونه شي راتلې، اویاخاتم اسمِ اله ده "خاتَم لمايختم به" لکه قالب لمايقلب به، یعني دې مهر دې په انبیاؤو باندی. پده سره انبیاء ختم شویدی اوس پکښې نورو انبیاوؤ اضافه نشي کیدې اوچې کوم پکښې داخل دی هغی ترینه وتلې نشی لکه څنګه چی دَخط په آخر کښې مهر لګول دَدې علامت وي چې پدیکښې نوره اضافه نشی کیدلې.

دویم (۲) بکسرالتاء اسم فاعل دې، یعني ختم کونکې، نودَخاتم النبین معنی داده چې دې ختم کونکې دې انبیاء لره، مآل دَدواړوقرائتونویودې، دې دوؤنه علاوه بله معنی کول صحیح نه ده، قادیاني ملعون وائی چې دَ ﴿وَخَاتَمَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ﴾ معنیٰ (مُهرلګونکې) ده نوحضور ﷺ په ماباندې (نعوذبالله) مهرلګولې دې چې نبي دې او "ومبشرابرسولٍ یأتي من بعدي اسمه احمد" ئې څماپه باره کښې وئیلی دي (بقول والدمحترم نورالله مرقده) زمونږ استاذ محترم رحمه الله به فرمائیل چې اول خودغه معنیٰ صحیح نه ده، اوکه دغه معنیٰ شي نوحضور ﷺ په قادیاني باندې دَبې ایمانئ اودکفراودکذاب مهرلګولې دې، لکه په حدیث کښې راځي: سیاتي من بعدي دجّالون کذّابون یدعی النبوة واناخاتم النّبیین لانبيّ بعدي، داآیت کریمه صریح نص دې په دې چې حضرت محمّد ﷺ آخري نبي دې، او دَده نه بعدترقیامته پورې بل نبي دنیاته نه مبعوث کیږي.

اودټول امت پدې اجماع ده چې حضورﷺ نه بعددَنبوت دعوه کونکې کذاب اودَجال دې اودَاسلام دَدائرې نه خارج دې، تصدیق کونکې ئې هم قطعي کافردې، ابن کثیر رحمه الله په ختم نبوت باندې، دَډیرواحادیثونقل کولونه بعدلیکلي دي: وقداخبرالله تبارك وتعالی في کتابه ورسوله ﷺ في السنّة المتواترة عنه انّه لانبيّ بعده لیعلموا انّ کلّ من ادّعی النّبوة بعدهٗ فهوکذّابٌ افّاك دجّال ضالٌّ مضلٌّ...الخ، په ختم نبوت باندې دَنص قرآن نه علاوه احادیث شریفه په صحیح

سند و سره په کتابونو دَحدیثونو کښې په کثرت سره مروي دي، بعض اکابرینو په دې مسئلې باندې مستقلې رسالې هم لیکلې دي، یو څو احادیث سره دَترجمې نه دلته ذکرکیږي (۱) عن ثوبان ﷺ قال: قال رسول الله ﷺ انه سیکون فی امتی کذابون ثلاثون کلهم یزعم انه نبیٌّ وانا خاتم النبین لانبیٌّ بعدي (صحیح مسلم) ثوبان نه روایت دې چې حضور ﷺ فرمائیلي دي چې ځما په امت کښې به دیرش (۳۰) دروغژن پیدا کیږي چې په هغې کښې به هریو دعوه کوي دَنبوة، حالانکه څه آخري نبي یم ځمانه بعد څوک نبي نشته.

(۲) عن حذیفة ﷺ قال: قال رسول الله ﷺ فی امتی کذابون دجالون سبعةٌ وعشرون منهم اربع نسوة، وانّي خاتم النبین لانبیّ بعدي (طحاوي) حذیفه ﷺ نه روایت دی چې حضور ﷺ فرمائي چې ځما په امت کښې به اوه ویشت (۲۷) دجال اوکذاب وي چې په هغې کښې به څلور ښځې وي حالانکه څه خاتم النبیین یم ځمانه بعد بل نبي نشته (۳) عن ابي هریرة ﷺ انّ النبي ﷺ قال مثلي ومثل الانبیاء من قبلي کمثل رجلٍ بنیٰ بیتاًفاحسنه واجمله الاموضع لبنةٍ من زاویةٍ فجعل النّاس یطوفون به ویعجبون له ویقولون هلاّوضعتَ هذه اللّبنة قال ﷺ فاناالّلبنة واناخاتم النبیّن (بخاري، مسلم وغیره) ابوهریره ﷺ نه روایت دې چې حضور ﷺ فرمائی چې څه او ځمانه مخکښې پیغمبرانو مثال داسې دې لکه یو سړي نهایت حسین، جمیل عمارت جوړ کړي، لیکن په یوه کونه کښې دَیوې خښتې ځاي خالي پریدي نو خلق چې دَدې عمارت څلور واړو طرفونو ته اوګوري اوتعجب کوي اوهغه سړی ته وائی چې تا دلته دا خښته ولې نده ایخي (نو دا نبوت دَمحل مثال دې) او څه خالي ځائې ډکولو والا خښته یم او څه آخري نبي یم، دامذکوره احادیث اودَدې نه علاوه نورډیر احادیث دَدې وضاحت کوي چې حضور ﷺ آخري نبي دې اودَده نه بعد بل هیڅ قسمه، حقیقي، مجازي، تشریعي، غیرتشریعي، ظلّي، بروزي نبي نشته، هرچې دې نزول دَحضرت عیسیٰ ﷺ په قرب دَقیامت کښې، نو دا دَختم نبوت سره منافي ندې، ځکه چې دَتمام اهل سنة والجماعة پدې باندې اجماع ده چې هغه به دحضور ﷺ دَشریعت تابع وي اودَحضور ﷺ په شریعت باندې به عمل کوي، بیهقي روایت ذکرکړیدې، عن عبدالله بن مغفل ﷺ قال: قال رسول الله ﷺ یلبث الدجّال ماشاء الله ثم ینزل عیسیٰ بن مریم مصدقاًبمحمّدٍ ﷺ وعلی ملّته اماماًمهدیّاًو حکماًو عدلاًفیقتل الدجال، پدې روایت کښې تصریح ده چې عیسیٰ ﷺ به دَحضور ﷺ په ملت باندې وي، هرچه دې جزیه منسوخ کیدل، یعني عیسیٰ ﷺ به جزیه اخستل منسوخ

كړي،نودَدي دَمنسوخ كيدلوحكم اوخبرحضورﷺ وركړيدي نولهذاداهم دَحضورﷺ دَملت اتباع ده.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ ذِكۡرٗا كَثِيرٗا ۝٤١ وَسَبِّحُوهُ بُكۡرَةٗ وَأَصِيلًا ۝٤٢

اې ايمان والوذكركوئ دَالله جل جلاله ذكرډير.اوپاكي بيانه وئ دَهغه سهراوبيگاه.

هُوَ ٱلَّذِي يُصَلِّي عَلَيۡكُمۡ وَمَلَٰٓئِكَتُهُۥ لِيُخۡرِجَكُم

الله جل جلاله هغه ذات دې چه رحمتونه رالېږي په تاسواودهغه فرشتې تاسولپاره درحمت دعاگاني كوي دَپاره ددې چه راوباسي تاسو

مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِۚ وَكَانَ بِٱلۡمُؤۡمِنِينَ رَحِيمٗا ۝٤٣ تَحِيَّتُهُمۡ يَوۡمَ

دتياروُدكفرنه رنړاداايمان ته،او الله جل جلاله په مؤمنانوباندې ډيررحم كونكي دې،استقبال دَدوئ به په هغه ورځ

يَلۡقَوۡنَهُۥ سَلَٰمٞۚ وَأَعَدَّ لَهُمۡ أَجۡرٗا كَرِيمٗا ۝٤٤

چه ملاقات كوي دالله جل جلاله سره،سلام به وي،اوتياركړې ئى دي دَدوئ لپاره اجرعزت والا،

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ﴾داپنځم خطاب دې مؤمنانوته،خلاصه دَدي داده چې اې ايمان والو!حضورﷺ يوبدرسم ختم كړو،نوپدې سره كچرته ستاسوپه زړونوكښې څه شك يابدگماني پيداكيږي،اوزړونوكښې موتنكي راځي نودَانشراح قلب اوقصورمعاف كيدلولپاره دَالله پاك ذكرپه كثرت سره كوئ،هروخت دَهغه تسبيح اوپاكي بيانوئ، ﴿ذِكۡرٗا كَثِيرٗا﴾ ډيرذكرهغه دې چې دَشپې،ورځې په بر،بحراوپه صحت،بيمارئ،ښكاره اوپټه هروخت كښې كيږي،قال مجاهد:الذكرالكثيران لاينساه ابدا(خطيب)ابن كثيررحمه الله دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړيدي چې هغه فرمائي: الله تعالى په خپلوبندگانوچې كومه فريضه فرض كړيده نودَهغې اندازه ئى مقرركړيده اواصحاب دَعذرئى معذورمنلي دي،ماسيوئ دَذكرخپل نه چې هغې لپاره نه څه حدشته اونه څه عذر،كقوله تعالى:فاذكروا الله قيامًا وقعودًا وعلى جنوبكم.

﴿وَسَبِّحُوهُ بُكۡرَةٗ وَأَصِيلًا﴾يعني دَالله جل جلاله پاكي بيانوي سهاراومابنام،تخصيص دَدې دواړو وختونودَوجې دَافضليت نه په نورو وختونوباندې،ځكه دادواړه وختونه

مشهودين د ي، يعنى دې دواړو وختونوكښ فرښتې حاضريږى اويوبل سره پدې وخت كښ ملاقات كوي تسبيح ويلى كيږى .چې الله تعالى پاكى بيانول دهغه امورونه چې دهغه شان وذات سره لائق ندى. اودلته مراد مطلقاتسبيح ده .خواه دذكر په صورت كښ وى، لكه سبحان الله وبحمده، سبحان الله عظيم وغيره اذكاركول، اويادمونځ په ضمن كښ وى.

﴿هُوَ ٱلَّذِى يُصَلِّى عَلَيْكُمْ﴾ داعلت دې دماقبل دپاره، چې ذكركثيراوتسبيح دالله ﷻ ځكه كوئ په تاسو ډير مهربان دي، اودهغې يومظهر اواثر دادې چې الله تعالى پخپله اودهغه فرشتې په تاسوباندې رحمتونه راليږي، او دكفرتيارونه مو داسلام رنړاته اوباسى

په آيت كريمه كښ لفظ د(صلوٰة)ذكرشويدې، صلوٰة دعاته وائى، نسبت ئې چې الله پاك ته اوشي نورحمت ورنه مرادوى اوچه فرشتوته اوشي نواستغفارورنه مرادوي كقوله تعالى(ويستغفرون للذين آمنوا-غافر:٧) اواستغفاردفرشتوسبب دې دپاره درحمت دالله پاك.

﴿لِيُخْرِجَكُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ﴾ متعلق دې د"يصلي عليكم"سره دظلماتونه مراددكفر اودنفاق، جهالت اودګمراهئ تيارې دي﴿إِلَى ٱلنُّورِ﴾ نورنه مراد نور دايمان، اخلاص، اطاعت دې اومطلب دادې چې تاسوثابت قدم اودائم پاتې شئ په نوردايمان باندې، ﴿وَكَانَ بِٱلْمُؤْمِنِينَ رَحِيمًا﴾ تاكيددې دماقبل. ﴿تَحِيَّتُهُمْ﴾ ضميرراجع دې مؤمنانوته، يعني دالله تعالى دمؤمنانوسره محبت اومهربانئ بل مظهر دادې چې په كومه ورځ دوئ دالله ﷻ سره ملاقات كوي نودوئ استقبال به سلام سلام سره وي، كقوله تعالى: سلام قولاً من رّب الرّحيم(يسين ٢٥٨)د﴿يَوْمَ يَلْقَوْنَهُۥ﴾ نه كومه ورځ مراده ده؟(١) بعض مفسرينوورنه جنّت ته دداخليدلو والا ورځ مرادكړيده چې هلته به ورته الله پاك هم سلام كوي اوفرشتې هم، كقوله تعالى: والملائكة يدخلون عليهم من كلّ باب سلامٌ عليكم(الرعد:٢٣، ٢٤) (٢) دبعضومفسرينوپه نزددې نه مراددمرګ والاورځ ده، لكه دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چې اذاجاء ملك الموت ليقبض روح المومن قال: ربك يقرئك السّلام، چې ملك الموت كله دمومن روح قبض كولولپاره راشي نوورته به داوائى، ستارب په تاسلام وايي﴿وَأَعَدَّ لَهُمْ أَجْرًا كَرِيمًا﴾ده حسن اورحمت يوبل مظهردادې چې عظيم الشان

جنتونه ورله ورکړي چې هغې کښې به دوئ په عزت سره اوسيږي، هيڅ تکليف او تنګى به ورته نوي،

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا ۝ وَّدَاعِيًا اِلَى اللّٰهِ |
| اې نبي ﷺ بيشکه مونږه ليږلى ئ ته شاهد، اوزيرې ورکونکې اويرونکې، اودعوت ورکونکونکې الله ﷻ طرف ته |
| بِاِذْنِهٖ وَسِرَاجًا مُّنِيْرًا ۝۴۶ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَضْلًا كَبِيْرًا ۝۴۷ |
| په حکم دهغه سره اوډيوه رڼاکونکې، اوزيرې ورکړه مؤمنانوته چه بيشکه دوئ لپاره دطرفه دالله ﷻ نه فضل جنت لوئ. |
| وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَدَعْ اَذٰىهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۗ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ۝۴۸ |
| اوخبره مه منه دکافرانو اودمنافقانو اوپريږده ضرردوئ اوتوکل وکړه په الله ﷻ باندې، اوکافى دې الله ﷻ کارساز. |
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ |
| اې ايمان والؤ! کله چه تاسونکاح وکړئ دمؤمناتوښځوسره بياورته طلاق ورکړئ تاسومخکښې دصحبت جماع نه |
| فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّوْنَهَا ۚ فَمَتِّعُوْهُنَّ وَسَرِّحُوْهُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا ۝۴۹ |
| نونيشته دې ستاسو لپاره په دوئ باندې عدت چه شمارئ يې تاسو هغه، نومتعه ورکړئ دوئ ته اورخصت کړئ دوئ په خائسته رخصتولو سره |

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ﴾ داپنځم خطاب دې حضور ﷺ ته، مقصد پدې سره تسلي ورکول دي. چې اې نبي! مونږ ته دحق اوتوحيد بيانولو دپاره ليږلې ئې، منونکوته زيرې ورکونکې ئى نه منونکو لپاره يره ونکې يې دالله ﷻ دعذاب نه، نولهذاته دمخالفينو دمخالفت اوتکليفونو پرواه مه کوه په الله ﷻ باندې توکل کوه.

پدې آياتونو کښې دحضور ﷺ پنځه صفات ذکر شويدى.

(۱) شاهداً ګواه يعني حضور ﷺ به دقيامت په ورځ دخپل امت په تصديق ياتکذيب ګواهي ورکوي، کقوله تعالى: ويکون الرّسول عليکم شهيداً (بقره: ۱۴۳)

بعضومفسرينودَ﴿شَاهِدًا﴾معنىٰ داکړيده چې شاهدالله بوحدانيته، يعني دتوحيد اودلااله الاّ الله شهادت ورکونکې، بعض وائي چې حضور ﷺ به دټولو امتونو په انبياؤشاهدوي چې دوئ

اداء دَرسالت کړیده،شاه عبدالقادر رحمه الله دَ ﴿شَٰهِدًا﴾ معنیٰ حق ښائے والا کوي.

هرچه دې استدلال باطل دَاهل بدعتو پېدې آيت سره چې حضور ﷺ حاضرناظردې،نودَدې جوابونه دَسورة بقرې آيت (۱۴۳) ويكون الرسول عليكم شهيداً.کښې په تفصيل سره تيرشويدي هلته ئې اوګورئ.

(۲) ﴿وَمُبَشِّرًا﴾ يعني دعوت ورکول په بيان دَبشارة دنيوي،اخروي سره

(۳) ﴿وَنَذِيرًا﴾ اوپه بيان دَتخويف دنيوي،اخروي سره (۴) ﴿وَدَاعِيًا إِلَى ٱللَّهِ﴾ يعنی دَ الله تعالی وحدانيت اوايمان دعوت ورکونکې بِإِذْنِهِۦ اى بتسهيله وتيسيره (روح المعاني) يعني په اسانتيااوپه توفيق دَالله ﷻ سره دا اطلاق دَ سبب دې په مسبب باندې ځکه چه اذن سبب دَاسانتيا دې (۵) ﴿وَسِرَاجًا مُّنِيرًا﴾ دلته دَسراج نه خپله حقيقي معنىٰ مرادنه ده بلکه مجازدې چې لکه څرنګه دَسراج نه خلق رڼرااخلي،اوتياري ورسره ختميږي نودغه شان حضور ﷺ دَقلب مبارك نه اوتعليماتونه تمام امت نوراورڼرادَايمان اخلی.دکفراودَظلمت تياري ختميږی،دلته تشبيه دَحضور ﷺ يې دَسراج منيرسره ورکړه، حالانکه نوراوسپوږمئ رڼرادېره زياته ده،وجه داده چې دَسراج نه فائده اخيستل اختياری اودائمی وی، په خلاف دَنورنه چې دَهغه نه استفاده کول اورڼرااخيستل اختياری هم نوی دائمی هم نوی،ځکه چې دَڅه حصې په شپې کښې غروب کيږي،اوبله داچې دَيوسراج نه بل سراج رڼرااخستلې شي نوچې يو غائب شي نوبل سراج باقي وي،دغه شان چې حضور ﷺ دَدنيانه غائب شي نوهرصحابي رضي الله عنه به سراج وي،چې دَهغه نه به نوراوهدايت اخستلې کيږي ﴿فَضْلًا كَبِيرًا﴾ اى عطاءً كبيراً،چې هغه جنت دې ﴿وَلَا تُطِعِ ٱلْكَٰفِرِينَ وَٱلْمُنَٰفِقِينَ﴾ دادَاول خطاب اعاده ده برائ تاکيديعني اتباع دمايوحیٰ کوه دکافرانواومنافقانواطاعت مکوه ﴿أَذَىٰهُمْ﴾ دايامصدرمضاف دې فاعل ته . اى لاتبال بايذائهم اياك.يعني دَهغوئ دَطرفه چې تاته کوم تکليفونه دررسيږي نودَهغې پرواه مه کوه،په الله ﷻ بهروسه کوه،هغه به دې مددکوي،يامصدرمضاف دې مفعول ته:اى دع اذيّتك لهم،يعني هغوئ ته اذيت رسول ترك کړه.جلدي مه کوه بلکه په الله ﷻ توکل کوه.والاوّل اولى هكذافي

روح المعاني.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا نَكَحْتُمُ ٱلْمُؤْمِنَٰتِ ﴾داشپږم خطاب دې مؤمنانوته،مخکښې آياتونوکښې دَحضرت زينب رضي الله عنها دَنکاح ذکراوشو،پدې آياتونوکښې هم مؤمنانوته دَنکاح اوطلاق،عدةباره کښې حکم ذکرکيږي،خلاصه داده چې کله تاسودَمؤمناتوښځوسره نکاح اوکړئ اوبياورته قبل دَصحبت نه طلاقورکړئ نوپه مطلقې باندې عدة تيرول واجب نه دي،کچرته فوراًهغه بل چاسره نکاح کوي نوتاسوئې مه منع کوئ دَوس مطابق ورته څه متعه ورکړئ،رخصت ئې کړئ،﴿أَن تَمَسُّوهُنَّ ﴾ مس کنايه ده دَجماع نه.﴿ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ ﴾ چونکه عدت حق دَسړي دې نوځکه ئې نسبت سړوته اوشو،اودَالله تعالى حق پکښې هم داخل دې نوځکه نه ساقط کيږي په اسقاط دَسړوسره،﴿فَمَتِّعُوهُنَّ﴾متعه هغه لباس ته وائې چې ښځه ئې دکورنه دَوتلوپه وخت خامخااستعماله وي لکه لوئ څادر،لوپټه،اوکرته،متعه ورکول هغه ښځوته واجب دي چې مهرئې نه وى مقررشوې،کچرته مهرئې مقرروي اوطلاق قبل المسيس وى نونصف مهربه ورته ورکولې کيږي،اومتعه ورکول ورته بيامستحب دى،کقوله تعالى:فنصف مافرضتم(سورت بقره:۲۳۷)تفصيل هلته تيردې،﴿وَسَرِّحُوهُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا ﴾اى خلواسبيلهنّ من غيراضرارٍ،يعني په خوش اخلاقئ سره ئې رخصت کړئ،کچرته بل چاسره نکاح کوي نومنع کوئ مه،کقوله تعالى:ولاتمسکوهنّ ضراراً(بقره).

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ إِنَّآ أَحْلَلْنَا لَكَ أَزْوَٰجَكَ ٱلَّٰتِىٓ ءَاتَيْتَ أُجُورَهُنَّ |
| ،اې نبي!بيشکه مونږه حلالې کړې دى تالره ستا(موجوده)بيبيانې هغه چه ورکړى وى تامهرونه دهغوئ، |
| وَمَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ مِمَّآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَيْكَ وَبَنَاتِ عَمِّكَ وَبَنَاتِ |
| اوهغه وينځې چه مالک شويدې نبي لاس ستا،دهغې نه چې غنيمت کښې درکړيدى الله جل جلاله تاته اولونړه دَتره ستا،اولونړه |
| عَمَّٰتِكَ وَبَنَاتِ خَالِكَ وَبَنَاتِ خَٰلَٰتِكَ ٱلَّٰتِى هَاجَرْنَ مَعَكَ وَٱمْرَأَةً مُّؤْمِنَةً إِن وَهَبَتْ |
| دَترورپانوستا، اولونړه دماماستا،اولونړه دَماسى ګانوستاهغه چه هجرت ئې کړې وي ستاسره،اوښځه مؤمنه که چرې اوبخي |

| |
|---|
| نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ اِنْ اَرَادَ النَّبِيُّ اَنْ يَّسْتَنْكِحَهَا ۚ خَالِصَةً لَّكَ مِنْ دُوْنِ |
| داخان خپل پیغمبر ﷺ ته په بشرط ددې چې اراده اوکړی نبي ﷺ ددې چه په نکاح سره ئ واخلي،داخالص تالره(جائزه ده) بې |
| الْمُؤْمِنِيْنَ ۗ قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِيْٓ اَزْوَاجِهِمْ وَمَا مَلَكَتْ |
| دَنورومؤمنانونه،یقیناًمعلوم دي مونږته هغه حکم چه مقرر کړیدي مونږه په دوئ باندې په باره دَبیبیانو ددوئ کښې او په |
| اَيْمَانُهُمْ لِكَيْلَا يَكُوْنَ عَلَيْكَ حَرَجٌ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝ |
| باره دَوينزو ددوئ کښ دپاره ددې چه رانشي په تاباندې تنګي،او الله ﷻ بخښونکې ډيرمهربانه دې |

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّآ اَحْلَلْنَا لَكَ﴾داشپږم خطاب دي،حضورﷺ ته په دي آيت کښ دَهغه ښځوذکردي چې نبي کريمﷺ ته دَهغوئ سره دَنکاح اجازت وؤاوهغه ورته حلالي وي (احللنالك اى احللنالك نكاحهنّ)دآیت په تفسیرکښ دَمفسرینودوه قوله دی اودَ اختلاف مدار خالصة لك من دون المؤمنين دي چې ددې تعلق چا سره دي (۱)بعض وايئ چې دَ﴿خَالِصَةً لَّكَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾تعلق دلته ذکرشوی څلوروقسمونوسره دي اوپه آيت کښ دَهغه څلورقسمه نکاح ذکردي چې هغه صرف دَحضورﷺ دپاره خاص اوجائزوؤخودَبل چادپاره نه(۱)رومبې قسم:﴿الّٰتِيْٓ اٰتَيْتَ اُجُوْرَهُنَّ﴾يعني هغه ښځې چې تاورته مهرادا کړيدې هغه مونږستادپاره حلالې کړيدي،

هرسړي چې شرعي طريقې باندې نکاح اوکړی اومهراداکړي نوهغه ته ښځه حلاله وي،خودلته دَنبي کريمﷺ دپاره وجه دَتخصيص داده چې دغه وخت کښ دَحضورﷺ په عقدکښ دَڅلورونه زياتې بيبيانې وي،اودَڅلورونه زيات نکاح اجازت صرف حضورﷺ ته وؤ،بل چاته نشته

(۲)دويم قسم﴿وَمَا مَلَكَتْ يَمِيْنُكَ مِمَّآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلَيْكَ﴾يعني کومې وينزې چې تاته په غنيمت کښ ملاوشي،اوته هغه آزادي کړې اوبياورسره نکاح اوکړې نوداستادپاره جائزدي،

خپله وينزه آزادول اوبياورسره نکاح کول دَهرسړي دپاره جائزدي،خودلته دَحضورﷺدپاره وجه دَتخصيص علماءدابيانوي چې الله ﷻ نبي کريمﷺ ته دااختياروركړې وؤچې دَمالِ

غنیمت دتقسیمولونه مخکښ که دځان دپاره ځه اخلي نوداورته جائزوؤ اودي ته به صفی النبي ویلی کیدو، اوداصرف حضورﷺته اجازت وؤبل چاته ددې هیڅ اختیار نه وؤ. دحضرت صفیهؓبنت حيّ معامله هم داسې ده چې دانبي کریمﷺ دځان دپاره خاص کړې وه، دلته ترینه دهغه وینزي مراددي،

(۳)دریم قسم﴿وَبَنَاتِ عَمِّكَ وَبَنَاتِ عَمَّٰتِكَ وَبَنَاتِ خَالِكَ وَبَنَاتِ خَٰلَٰتِكَ ﴾یعني ستادپاره مونږحلالي کړیدي دپلاردطرفه دخاندان ښځي اودموردطرفه دخاندان ښځي(تره اوماما لونړه اودترورلونړه)

تره اودماما لونړه اودغه شان دترورلونړه دهرچادپاره حلالې دي، خودلته تخصیص په﴿ٱلَّٰتِي هَاجَرۡنَ مَعَكَ ﴾ سره راغلي دې ځکه چې دنبي کریمﷺ دپاره ددوئ نه صرف هغه ښځي حلالي وي چې هجرت ئی کړي وؤ، لکه دنبي کریمﷺ دتره ابوطالب دلورامّ هانيؓ په باره کښ راځي چې هغې به فرمائیل: څه دحضورﷺدپاره حلاله نه یمه ځکه چې ماهجرت ندې کړې، په خلاف دنورومسلمانانو چې هغوئ په حق کښ دهجرت قیدضروري ندې

(۴)څلورم قسم. ﴿وَٱمۡرَأَةٗ مُّؤۡمِنَةً إِن وَهَبَتۡ نَفۡسَهَا لِلنَّبِيِّ ﴾ای احللنالك امراءة مؤمنة، یعني مونږستادپاره هغه ښځه حلاله کړیده چې هغه تاته خپل ځان بغیردمهرنه هبه کړی بغیردمهرنه نکاح دحضورﷺخصوصیت وؤ، عام مسلمان باندې مهرلازم دې، اګرچه په وخت دنکاح کښ ئی ذکراونشي اویائی نفي اوشي، خلاصه ددې قول داده چې پدې آیت کښ دهغه څلورقسمه نکاح ذکردې چې هغه حضورﷺ پورې مخصوص دي.

(۲)بعض علما وائی چې د﴿خَالِصَةٗ لَّكَ ﴾قیدصرف داخري قسم﴿وَٱمۡرَأَةٗ مُّؤۡمِنَةً إِن وَهَبَتۡ نَفۡسَهَا ﴾سره متعلق دې اوداقید(حال)دې دامراءةٌ مؤمنةٌ نه، ددې قول په بناء دآیت تفسرداسې دې، چې اول درې قسمه دهغوښځوذکردې چې هغوئ ته افضیلت اوشرف حاصل دې پخپل غیرباندې مثلا (۱)هغه ښځي چې حضورﷺهغوئ ته مهرورکړې وي هغه افضلي دي په هغوئ باندې چې مهرئی ورله نه وي مقررکړې(۲)هغه وینزي چې قیدکړیشي په جنګ کښ، دهغه وینزونه افضلي دي، چې اخیستی شوي وي، ځکه چې په جنګ کښ دنیولي شوؤ، معامله بالکل صفاده چې داوینزي دي، په خلاف داخیستی شوؤنه چې تحقیق سره دهغې رقیت

واضحه نه وي(۳)دغه شان هغه اقارب دَحضورﷺ چې مکې نه مديني ته هجرت کړې وؤهغه افضلې دي دَهغونه چې هجرت ئې نه وؤکړي،خلاصه داچې دی کښې دَهغوښځوذکردې چې هغوئ سره نکاح دَحضورﷺ دَپاره زيات اولی وؤدَنوروپه نسبت،دانه چې دلته تخصيص شويدې.اودَغيرنه نفي مقصودده.البته څلورم قسم هغه دي چې هغه صرف نبيﷺ پورې خاص دی چې وضاحت ئې په قول اول کښې شويدې.

آياداقسم (څلورم قسم،نکاح بلامهر)نکاح حضورﷺکړيده اوکنه؟نوپدې کښې اختلاف دې عبدالله بن عباس رضي الله عنه اومجاهد رحمه الله وايئ چې داسې نکاح نه ده شوې ځکه چې الله تعالی فرمائی:﴿إِنْ أَرَادَ ٱلنَّبِيُّ﴾نودَانتفاء دَارادي نه انتفاء دَنکاح شويده.بعض نورعلماء وايئ چې داسې نکاح شويده لکه چې دامعلوميږي دَظاهردآيت نه اوداحوله بنتِ حکيم رضي الله عنها،امّ شريک رضي الله عنها اوليلی بنتِ حُطيم رضي الله عنها وې ياميمونه بنتِ الحارث ده.

﴿قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ﴾ يعني دامذکوره خصوصيات صرف دَحضورﷺ دپاره دی اودَباقي مسلمانانودَنکاح په باره کښې چه کوم احکامات مونږپدوئ مقررکړيدي هغه مونږته معلوم دي،دَ﴿مَا فَرَضْنَا﴾نه مرادمهردې په نکاح دَحرائروکښې،اونفقه ده په باره دَوينزوکښې.﴿لِكَيْلَا يَكُونَ عَلَيْكَ حَرَجٌ﴾متعلق دې يادَ﴿أَحْلَلْنَا لَكَ﴾سره يا﴿خَالِصَةً لَّكَ﴾ سره،يعني دَنکاح په معامله کښې دامذکوره خصوصيات دَدې دپاره دي چې په تاباندې څه حرج واقع نه شي ستاپه پيغمبرانه مصالحواومقاصدوکښې.﴿غَفُورًا﴾مغفرت کونکي دې،که څوک دَ حکم په تعميل کښې کوتاهي اوکړي.﴿رَّحِيمًا﴾ باوجود دَدينه چې دَ هغه احکامات رحم باندې مبنی دی هيڅ باراوبوج پکښې نشته.

| |
|---|
| تُرْجِيْ مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ وَ تُـْٔوِيْٓ اِلَيْكَ مَنْ تَشَآءُ ۭ وَمَنِ ابْتَغَيْتَ |
| رستوکولې شې چې کومه هم اوغواړې ته دَبيبيانونه،اونزدې کولې شې ته خان ته چې کومه هم اوغواړې اوکه هغه (بی بی)اوغواړې |
| مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ ۭ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ تَقَرَّ اَعْيُنُهُنَّ وَلَا يَحْزَنَّ وَيَرْضَيْنَ |
| چې جداکړې وی تانونيشته دې ګناه په تاباندې،داډيرنزدې دې ديته چه يخې به شی سترګې ددوئ اوغمژنې به نشی دوئ اوراضي به |

| |
|---|
| بِمَآ اٰتَيۡتَهُنَّ كُلُّهُنَّ ؕ وَاللّٰهُ يَعۡلَمُ مَا فِىۡ قُلُوۡبِكُمۡ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيۡمًا حَلِيۡمًا ﴿۵۱﴾ |
| شی په هغې باندې چه ته ورکوی دوئ ته، تولې،اوالله عالم دې په هغه څه چه ستاسوپه زړونه کښې دي،اودې الله ښه عالم صبرکونکې. |
| لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ مِنۡۢ بَعۡدُ وَلَاۤ اَنۡ تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنۡ اَزۡوَاجٍ |
| نه دې حلالې ستاپاره ښځې وروستوددې(څلوراقسامو)نه،اونه دی جائزداچه بدلې کړې په دوئ(موجوده)سره نورې بيبيانې |
| وَّلَوۡ اَعۡجَبَكَ حُسۡنُهُنَّ اِلَّا مَا مَلَكَتۡ يَمِيۡنُكَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ رَّقِيۡبًا ﴿۵۲﴾ |
| اګرکه ښۀ لګي تاته دهغوئ حُسن،مګروينزې ستا،او الله جل جلاله په هرڅيزباندې نګهبان دې |

﴿تُرۡجِىۡ مَنۡ تَشَآءُ مِنۡهُنَّ﴾پدې آيت کريمه کښې يوبل خصوصيت دَحضور ﷺ ذکردې،هغه داچې دَيوسړې دَيوې نه زياتې بيبيانې وي نوپه هغه باندې قسم،يعنې عدل اوبرابروالې کول په نفقه اوشپ پاشئ کښې ضروري دې اوچې څوک دَبيبيانوپه مينځ کښې برابروالې نه کوي نوپه حديث کښې دي چې داسې کس به دَقيامت په ورځ په داسې حال کښې راځئ چې يوجانب به ئې مفلوج وي،ليکن په حضور ﷺ باندې قسم کول واجب اوضروري نه وۀ.﴿تُرۡجِىۡ﴾ دَارجاء نه ماخوذدې،مؤخرکول اووروستوکول﴿وَتُـْٔوِىۡ﴾دَايواء نه ماخوذدې قريب کول اوضم کول،مطلب دادې چې تاته اختياردې چې په ازواجومطهراتوکښې څوک دَخپل نوبت نه وروستوکوې اوڅوک ضم کوې،﴿وَمَنِ ابۡتَغَيۡتَ مِمَّنۡ عَزَلۡتَ﴾يعنې کچرته يوه بې بې تادَخپل نوبت نه وروستوکړې وي اوبياهغه قريب کوې نوپدې کښې هم په تاڅه حرج نشته،الله ﷻ اګرچې په حضور ﷺ،قسم نه وؤضروري کړې،ليکن دَدې باوجود به حضور ﷺ دَازواجوپه مينځ کښې عدل،برابرتياکوله،حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايئ:کان رسول الله ﷺ يقسم فيعدل فيقول اللهم هذاقسمي فيماأملك فلاتلمني فيماتملك ولاأملك،يوبل روايت کښې دَعائشه رضي الله عنها نه نقل دي چې:انّ رسول الله ﷺ كان يستاذن فى يوم المرأة منابعدان نزلت هذه الاية ترجي من تشاء (بخاري)

﴿ذٰلِكَ اَدۡنٰٓى﴾يعنې تاته په قسم کښې تفويض اواختياردرکولوکښې به ازواجو ستاته درې فائدې وررسيږي (۱)﴿اَنۡ تَقَرَّ اَعۡيُنُهُنَّ﴾ چې ازواج مطهرات به خوشحاله اومطمئنې وی،څکه

چې تسويه اوبرابروالې به تاواجب اودَ دوئ حق ندې،دی باوجود چې کله ته دوئی په مابين
کښې برابروالې کوې نودوئ به دا احسان بلااستحقاق ګڼري اوخوشحاله کيږی به پرې.تقرّ
يادَقرارنه ماخوذدې،يعني دَهغوئ سترګې به قراري شي،داکنايه ده دَسروراوخوشحالئ نه
اواطمينان نه،ځکه چې دَ خوشحاله انسان سترګې په ځائ والاړې وي،په خلاف دَغمژن سري
نه چې سترګې دَهغه يوخوابل خواته اوړي،اوياماخوذدې دَقر(يخ والې)نه چې ضدئی حَر
(ګرموالې)دې يعني دهغوئ سترګې به يخې شي،داهم کنايه ده دَسرورنه،ځکه چې دَخوشحاله
انسان سترګې يخې وي اودَغمژن سترګې ګرمې وي،دَخوشحالئ اوخکي يخې وي اود غم
اوخکي ګرمې وي،

(۲)﴿وَلَا يَحْزَنَّ﴾ اوکه ته يوې له په بلې باندې ترجيح ورکوې نوپه دې به ورته خفګان هم
نه رسي ځکه چې داتاته اختياردې(۳)﴿وَيَرْضَيْنَ بِمَآ ءَاتَيْتَهُنَّ﴾ يعني چې ته ورته څه نفقه
وغيره ورکوې نوهم به دوئ راضي وي اووائی به چې زمونږخوپه حضورﷺ باندې څه
زورياذمه داري نشته،﴿كُلُّهُنَّ﴾تاکيددې،"يرضين کښې دَنون ضمير مرفوع يعني ټولې به پدې
راضي وي﴿وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِى قُلُوبِكُمْ﴾ کم ضميرمصداق نبی عليه السلام اوازواج مطهرات دواړه
دي،اودَ نبی کريم صلی الله عليه وسلم ذات اعتبار سره.دَ"مافي قلوبکم"نه مراددَزړه محبت دې
اوميلان دې دَيوې نه بلې ته،نوپه طبعي محبت اوميلان کښې څه مواخذه نشته،لکه
دَحضورﷺ زيات محبت دَحضرت عائشهؓ سره وؤ.اوازواجو مطهراتو اعتبارسره ترينه مراد
دهغوئ قلبی کفييت دې په تفويض اواختيار.

﴿لَّا يَحِلُّ لَكَ ٱلنِّسَآءُ مِنۢ بَعْدُ﴾دَ(من بعد)نه مراديااَزواجِ تسعه دي يعني دَدې
نهوبيبيانونه بعدتاته دَنوروسره نکاح نده جائزه اونه بدلول دَازواجو،چې يوې ته طلاق
ورکړې اوبلې سره نکاح اوکړې،مفسرين وائې چې دادَازواجومطهراتوانعام وؤپه
اختيارولودَاللهﷻ اودَرسول لره،هرکله چې آيت دَتخييرنازل شونودوئ ټولواووئيل
چې:اخترناالله ورسوله،نوپه حضورﷺ باندې نورې ښځې حرامې شوې کچرته دَ(من بعد)نه دغه
معنی مذکوره مرادشي نوبيادا آيت په نيزدَشاه ولي اللهؒ منسوخ دې اوناسخ ورلره ياايها

النبي انا احللنا لك ازواجك دي، اودا آيت اګرچه مقدم دې په تلاوت كښې ليكن مؤخر دې په نزول كښې، نو دې ناسخ جوړيدې شي، او دې تائيد دَحضرت عائشة ﷺ دَقول نه هم كيږي چې هغه فرمايئ: مامات رسول الله ﷺ حتّی احلّ له النساء، يا دَ(من بعد) نه مراد: من بعد الاصناف الاربعة دی لكه دا قول دَعكرمه او ضحاك رحمهما الله دې، نو بيا دا آيت منسوخ نه دې بلكه محكم دې دَ(ياايها النبيّ انا احللنا لك) د پاره. ﴿إِلَّا مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ﴾ دا استثناء ده دَ﴿لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ﴾ نه يعني ستا د پاره وينزه جائزه او حلاله ده، لكه ماريه قبطيه دَدې نه بعد راغلې ده چې شاهِ مصر حضور ﷺ ته په هديه كښې وركړې وه او دَدې نه ابراهيم پيدا شوې وو چې هغه په وړكوالي كښې وفات شوې وو، دَده په وفات باندې حضور ﷺ فرمائيلي وو، وانّا بفراقك يا ابراهيم لمحزونون. بخاري رقم الحديث ۱۳۰۳

| |
|---|
| يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ إِلَّآ أَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ إِلٰى طَعَامٍ |
| اې ايمان والو! مه ننوځئ كورونو دَپيغمبر ﷺ ته مګر داكه اجازت وكړې شي تاسو ته خوراك لپاره. |
| غَيْرَ نٰظِرِيْنَ إِنٰىهُ ۙ وَلٰكِنْ إِذَا دُعِيْتُمْ فَادْخُلُوْا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا |
| نه يئ انتظاركونكي دَپخيدلو دهغې ليكن كله چې اوبللې شئ نو داخليږئ، نو كله چه خوراك وكړئ نو خواره شئ |
| وَلَا مُسْتَأْنِسِيْنَ لِحَدِيْثٍ ۭ إِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِى النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيٖ مِنْكُمْ ۡ |
| او مه اساريږئ مينه حاصلونكي (شوق لرونكي) دخبرو، بيشكه دا ركيناستل تكليف رسوي نبي ﷺ ته نو هغه حيا كوي ستاسو نه. |
| وَاللّٰهُ لَا يَسْتَحْيٖ مِنَ الْحَقِّ ۭ وَإِذَا سَأَلْتُمُوْهُنَّ |
| او الله ﷻ نه كوي حيا دَبيانولو دَ حق نه، او چه كله تاسو غواړئ ددوئ نه |
| مَتَاعًا فَسْـَٔلُوْهُنَّ مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ ۭ ذٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوْبِكُمْ |
| څه خيز، نو غواړئ ورنه دَورستو د پردې نه، دا كار ډير پاك دې ستاسو زړونه لپاره |
| وَقُلُوْبِهِنَّ ۭ وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ |
| او زړونو ددوئ لره، او نه ده مناسب ستاسو لپاره، دا چه تاسو تكليف ورسوئ رسول دَالله ﷻ ته: |

وَلَآ أَن تَنكِحُوٓا أَزْوَٰجَهُۥ مِنۢ بَعْدِهِۦٓ أَبَدًا ۚ إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ عِندَ ٱللَّهِ عَظِيمًا ۞

اوداهم نه ده جائزچه تاسونکاح وکړئ ببیانودهغه سره بعددهغه نه همیشه،بیشکه دا جرم دي په نزددالله ﷻ لوئ

إِن تُبْدُوا شَيْـًٔا أَوْ تُخْفُوهُ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمًا ۞

که ښکاره کوئ تاسو (په ژبه) یوشئ یائې پټه وئ(په زړه کښې)نوبیشکه الله ﷻ دي په هرڅیزباندي ښه عالم

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَدْخُلُوا﴾ داووم(۷)خطاب دي مؤمنانوته،پدې کښې بیان دقواعدو اودادابودطعام دي،اومقصدورنه دحضورﷺ اودازواجومطهراتوحفاظت کول دي دتکلیف وررسولونه،اوفقهاؤتصریح کړیده چې داآیت اګرچه دشانِ نزول په اعتبارسره خاص دي په حضورﷺ پوري مګرحکم ئی عام دي،وهذاالحکم وان نزل خاصاً فی النبیﷺ وازواجه فالمعنیٰ عام فیه وغیره،(جصاص)دي آیت ته آیت الحجاب دپردې آیت وئیلی کیږي ځکه چې پدې کښې دپردې حکم دي،ددې آیت شان نزول کښې اکثرومفسرینودحضرت انس رضی الله عنه نه نقل کړیدي چې هغه فرمائي:انااعلم الناسِ بشان الحجاب،دآیت دحجاب حقیقت اوشانِ نزول نه څه دټولوخلقونه زیات واقف یم،ځکه چې پدغه وخت کښې حاضرووم،کله چې حضورﷺ دزینب رضی الله عنها سره نکاح اوکړه نوولیمه ئی اوکړه،صحابه کرام رضی الله عنهم ته ئی دعوت ورکړو،دخوراك کولونه پس څه صحابهٔ کرام رضی الله عنهم ناست وو،خبرې ئی کولې،حضورﷺ هم هلته ناست وو،حضرت زینب رضی الله عنها دیوال طرف ته مخ کړې وو اوناسته وه،حضورﷺ غوښتله چې داکسان لاړشي لیکن دحیاء دوجې نه ئی ورته نه شووئیلې،پخپله دهغې مجلس نه پاسیدلوچې دوئ به پدې پوهه شي اولاړبه شي،دحضورﷺ په وتلوسره بعضِ کسان اووتل،لیکن بعض ناست ووحضورﷺ دوه،درې کرته دغه عمل اوکړونوهغوئ ته احساس اوشو، اولاړل، حضورﷺ کورته تشریف راؤړلواوداآیت ورباندې نازل شو،نورواقعات هم ددې آیت په شانِ نزول کښې راغلی دی خودامذکوره شانِ نزول اکثرومفسرینوذکرکړیدي.

﴿لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ ٱلنَّبِيِّ﴾ دااول ادب دي چې بغیرداجازت نه دحضورﷺ کورته مه ننوځئ، دلته اضافت دبیوتونبیﷺ ته شویدې اومخکښې په﴿وَٱذْكُرْنَ مَا يُتْلَىٰ فِى بُيُوتِكُنَّ﴾کښې ازواجوته شویدې،نودلته اضافت ملك ته شویدې اومخکښې کښې محل ته شویدې، ﴿إِلَّآ أَن

يُؤْذَنَ ﴾استثناء مفرغه ده دَعموم احوال نه:ای لاتدخلوا هافی حالٍ من الاحوال الاّحال کونکم مصحوبین بالاذن (روح). ﴿إِلَىٰ طَعَامٍ﴾ متعلق دي دَ ﴿يُؤْذَنَ﴾ سره. ﴿غَيْرَ نَٰظِرِينَ﴾ دا دويم ادب دي چې اجازت درته اوشي هم خودَوخت نه مخکښ بياهم مه ځئ، والدمحترم (نورالله مرقده) فرمائي: دکال دَميلمه په شان ورته تکيه مه لګوئ، ﴿نَٰظِرِينَ﴾ پمعنی دَمنتظرين دي يعني انتظارمه کوئ او ﴿إِنَىٰهُ﴾ بکسرالهمزه ياخوراك پخيدلواوتياريدلوته وائی، يادَانِیَ یأني نه ماخوذدي دَوخت په معنیٰ دي يعني وخت دَپخيدلو اوخوړلوته انتظارمه کوئ (روح المعاني) صاحب دَروح المعاني وايئ چې لکه څرنګه قبل ازوقت دَخوراك ځائ ته تلل اوهلته انتظار کول مذموم دي نوځماپه نيزهم دغه شان داهم مذموم دي چې يوسړي خاص وخت ته مدعو کړي شي اوهغه قصداًبلاعذره مؤخرکيږي محض ددې لپاره چې ځماانتظار اوکړې شي اوپه خلقوکښ مې وجاهت ښکاره شی، اوصاحب البيت حاضرينوته دَده دَيري ياااحترام پوجه خوراك نه شي ورکولې ﴿وَلَٰكِنْ إِذَا دُعِيتُمْ فَٱدْخُلُوا۟﴾ دا دريم ادب دي چې دعوت درته درکړې شي نوورځئ اوچې دعوت درته نه وي درکړې شوې نوبلادعوته مه ځئ، بغيردَدعوت نه خوراك کول ګناه دي. ﴿فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَٱنتَشِرُوا۟﴾ داڅلورم ادب دي چې کله دَخوراك نه فارغ شئ نوفوراځئ، هلته دَيوبل سره خبروکښ مه مصروفه کيږئ، يامطلب دادي چې دکوروالوُخبروته غوږکيخودلودپاره مه کينئ، ﴿لِحَدِيثٍ﴾ ظاهره داده چې داحکم هغه وخت کښ دي چې صاحب البيت ته تکليف وي دَده په حصاريدلوکښ اوکه هغه ته تکليف نه وي نوبياددَخوراك نه پس حصاريدل ګناه ندي. ﴿إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِى ٱلنَّبِىَّ﴾ داعلت دي دَمذکوره ادابو دَپاره، چې دَخوراك نه پس کيناستل، خبرې اوګپ شپ لګولوکښ حضورﷺ ته تکليف رسيږي ځکه چې دامانع دي دَبعض حاجتونو، ضرورتونوپوره کولو دَحضورﷺ کښ اودغه رنګه پدې کښ تضييق دَمکان دي په نبيﷺ اوازواجومطهراتوباندې.

﴿فَيَسْتَحْىِۦ مِنكُمْ﴾ يعني ستاسوپه اوباسلوورته حياورځي اودَخوش اخلاقئ په وجه درته په ژبې سره نه وائی چې لاړشئ ﴿وَٱللَّهُ لَا يَسْتَحْىِۦ مِنَ ٱلْحَقِّ﴾ حق نه مراداوباسل دي اومنع

ده دکیناستلونه، اومطلب دادي چې الله ﷻ تاسوته امرکوي دَوتلوپس دَخوراك نه.

﴿وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ﴾ ضمیردَجمع مؤنث ازواجومطهراتوته راجع دي، داپنځم ادب دي، داپه باره دَازواجومطهراتوکښې دي، چې کله تاسودَدوئ نه دَڅه څیزسوال کوئ، غواړئ ورنه، نوپرده کوئ اوسوال کوئ، هغوئ به ستاسونه پرده کوي تاسوبه دَهغوئ نه پرده کوئ، دَدې آیت دَنزول نه بعدبه ازواجومطهراتوپرده کوله، پدې وجه دې آیت ته آية الحجاب وائی، حضرت عائشه‌ؓ فرمائی چې ازواج مطهرات به دَشپې په تیاري کښې بهرته وتلې، حضرت عمرؓ به باربارحضورﷺ ته عرض کولوچې ازواج مطهرات دې پرده کوي، خوحضورﷺ دَپردې امرنه ووکړې، یوه ورځ حضرت سوده‌ؓ دَشپې بهروتلې وه، اوداقدنه طویله «دنګه» وه، حضرت عمرؓ پدې غرض چه حکم دَحجاب نازشي اواز ورکړو: الاقدعرفناكِ یاسودة، نوالله ﷻ داآیت نازل کړو، بخاري وغیره دَانسؓ نه روایت کړیدې چې حضرت عمرؓ حضورﷺ ته عرض اوکړوچې ستاخواته نیك اوفاجرهرقسم خلق راځي، نوکه ته امهاتوته دَحجاب حکم اوکړې نوداخبره به ډیره ښه وي، نوداآیت نازل شو، دې وجه نه مفسرینوداآیت موافقاتودَعمرؓ نه شمارکړیدې.

ددې شانِ نزول اوپه ابتداء کښې چې کوم ذکرشو، دَدواړوپه مینځ کښې تعارض نشته، ځکه محتمله ده چې دادواړه واقعات دې دَنزول سبب ګرځیدلي وي. ﴿ذَٰلِكُمْ أَطْهَرُ﴾ اشاره یاسوال من وراء الحجاب ته ده، یامذکوره ټولواحکاماتوده، اوداعلت دَپردې دې، چې پدې سره به دسړواوښځوزړونه دَهرقسم فتنې نه پاك وي، په بعض اثاروکښې دي: النظرسهم مسموم من سهام ابلیس، داحکم هم صرف په ازواجومطهراتوپورې خاص نه دې، بلکه پرده دَهرنامحرم نه ضروري ده: ویدخل فی ذالك جمیع النساء «قرطبي».

﴿وَمَا كَانَ لَكُمْ أَن تُؤْذُوا﴾ داشپږم ادب دې مؤمنانوته، چې ستاسودپاره داسې روّیه اختیارول ندي پکارچې په هغې سره حضورﷺ ته تکلیف اورسیږي، چې منجمله دَهغې نه دخول دې کوردَهغه ته بلااذنه، اوپه غیردَضرورت نه هلته کیناستل، پرده نه کول دَهغه دَازواجومطهراتونه.

﴿وَلَا أَن تَنكِحُوا أَزْوَاجَهُ﴾ داووم ادب دې اود: «وازواجه امهاتهم» تصریح ده، حضورﷺ ازواج

دَمسلمانانواُمهات دي نومسلمانانوته نه ده جائزه چې دَازواجومطهراتوسره نکاح اوکړي.﴿مِنۢ بَعۡدِهِۦٓ أَبَدًا ﴾يعني بعددَحضورﷺ نه،نه په مرګ سره او نه په طلاق سره،يعني هغه زنانه چې دَحضورﷺ په نکاح کښې پاتې شوې وي نوبياورسره دَحضورﷺ دَوفات نه بعدهم نکاح نده جائز.بعضِ وائی تحريم صرف دَمدخول بهادې،ځکه چې حضرت عمرﷺ پخپل دورخلافت کښې نوؤرجم کړې هغه سړې کوم چې هغې ښځې سره نکاح کړې وؤچې حضورﷺ هغې ته طلاق قبل الدخول ورکړې وؤ(روح)

﴿ إِنَّ ذَٰلِكُمۡ ﴾ يعني ايذارسول حضورﷺ ته په نکاح وغيره سره دَالله ﷻ په نيزډيره لويه ګناه ده.﴿إِن تُبۡدُواْ شَيۡـًٔا أَوۡ تُخۡفُوهُ﴾داشرط دې اوجزاء ئی محذوفه ده چې(يجازيكم به)دې او﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُلِّ ﴾دَمحذوفه جزاء علت دې،مقصوددادې چې الله ﷻ کامل العلم دې نوکه ستاسونه ښکاره ګناه صادريږي چې منجمله دَهغې نه دَازواجومطهراتوسره نکاح باندې قول کول دي اوکه پټ ګناه صاريږي چې منجمله دهغې نه په زړه کښې دَنکاح خواهش دې،دواړوباندې به الله ﷻ سزادرکوي.

| |
|---|
| لَّا جُنَاحَ عَلَيۡهِنَّ فِيٓ ءَابَآئِهِنَّ وَلَآ أَبۡنَآئِهِنَّ وَلَآ إِخۡوَٰنِهِنَّ |
| نيشته دې ګناه (دنه کولو دَپردې)په دوئ باندې په باره دپلارانودوئ کښې اونه په خامنودوئ کښې،اونه په ورنړودوئ کښې |
| وَلَآ أَبۡنَآءِ إِخۡوَٰنِهِنَّ وَلَآ أَبۡنَآءِ أَخَوَٰتِهِنَّ وَلَا نِسَآئِهِنَّ |
| اونه په خامنودَرونړو(ورېرونو)دَدوئ کښې،اونه په خامنودَخويندو(خوريونو)دَدوئ اونه په ښځودَدوئ کښې، |
| وَلَا مَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُهُنَّۗ وَٱتَّقِينَ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ شَهِيدًا ۝ |
| اونه په وينزودَدوئ کښې،اويريږئ دَالله ﷻ نه يقيناً الله ﷻ په هرڅيزباندې حاضر دې . |

﴿لَّا جُنَاحَ عَلَيۡهِنَّ ﴾اى لااثم عليهن فى ترك الحجاب من اٰبائهنّ(روح)دې آيت کښې دَهغه کسانوذکردې چې دَهغوئ نه پرده کول نشته،مفسرين وائی چې کله دَحجاب آيت نازل شونوپلارانو،اونوروخپلوانواووئيل چې مونږبه هم دَازواج مطهراتونه پرده کوؤاومِن وراء

الحجاب به ورسره خبري كوؤنوداآيت نازل شوچې دې دې كسانونه پرده نشته.
﴿ءَابَآبِهِنَّ﴾پلارنه پرده نشته،نسبي وي كه رضاعي،﴿وَلَا أَبْنَآبِهِنَّ﴾كه خپل خامن وي اوكه
دخاوندخامن وي لكه امّ سلمهؓ به دابو سلمهؓ دخامنونه پرده نه كوله.﴿وَلَآ إِخْوَٰنِهِنَّ﴾ رورنه
هم پرده نشته نسبي وي كه رضاعي،﴿وَلَآ أَبْنَآءِ إِخْوَٰنِهِنَّ﴾وراره نه پرده نشته،﴿وَلَآ أَبْنَآءِ
أَخَوَٰتِهِنَّ﴾دخورئي نه هم پرده نشته،﴿وَلَا نِسَآبِهِنَّ﴾اى نساء المومنات،يعني ازواج مطهرات به
دعامومؤمناتوښځونه به هم پرده نه كوي البته دكافراتوښځونه به پرده كوي، ((روح المعاني))
﴿وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُنَّ﴾ امام ابوحنيفهؒ فرمائي چې ددې نه مرادصرف وينزې دي،يعني
دوينزونه به پرده نه كوي،البته دغلامانونه پرده ضروري ده،پدې آيت كښې
دعم(تره)اودماماذكراونه شوحالانكه دوئ نه هم پرده نشته،داپدې وجه چې دوئ پمنزله
دآباؤدي نوپه اباء هن كښې داخل دي،يادَ﴿وَلَآ أَبْنَآءِ إِخْوَٰنِهِنَّ﴾اودَ﴿وَلَآ أَبْنَآءِ أَخَوَٰتِهِنَّ﴾په ذكرسره
ددوئ نه اكتفاء اوشوه،په سورة النوركښې نوري رشتې هم تيرې شويدي چې دهغوئ نه پرده
كول واجب نه دي،دغه رنگه دحجاب مكمل تفصيل هم هلته تيرشويدي.

﴿إِنَّ ٱللَّهَ وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى ٱلنَّبِيِّ ۚ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ صَلُّوا۟ عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا۟ تَسْلِيمًا ۝﴾

بيشكه اللهﷻ اوفرشتې دهغه درود وائي په نبيﷺ باندې،اې مؤمنانو!درودووايئ په هغه اوسلام وايئ په سلام ويلوسره

﴿إِنَّ ٱللَّهَ وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى ٱلنَّبِيِّ﴾دااتم(۸)خطاب دې مؤمنانوته،پدې كښې
دحضورﷺ مرتبه اوقدرذكركيږي،چې اللهﷻ دحضورﷺثناء كوي په رسم بدماتولوباندې
نوتاسوهم دحضورﷺ ثناء كوئ،داللهﷻ اوملائكودطرفه دصلوة على النبيّ په معنىٰ كښې
اختلاف دې(۱)بعض وائي چې صلوة داللهﷻ دحضورﷺ ثناء ده دملائكوخواكښې،اوتعظيم
دهغه دې،اوصلوة دملائكودعاده حضورﷺته،(۲)بعض وائي چې صلوة داللهﷻ رحمة خاصه
راليږل دي په حضورﷺ باندې،اوصلوة دملائكودعاء ده،پدې وجه امام شافعيؒ داآيت
په استدلال كښې نيولې دې چې عموم مشترك جائزدې،ځكه چې دلفظ واحدنه ډيرې معنې
اغستې شويدي،احناف وائي چې دآيت مقصددادې چې په مؤمنانوباندې داللهﷻ

اودَملائکواقتداء واجبه اوضروري ده اوداهله کيديشي چې دَصلوٰة نه داسې معنی مرادشي چې هغه ټولوته شامله وي يعني عامه وي،اوهغه داده چې صلوٰة دلته پمعنیٰ دَالاعتناء بمافيه خيره ﷺ دې،يعني الله ﷻ اودَهغه ملائك اعتناء کوي يعني متوجه کيږي هغه څيزته چې په هغې کښې دَحضور ﷺ خيروي،نودَدي اعتناء نسبت چې الله ﷻ ته اوشي نومرادورنه دَرحمتِ خاصه نزول دې،اوچه ملائکوته اوشي نومرادورنه استغفاردې اوچې انسانانوته اوشي نودعاورنه مراده ده،نوپه آيت کښې عموم مجازشويدې عموم مشترك نه دې شوې.

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ﴾ صَلّوا صيغه دَامرده،امردَوجوب دپاره دې،نوداآيت دلالت کوي پدې چې په حضور ﷺ باندې صلوٰة سلام وئيل واجب دي،دَدې وجې نه درودشريف په ټول عمرکښې کم ازکم يوځل وئيل فرض دې اوکله چې په يومجلس کښې دَحضور ﷺ نوم مبارك ذکرشي نودروردشريف وئيل واجب دي، کمافى الحديث،رغم انف رجلٍ ذُکرتُ عنده فلم يصلّ عليّ،چې په يومجلس کښې مکررذکرشي نودرودشريف وئيل مستحب دي،دَامام طحاوي رحمه الله په نزدمکرروئيل واجب دي اوداآيت کريمه چې تلاوت کړيشي بغيردَمونځ نه اودَجمعي دَخطبې نه نومستحبه ده چې يوځل درودشريف وئيلى شي،اللّهمّ صلّ علىٰ محمّدٍنِ النبي الاميّ وبارك وسلم عليه،اودَجمعې په خطبه کښې چې ذکرشي نوپه سامعينُ ته په زړه کښې وئيل پکاردي،والصّواب ان يصلّي على النبيّ عندسماع اسمه فى نفسه(فتاوىٰ دارالعلوم ديوبند،بحواله الدرالمختارباب الجمعه).

په صحاح سته ؤکښې دکعب بن حجره رضي الله عنه نه روايت دې چې کله داآيت نازل شونويوصحابي عرض اوکړوچې پدې آيت کښې مونږته دوؤڅيزونوامردې،يودَصلوٰة بل دَسلام،دَسلام طريقه خومونږته راځي چې:السلام عليك ايهاالنبي ورحمة الله وبرکاته،دې، مونږته دصلوٰة طريقه هم اوښايه،نوحضور ﷺ ورته درودابراهيمي اوښودلوچې داوايئ،پدې وجه علماء وايئ چې افضل درودپه درودونوکښې درودابراهيمي دې ځکه چې داحضور ﷺ پخپله غوره کړيدې.

دَدرودشريف وئيلولوئ فضيلت دَدې آيت نه پخپله معلوميږي ځکه چې په نوروعبادتونوکښې الله ﷻ بندګانوته دَاداکولوحکم کوي اودرودشريف په باره کښې ئې اول پخپله بنفس نفيس دَدې عمل ذکرفرمائيلې دې اوبيائ په دې باندې دَفرشتومامورِه

کیدلو ذکر کړیدې اودې نه پس ئې مؤمنانو ته حکم کړیدې.

دَابن مسعودﷺ نه روایت دې:قال رسول اللهﷺ:انّ اولی الناسِ بي یومَ القیامة اکثرهم عليّ صلوٰةً(ترمذي) ترجمه:دَقیامت په ورځ به ماته دَ ټولونه نیزدې هغه کس وی چه په ماباندې زیات درود وائی. په یوبل روایت کښ دي:ان لِلهِ ملائکةً سیّاحین فی الارض یبلّغوني عن امتي السلام(نسائي) ترجمه:دَالله تعالی دَ طرف په زمکه کښ ګرځیدونکي فرشتې مقررې دی چه څمادَامتی سلام ماته رارسوی. دَانسﷺ نه روایت دې:انّ النبيّﷺ قال من صلّی عليّ صلاةً صلّی الله علیه عشرصلوٰة وحُطّت عنه عشرخطیئاتٍ ورُفعت له عشردرجاتٍ(نسائي) ترجمه:څوک چه په ما یوځل درودواوائ الله تعالی ورباندې لس(۱۰)ځله درود وائی لس ګناهونه ئې معاف کوي لس درجی ورته اوچته وی.

﴿وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾مراددَدینه سلام وئیل دي،یعنی السّلام علیك ایهاالنبي،بعض وائي دینه مراددادي چې:دَحضورﷺ دَاحکاماتو پوره پوره تعمیل اوکړئ

**فائده**:(۱)امام نوويﷺ استدلال نیولې پدې آیت سره چې صرف صلوٰة وئیل یاصرف سلام وئیل مکروه دی ځکه چې امرپه دواړو باندې معًاوارددې،لیکن جمهوروائی چې مکروه نه دې،ځکه چې ماموربه مطلقاصلاة اوسلام وئیل دي اودادلالت نه کوي په دواړو باندې معًا ،کمافی قوله تعالی:واقیموا الصلوٰة واتوالزکاة وغیرذلك

**فائده**:(۲)دَحضورﷺنه علاوه په نوروانبیاؤباندې هم صلاة وئیل جائزدي بلاکراهةً،بیهقي دَابوهریرهﷺ نه نقل کړیدي چې حضورﷺ فرمائی:صلّوا علی انبیاء الله ورسُله فان الله تعالی بعثهم کمابعثني،دَدې حدیث نه په جوازدَصلاة په ملائکوباندې هم استدلال کیدیشي ځکه چې ملائك هم رُسل دي.

**فائده**:(۳)دَانبیاؤاوملائکونه علاوه بل چاباندې صلاة وسلام وئیل په نیزدَبعض جائزدی، لقوله تعالی: اولئك علیهم صلوٰة من ربّهم(بقره)وصلّ علیهم انّ صلوٰتك سکنٌ لهم(توبه) دغه شان په یوحدیث کښ:اللهم صلّ علی آل ابی اوفیٰ،ذکردي،لیکن جمهوروایئ چې انبیاؤ اوملائکونه علاوه بل چاباندې صلوٰة وسلام وئیل جائزنه دی مستقلاً ،البته تبعاًجائزدی،ځکه چې داعلامه دَانبیاؤده،ابن عباسﷺ نه مروي ده چې: لاتنبغي الصلاة من احدٍعلی احدالاّعلی النبيﷺ،دغه شان صلاة وسلام وئیل په قرونِ اولیٰ کښ نه وو،دادَشیعه ګانوبدعت دي.چې

دَبعض ائمه ؤپه حق کښې عليه السلام وائي، اودګمراه فرقواواهلِ بدعت سره دَمشابهت نه اجتناب لازم دي، نوسيدناحضرت حسين ﷺ وئيل پکاردي.

إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَأَعَدَّ لَهُمْ

بيشکه هغه کسان چه تکليف رسوي الله ﷻ اورسول دَهغه ته،لعنت دې وي په دوئ باندې دالله ﷻ په دنيااواخرت کښې

عَذَابًا مُّهِينًا ﴿٥٧﴾ وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ

اوتيارکړې ئ دې ددوئ لپاره عذاب ذليلوونکې،اوهغه کسان چې تکليف رسوي مؤمنانوته اومؤمناتوښځوته

بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوا فَقَدِ احْتَمَلُوا بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ﴿٥٨﴾

بغيردَهغې نه چه دوئ کړې وي،نوپه تحقيق بارکړې دې دوئ بهتان اوګناه ښکاره

﴿إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ داتخويف دنيوي اواخروي دې کافرانو اومنافقانوته،چې کوم خلق الله ﷻ اودَهغه رسول ﷺ ته تکليف رسوي نوپه هغوئ باندې په دنيااوآخرت کښې دَالله ﷻ لعنت وي اودَدوئ لپاره ئې ذلت ناک عذاب تيارکړيدې،دَدې آيت دَشان نزول متعلق بعض فرمائي چې داآيت په حضرتِ عائشه ﷺ باندې تهمت لګولومتعلق نازل شويدې،بعضُ رواياتوکښې دي چې دَحضرت صفيه ﷺ سره دَنکاح په وخت کښې بعضِ منافقانوطعن کړې وؤنودَهغوئ باره کښې داآيت نازل شو(روح المعاني).

﴿يُؤْذُونَ اللَّهَ﴾ الله ﷻ ته دَتکليف اوايذاء رسولومطلب دادې(١)چې دَالله ﷻ دَاوامرونه مخالفت اوشي اودَمعاصيؤارتکاب اوشي(٢)دَکوموکارونوپه ارتکاب سره چې مخلوق ته ايذاء رسي دَهغې نه تعبيردلته:الله ﷻ ته په ايذاءرسولوسره شويدې(٣)زماني اووخت ته بدوئيل دَمصائبواوحوادثووخت کښې لکه خلق وائي:ډيره بده زمانه راغله،ډيربدوخت راغې،وغيره،نوزماني وخت ته بدوئيل سبب دي الله ﷻ ته دَايذاء رسولو،دَابي هريره ﷺ نه روايت دي چې حضور ﷺ فرمائي:قال الله تعالىٰ يؤذيني ابنُ ادم بسببِ الدّهروانا الدهر بيدي الامراقلّب الليل والنهار(بخاري)يعني انسان ماته په سبب دَزماني ايذاء رارسوي(ځکه چې انسان زماني ته بدردوائي)حالانکه زمانه څه يمه(يعني زمانه ماپيداکړيده)ټول کارونه ځماپه قبضه کښې دي شپه اوورځ څه بدلوم(۴)نبي کريم ﷺ ته تکليف رسول ځکه چې حضور ﷺ ته

ايذاء رسول اللهﷺ ته ايذاء رسول دي كماقال الحديث،ومن آذاهم فقدآذاني ومن آذاني فقدآذى الله ومن آذى الله يوشك ان ياخذ(ترمذي)دَدې حديث نه داهم معلومه شوه چې صحابه كرامو ته ايذاء رسول حضورﷺ ته ايذاءرسول دي اوحضورﷺ ته ايذاء رسولوسره اللهﷻ ته ايذاء رسيږي(٥)دهغه شان اللهﷻ ته دَولد اودَشريك وغيره نسبت كول دي لكه يهودوائى عزيربن الله،يدالله مغلولة،انّ الله فقيرونحن اغنياء،اونصارىٰ وائى مسيح ابن الله،انّ الله ثالث ثلثه،اومشركين وائي:الملائكة بنات الله(روح)﴿وَرَسُولَهُ﴾اوحضورﷺ ته ايذاء رسول دادى(١)چې دهغه په نبوت اورسالت كښې طعن كول،لكه مشركانوبه وئيل چې دې شاعردې،ساحردې،كاهن دې،مجنون دې نعوذبالله(٢)جسمانى تكليف وركول لكه په غزوه احدكښې دَحضورﷺ غاښونه شهيدان شوى وو اومخ مبارك يې زخمي شوې وو(٣)داسې الزام لګول چې هغه دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم ذات وشان سره لائق نوې،خلاصه داچې هرهغه عمل اوقول چې هغې سره نبى صلى الله عليه وسلم ته تكليف رسى روحانى ياجسمانى ترينه مراد دي.

**فائده**: كوم سړې چې حضورﷺ ته ايذاء رسوې يادَحضورﷺ په ذات اوصفاتوكښې څه عيب رااوباسي نوهغه كافردې اودَدې آيت په مصداق سره هغه په دنيااوآخرت دواړوكښې معلون دې،

﴿وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمِنِينَ﴾داهم زجردې په تكليف رسولومومنانوته اومؤمناتوته، مؤمنانواومؤمناتوته تكليف رسول ګناه كبيره دې،لكه كنځل كول،دَبل مسلمان غيبت كول ياورباندې تهمت تړل وغيره،بيهقي كښې دَعائشيؓ نه روايت دې چې حضورﷺ دَصحابه وُنه تپوس اوكړوچې بدترين سوددَاللهﷻ په نيزڅه دې؟ هغوئ عرض اوكړوچې:الله ورسوله اعلم،حضورﷺ اوفرمائيل:بدترين سودپه سودونوكښې دَيومسلمان بې عزتي كول دي،بيائى داآيت تلاوت كړو:والذين يؤذون المؤمنين والمؤمنات بغيرمااكتسبوا...

| يٰٓاَيُّهَا | النَّبِيُّ | قُلْ | لِّاَزْوَاجِكَ | وَبَنٰتِكَ | وَنِسَآءِ | الْمُؤْمِنِيْنَ | يُدْنِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اي نبي! | ته حكم | وكړه | خپلوبيبيانوته | اوخپلولوڼوته | اوښځودمؤمنانوته | چه راخواره | دكړى |

| عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ۭ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ يُّعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ ۭ |
|---|
| په ځانونوخپل غټ څادرونه،دادېره قريبه ده دې ته چه پېژندې به شي دوئ نوضرربه ورته نشي رسولې. |

| وَكَانَ | اللّٰهُ | غَفُوْرًا | رَّحِيْمًا | ۵۹ |
|---|---|---|---|---|
| او | الله جل جلاله | بخښونكي | مهربانه | دي |

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ﴾دااووم خطاب دې حضورﷺ ته،پدې آياتونوكښې دَمنافقانودَدوؤشرارتونونه دَحفاظت انتظام دې،دَمنافقانوبوشرارت داوؤچې دَنزول حجاب نه قبل به چې كله مسلمانانې زنانه دَقضاء حاجت دپاره بهرته وتلې نودوئ به تنګولې،اوآزونه به ئى ورپسې كول چيړچاړبه ئى ورسره كولو،پدې زنانه ؤكښې به حرائرې(ازادې)ښځې هم وې اووينزې به هم وې،نوكله به چې يوې زنانه سره به ئى چيړاوكړواو په هغې به دَدوئ ګرفت اوشونودوئ به وئيل چې زمونږداګمان وؤچې داوينزه ده(روح وغيره)نوپدې باندې به عام مسلمانانوته اوحضورﷺ ته تكليف ميلاويدلو،نوالله جل جلاله دَدې انتظام اوكړو،حكم راغې چې اې نبي!خپلوبيبيانوته اوبناتوته اومسلمانانوښځوته دَپردې حكم اوكړه چې كله بهرته اوځي دَځه حاجت لپاره نوپه پرده كښې دې ځي،نودوئ به پيژندلې كيږي چې داحرائرې دي نوځوك به ورته تكليف نه شي رسولې،پدې آيت كښې دَحرائروښځودَحفاظت انتظام دې پاتې شولې وينځې نو دَ پردې كوم احكامات چې آزادې ښځې ته ميلاؤ شويدى دَ خپل محارمو په باره كښې ،چې دَ هغوئ نه مخ لاس ،خپو وغيره پرده نشته ،نودغه احكامات وينځوته دَ نامحرمويه باره كښې هم دي،ځكه چې دوئ دَخپل مولىٰ لپاره دَ كور نه باهر كارونه هم كوى،نومكمل پرده لازمولوصورت كښې په هغى حرج راځى.ده وينځو حفاظت انتظام ورستوآيت كښې روان دې.

﴿وَبَنَاتِكَ﴾خطاب حضورﷺ ته دې،نوپه نصّ صريح سره دامعلومه شوه چې دَحضورﷺ لونړه ډيرې وې،صرف حضرت فاطمهؓ نه ده،دَحضورﷺ څلورلونړه وې اوټولې دَحضرت خديجيؓ دَبطن نه پيداوې،رقيهؓ،زينبؓ،امّ كلثومؓ،اوفاطمهؓ، نوپدې سره په شيعه ګانوباندې رداوشوچې هغوئ وائي چې دَحضورﷺ صرف يوه لورحضرت فاطمهؓ وه،بعض

شیعه ګان دَدې په جواب کښې وائی چې دلته دَبنات نه مرادبنات دَامّت دي،چې هغوئ هم دَحضورﷺ روحاني لونړه دي،نوجواب دادې چې دَامّت دَبناتواوښځوذکر بعدکښې صراحتاً موجوددې ﴿وَنِسَآءِ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾نودَبنات لفظ په روحاني بناتوباندې محمول کول غلط دی،بلکه دَبناتونه مرادصُلبي بنات دي.﴿وَنِسَآءِ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾دې کښې عام مسلمانانو ښځوته دَپردې حکم دې،بعض فیشن زده اودَقرآن دَ احکاماتونه جاهله خلق وائی چې په قرآن کښې دَعامومسلمانان وښځودپاره دَپردې حکم نیشته،والله یهدي الیه من یشاء.

جمهورمفسرین وائی چې(نساء المؤمنین) نه مرادصرف حرائرې یعني آزادي ښځې دي. وینزې پدې حکم کښې ندې داخلي،شانِ نزول دَآیت هم دَدې تقاضاکوي،حضرت عمرؓ به هم وینزه دَپردې نه منع کوله اووئیل به نی چې پرده دَحرائرودپاره ده ابوحیانؒ وائی چې ﴿وَنِسَآءِ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾حرائرواووینزودواړوته شامل دې،ځکه چې فتنه په وینزوکښې زیاته وي دَوجه دکثرة دَبهروتلودَدوئ،پخلاف دَحرائرو،نووینزې دَدې حکم نه اوباسلودَپاره دلیل واضح پکاردې،(والله اعلم)﴿يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ﴾ یدنین،د ادناء نه دي،ادنا نزدیکولوته وائي اودلته ترینه مراد رازوندول اوراخورول دي، ای یُرخین علیهنّ(کشاف) یعني چې بهرته دَځه ضرورت دپاره اوځي نوپه بدن باندې دې جلباب یعني غټ څادررازوړندکړي.

(علیهنّ)پمعنی دَعلی جمیع اجسادِهنّ دې بعض وائی پمعنیٰ د:علی رؤسهنّ یاپه معنیٰ دَعلی وجوههنّ دې(روح)،﴿مِن جَلَٰبِيبِهِنَّ﴾جلابیب جمع دجلباب ده،هغه غټ پړوني اوڅادرچې ټول بدن ورسره پټ شي،علماء وائی چې نن صبامروّجه برقه دَدې قائمقام ده اودَزنانه دپاره استره هم ده،فیشني برقعه چې دَبدن اعضاؤساخت پکښې معلومیږي.په حکم دَجلباب کښې هیڅ کله هم نه ده(من)په﴿مِن جَلَٰبِيبِهِنَّ﴾کښې تبعیضیه دي،نومراد دادې چې دَجلباب په یوجزء سره دې سراومخ پټ کړي اوپه باقي باندې دي نوربدن پټ کړي(روح المعاني)

﴿ذَٰلِكَ أَدْنَىٰٓ أَن يُعْرَفْنَ﴾پدیکښې دَپردې حکمت بیانیږي،چې په پردې سره اوپیژندلې شي چې دااصیله ده،وینزه نه ده،باحیاء شریفه ده،دَننګ ناموس میرمنه ده،بدبخته بدناموسه نه

ده،نیکه ذاته ده،بدذاته نه ده ﴿وَكَانَ اللّٰهُ غَفُورًا ﴾یعني که سره دَدومره اهتمامه څه تقصیراوشي نوالله ﷻ غفوردې،معافي به کوي﴿رَّحِيمًا﴾رحم کونکې دې چې دَایذاء دَمنافقانونه ئې حفاظت اوکړو.

| |
|---|
| لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّالْمُرْجِفُوْنَ |
| قسم دې که منع نه شول منافقان اوهغه کسان چه په زړونودهغوئ کښې مرض دې اودَروغ خورونکی |
| فِي الْمَدِيْنَةِ لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُوْنَكَ فِيْهَآ |
| په مدینه کښې،نوخامخامسلط به کړومونږتاپه دوئ باندې،بیابه دوئ ګاوندګیری ونکړی تاسره په مدینه کښې |
| اِلَّا قَلِيْلًا ۛ مَّلْعُوْنِيْنَ ۚ اَيْنَمَا ثُقِفُوْٓا اُخِذُوْا وَقُتِّلُوْا تَقْتِيْلًا ۝ |
| مګرډیرکم،لعنت کړې شوی به وی دوئ،هرچرته چه اومندلې شی نیولې کیږي به،اوقتل کیږی به په قتلولوسره. |
| سُنَّةَ اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ۚ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا ۝ |
| داعادت دَالله ﷻ دې په باره دهغه خلقوکښې چه تیرشویدی مخکښې،اوهرګزبه اونه مومې ته دَعادت دَالله ﷻ لره بدلوالې |

﴿لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ الْمُنٰفِقُوْنَ ﴾په دې آیت کښې دَمنافقانودَدویم شرارت نه دَحفاظت انتظام دې،اودَوینزودَحفاظت انتظام دې، اوتخویف دې،دَمنافقانودویم شرارت داوؤچې کله به دَمسلمانانوسره جهادته لاړل نودَخلقوزړونوکښې به ئې دَرُعب اچولودپاره دَشکست خبرې کولې،اوافواګاني به یئ خورلې،اوکله بئ وئیل چې اوس به فلانئ فلانئ قبیله په مدینې بندې حمله کوي،اوټول خلق به ختموي،نوپدې آیت کښې الله ﷻ دوئ ته تنبیه ورکړه چې کچرته دئ دَدې خپل کارونونه منع نه شول نوانجام بئ ښه نه وي.

لام په﴿لَئِنْ لَّمْ ﴾کښې لام قسمیه دې.﴿ وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ ﴾مرض نه مرادمرض دَزنااودغه شان ښځې تنګول دي﴿وَالْمُرْجِفُوْنَ﴾دَرجفةٌنه مشتق دې رجفة زلزلې ته وائی،کقوله تعالی:فاخذتهم الرّجفة(اعراف) دلته ورنه مراددَدروغوخبرې اوافواګاني خورونکی دي.دروغوخبروته ځکه رجفه وئیلې شوې چې داخبرې هم متزلزلې وي اوغیرثابت

وي. یاداچې پدې سره د مؤمنانو زړونه مضطرب کیږي، متزلزل کیږي(روح المعاني). دا درې واړه اوصاف د منافقانو دی، او عطف د تغائر وصفی پوجه شویدې

﴿لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ﴾ دا جواب قسم دې ای لنسلطنك عليهم بالقتل والجلاء. ضروربه مونږه تا د دوئ په قتل او جلاوطنئ باندې مسلط کړو، یعني حکم به درته اوکړونو دوئ به بیا ستا په قرب وجوار کښ یعني په مدینه کښ نشي پاتې کیدلې، ﴿إِلَّا قَلِيلًا﴾ ای زمانا قلیلاً، صرف دومره وخت چې په هغې کښ به دوئ اهل وعیال منتقل کړي، پدې سره فقهاؤ استدلال کړیدې چې چاته مالك د طرفه د کورخالې کولو حکم اوکړیشي. نو مالك به ده ته دومره مهلت ورکوي چې په هغې کښ هغه په اسانئ سره بل کورپیدا کړي.

﴿مَّلْعُونِينَ﴾ منصوب على الذم دې ای اذمّ ملعونین(روح) یا حال دې د (یخرجون) محذوفه نه ای یخرجون ملعونین. ﴿سُنَّةَ اللَّهِ﴾ مفعول مطلق دې ای سنّ الله تعالى ذلك سنةً یعني الله ﷻ دا طریقه چې کوم خلق شرخوره ونکی دي هغوئ به قتل کیږي جلاوطن کیږي.

﴿وَلَن تَجِدَ لِسُنَّةِ اللَّهِ تَبْدِيلًا﴾ یعني دا دستوراو طریقه د الله ﷻ هیڅ کله نه بدلیږي اونه پکښ نسخ راځي په شان د نوروا حکامو، ځکه چې نسخ په احکامو کښ راځي، هرچه افعال او اخبار دي نو هغه نه منسوخ کیږي.

آیا منافقانو ته دامذکوره سزاملاوه شوې وه اوکنه؟ نو دې باره کښ صاحب د روح المعاني وغیره متعدد اقوال ذکرکړیدي، (۱) یو په هغې کښ دادې چې چونکه منافقان پدې وعید سره د خپل دې فعل نه منع شوي وو، نو لهذا سزاوارته نه ده ملاؤ شوې (۲) بعض وائی چې په افواګانو خوره ونکو کښ یهودیان هم وو، نو هغوئ ته سزاملاوه شوې ده، لکه بنو نظیر د مدینې منورې نه جلاوطن کړې شوي وو، (۳) بعض وائی سزاورته ملاوه شوې وه چې حضور ﷺ د خپل جمات نه اوباسلي وو، او د جنازې نه ئې ورباندې انکارکړې وو.

| |
|---|
| يَسْأَلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ ۖ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ اللَّهِ ۚ وَمَا يُدْرِيكَ |
| تپوس کوي ستانه خلق په باره د قیامت کښ، ته اووایه چه علم د هغې صرف اوصرف الله ﷻ سره دې، او تاته څه پته ده اې پیغمبره |

لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُونُ قَرِيبًا ﴿٦٣﴾ اِنَّ اللّٰهَ لَعَنَ الْكٰفِرِيْنَ وَاَعَدَّ لَهُمْ سَعِيْرًا ﴿٦٤﴾

چه کيديشي قيامت نيزدې وي.بيشکه الله جل جلاله لعنت کړيدې په کافرانو اوتيار کړې يې دې دَدوئ لپاره جهنم.

خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۚ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿٦٥﴾ يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوْهُهُمْ

هميشه به وي دوئ په دې کښې هميشه،نه به مومي دوئ دخان لپاره دوست اونه مددګار.په کومه ورځ چه دوئ پرمخې واچولې شي

فِي النَّارِ يَقُوْلُوْنَ يٰلَيْتَنَآ اَطَعْنَا اللّٰهَ وَاَطَعْنَا الرَّسُوْلَا ﴿٦٦﴾ وَقَالُوْا

په اورکښې.وائي به آفسوس مونږلره چه فرمانبرداری کړې وې مونږدَالله اواطاعت کړې وې مونږدَرسول.اووائي به دوئ

رَبَّنَآ اِنَّآ اَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَآءَنَا فَاَضَلُّوْنَا السَّبِيْلَا ﴿٦٧﴾ رَبَّنَا

اې ربه زمونږه بيشکه مونږه اطاعت کړې وودَساداتوخپلو،اومشرانوخپلو،نودوئ ګمراه کړومونږ دَسمې لارې نه.اې ربه زمونږ

اٰتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ وَالْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيْرًا ﴿٦٨﴾

ورکړه دوئ ته دوه چنددَعذاب نه اولعنت وکړه په دوئ لعنت لوئ(شديد)

﴿يَسْـَٔلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ﴾داتخويف اخروي دې دَ﴿النَّاس﴾نه مرادمطلقا کافران دي مشرکانوبه دحضورﷺ نه استهزاءً دَقيامت په باره کښې سوال کولوچې دابه کله واقع کيږي،اويهوديانوبه امتحاناًکولو،ځکه دوئ ته په تورات کښې معلومه شوې وه چې دَقيامت دَواقع کيدلوعلم اللهﷻ مخفي اوپټ ساتلې دې،اومنافقانوبه تعنتاًکولو﴿قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ اللَّهِ﴾يعني علم دَقيامت صرف اللهﷻ ته دې، ،دَدې دَواقع کيدلواطلاع نۍ نه مقربې فرشتې ته ورکړيده نه هيڅ نبي ته.﴿وَمَا يُدْرِيكَ﴾استفهام پمعنیٰ دَنفي دې،يعني تاته دَقيامت دَوقوع علم نشته دې﴿لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُونُ قَرِيبًا﴾يعني دقيامت دَوقوع علم چاته نشته دې خوبياهم قريبه ده چې واقع شي،﴿قَرِيبًا﴾صفت دې د خبر محذوف-أي شيئا قريبًا-لهذا دا اشکال نه وارديږي چې دَفعل ناقص اسم اوخبر کښې دَ تذکيروتانيث اعتبارسره مطابقت نشته،ځکه چې مطابقت هلته ضروري وي چې خبر اسم مشتق وي اودلته خبر اسم مشتق نه دې.

﴿يَٰلَيۡتَنَآ أَطَعۡنَا ٱللَّهَ﴾يعنی اوس خو قيامت پورې توقی مسخرې کوی،اودَ ضد وعنـ
دوجهی نه ستا اطاعت نکوی.خو کله چه قيامت راشی اودوئ پرمخې اورته اوغورځولې شی
نو بيابه ورته پته اولګی اوډيرارمانونه به اوکړی،چې کاش مونږ دَ الله تعالی اودهغه رسول
اطاعت کړې وې ﴿وَقَالُواْ رَبَّنَآ إِنَّآ أَطَعۡنَا﴾هرکله چې دوئ ته دغه تمناګانې فائده ورنکړي نووائی
به چې اې ربه زمونږ دې مشرانو مونږګمراه کړي يو ،دوئ ته دوه چنده عذاب ورکړه،﴿سادَتَنَا﴾
جمع دَسيِّدده.بعضِ وائی اسم جنس دې دلته ورنه مرادګمراهان ملوك اوبادشاهان
دي،اودَ﴿وَكُبَرَآءَنَا﴾نه مرادګمراه ليډران،مشران دي بعضِ وائي چې سادات اوکبراء دواړه
يوشئ دي، دواړونه مرادهغه ګمراه علماء اوپيران دي چې دوئ ته به ئې دکفرتلقين
کولو ،قتادهؒ وائی چې مرادورنه دَشرك اودَشرمشران دي(روح المعاني).
﴿فَأَضَلُّونَا ٱلسَّبِيلَا﴾"السبيلا"کښې الف لام عهدي دې،معهودپدې سره لاره دَتوحيداودَسنت
ده،اوالف په (السبيلا)کښې دپاره دَقافيه دې.﴿رَبَّنَآ ءَاتِهِمۡ ضِعۡفَيۡنِ مِنَ ٱلۡعَذَابِ﴾دوه چنده عذاب
ورته ورکړه،يوعذاب دَخپلې ګمراهئ اوبل زمونږدګمراه کولوعذاب،﴿لَعۡنٗا كَبِيرٗا﴾ای شديدا.

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَكُونُواْ كَٱلَّذِينَ ءَاذَوۡاْ مُوسَىٰ فَبَرَّأَهُ ٱللَّهُ مِمَّا |
| اې ايمان ولؤ،مه کيږئ په شان دهغه کسانو چه تکليف ئې رسولې وؤموسیٰؑ ته،نوبرى کړوهغه اللهﷻ دهغه عيب نه |
| قَالُواْۚ وَكَانَ عِندَ ٱللَّهِ وَجِيهٗا ٦٩ |
| چه دوئ ويل.اووؤدې په نزددَاللهﷻ خاوندعزت. |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَكُونُواْ كَٱلَّذِينَ ءَاذَوۡاْ مُوسَىٰ﴾دانهم(٩)خطاب دې مؤمنانو ته،چې اې
مؤمنانودَمتبنی رسم بد خاتمه نبی کريم صلی الله عليه وسلم دالله په حکم سره پخپله
اوکړه،اودخپل متبنی مطلقې سره يې نکاح اوکړو،نوتاسواوس داسې خبرې مه کوئ چې په
هغې باندې نبی صلی الله عليه وسلم ته تکليف رسی،اوبنی اسرائيلوپشان مه کيږئ چې
هغوئ موسی عليه السلام باندې بې ځايه الزامات لګولو ،اوتکليف به يې ورته ورکولو ،شان

نزول اعتبارسره اګرچه دَ دې آيت تعلق متنبی مسئلی سره دې، خوحکم يې عام دې، دَنبی کريم صلی الله عليه وسلم په هرکار باندې اعتراض نه منع اونهی ده لکه متعدد روياتوکښ راځی چې دَجنګ حنين په موقع کښ مالِ غنيمت راجمع شونوحضورﷺ په اختيارصفي سره دَعربوبعضِ سردارانوته(لکه حابس بن اقرع وغيره)دَنوروپه مقابله کښ زيات مال ورکړو(تاليفاًلقومهم)نويوکس اووئيل:هذه قسمةٌ والله ماعُدِل فيهاوماارُيدبهاوجه الله،يعني داداسې تقسيم دې چې پدې کښ انصاف ندې شوې اوپدې کښ دَالله ﷻ رضامقصوده نه ده،عبدالله بن مسعودؓ دَحضورﷺ په خدمت کښ حاضرشواوداخبره ئې ورته نقل کړه،دَحضورﷺ رنګ متغيرشو،اوبيائې اوفرمائيل:فمن يَعدل اذالم يعدلِ الله ورسوله،چې اللهﷻ اودَهغه رسول عدل اونکړي نوبه ئې څوك اوکړي اوبيائې اوفرمائيل:يرحم الله موسیٰ قدأوذی باكثرمن هذافصبر،يعني اللهﷻ دې په موسیٰ باندې رحم اوکړي،دَدې نه زيات تکليفونه ورته ورکړېشول بياهم هغه صبراوکړو.يعنی مختلف الزمات يې پرې لګولی وؤ اوتکليف يې ورته ورکړې وؤ،خو الله تعالی پخپل قدرت سره دهغو ټولو الزاماتو نه بری کړو،لکه دَ دوئ يو الزام وؤچې حضرت موسی عليه السلام په جسم کښ څه عيب دې،ځکه دې زمونږ کښ بربنډ نه لامبی،لکه دَهغی زمانی دستور وؤ

﴿ءَاذَوْا مُوسَىٰ﴾ امام بخاريؒ په کتاب التفسيراوکتاب الانبياء کښ واقعه ذکرکړېده ابوهريرهؓ نه روايت دې چې حضورﷺ فرمائی چې بيشکه موسیٰؑ ديرحياناك اوپرده دار انسان وؤد حيا دوجهی نه به يې دَ بدن هيڅ حصه هم نه ښکاريده اودَبني اسرائيلونه تنهاپه جدايئ کښ به ئې غسل کولو،بني اسرائيلوبه وئيل چې موسیٰؑ زمونږنه جداځکه غسل کوي چې پده باندې مرض دَادرة دې يعني خصيتين ئې پړسيدلي دي،اوياورباندې برص دې،ياځه بل څه آفت دې،نوالله ﷻ اراده وکړه چې دې بري کړي دَدوئ دَدې خبري نه،نويوځل ئې يواځې غسل کولو،جامی ئې په يوه ګټه باندې کيخودلې،نوچې کله دَغسل نه فارغه شولواوجامي ئې راغستلې نوهغې ګټې ورنه جامي اوتختولې،نودې ورپسې روان شو،عصاورسره وه،ګټه مخکښ وه اودې ورپسې وؤاوآوازونه ئې ورته کول،ثوبي ياحجر،ثوبي ياحجريعني اې ګټې ځماجامي راکړه،حتّی چې مجلس دَبني اسرائيلوته اورسيدلو،هغوئ اوکتل نوپده باندې هيڅ مرض نه وؤ،موسیٰؑ هغه ګټه په عصاباندې اووهله اوجامي ئې

ترينه واغستي اوپه كته باندې دموسى﵇ دضرب څلور .پنځه نښانات جوړشول،نوپدې طريقه الله ﷻ دموسى﵇ برات دتولومخكښې اوكړو .دې واقعې بيانولونه بعدحضور ﷺ اوفرمائيل:هم دامطلب دې ددې آيت:كالذين اذوا موسى.

دهغه شان يو الزام دا هم ووچې قارون يوخل دامنصوبه جوړكړه چې په موسى﵇ باندې دزناتهمت اوتړي،اوهغه ته ايذاء ورسوي،نويوې فاحشې ښځې ته ئې دډيردولت لالچ وركړو،اوددې دپاره ئې تياره كړه،خلق ئې راجمع كړل،موسى﵇ ئې رااوغوښتلوچې راشه اوخلقوته وعظ اوكړه،موسى﵇ قوم ته وعظ كولو.نوقارون ورنه تپوس اوكړوچې دزناكارسزاخه ده؟موسى﵇ ورته اووئيل چې هغه به قتل كيږي،قارون ورته اووئيل چې كچرته تازناكړې وي نوبيا؟موسى﵇ ورته اووئيل داحكم دټولودپاره يوشان دې.قارون په عامه مجمع كښې اووئيل چې فلانئ ښځه وائي چې تاهغې سره بدكاري كړيده،موسى﵇ هغې ښځې ته قسم وركړوچې رشتيارشتيااووايه نوهغې ښځې اقراراوكړوچې قارون ماته ددولت لالچ راكړې وؤاوخه ئې تياركړې ومه چې په تاباندې بهتان وترم،نوموسى﵇ ته پدې باندې ډيره ايذاء ورسيدله،موسى عليه السلام زمكې ته حكم اوكړو چه چې: "خذيه" داقارون اونيسه،نوزمكې قارون خسف كړو.

يوه ايذا داهم وه چې بني اسرائيلوپه موسى﵇ باندې دځپل وروړهارون﵇ دقتل تهمت لګوه ولې وؤ،په هغې وخت كښې كله چې هارون﵇ اوموسى﵇ غرته اوختل،نوهارون﵇ وفات شو،نوبني اسرائيلوموسى﵇ ته اووئيل چې دې تاقتل كړيدې،الله ﷻ دفرشتوپه ذريعه دموسى﵇ برات اوكړو(روح المعاني،كبيروغيره)﴿وَكَانَ عِندَ ٱللَّهِ وَجِيهٗا﴾يعني موسى﵇ عندالله عزت منداومرتبه والاوؤ،رفيع القدروؤ. دهارون﵇ درسالت سوال ئې كړې وؤ،وئيلي وؤ، واجعل لي وزيرامن اهلي،الله ﷻ ئې داسوال قبول كړې وؤحالانكه رسالت دچاپه سفارش سره نه ملاويږي،اوالله ﷻ ورسره كلام كړې وؤ،اوپه كليم الله سره ئې ملقب كړې وؤ.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا | ٱتَّقُوا ٱللَّهَ | وَقُولُوا | قَوۡلًا | سَدِيدٗا ۝ | يُصۡلِحۡ | لَكُمۡ | | أَعۡمَٰلَكُمۡ |
| اې مؤمنانولويريږئ | دالله ﷻ | نه،اوكوئ | خبره | سمه،سم | به | كړي | الله ﷻ | ستاسوعملونه |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيَغْفِرْ | لَكُمْ | ذُنُوبَكُمْ | وَمَن | يُطِعِ | اللَّهَ | وَرَسُولَهُ | فَقَدْ |

اوأوبه بخښي تاسوته ګناهونه ستاسو،اوڅوک چه اطاعت وكړي دالله ﷻ اودرسول دهغه،نوپه تحقيق

فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا ﴿٧١﴾

دي كامياب شوپه كاميابئ لوئ سره

﴿يَٰأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ﴾دالسم(١٠)خطاب دي مؤمنانوته،چي الله تعالى نه يريږى اودې معامله سمه خبر كوئ،مكښې خطاب كښې نهى وه دَ داسې خبرونه چې هغه نا روا وي او نبى صلى الله عليه وسلم ته پرى تكليف رسيدو،اوديكښې امراوحكم دې،چې په دې معامله كښې به چپ نه پاتې كيږئ،بلكه سمه اودانصاف خبره به كوئ ﴿قَوْلًا سَدِيدًا﴾قول سديد حق خبرې ته وائى،چې افراط وتفريط باندې نوى مبنى،بلكه انصاف باندې مبنى وى

﴿يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَٰلَكُمْ﴾مجزوم دې جواب امر په وجه،اصلاح ويلى كيږى سمولوته،دلته ترينه مراد دادې چې يوخوبه ورله دَنيک اعمالو توفيق وركړې،بل په داسې طريقى باندې اداكولو توفيق به وركړى چې هغه طريقه دَالله تعالى خوخه وي اودَ الله تعالى په نيز مقبوله وى،

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّا | عَرَضْنَا | الْأَمَانَةَ | عَلَى | السَّمَٰوَٰتِ | وَالْأَرْضِ | وَالْجِبَالِ | فَأَبَيْنَ |

بيشكه مونږه پيش كړې وؤ امانت په آسمانونوباندې،اوپه زمكه باندې،اوپه غرونوباندې،نودوئ انكار وكړو

أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنسَانُ إِنَّهُۥ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا ﴿٧٢﴾

دَدې نه چه باركړې دا،اوويريدل دترينه نه،او اوچت اوكړو دهغه امانت انسان،بيشكه دې وؤډيرظلم كونكې،بې خبره،

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لِّيُعَذِّبَ | اللَّهُ | الْمُنَٰفِقِينَ | وَالْمُنَٰفِقَٰتِ | وَالْمُشْرِكِينَ | وَالْمُشْرِكَٰتِ | |

دپاره ددې چې عذاب وركړى الله ﷻ منافقانوسړوته اومنافقانوښځوته اومشركانوسړو اومشركانوښځوته.

| |
|---|
| ﴿وَيَتُوبَ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ |
| اورجوع درحمت وکړی الله ﷻ په مؤمنانوسړواوپه مؤمنانوښځواو الله ﷻ بخښونکي،مهربانه دي |

﴿إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَوَاتِ﴾دي آياتونوکښ زجراوتخويف دي منافقانو اومشرکانوته.چي دکوم بوج «يعني احکامات الهيه» اوچتولواوذمه داري اخستلونه زمکه،اسمان،غرونه يريدلي وؤاوانکارئي کړي وؤهغه انسان بخپله ذمه واخستلو،ليکن منافقانواومشرکانوداحکام الهيه ؤمخالفت اوکړواودي ذمه دارئ حق ئي اداء نه کړو،چي ددي پوجه به ورته په آخرت کښ عذاب ورکولي کيږي.

ددي آيت په تفسيرکښ متعدداقوال دي(۱)اول قول چي داعام فهم اوآسان دي هغه داچي دالله ﷻ احکامات چي داپمنزله دامانت دي،داالله ﷻ اسمانونواوزمکي اوغرونوته پيش کړل،ورستودعقل،شعوراوقوت نُطق ورکولونه،اوپه صورت دمنلوکښ ئي ورسره دثواب وعده اوکړله اوپه صورت دنه منلوکښ يئ ورسره دعذاب وعده اوکړله اواختيار ورته د قبولو او نه قبولو ورکړيشو﴿فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا﴾نوآسمانونو،زمکي، اوغرونودقبولونه انکاراوکړوچي مونږدابوج نشواخستلي،اوداانکارئي دابليس په شان نه وؤچي دسجدي نه ئې انکارکړي وؤبلکه دخپل حقارة اوضعف داظهارلپاره وؤ(کبير).

﴿وَحَمَلَهَا الْإِنسَانُ﴾الانسان کښ الف لام عهدی دي،ادم عليه السلام ورنه مراددي،يعني آدم عليه السلام دابوج اخستل قبول کړو،په حديث دابن عباس رضي الله عنه کښ دي چي داسمان اوزمکي اوغرونودانکارنه ورستوالله ﷻ آدم عليه السلام ته خطاب اوکړوچي«اني عرضت الامانة على السموات والارض والجبال،فلم تطقهافهل انت آخذهابمافيها»يعني ماپيش کړوامانة په اسمانونواوزمکي اوغرونوباندي نوهغوئ داطاقت اونه لرلونوآياته اغستونکي ئی دي امانة لره سره دهغي نه چي پدي کښ دي،نوآدم عليه السلام عرض اوکړو:اي ربه!پدي کښ څه دي؟الله ﷻ ورته اوفرمائيل:ان احسنت جوزيت وان اسات عوقبت.يعني که اطاعت دي اوکړونوثواب به درته ميلاويږي اوکه نافرماني دي اوکړه نوسزابه درته ميلاويږي.نوادم عليه السلام دابوج واغستلووقال:بين أذني وعاتقي.﴿إِنَّهُ كَانَ﴾ضميرراجع دي انسان ته اومرادورنه جنس انسان دي،﴿ظَلُومًا﴾يعني عملي

كوتاهي كونكې اوخلاف ورزي كونكې دې، ﴿جَهُولاً﴾علمي اواعتقادي كوتاهي كونكې دې اوظلوم جهول ورته پاعتبارداكثروسره وئيلى شويدي،داتفسيردحضرت ابن عباس رضي الله عنهما،ابن جبير،حسن بصري رحمه الله،نه منقول دي،دَدې تفسيرپه بناء باندې دَ﴿ إِنَّا عَرَضْنَا ٱلْأَمَانَةَ ﴾نه مراددَاسلام اوټول احكامات الهيه پيش كول دي،قال الخازن:الامانة الاسلام

(۲)دويم قول صاحب دَمدارك دَزجاج رحمه الله نقل كړيدى چې په آيت كريمه كښ حمل په معنى دَخيانت سره دې اودَ﴿ إِنَّا عَرَضْنَا ٱلْأَمَانَةَ ﴾نه مرادمناسب احكامات وركول دي،نومطلب دادې چې الله جل جلاله هرهرڅيزته خپل خپل مناسب احكامات وركړل،اوانسان ته ئې هم احكامات وركړل.﴿فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا﴾نوهيڅ څيزخيانت اونكړو،لكه بل ځائ كښ الله تعالى فرمائى:فقال لها وللارض ائتياطوعااوكرهاقالتااتيناطائعين(حم سجده:۱۱)اوپه بل ځائ كښ د(الم تران الله يسجدله من فى السموات ومن فى الارض والشمس والقمروالنجوم والجبال حج:۱۸) بل ځائ كښ دي: وانّ منهالمايهبط من خشية الله (بقره:۷۴)﴿وَحَمَلَهَا ٱلْإِنسَٰنُ﴾يعني صرف انسان خيانت اوكړواودَانسان نه مرادمشرك اومنافق دې،قال الزجاج:الكافروالمنافق حملاالامانة اى خاناولم يُطيعا،ومَن اطاعَ من المؤمنين فلأيقال كان ظلومًاجهولاً(مدارك).

(۳)دريم قول چې دادَشاه ولي الله رحمه الله نه منقول دې،هغه داچې دَامانت نه مرادعهدهٔ تكليف (دَمكلف كولوذمه داري)ده،اودَپيش كولونه مراداضافت اواسناددې استعداددَ هغوئ ته چې په اسمانونوكښ اوزمكه اوغرونوكښ استعداددَقبولولشته اوكنه؟ ﴿فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا﴾ اِباء طبعي مراده،يعني دوئ كښ دَقبوليت استعدادنه وو.﴿وَحَمَلَهَا ٱلْإِنسَٰنُ﴾حملِ طبعي مراددې،يعني د انسان په طبعيت كښ دَقبولواستعدادووُ،نوهغه داباراوچت كړو﴿إِنَّهُۥ كَانَ﴾داورله پمنزله دَتعليل دې ،﴿ظَلُومًا﴾ظلم وئيلى كيږي،عدم العدل عمّا من شانه ان يكون عادلاً،يعني صلاحيت دَعدل پكښ موجودوي اوبياهم عدل نه كوي،لكه عمي،وئيلى كيږي،عدم البصرعمّامن شانه ان يكون بصيرًا﴿جَهُولاً﴾جهل وئيلى كيږي،عدم العلم عمّامن شانه

ان یکون عالماً.نو مطلب دا شو چې انسان(کافر) اګرچه عملی طورباندې عدل نکوی او الله تعالی واحدانیت علم نه حاصلوی خو هغه کښې دَ عدل او دَ علم حاصلولو استعداد شته،ځکه دا ذمه داری الله هغه ته حواله کړیده.

دآیت کریمه په تفسیرکښې نوراقوال هم شته جمهورمفسرین وایئ چې دَحضرت ابن عباس ﷺ دَحدیث نه(کوم چې په ضمن دَاول قول کښې ذکرشو)دامعلومیږي چې داعرض امانة دَمیثاق ازلي نه مخکښې شویدې اوعهددَ الستُ بربکم دَامانة باراوچتولواوله کړئ وه

﴿لِّيُعَذِّبَ ٱللَّهُ ٱلْمُنَٰفِقِينَ﴾لام دَعاقبة دپاره دې اومتعلق دې دَ﴿وَحَمَلَهَا ٱلْإِنسَٰنُ﴾سره،یعني په امانت کښې خیانت کولو انجام به داوي چې منافقانو ومنافقاتو،اومشرکینو،مشرکاتوته به عذاب ورکولی کیږي،اودَامانت حق اداء کونکومؤمنانو،مؤمناتوته به اجراوثواب ملاویږي.

تم تفسیرسورة الاحزاب بعون الملكِ الغفار.

**عنوان** **صفحه**

## سورة النور


ربط معنوی .نامی.اودسورت دَمضامینو اجمالی اوتفصیلی خلاصه (۱)

سُوۡرَةٌ اَنۡزَلۡنٰهَا دَسورت اوله حصه،چې په یکښې تمهید .ترغیب الی القران دي ...... (۳)

اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيۡ تمهید نه ورستو دَسورة په احکامو کښې اول حکم لپاره دَ تطهیر دَمعاشرې (۴)

دَزانيې محصن غیر محصن سزا ........ ........ ........ ........ (۵)

اَلزَّانِيۡ لَا يَنۡكِحُ دویم حکم دَ معاشرې دَتطهیر لپاره،اودَ آیت تفسیر (۷)

وَالَّذِيۡنَ يَرۡمُوۡنَ الۡمُحۡصَنٰتِ دریم حکم دَ تطهیر دَ معاشرې ... (۱۰)

وَلَا تَقۡبَلُوۡا لَهُمۡ شَهَادَةً اَبَدًا دآیت تفسیر کښې دَ ائمو اقوال ........ (۱۱)

وَالَّذِيۡنَ يَرۡمُوۡنَ اَزۡوَاجَهُمۡ څلورم حکم دَ تطهیر دَ معاشرې اودآیت شان نزول ........ (۱۳)

اِنَّ الَّذِيۡنَ جَآءُوۡ بِالۡاِفۡكِ واقعې دَ افک تفصیلی بیان ........ (۱۷)

اِنَّ الَّذِيۡنَ يَرۡمُوۡنَ الۡمُحۡصَنٰتِ تهمت لګونکو ته زجر اودآیت تفسیر ........ (۲۷)

اَلۡخَبِيۡثٰتُ لِلۡخَبِيۡثِيۡنَ دآیت تفسیر کښې درې ۳ اقوال ........ (۲۹)

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَدۡخُلُوۡا بُيُوۡتًا دَتهمت ذرائع بندیدلو لپاره ده شپږ ۶

قوانینو کښې اول قانون ........ (۳۰)

قُلۡ لِّلۡمُؤۡمِنِيۡنَ يَغُضُّوۡا دویم قانون اودَ آیت تفسیر ........ (۳۴)

وَقُلۡ لِّلۡمُؤۡمِنٰتِ يَغۡضُضۡنَ دریم قانون اودَ آیت تفسیر ........ (۳۵)

وَاَنۡكِحُوا الۡاَيَامٰى مِنۡكُمۡ اصلاحِ معاشرې لپاره څلورم قانون ........ (۴۳)

وَالَّذِيۡنَ يَبۡتَغُوۡنَ الۡكِتٰبَ پنځم قانون ........ (۴۵)

وَلَا تُكۡرِهُوۡا فَتَيٰتِكُمۡ شپږم قانون ........ (۴۷)

اَللّٰهُ نُوۡرُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ دَ آیت ماقبل سره ربط اوتفسیر ........ (۴۸)

وَالَّذِيۡنَ كَفَرُوۡۤا اَعۡمَالُهُمۡ كَسَرَابٍ دَمشرکانو او کفارو دَاعمالو مثال اودآیت تفسیر ........ (۵۲)

اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُسَبِّحُ لَهٗ اول دلیل عقلی په توحید ... (۵۹)

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُزْجِىْ دويم دليل عقلی په توحيد ...... (۶۱)

وَاللّٰهُ خَلَقَ كُلَّ دَآبَّةٍ مِّنْ مَّآءٍ دريم دليل عقلی ..... (۶۳)

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا دري اسباب دَ بشارت اودآيت شان نزول اوتفسير ...... (۶۹)

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِيَسْتَاْذِنْكُمُ دَسورت دويمه حصه چه پکښې دَ معاشري دَ اصلاح
دري۳قوانين ذكر كيږي دا اول قانون دي ...... (۷۳)

وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَآءِ الّٰتِىْ دويم قانون ..... (۷۶)

لَيْسَ عَلَى الْاَعْمٰى حَرَجٌ دريم قانون او دَ آيت شان نزول ..... (۷۷)

سورت فرقان

ربط اسمی معنوي دعوه دَ سورت اومختصره ،تفصيلی خلاصه ...... (۸۲)

تَبٰرَكَ الَّذِىْ دعوهٔ سورت اول ځل او دآيت تفسير ...... (۸۸)

اَلَّذِىْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ اول دليل عقلی په دعوی دَ سورت ...... (۸۸)

اَلَّذِىْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ دويم ،دريم دليل عقلی ...... (۹۰)

وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ څلورم دليل عقلی ...... (۹۱)

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا دمشركانو شپږ شكوي اودهغی نه جوابونه ...... (۹۲)

تَبٰرَكَ الَّذِىْٓ اِنْ شَآءَ دعوه دَ سورت دويم ځلی ...... (۹۵)

وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ آيت تفسير اوشان نزول ...... (۱۱۰)

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ دلائل نقليه په دعوی دَ سورت ...... (۱۱۷)

وَعَادًا وَّثَمُوْدَا مزيد دلائل نقليه ...... (۱۱۹)

اَلَمْ تَرَ اِلٰى رَبِّكَ پنځم دليل عقلی ...... (۱۲۱)

وَهُوَ الَّذِىْ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ لِبَاسًا شپږم دليل عقلی ...... (۱۲۴)

وَهُوَ الَّذِىْٓ اَرْسَلَ الرِّيٰحَ اووم عقلی دليل او تفسير دَ آيت ...... (۱۲۵)

وَهُوَ الَّذِىْ مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ اتم علقی دليل ...... (۱۲۸)

وَهُوَ الَّذِىْ خَلَقَ مِنَ الْمَآءِ نهم عقلیٔ دليل او تفسير ...... (۱۳۰)

اَلَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ لسم عقلی دليل ...... (۱۳۴)

تَبٰرَكَ الَّذِیْ جَعَلَ فِی السَّمَآءِ اعاده دَ دعوی دَ سورت او یولسم (۱۱) دولسم (۱۲) دلائل عقلیه (۱۳۲)
په آخر دَ سورت کښې دمؤمنانو څوارلس (۱۴) صفات ........ (۱۳۸)

سُوْرَةُ الشُّعَرَآءِ

یط اسمی معنوی، دعوه دَ سورت، مختصره، تفصیلی خلاصه ........ (۱۵۴)
لسمٓ په معنی کښې تاویلات ........ (۱۵۷)
تِلْكَ اٰیٰتُ الْكِتٰبِ دَ سورت اوله حصه چې پکښې تمهید او ترغیب الی القرآن ذکر کیږی ........ (۱۵۸)
فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ دَ آیت تفسیر په ضمن دَ سوال جواب کښې ........ (۱۵۸)
فَظَلَّتْ اَعْنَاقُهُمْ تفسیر په ضمن کښې دَ سوال جواب ........ (۱۵۹)
اِذْ نَادٰی رَبُّكَ دَ سورت دویمه حصه، په دعوی دَ سورت باندی اوه (۷) دلائل
نلیۆ کښې اول دلیل نقلی، دَ موسی علیه السلام تفصیلی واقعه ........ (۱۶۳)
تِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَیَّ دَ آیت په تفسیر کښې یو څو توجیهات ........ (۱۷۱)
اُتْلُ عَلَیْهِمْ نَبَاَ اِبْرٰهِیْمَ دویم دلیل نقلی په دعوی دَ سورت،
ابراهیم علیه السلام تفصیلی واقعه ........ (۱۹۲)
كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوْحِ الْمُرْسَلِیْنَ دریم دلیل نقلی په ذکر کولو دَ واقعی دَ نوح علیه السلام سره ........ (۲۰۹)
كَذَّبَتْ عَادُ الْمُرْسَلِیْنَ څلورم دلیل نقلی په ذکر کولو دَ واقعی دَ هود علیه السلام سره ........ (۲۱۵)
كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ الْمُرْسَلِیْنَ پنځم دلیل نقلی په ذکر کولو دَ واقعی دَ صالح علیه السلام سره ........ (۲۲۰)
كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوْطِ الْمُرْسَلِیْنَ شپږم دلیل نقلی په ذکر کولو دَ واقعی دَ لوط علیه السلام سره، ........ (۲۲۵)
كَذَّبَ اَصْحٰبُ لْئَیْكَةِ الْمُرْسَلِیْنَ اووم دلیل نقلی په ذکر کولو دَ واقعی دَ شیعب
علیه السلام سره ........ (۲۳۰)
وَاِنَّهٗ لَتَنْزِیْلُ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ دَ سورت دریمه حصه او آخری حصه ........ (۲۳۴)
وَلَوْ نَزَّلْنٰهُ عَلٰی بَعْضِ الْاَعْجَمِیْنَ دَ آیت یو څو تفسیرونه ........ (۲۳۸)
فَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ پنځه امور مرتبه په ماقبل په منزلې دَ نتیجې ........ (۲۴۴)
وَتَقَلُّبَكَ فِی السّٰجِدِیْنَ دَ آیت یو څو معنی او مطلبونه ........ (۲۵۰)
فائده: آیا مور پلار د نبی پاک صلی الله علیه وسلم مؤمنان وو که غیر مؤمنان وو. ........ (۲۵۸)

وَالشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوٗنَ په نبی پاک صلی الله علیه وسلم او قرآن باندی دَ مشرکانو دَیوې شبهې جوابونه ..... (۲۵۳)
فائده :دشعروشاعری حیثیت په شریعت کښ ..... (۲۵۴)

سورت نمل

ربط اسمی معنوی، مختصره ،تفصیلی خلاصه دسورت ..... (۲۶۰)
اِذْقَالَ مُوْسٰی لِاَهْلِهٖ اوله واقعه متعلق اولی دعوی سره ..... (۲۶۸)
نُوْدِيَ اَنْۢ بُوْرِكَ مَنْ فِي النَّارِ دآیت تفسیر کښ متعدد اقوال ..... (۲۷۰)
اِلَّا مَنْ ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ تفسیر کښ متعدد اقوال ..... (۲۷۵)
وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ دویمه واقعه اولی دعوی سره متعلقه ..... (۲۷۷)
وَلَقَدْ اَرْسَلْنَاۤ اِلٰی ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ دریمه واقعه دویمی دعوه سره متعلقه ..... (۳۱۲)
وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖ خلورمه واقعه دویمی دعوه سره متعلقه ..... (۳۱۹)
اَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ دویمی دعوه باندې پنځه دلائلو کښ اول دلیل عقلی
اَمَّنْ جَعَلَ الْاَرْضَ دویم دلیل عقلی او دَ آیت تفسیر ..... (۳۲۲)
اَمَّنْ يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ دریم عقلی دلیل او تفسیر دَ آیت ..... (۳۲۲)
اَمَّنْ يَّهْدِيْكُمْ خلورم دلیل عقلی او تفسیر دَ آیات ..... (۳۲۷)
اَمَّنْ يَّبْدَؤُا الْخَلْقَ پنځم دلیل عقلی ..... (۳۲۸)
وَاِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ په دواړو دعوؤ دَ سورت باندې یو یو دلیل ..... (۳۳۲)
اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى دآیت تفسیر دَسماع موتی مسئله تفصیلی بحث ..... (۳۳۹)
وَاِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ دآیت په تفسیر کښ اقوال ..... (۳۵۲)

سورت قصص

ربط دعوه سورت، اجمالی اوتفصیلی خلاصه ..... (۳۶۷)
نَتْلُوْا عَلَيْكَ مِنْ نَّبَاِ دَموسی علیه السلام اجمالی قصه اودآیاتونو تفسیر ..... (۳۷۰)
وَنُرِيْدُ اَنْ نَّمُنَّ عَلَى الَّذِيْنَ په بنی اسرائیلو باندې پنځه نعمتونو تذکره اودَ آیاتونو تفسیر ..... (۳۷۲)
وَاَوْحَيْنَاۤ اِلٰۤى اُمِّ مُوْسٰۤى دَموسی علیه السلام تفصیلی واقعه کښ اول مقام ..... (۳۷۴)

